قال الله تبارک وتعالی

بسم الله الرحمن الرحیم

﴿فَسْئَلُوٓا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم

إِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ (الحدیث)

# احسن الفتاوی

## پنځم جلد

(له كتاب الجهاد څخه تر آخر د كتاب الوديعة والعارية والهبه پورې)

تالیف: فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی

ناشرین

مولوی محمد ظفر ((حقانی))　　مولوی امیر الله ((شیرانی))

د ملاویدو پته

مکتبه فریدیه محلد جنگی قصه خوانی پیښور

د کتاب نوم : احسن الفتاوی (پنځم جلد) (له کتاب الجهاد څخه تر آخر د کتاب الودیعة والعاریة والهبه پورې).
د مؤلف نوم : فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی
پښتو ترجمه او کمپوز : مولانا محمد همایون او مولانا محمد عارف.
ډیزاین، اصلاح او نظر ثانی : حافظ محمد ولی (بغلانی)
د چاپ کال : ۲۰۱۲
د چاپ شمیر : ۱۰۰۰ ټوکه
**ناشرین** : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))
د ملاویدو پته : مکتبه فریدیه محله جنگی قصه خوانی پیښور
د مکتبې مسؤل : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) صاحب.

# كِتَابُ الْجِهَاد

إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ۚ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ ۖ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ ۚ وَمَنْ أَوْفَىٰ بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ ۚ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُم بِهِ ۚ وَذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (۹: ۱۱۱)

قُلْ إِن كَانَ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ وَإِخْوَانُكُمْ وَأَزْوَاجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَالٌ اقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَارَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَاكِنُ تَرْضَوْنَهَا أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَجِهَادٍ فِي سَبِيلِهِ فَتَرَبَّصُوا حَتَّىٰ يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ (۹: ۲۴)

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ ۚ أَرَضِيتُم بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ ۚ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ إِلَّا تَنفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا ۗ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا ۖ فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ ۗ وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ انفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوكَ وَلَٰكِن بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ۚ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنفُسَهُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ (۹: ۳۸ تا ۴۲)

# کتابُ الجهاد

## د دارالحرب نه د هجرت حکم:

**سوال**:- دبرما په مسلمانانو باندې چه کوم ظلم او زیاتې کیږی هغه واضح دې، منجمله د هغوی داسلام په رکنِ اعظم (حج) باندې پابندی ده، په دې صورت کښې مسلمانانو ته ددې ځائ نه هجرت ضروری دې اوکه نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چرته چه دین یا نفس یا عزت یا مال محفوظ نه وی دهغه ځائ نه هجرت کول فرض دی مطلقِ دارالحرب کیدل موجب د هجرت نه دې، که چرته په برما کښې د مسلمانانو نفس یا مال محفوظ نه وی، یا مونځ، روژه یا قربانئ وغیره شعائرِ اسلام باندې پابندی وی نو هجرت فرض دې، صرف په حج باندې د پابندئ د وجه نه هجرت فرض نه دې، ځکه چه حج د ارادې د ښکاره کولو نه بغیر هم ادا کیدلې شی، که چرته یو صورت هم ممکن نه وی نو د امام صاحب رحمة الله علیه په نزد باندې حج فرض نه دې، د صاحبینو رحمهما الله په نزد باندې د بل چا په واسطه حج کول فرض دی، ددې نه پس که عذر ختم شی نو پخپله حج کول فرض دی، په تصحیح کښې اختلاف دې، اکثرو مشایخو رحمهم الله د صاحبینو قول لره اختیارکړې دې، علاوه ددې نه احوط هم دادې، دا اختلاف په هغه صورت کښې دې چه د حکومت د طرف نه د پابندئ نه پس حج فرض شوې وی، که چرته د پابندئ نه وړاندې حج فرض وو نو په اتفاق سره د بل چا په واسطه باندې حج کول فرض دی، قال فی العلائیة غیر محبوس وخائف عن سلطان یمنع منه، وفی الشامیة فلا یجب علی مقعد ومفلوج وشیخ کبیر لا یثبت علی الراحلة بنفسه واعمی ان وجد قائدا ومحبوس وخائف من سلطان لا بأنفسهم ولا بالنیابة فی ظاهر المذهب وهو روایة عنهما وظاهر الروایة عنهما وجوب الاحجاج علیهم ویجزیهم ان دام العجز وان زال اعادوا بأنفسهم، والحاصل من شرائط الوجوب عنده ومن شرائط وجوب الاداء عندهما وثمرة الخلاف تظهر فی وجوب الاحجاج والایصاء کما ذکرنا وهو مقید بما اذا لم یقدر علی الحج وهو صحیح فان قدر ثم عجز قبل الخروج الی الحج تقرر دینا فی ذمته فیلزمه الحجاج (الی قوله) وظاهر التحفة اختیار قولهما وکذا الاسبیجابی وقواه فی الفتح ومشی علی ان الصحة من شرائط وجوب الاداء من البحر والنهر وحکی فی اللباب اختلاف التصحیح وفی شرحه انه مشی علی الاول فی النهایة وقال فی البحر العمیق انه المذهب الصحیح وان الثانی صححه قاضی خان فی شرح الجامع واختاره کثیر من المشائخ ومنهم ابن الهمام (ردالمحتار ج۲ص۳) فقط والله تعالی اعلم

۱۸ رمضان ۸۸ هجری

## د دار الحرب نه اسمګلنګ (قاچاق) کول

**سوال** :- برما د کافرانو حکومت دې چه سرحد سره ئې متصل د مسلمانانو حکومت دې چه په هغې کښې د برما مسلمانان اسمګلنګ (قاچاق) کوی ، چه کله هغوی ته دا وئیلې کیږی چه اسمګلنګ کول ناجائز دی نو د هغه ځائ بعضې علماء په جواب کښې دا وائی چه برما دارالحرب دې ، دارالحرب نه دارالاسلام ته اسمګلنګ کول جائز دی ، آیا دهغوی دا قول صحیح دې اوکه نه ؟ بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چرته د برما د مسلمانانو اود حکومت په مینځ کښې علانیه محاربه نه وی نو د هغه ځائ نه مال اسمګلنګ کول جائز نه دی ، فقط والله تعالی اعلم

جمادی الاولی ۹۳ هجری

## ددارالحرب مسلمانانو ته د حکومتِ مسلمه مقابله کول جائز نه دی

**سوال** :- د کافرانو په فوج کښې د مسلمانانو فوج هم وی او دا مسلمان فوج د جنګ په دوران کښې په یو مسلمان ملک باندې حمله اوکړی ، دا مسلمان فوج چه د کافرانو د طرف نه جنګیږی که چرته د مسلمانانو د لاسه اووژلې شی نوآیا دا به شهید وی ؟ ځکه چه دوی مجبوره دی ، ګورنمنټ د کافر ملازم دې ، د حکم تعمیل کول وی ، یا د مسلمان فوجی به د آیتِ کریمې «**ومن یقتل مؤمناً متعمداً**» لاندې جهنمی به وی ؟ یعنې اووژلې شی بیا هم او مړ شی نوبیا هم ، شرعاً څه حکم دې ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د کافرانو په فوج کښې که چرته مسلمان حمایةً راشی نو هغه هم په هغوی کښې دې ، که دهغه لاس نه د حکومتِ مسلمه یو مسلمان فوجی مړ شی نو هغه شهید دې ، او که هغه لره د حکومتِ مسلمه فوجی قتل کړی نو دې شهید نه دې ، دې مجبور نه دې ، ده ته اختیاروو چه د حکومتِ کافره د فوجی ملازمت ونه کړی ، که چرته د کافر حکومت د طرف نه جبر وی نو بیا هم د مسلمانانو په مقابله کښې وتل حرام دی ، که چرته د حکومت د طرف نه د مرګ د سزا تهدید وی نو بیا هم قتلِ مسلم جائز نه دې ، که حکومت هغه لره قتل کړو نو شهید دې ، **قال** فی شرح التنویر ورخص له اتلاف مال مسلم اوذمی اختیار بقتل بقتل اوقطع ویؤجر لوصبر ابن ملک (الی قوله) لایرخص قتله اوسبه اوقطع عضوه ومالا یستباح بحال اختیار ، وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی (قوله اوسبه) مخالف لما فی القهاستانی عن المضمرات من انه بالملجیٔ یرخص شتم المسلم وانه لوا کره علی الافتراء علی مسلم یرجی ان یسعه کما فی الظهیریة اه وقال فی التاترخانیه الاتری انه لوا کره بمتلف ان یفتری علی الله تعالی کان فی سعة فهنا اولی الا انه علق الاباحة بالرجاء وفی الافتراء علی الله لم یعلق لانها هناک ثابتة بالنص وهنا

ثبت دلالة قال محمد رحمه الله تعالى عقيب هذه المسالة الا ترى انه لو اكره بوعيد تلف على شتم محمد صلى الله عليه وسلم كان فى سعة ان شاء الله تعالى وطريقه ما قلنا ولو صبر حتى قتل كان ماجورا وكان افضل اهـ (قوله او قطع عضوه) اى ولو اذن له المقطوع غير مكره فان قطع فهو اثم ولا ضمان على القاطع ولا على المكره ولو اكره على القتل فاذن له فقتله اثم والدية فى مال الامر تاتر خانية لكن فى الخانية قال له السلطان اقطع يد فلان والا لا قتلنك وسعه ان يقطع وعلى الامر قصاص عندهما ولا رواية عن ابى يوسف رحمه الله تعالى اهـ ثم رايت الطورى وفق بانه ان اكره على القطع باغلظ منه وسعه وان بقطع او بدونه فلا تامل واتى بضمير الغيبة العائد على غيره لما فى الهندية اكره بالقتل على قطع يد نفسه وسعه ذلك وعلى المكره القود ولو على قتل نفسه فقتل فلا شىء على المكره اهـ (رد المحتار ص ۹۳ ج ۵) فقط والله تعالى اعلم

۱۱ رجب ۹۳ هجرى

## د معاويه رضى الله عنه خلافت

**سوال**: د جماعت اسلامى خلق وائى چه د حضرت معاويه رضى الله عنه نه پس حقيقى خليفه حضرت حسن رضى الله عنه وو، مگر معاويه رضى الله عنه جبراً قبضه وکړه، او دخپل حکومت په زمانه کښې يې قسماقسم ظلمونه کول، ددې جواب ليکلو سره زمونږه تسلى وکړئ، بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا عقيده په اصل کښې د شيعه ګانو ده، د جماعتِ اسلامى بانى مودودى صاحب هم يومعاصر شيعه وو، تفصيل دپاره څما رساله «مودودى صاحب او تخريبِ اسلام» ستاسو په خدمت کښې ده، کاش چه شيعه خلق هم د خپلو کتابونو په آئينه کښې د حضرت معاويه رضى الله عنه مقام وګورى، لاندې يو څو حوالې درج کيږى:

(۱) حضرت حسن رضى الله عنه د حضرت معاويه رضى الله عنه سره بيعت وکړو، فرايت ان اسالم معاوية واضع الحرب بينى وبينه وبايعته (كشف الغمة فى معرفة الائمة مطبوع ايران ص ۱۷۰) لما صالح الحسن بن على بن ابى طالب معاوية بن ابى سفيان دخل عليه الناس فلامه بعضهم على بيعته فقال ويحكم لا تدرون ما عملت والله للذى عملت خير لشيعتى (احتجاج طبرسى ص ۱۴۷)

حضرت حسن او حضرت حسين رضى الله تعالى عنهما د حضرت معاويه رضى الله عنه سره بيعت وکړو، سمعت اباعبدالله عليه السلام يقول ان معاوية كتب الى الحسن بن على صلوات الله عليهما ان اقدم انت والحسين (الى قوله) فقال (معاوية رضى الله عنه) يا حسن قم فبايع فقام فبايع ثم قال للحسين رضى

لہ عنہ ثم قبایع فقام فبایع (رجال کشی مطبوع کربلا ص ۱۰۲، بحار الانوار مطبوع ایران ص ۲۰ ج ۱۰) بلکه د حضرت معاویه رضی الله عنه نه پس حضرت حسین رضی الله عنه د یزید د بیعت هم عزم ښکاره کولو سره د یزید خلافت لره تسلیم کړې وو ، مګر دوی ته مهلت ورنه کړې شو . اما ان اضع یدی فی ید یزید (طبری ص ۲۳ ج ۶، البدایة والنهایة ص ۱۰ ج ۸) د شیعه ګانو په کتابونو کښې الشافی مطبوع ایران ص ۴۷۱ کښې هم دا روایت منقول دې ، علاوه ددې نه د یزید د حکومت لاندې د جهاد دپاره د درخواست پیش کولو روایت نه چاته د انکار مجال نشته، او دا د یزید د خلافت تسلیمولو واضح دلیل دې.

(۳) حضرت حسن رضی الله عنه قسم خوړلو سره فرمائی چه حضرت معاویه رضی الله عنه دهغه دپاره د ټولو شیعه ګانو نه بهتردې ، عن زید بن وهب الجهنی قال لما طعن الحسن بالمدائن اتیته وهو متوجع فقلت ما تری یا ابن رسول الله صلی الله علیه فان الناس متحیرون فقال اری والله ان معاویة خیر لی من هؤلاء یزعمون انهم لی شیعة (احتجاج طبری ص ۱۴۸)

(۴) حضرت معاویه رضی الله عنه حضرت حسن رضی الله عنه ته یو ځل پنځلس لاکھ درهم ورکړل چه ۱۰۳ / ۵ ټنه سپین زر کیږی، او یو ځل ئې څلورلاکھ درهم ورکړل چه ۱/۳۲۰۸ ټنه سپین زر کیږی او یو لاکھ درهم چه ۲/۳۴۰ کیلو سپین زر کیږی مستقل به سالانه وظیفه ورکوله (تاریخ عساکر ص ۲۰۰، ۲۰۱ ج ۳) شیعه مجتهد محمد حسین عف ډهکو ددې د صحت اعتراف کولوسره لیکلی دی چه دا د صلح په شرائطو کښې دیو شرط لاندې ګذراه الاؤنس وو ، تجلیات صداقت ص ۴۹۲)

مذهبِ شیعه کښې امام معصوم وی او حضرت معاویه رضی الله عنه معاذالله ظالم ، فاسق او غاصب وو ، سوال دادې چه د امام معصوم دپاره د ظالم او غاصب خلیفه د بیت المال نه دا پیسو اخستل څنګه حلال وو ؟ څو ټنه د سپینو زرو په مقدار کښې دراهم او سالانه یو لاکھ دراهم مستقل طور باندې د ورکولو شرط منلو سره دخلافت په شان خدائی امانت د ظالم او فاسق په حواله کولوسره پخپله د راحت او آرام ژوند تیرول اود ګذاره الاؤنس په عوض امت باندې د ظالم حکمران تسلط قبلول د امام د عصمت خلاف نه دی ؟ غرض دا چه د حضرت معاویه رضی الله عنه د خلافت نه انکار حقیقت کښې حضرت حسن رضی الله عنه باندې د خیانت الزام قائمول دی ، والله العاصم من جمیع الفتن

۲۶ جمادی الاولی ۹۶ هجری

## د جهاد شرائط

**سوال** الله تعالی دې دمسلمانانو درهنمائې دپاره ستاسو په عمر کښې برکت واچوی آمین.

ستاسو نه د لاندې مسائلو پوښتنه کيږي ، اميد دې چه په دلائيلو سره جواب راکړئ په دې وخت کښې اركانِ صوبهٔ برما کښې د مسلمانانو بدحالي قابل د رحم ده ، د ۱۹۴۲ ، نه بُت پرستانو قتلِ عام ، د پرده دارو ښځونه پرده اخستل ، مالونه او جائداد قبضه کولوسره مسلمانان ئې په تکليف کښې اچولي دي ، علماءِ کرام وه وژلې شول ، په ډيرو کښې يې اور ولږولې شو ، مساجدو لره بطورمورچه استعمال کړې شو ، او بې شميره د مسلمانانو آبادو لره او سوزولې شوې ، د ۱۹۲۱، نه حج او د مقدس مقاماتو په زيارت باندې مکمل پابندي ده ، په ډير مشکل سره په سلو درخواستونو کښې د لسو اجازت ورکولې کيږي ، د مسلمانانو اخباراتو او چهاپ خانو لره ئې بند کړل ، چه په هغې کښې قرآن مجيد او اسلامي کتابونه چاپ شوي وو ، د يو ښار نه بل ښار طرف ته تلل راتلل د مسلمانانو دپاره قانوناً ممنوع دي ، علی الاعلان د بت پرستانو مذهبي حکومت او عوام وائي چه د ډيرو والو او د توپيځ والو دپاره دلته ځائ نشته دې ، بت پرستان جوړ شئ يا ددې ځائ نه لاړ شئ ، علماؤ ته کرته اچولوسره دهغوی په مخامخ بدهٔ مذهب زنانو لره ګډې کړې شوې ، په دې طريقې سره د اسلام د علماؤ او د اسلام سپاکوې اوکړې شو ، په دې وخت کښې مسلسل خطونه د بنګله ديش نه راروان دي چه زمونږه جان اومال محفوظ نه دې ، «ناګالي آپريشن» نومې يو تحقيق او پلټنه راغی ، چه په هغې کښې د هرکلي ځوانانو لره ګرفتارولوسره چرته بوتللې شو ، هيڅ خبرنشته دې ، سپين ګيرو سړو لره يو کيمپ کښې ځوانې زنانو لره په بل کيمپ کښې جدا جدا جمع کولې کيږي او برمي سړي او د رايمګيرشن علمه کيمپنيو کښې تللو سره زنانو سره بدسلوکي او بې عزتي کوي ، څوک چه هم اعتراض کوي نو د ګولئ نشانه جوړولې کيږي ، په دې وخت کښې د شمالي اركان بوتهيډنګ نومې تاؤن شپ تقريباً د مسلمانانو نه خالي شوې دې ، په شلو پنځه ويشتو کلو کښې نيمه کورنئ پاتې شوې ده ، باقي ټول هجرت کولوسره د بنګله ديش سرحد ته راغلل ، ليکن بنګله ديش والا هغوی ته ځائ نه ورکوي ، واپس يې ليږي ، کوم خلق چه د کورونو نه راوتلي دي د هغوی کورونه کافرانو لوټ کړه ، په دې وخت کښې شمالي اركانو کښې يو قيامت دې ، «روهينګياقدائين محاذ» نومې يو تنظيم د ۱۹۲۴، نه برمي حکومت سره مسلح جدوجهد کولو او خپل مذهبي او سياسي حقوقو منلو دپاره فوجي تيارياني کوي چه زيات تر د برمي حکومت په مسلمانانو ، د سرکاري اود کالجونو او پوهنتونونو په طلباؤ باندې مشتمل دي ، بعضي خلق د تبليغي جماعت سره تعلق ساتلو والا اوعلماء كرام هم دي ، دا تنظيم «الفتح » تنظيم آزادي فلسطين ، «موروئيشنل ليريشن فرنټ » تنظيم آزادي فلپائن ، د ايريتهريا تنظيم آزادي د صاني مسلمانانو اود تساد افريقه مسلمانانو د تنظيمونو نوعيت څنګه دې ، چه په دې نازک وخت کښې برمي حکومت سره د مکمل تيارئ نه بغير د ناقابل برداشت ظلمونو پيش نظر د مسلح جدوجهد کولو آغاز کوي ، د مسلمانان د دعاء ګانو اود تعاون خواستګار دي ، په دې

کښې بعضې علماؤ ته شک دې ، لهذا تاسو ته تکلیف درکولې کیږی چه د الله دپاره ددې سوالونو مدلل جوابونه اوفرمائې :

(۱) ددې تنظیم شرعی حیثیت څه دې ؟

(۲) آیا ددې تنظیم په مسلح جدوجهد باندې د جهاد اطلاق کیږی اوکه نه؟

(۳) ددې تنظیم سربراه انګریزی تعلیم یافته دې ، مګر د مونځ ، روژې پابند دې ، او د دینی مسائلو نه هم څه واقف دې ، ځکه چه زمونږه تعلیم یافته طبقه کم وزیات د اردو نه واقفه وی او دینی کتابونه وائی ، آیا هغه ته امام جهاد وئیلې شی اوکه نه؟

(۴) په دې مسلح جدوجهد کښې که چرته چاته مرګ راشی نو هغه ته به شهید وئیلې کیدلې شی اوکه نه؟

(۵) دې تنظیم سره جانی او مالی تعاون څنګه دې او اخلاقاً څنګه دی ؟

(۶) **من قتل دون ماله فهو شهید ومن قتل دون اهله فهو شهید، ومن قتل دون عرضه فهو شهید**، آیا دا درې واړه جمله احادیث دی ، که چرته احادیث دی نو په کوم کتاب کښې دی ؟

(۷) آیا د کومو تنظیمونوچه وړاندې ذکر وشو دهغه ټولو یو حکم دې اوکه مختلف ؟ بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د اول (۱) نه تر پنځمه (۵) پورې ماته دهغه تنظیمونو متعلق څه علم نشته دې ، البته یوتنظیم سره د تعاون دپاره دوه شرطونه دی :

(۱) دهغې طریقه کار د شرع خلاف نه وی .

(۲) کامیابی متوقع وی .

**(۶) (سعید بن زید) رفعه من قتل دون ماله فهو شهید ومن قتل دون دمه فهو شهید ومن قتل دون دینه فهو شهید ومن قتل دون اهله فهو شهید لاصحاب السنن (جمع الفوائد ص۲۱ ج۲)**

(۷) د نورو ممالکو دتنظیمونو په باره کښې اجمالاً دومره علم دې چه دهغوی طریق کار د شریعت مطابق نه دې .

مقامی علماؤ باندې فرض دی چه عوامو ته د منکراتو د پریخودلو زیات نه زیات تبلیغ وکړی ،

**قال الله تعالی: ﴿وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظَّالِمِينَ بَعْضًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ وقال تعالی: ﴿ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي النَّاسِ لِيُذِيقَهُم بَعْضَ الَّذِي عَمِلُوا لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ وقال: ﴿وَمَا أَصَابَكُم مِّن مُّصِيبَةٍ فَبِمَا كَسَبَتْ أَيْدِيكُمْ وَيَعْفُو عَن كَثِيرٍ﴾ فقط والله تعالی اعلم**

**جمادی الاولی ہجری**

## د جهادي ضرورت دپاره ږیره خریيل جائز ندی

**سوال** : چه کله څوک سړي په جهاد باندي لاړ شی نو دهغه دپاره ږیره ښریل جائز دی یا نه؟ د جهاد دپاره چه کومه لاره ده هغلته کافران دی ، بغیر ږیري والا لره دننه پریږدی او ږیري والا لره وژنی ، بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ږیره خریيل حرام دی ، د جهاد د ضرورت د وجه نه د فعلِ حرام ارتکاب جائز نه دي ، بلکه داسي موقعو کښي د ګناه نه د بچ کیدلو او د استغفار زیات تاکید دي ، قال الله تعالی ﴿وَإِن تَصۡبِرُواْ وَتَتَّقُواْ لَا يَضُرُّكُمۡ كَيۡدُهُمۡ شَيۡـًٔا﴾ وقال حکایةً عن الربیین الذین کانوا یقاتلون مع نبیهم. ﴿رَبَّنَا ٱغۡفِرۡ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسۡرَافَنَا فِيٓ أَمۡرِنَا وَثَبِّتۡ أَقۡدَامَنَا وَٱنصُرۡنَا عَلَى ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡكَٰفِرِينَ﴾ ددي آیت د مضمون په ترتیب کښي په دي باندي دلالت دي چه چه څنګه نصرت په ثبات د قدمونو باندي موقوف دي هم دغه شان ثبات د قدمونو د ګناهونو نه په توبي او استغفار باندي موقوف دي ، **وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم فانه لا یدرك ما عند الله الا بطاعته. فقط والله تعالی اعلم.**

**۸ذی قعده۱۴۰۰هجری**

## دارالاسلام کښي غیرمسلمو ته د تبلیغی اجتماع اجازت نشته

**سوال** :- اسلامی ریاست کښي د کفراوشرک د تبلیغ اجازت ورکولي شی ؟ آیا بطورِ حسن سلوک اسلامی ریاست کښي کافرانو ته دهغوی د باطل دین د تبلیغ اجازت ورکولي شی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دارالاسلام کښي غیرمسلمین خپلو کورونو یا عبادت ګاهونو کښي مذهبی تبلیغ کولي شی آزادو مقاماتو باندي هغوی ته د تبلیغی اجتماع اجازت نه شی ورکولي ، تردي پوري چه هغوی خپل مذهبی کتاب هم په اوچت آواز سره نه شی وئیلي ، **قال العلامة العثمانی رحمه الله تعالی قلت ولا ینبغی للامام ان یهادنهم علی ما یخالف شروط عمر رضی الله عنه من غیر ضرورة فانه هو القدوة فی هذا الباب. قال الموفق وینبغی للامام عند عقد الهدنة ان یشترط علیهم شروطا نحو ما شرطه عمر رضی الله عنه وقد رویت عن عمر رضی الله عنه فی ذلك اخبار منها ما رواه الخلال باسناده فذکر ما ذکرناه فی المتن اه (ص۱۰۶ ج۱۲) وقد حکی ابن تیمیة اجماع الفقهاء وسائر الائمة رحمهم الله تعالی علی مراعاة تلك الشروط قال ولولا شهرتها عند الفقهاء لذکرنا الفاظ کل طائفة فیها (الی قوله) ومن جملة الشروط ما یعود باخفاء منکرات دینهم وترك اظهارها کمنعهم من اظهار الخمر والناقوس والنیران والاعیاد ونحو ذلك**

ومنها ما يعود باخفاء شعائر دينهم كأصواتهم بكتابهم (اعلاء السنن ص۲۶۳ ج۱۲) فقط والله تعالى اعلم

صفرسنه ۱۴۰۰هجری

## دارالاسلام کښې غیرِ مسلمو ته د نوې عبادت خانې جوړولو اجازت نشته

**سوال**: آیا اسلامی ریاست کښې غیرمسلم خپله عبادتګاه جوړولې شی ؟ واضحه دې وی چه دنوی عمارت تعمیرمقصود دې ، بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غیرمسلم ته دارالاسلام کښې د نوې عبادتګاه د تعمیرولو اجازت نشته دې ، زړه عبادتګاه باقی پریخودلې شی ، دهغې مرمت هم کولې شی ، مګر قدیم عمارت باندې اضافه نه شی کولې ، هم دغه شان دهغوی یو ښار فتح کولو په وخت کښې په هغې کښې که چرته یوعبادتګاه ویرانه وی نوهغه د سر نه د آبادولو اجازت نشته دې . **قال العلامة** العثماني رحمه الله تعالى معزيا لاصحاب الحديث حدثنا عبدالله بن صالح عن الليث بن سعد حدثني توبة بن النمر الحضرمي قاضي مصر عمن اخبره قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاخصاء في الاسلام ولا كنيسة رواه ابوعبيد في الاموال وتوبة بن النمر قال الدار قطني كان فاضلا عابدا (تعجيب المنفعة) فالحديث حسن الاسناد مرسل وجهالة الصحابي لا تضر واخرجه البيهقي في سننه عن ابن عباس رضي الله عنهما مرفوعا وضعفه واخرجه ابن عدي في الكامل عن عمر رضي الله عنه مرفوعا باسناد ضعيف (زيلعي) وتعدد الطرق يفيد الحديث قوة

حدثني ابوالاسود عن ابن لهيعة عن يزيد بن ابي حبيب عن ابي الخير قال قال عمر بن الخطاب رضي الله عنه لا كنيسة في الاسلام ولا خصاء (رواه ابوعبيد ايضا وسنده حسن وابوالخير هو مرثد بن عبدالله اليزني المصري ثقة فقيه من الثالثة (تقريبا) ورواه ابن عدي عن عمر رضي الله عنه مرفوعا بلفظ لا يبنى كنيسة في الاسلام ولا يجدد ما خرب منها (التلخيص الحبير) وسكت الحافظ عنه.

وفي الحاشية وتجديد ما كان خرابا عند الفتح احداث ايضا فيمنع منه وهو محمل ما رواه ابن عدي بلفظ ولا يجدد ما خرب منها واما ما كان عامرا عند الفتح وخرب بعده فتجديده بناء لما استهدم فاشبه بناء بعضها اذا انهدم ورم شعثها فلا يرد علينا ما اورده الموفق في المغني ص۱۱۳ ج۱۰ (اعلاء السنن ص۲۶۰ ج۱۲) وقال في التنوير ولا يجوز ان يحدث بيعة ولا كنيسة ولا صومعة ولا بيت نار ولا مقبرة في دار الاسلام ويعاد المنهدم من غير زيادة على البناء الاول (ردالمحتار ص۲۷۰ ج۳) فقط والله تعالى اعلم

۴ صفرسنه ۱۴۰۰هجری

## د غیر مسلم په حلیه او جامه وغیره باندې پابندی (بندیز)

**سوال**:- آیا د حضرت عمررضی الله عنه په زمانه خلافت کښې د کافرانو نومونه بدل کړې شوی وو ، یا دهغوی په حلیه او جامه باندې پابندی لږولې شوې وه ، لطفًا ددې حواله ولیکئ ، بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د حضرت عمر رضی الله عنه په دورِ خلافت کښې د غیرمسلمو د نومونو بدلولو متعلق کوم یو روایت د نظره ندې تیر شوې، البته د حلیې ، جامو او سورلئ وغیره متعلق پابندیانې وې .

قال العلامة العثمانی رحمه الله تعالی ان امیر المؤمنین عمر فی الصحابة رضی الله تعالی عنهم ثم عامة الائمة بعده وسائر الفقهاء جعلوا فی الشروط المشروطة علی اهل الذمة من النصاری وغیرهم فیما شرطوه علی انفسهم ان نوقر المسلمین ونقوم لهم من مجالسنا ان ارادوا الجلوس ولا نتشبه بهم فی شیء من ملابسهم قلنسوة او عمامة او نعلین او فرق شعر ولا نتکلم بکلامهم ولا نتکنی بکناهم ولا نرکب السروج ولا نتقلد السیوف ولا نتخذ شیئا من السلاح ولا نحمله ولا ننقش خواتیمنا بالعربیة ولا نبیع الخمور وان نجز مقادم رؤسنا وان نلزم زینا حیثما کنا وان نشد الزنانیر علی اوساطنا وان لا نظهر الصلیب علی کنائسنا ولا نظهر صلیبا ولا کتبا فی شیء من طریق المسلمین ولا اسواقهم ولا نضرب بنواقیسنا فی کنائسنا الاضربا خفیفا ولا نرفع اصواتنا مع موتانا ولا نظهر النیران معهم فی شیء من طرق المسلمین، رواه حرب باسناد جید کذا فی اقتضاء الصراط المستقیم للعلامة ابن تیمیة رحمه الله تعالی (اعلاء السنن ص۴۷۱ ج۱۲) وقال فی التنویر ویمیز الذمی.....ومرکبه وسرجه فلا یرکب خیلا ویرکب سرجا کالا کف ولا یعمل بسلاح ویظهر الکتج ویمنع من لبس العمامة وزنا والابریسم والثیاب الفاخرة المختصة باهل العلم والشرف (ردالمحتار ص۲۷۷ ج۳) فقط والله تعالی اعلم

۴ صفر سنه ۱۴۰۰ هجری

## د اسلامی ملک تعریف

**سوال**:- آیا د اسلامی ملک د تعریف دپاره په قرآن اوسنتو باندې عمل ضروری دې اوکه صرف د مسلمانانو د آبادئ کیدل کافی دی؟ یعنې په کوم ملک کښې چه د قرآن او سنتو د عملی نظام نفاذ نه وی نو په داسې صورت کښې دا ملک اسلامی ملک دې اوکه غیراسلامی ملک ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په کوم ملک کښې اگرچه عملاً د اسلام د احکامو نفاذ نه وی

مگر په تنفيذ احكام باندي قدرت وي نوهغه دارالاسلام دي ، په دې معنې سره هغې ته اسلامي ملک هم ونيلي کيږي مگر د داسې ملک حکومت ته هغه وخته پورې حکومت اسلاميه نه شي ونيلي کيدلي ترڅو پورې چه هغه د اسلام د احكامو تنفيذ ونه کړي . فقط والله تعالی اعلم

۲۳صفرسنه ۱۴۰۰هجری

## د دارالامن تعریف

**سوال** :- د دارالحرب څه تعریف دې ؟ آیا د یو ملک په نظام کښې مسلمانانو ته صرف د عباداتو مونځ ، روژې ، آزادانه اداکول دهغه ملک د دارالامن کیدلو دپاره په کافي وي حالانکه د ملک اساسي قوانين مثلاً نکاح ، طلاق کښې مسلمانان دهغوی غیر اسلامی قوانینو پابندئ باندې مجبور دی . بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کوم ځائ چه د اسلام د احكامو په تنفيذ باندې قدرت نه وي هغه دارالحرب دې ، دارالحرب کښې که چرته د مسلمانانو جان ، مال او عزت محفوظ وي او عبادات محضه باندې څه پابندی نه وي نودا دارالامن دې . فقط والله تعالی اعلم

۱۸ رجب سنه ۱۴۰۱هجری

## د دښمن د ويرې نه خودکشي حرامه ده

**سوال** :- دجنګ په حالت کښې چه کله د شهيد کيدلو يقين وي او دا هم يقين وي چه ښځې د مرګ نه پس ښځې بچو او ښځې لره به هم شهيدان کوي او د هغوی عزت به هم اخلی نو آیا د خپل عزت د بچ کولو په خاطر مونږ پخپله هغوی لره وژلي شو ؟ یا داسې حالت کښې ښځه خودکشي وکړي نو جائز ده او که نه؟ په ۱۹۴۷ء کښې داسې شوی دی چه کافرانو د مسلمانانو ښځو لره بې عزته کولو سره شهیدانې کړې یا ئې هغوی په خپله قبضه کښې واخستلې او هغه زنانه ترننه پورې د کافرانو په قبضه کښې دی ، په دې وخت کښې د افغانستان حالت هم ستاسو وړاندې دې . بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ماشومانو او زنانو لره خپله وژل جائز نه دی ، زنانو باندې خودکشي هم حرامه ده ، منجانب الله راپيښ شوو هرقسمه حالاتو باندې صبر کول او په دين باندې قائم پاتې کيدل دهغوی دپاره ډير لوئ جهاد دې . فقط والله تعالی اعلم

۲۲ربيع الاول سنه ۱۴۰۰هجری

## سياست د شريعت نه جدا نه دې

**سوال** :- آيا سياست په دين کښې داخل دې او که دهغې نه جدا يو نوې څيز دې ؟ ځنې سيا د نعره

عامه ده چه د سیاست اوحکومت د دین سره څه تعلق نشته دې ، د شریعت په رڼا کښې د مسئلې حل ارشاد اوفرمائې ، بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د سیاست لغوی معنی ده تدبیر او اصلاح شرعاً اوعقلاً ددې درې شعبې دی :

(۱) د خپل ذات سره متعلق تدبیر .

(۲) د ښځې ، اولاد او خپلو خپلوانو سره متعلق تدبیر.

(۳) د پوره علاقې یا دملک د اصلاح او فلاح تدبیر.

بیا ددې اصلاح اوتدبیر مختلف مدارج او مختلف صورتونه وی مگر د یومسلمان دپاره صرف هم هغه تدبیر مفید اوپه کار راځی چه دهغه د آخرت دپاره نافع وی چه اصل ژوند هم د آخرت ژوند دې ، لهذا دخپل ذات ، دخپل اهلِ خانه یا دخپل ملک په حق کښې داسې سیاست اختیارول چه د یوحکمِ شریعت سره متصادم وی ناجائز او حرام دې او که چرته د شریعت په دائرې کښې سیاست اوتدبیر وکړې شی نو دا د اعلی درجې نیکی او هرسړی باندې حسب استطاعت فرض دې ، هم داسې سیاست کښې دخپل ذات اود عوامو اصلاح اوهمدردی پټه ده .

مروجه سیاست اودهغې ټول په ټوله طریقې چونکه د یورپ (اروپا) نه راپیدا شوی دی لهذا دمغرب خلقو دې سوچ سره چه د داسې سیاست دینِ اسلام سره څه جوړ نه راځی ، او دواړه یو قدم هم یوځائ نه شی تللې ، دا نعره وه وهله چه : «دین او سیاست دواړه جدا جدا څیزونه دی».

چه دهغې مقصد ښکاره دې چه د سیاست په میدان کښې ښکاره کمی ده په دې کښې چه څومره دروغ وائې ، دهوکې ورکوې ، سیاست کښې ټول روا دی ، ددې په ځائ که چرته دې خلقو صفاصفا دا نعره کړې وای چه : «سیاست دان او دیندار مسلمان دوه جدا جدا افراد دی ، یود بل سره هیڅ تعلق نلری» نوبهتره به وه ، اروپایانو ته خو دا نعره خوند ورکوی چه د دوی په دین کښې د سیاست څه گنجائش نشته ، د حکومت او سلطنت دپاره څه هدایات نشته ، مگر د یو مسلمان د طرف نه داسې قسم نعره په حقیقت کښې دهغه الحاد او بې دینئ اظهار دې چه زمونږ په دین کښې هم د سیاست اوحکومت دپاره څه رهنما اصول نشته دی ، دحضورصلی الله علیه وسلم په حیٰوة طیبه کښې په دې پهلو باندې څه رڼا نه موندلې کیږی ، ددې وجه نه مونږ سیاست لره د دین نه جدا کولو باندې مجبوره یو ، ددې کفر اوالحاد کیدل محتاج د دلیل نه دې .

**خلاصه**: داچه سیاست د دین نه جدا نه دې بلکه د دین یو اهمه شعبه ده ، مروجه نعره دمغرب پرست اود آخرت نه د بیزارو خلقو ده ، شعر :

جدا ہو دین سیاست سے   تو رہ جاتی ہے چنگیزی

**والله تعالی اعلم**   **۲۰ رجب ۱۳۹۳هجری**

## اسلام کښې دمغربی جمهوریت هیڅ گنجائش نشته

**سوال**:- موجوده جمهوری نظام چه د دنیا په اکثرو ملکونو کښې نافذ دي چه په هغې کښې په یووخت کښې د یو څو جماعتونو وجود شرط دې ، آیا اسلام کښې ددې گنجائش شته ؟ بینواتوجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب : اسلام کښې د مغربی جمهوریت هیڅ تصور نشته ، په هغې کښې د متعددو ډلو وجود (حزب اقتدار اوحزب اختلاف) ضروری دې ، حالانکه قرآن ددې تصور نفی کوی:

﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا﴾ (۳: ۱۰۳) په دې کښې ټولې فیصلې د رایو په کثرت سره کیږی حالانکه قرآن دهغه اندازِ فکر بیخ کنی کوی : ﴿وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ (۶: ۱۱۶) دا غیرفطری نظام د اروپا نه را څرگنده شوې دې چه په هغې کښې سرونو لره شمیرلې کیږی او تول کیږی نه ، په دې کښې سړې ، ښځه ، بوډها ، ځوان ، عامی اوعالم بلکه هوښیار اوکم عقل په یوه تله تللې کیږی.

چه د کوم امیدوار ووټ زیات شی هغه کامیاب گرځولې کیږی او دویم سراسرناکام ، مثلاً دیو آبادئ پنځوس علماؤ عقلاؤ او هوښیارانو په اتفاق سره یو تن ته ووټ ورکړو مگر د دوی مقابل د علاقې بهنگیانو ،چرسیانو او بې دینه خلقو دهغوی مخالف امیدوار ته ووټ ورکړو چه دهغوی شمیر یوپنځوس شو نو دا امیدوار کامیاب او د ټولې علاقې د تور اوسپین مالک جوړ شو ، دا مفروضه نه ده حقیقتِ واقعه دې ، د دنیا د ټولو نه لوئ اسلامی ریاست (پاکستان) کښې د ۱۹۷۰ء انتخاباتو کښې دهغې په غړیدلو سترگو مشاهده وشوه چه د لویو لویو علماؤ مشایخو په مقابله کښې بې دینه ، بیلماځه ، بې زړرو او عیاش قسمه خلق ودریدل او په اکثریت سره کامیاب شو ، د ۱۹۸۸ء په الیکشن کښې ددې نه هم زیاته بې خونده تجربه وشوه چه په پوره ملک کښې ځائ په ځائ د مغرب زده فاحشې زنانه ودریدلې او خپل مقابل په شمول د علماء اومشایخو او لویو لویو مشهورو سیاستدانو سرو ته شکست ورکولو سره اقتدار ته ورسیدلې.

بیا د ووټ اخستلو دپاره د هرې جائزې اوناجائزې حربې استعمالول د جهوریت سره لازم دی ، د لیلائې اقتدار په خاطر ټولو انسانی حقوقو بلکه د وینې رشتو پورې هیرولې کیږی ، په یو علاقه کښې سکه ورورنه ، پلار ، ځوئ بلکه ښځې خاوند پورې مدمقابل جوړیږی ، هرفریق خپل مقابل لره د پاس کولو دپاره پیسې د اُبو په شان خرچ کوی ، چنانچه په هرو انتخاباتو کښې په کروړونو روپئ بربادیږی ، علاوه ددې نه دهوکه ، فریب ،رشوت غرض ټولې حربې استعمالیږی.

اوکه یو حربه هم کارونه کړی نو مخالف رایه اچوونکی ویرولې کیږی بلکه وژلې کیږی ، شعر:

فرنگ آئین جمهوری نهاد است رسن از گردن دیوے کشاد است

ددې تجزیه د پاکستان یو معروف صحافی داسې کړې ده :

«د انتخاباتو یو څو ورځې په ټول ملک کښې د ګناهونو سیزن وی ، چنانچه د ملک په هرګُنج کښې چه څومره د دروغو ، چغلئ ، غیبت ، دهوکې ، بددیانتئ ، ضمیرفروشئ ، بې حیائې ارتکاب په دې څو ورځو کښې کیږی په پوره کال کښې نه کیږی»

چه کله د انتخاباتو ورځ راځی نو په ټول ملک کښې د ویرې وریځې خورې شی ، په هغې کښې د پولیس رینجرز بلکه د فوج د نګرانئ نه باوجود د هنګامو ، د وهلو ټکولو او د جنګ جګړې بازار ګرمیږی ، تراوسه پورې چه په ملک کښې یو څو ځل انتخابات شوی دی په هغې کښې په زرګونو کسان مړه شوی دی.

بیا چه کوم وخت د نتائجو اعلان کیږی هغه د قیامت ساعت وی . په ناکام شوی خلکو کښې د ډیرو کسانو دماغی توازن خراب شی ، چنانچه د ۱۹۸۸ء د انتخاباتو نه وروسته په اخبارونو کښې راغلل چه نفسیاتی هسپتال د داسې قسم پاګلانو نه ډک شوې دې چه د شپې په چغو وهلوسره ودریږی او کینی او په نعرو وهلو سره هسپتال په سر راواخلی.

او څوک چه کامیاب شی نو د هغوی میدان ګرم شی پارلمان ته رسیدلوسره دهغوی بولی شروع شی ، د ښرکتونو اسناد ، پلاټونه ،وزارتونه ، غرض داچه رنګ په رنګ لالچ ورکولوسره هغوی اخستلې کیږی ، څه موده وړاندې د صدرِ مملکت بیان په اخبارونو کښې شائع شوې وو چه زمونږ قومی اسمبلی د ګډو بیزو منډئ جوړه شوې ده.

بیا دقوم دامنتخب نمائندګان د پارلمان په صحنه کښې کیناستلوسره څه ګلونه دوږوی ؟ دا څه اخوا دیخوا خبرې نه دی ،ورځ په ورځ اخبارونو کښې چاپ کیږی چه فلانکی وزیر د سود په جواز باندې دلائل پیش کړل ، فلانکی ملا ازم وئیلو سره اسلامی نظام پسې خندا وکړه ، فلانکئ ښځې ډیرې پورې مسخره وکړه اودهغه مهذبه خلقو په مینځ کښې کنځلې ، تهمت لګول ، وغیره ستغې سپورې خو معمولی خبره ده ، خبره که غټه شی نویوبل سره لاس په ګریبان کیږی بلکه په کرسئ باندې د وهلونه هم دریغ نه کوی.

سابق مشرقی پاکستان اسمبلئ کښې داسې په زور سره په چوکیو باندې وهل وشول چه پارلیمانی ویاند خلاصولو سره خپل ځان نه لاس واخستلو ، بالاخر د اسمبلئ په عمارت کښې زمکی کرسئ جوړې شوئ چه په جنګ کښې استعمال نه کړئ شی.

دا ټولې پانې اومیوې د مغربی جمهوریت د خبیثې ونې پیداوار دې ، اسلام کښې ددې

کافرانه نظام هیچ گنجائش نشته . اونه په دې طریقې سره ترقیامته پورې اسلامی نظام راتللې شی . په فحوائې د « الجنس یمیل الی الجنس » عوام ( چه په هغوی کښې اکثریت د بې دینو خلقو دې ) هم دخپل جنس نمائندگان منتخب کولو سره اسمبلیانو ته لیګی

اسلام کښې شورائی نظام دې چه په هغې کښې اهل الحل والعقد غوراوفکرکولوسره دیو امیر انتخاب کوی . چنانچه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د وفات په وخت کښې د شپږو اهل الحل والعقد شوریٰ جوړه کړه چه هغوی په اتفاق سره حضرت عثمان رضی الله عنه لره خلیفه نامزد کړو

په هغه پاکیزه نظام کښې د انسانی سرونو شمیرلو په ځائ د انسانیت عنصر تول کیږی . په هغې کښې دیو ذی صلاح اومدبر انسان رایه د لکونو بلکه د کروړونو انسانانو په رایه باندې درنه کیدلې شی . شعر:-

*گریز از طرز جمہوری غلام پختہ کارے شو — کہ درمغز دوصد خر فکر انسانے نمی آید*

حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د چا د مشورې نه بغیر صرف پخپلې خوښې سره د حضرت عمررضی الله عنه انتخاب وکړو . د دوی دا انتخاب څومره موزون اومناسب وو ؟

دهغې جواب په الفاظو کښې ممکن نه دې . دهغه حقیقت مشاهده ټولې دنیا په غړیدلو سترګو سره کړې ده . والعیان یغنی عن البیان . والله تعالی اعلم

۲۲ جمادی الثانیه ۱٤۱۳ هجری

## د دارالحرب تعریف

**سوال** د دارالحرب جامع او مختصر تعریف څه دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دارالحرب هغه علاقه ده چه هغلته د ژوند په ټولو شعبوکښې داسلام د احکامو او د اسلام نظام لره د نافذ کولو قدرت نه وی . والله تعالی اعلم

۱۱ ذی قعده ۱۳۹٤ هجری

## د مسلمانانو د اقلیت له کفری حکومت سره جهاد کول

**سوال** : د برما حکومت په خپلو مسلمانانو اوسیدونکو باندې ظلم کوی . تردې پورې چه د هغوی په مذهبی احکامو پابندی لګوی . د شرعیه فرائضو په ادا کولو کښې مانع کیږی . په دې حالت کښې ددغه ځائ په اوسیدونکو مسلمانانو باندې د داسې حکومت سره جهاد کول فرض دې اوکه نه ؟ همدارنګه د زکاة د مالونو په ذریعې سره د مجاهدینو امداد کیدلې شی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې حالاتو کښې د داسې کافر حکومت سره جهاد کول فرض

کافرانه نظام هیڅ گنجائش نشته ، اونه په دې طریقې سره ترقیامته پورې اسلامی نظام راتللې شی . په فحوائې د «الجنس یمیل الی الجنس» عوام (چه په هغوی کښې اکثریت د بې دینو خلقو دې ) هم دخپل جنس نمائندگان منتخب کولو سره اسمبلیانو ته لیګی .
اسلام کښې شورائی نظام دې چه په هغې کښې اهل الحل والعقد غوراوفکرکولوسره دیو امیر انتخاب کوی ، چنانچه حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د وفات په وخت کښې د شپږو اهل الحل والعقد شوری جوړه کړه چه هغوی په اتفاق سره حضرت عثمان رضی الله عنه لره خلیفه نامزد کړو .
په هغه پاکیزه نظام کښې د انسانی سرونو شمیرلو په ځائ د انسانیت عنصر تول کیږی ، په هغې کښې دیو ذی صلاح اومدبر انسان رایه د لکونو بلکه د کروړونو انسانانو په رایه باندې درنه کیدلې شی . شعر:-

گریز از طرز جمہوری غلام پختہ کارے شو  که  درمغز دو صد خر فکر انسانے نمی آید

حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د چا د مشورې نه بغیر صرف پخپلې خوښې سره د حضرت عمررضی الله عنه انتخاب وکړو . د دوی دا انتخاب څومره موزون اومناسب وو ؟
دهغې جواب په الفاظو کښې ممکن نه دې ، دهغه حقیقت مشاهده ټولې دنیا په غړیدلو سترگو سره کړې ده . والعیان یغنی عن البیان . والله تعالی اعلم

۲۲جمادی الثانیه ۱٤۱۳هجری

## د دارالحرب تعریف

**سوال** د دارالحرب جامع او مختصر تعریف څه دې ؟ بینوا توجروا
**الجواب باسم ملهم الصواب** دارالحرب هغه علاقه ده چه هغلته د ژوند په ټولو شعبو کښې داسلام د احکامو او د اسلام نظام لره د نافذ کولو قدرت نه وی ، والله تعالی اعلم

۱۱ ذی قعده ۱۳۹٤هجری

## د مسلمانانو د اقلیت له کفری حکومت سره جهاد کول

**سوال** د برما حکومت په خپلو مسلمانانو اوسیدونکو باندې ظلم کوی . تردې پورې چه د هغوی په مذهبی احکامو پابندی لگوی . د شرعیه فرائضو په ادا کولو کښې مانع کیږی ، په دې حالت کښې ددغه ځائ په اوسیدونکو مسلمانانو باندې د داسې حکومت سره جهاد کول فرض دې اوکه نه ؟ همدارنگه د زکاة د مالونو په ذریعې سره د مجاهدینو امداد کیدلې شی اوکه نه ؟ بینوا توجروا
**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې حالاتو کښې د داسې کافر حکومت سره جهاد کول فرض

دي ، ددې مقصد دپاره داسې تنظيم ضروري دې چه د ماهرينو علماؤ ، منقيانو او د اهل بصيرت په نګرانئ کښې د شريعت په حدودو کښې دننه کار وکړي ، د نورو ملکونو په مسلمانانو باندې هم په ترتيب سره «الاقرب فالاقرب» تعاون کول فرض دې ، که چرته د جهاد استطاعت نه وي نو د هغه ځائ نه هجرت کول فرض دی.

د زکاة د ادا کولو دپاره تمليک د فقير شرط دې ، کوم ځائ چه دا شرط وموندلې شي نو زکاة به ادا کيږي چرته چه مفقود وي نو زکاة به نه ادا کيږي . والله تعالى اعلم

۲۱ رمضان ۹٤هجرى

## جهاد د شريعت په اصطلاح کښې

**سوال** : د شريعت په اصطلاح کښې «جهاد» څه ته وائي ؟ عموماً د تبليغى جماعت احباب تبليغ کښې د وتلو ترغيب ورکولو سره آياتونه او احاديث او د جهاد واقعاتو تبليغ دپاره وتلو والا جماعتونو باندې حمل کوي ، آيا داسې کول صحيح دی ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د جهاد حقيقى مصداق او اصطلاحى معنى «قتال فى سبيل الله» ده ، البته د مجاز په خاطر تللو والا هر محنت او مشقت او کوشش ته جهاد وئيلې کيږي.

لغت کښې جهاد «جَهْد» بالفتح ، په معنى دمشقت يا «جُهْد» بالضم د طاقت نه مشتق دې ، په دې اعتبارسره د جهاد معنې ده : طاقت خرچ کول ، مشقت برداشت کول ، مګر شريعت لفظ د «جهاد» لره هغه لغوى معنى نه يو بلې معنى يعنې «قتال مع العدو» طرف ته منتقل کړو لکه لفظ د «صلوة» لغت کښې د دعا په معنى راځى ، مګر شريعت کښې ددې اصطلاحى معنى يو مخصوص عمل دې چه د تکبير نه شروع او په سلام باندې ختميږي.

چنانچه د مذاهبِ اربعه په کتابونو کښې د جهاد اصطلاحى معنى هم د «قتال» ليکلې شوې ده ، دلته د فقه حنفى نه صرف يوه حواله نقل کيږي.

قال الامام الكاسانى رحمه الله تعالى : اما الجهاد فى اللغة فعبارة عن بذل الجهد بالضم وهو الوسع والطاقة اوعن المبالغة فى العمل من الجهد بالفتح وفى عرف الشرع يستعمل فى بذل الوسع والطاقة بالقتال فى سبيل الله بالنفس والمال واللسان اوغير ذلك اوالمبالغة فى ذلك. (بدائع الصنائع ص ـ ج ـ)

په دې سره معلومه شوه چه که چرته لفظ د «جهاد» د قتال نه سوا يو بل عملِ صالح (مثل برالوالدين) کښې کله استعمال شوې دې نو هغه مشاکلةً (يعنى چونکه صحابى د «اجاهد» الفاظ استعمال کړل نو دوی صلى الله عليه وسلم د والدينو د خدمت دپاره هم دهغې په مثل «ففيهما فجاهد» اوفرمائيل ، لکه څنګه چه «وجزاء سيئة سيئة مثلها» کښې د عذاب دپاره مشاکلةً د سيئة لفظ استعمال شوې دې) يا مجازاً استعمال شوې دې ، لهذا د قتال نه سوا دېو بل عمل

دپاره د لفظ جهاد استعمال مجازاً خو صحیح دې ، لیکن هغه په هغې کښې داسې استعمالول چه اصل معنی بالکل متروکه شی او مجازی معنې لره د جهاد حقیقی مصداق گرځول شروع شی ، د اصطلاحِ شریعت تحریف دې ، ددې وجه نه د جهاد آیتونو او حدیثونو لره د اصل او حقیقی مصداق ((قتال فی سبل الله )) نه اخوا کولوسره د دین په یو بله شعبه باندې حمل کول جائز نه دی ، لکه لفظ د ((صلوٰة )) لره دهغې اصطلاحی معنی ((مونځ)) نه اخواکولوسره د ((دعا)) په معنی کښې اخستل اود مونځ په ځائ هم دعا باندې اکتفاء کول جائز نه دی ، والله سبحانه وتعالی اعلم ، ۱۵صفر ۱۴۲۳هجری

## نوې مسلمان د هغه هندو موراو پلار ته حواله کول جائز نه دی

**سوال** : یو مسلمان هندوه نجلئ وتښتوله ، بیا ئې هغه مسلمانه کړه او دهغې سره یې نکاح وکړه ، اوس بعضې مسلمانان غواړی چه هغه نجلئ دهغې هندوموراوپلار ته واپس ولیگل شی ، آیا شرعاً داسې کول جائز دی ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : چاچه کافره نجلئ اغوا کړه هغه ډیر بد وکړل ، مگر دهغې د قبولِ اسلام نه پس چه کله ئې دهغې سره نکاح وکړه نو نکاح صحیح شوه ، اوس هغه مسلمانې نجلئ لره د کافرانو په حواله کول قطعاً جائز نه دی . **قال الله تعالی** : ((**فا ن علمتموهن مؤمنات فلا ترجعوهن الی الکفار ــ الایة**)) (۶۰: ۱۰)

بلکه که چیرې دا نومسلمه پخپله کافرانو ته تلل غواړی نو بیا دې هم هغه پرېځ نه ښودلې شی ، البته ؛ وقتی طور باندې والدینو یا محرم رشته دارانو سره په ملاویدلو کښې حرج نشته ، والله تعالی اعلم . ۱۰ رمضان ۹۲هجری

## دجاسوس سزا

**سوال** : کوم مسلمان چه دکافرحکومت جاسوس جوړشی ، دمسلمانانوخفیه رازهغوئ ته رسوی یا د کافرحکومت په تعاون باندې دهغه ځائې په مسلمانانو باندې ظلم وکړی اودهغوئ فوج په ظلم باندے اماده کوی ، د داسې مسلمان شرعی حکم څه دې؟ آیا دده قتلول جائزدی اوکنه ؟بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چرې بغیردقتل نه کوم تدبیردده دهدایت دپاره مفید نه وی نوداقتلول جائزدې .

**قال الامام القرطبی رحمه الله تعالی : فان کان الجاسوس کافرافقال الاوزاعی رحمه الله تعالی یکون نقضالعهده وقال اصبغ الجاسوس الحربی یقتل والجاسوس الکافر والذمی یعاقبا الاان تظاهراعلی الاسلام**

فیقتلان (الجامع الاحکام القرآن ص۵۳ ج۱۸) ، و کذا قال الامام العربی رحمه الله تعالی (احکام القرآن ص۱۰۰ ج ۲). وقال الحافظ العینی رحمه الله تعالی: وقال الداوی الجاسوس یقتل وانما نفی القتل عن حاطب لما علم النبی صلی الله علیه وسلم منه ولکن مذهب الشافعی رحمه الله تعالی وطائفة ان الجاسوس المسلم یعزر ولا یجوز قتله وان کان ذا هئیة عفی عنه لهذا الحدیث۔

وعن ابی حنیفة ولاوزاعی رحمها الله تعالی یوجع عقوبة ویطال حسبه وقال ابن وهب من المالکیة یقتل الا ان یتوب وعن بعضهم انه یقتل اذا کانت عادته ذالک وبه قال ابن الماجشون ۔وقال ابن القاسم یضرب عنقه لانه لا تعرف توبته وبه قال سحنون۔

ومن قال بقتله فقد خالف الحدیث واقوال المتقدمین وقال الاوزاعی فان کان کافرا یکون ناقضا للعهد وقال اصبغ الجاسوس الحربی یقتل والمسلم والذمی یعاقبان الا ان یظاهر علی الاسلام فیقتلان (عمدة القاری ص۲۵۶ ج۱۴) وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی:

وفی المجتبی الاصل ان کل شخص رای مسلمان یزنی ان یحل له قتله وانما یمتنع خوفا من ان لا یصدق ان زنی وعلی هذا القیاس المکابر بالظلم وقطاع الطریق وصاحب المکس وجمیع الظلمة بادنی شیء له قیمة وجمیع الکبائر والاعونة والسعاة یباح قتل الکل ویثاب قاتلهم انتهی وافتی الناصحی بوجوب قتل کل مؤذ۔

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله وقطاع الطریق) ای اذا کان مسافرا ورای قاطع طریق له قتله وان لم یقطع علیه بل علی غیره لما فیه من تخلیص الناس من شره واذاه کما یفیده ما بعده. (قوله وجمیع الکبائر) ای اهلها والظاهر ان المراد بها المتعدی ضررها الی الغیر فیکون قوله والاعونة ولسعاة عطف تفسیر اوعطف خاص علی عام فیشمل کل من کان من اهل الفساد کالساحر وقاطع الطریق وللص وللوطی والخناق ونحوهم ممن عم ضرره ولا ینزجر بغیر القتل (قوله والاعونة) کانه جمع معین اوعوان بمعناه والمراد به الساعی الی الحکام بالافساد فعطف السعاة عن قتل الاعونة والظلمة والسعاة فی ایام الفترة قال یباح قتلهم لانهم ساعون فی الارض بالفساد فقیل انهم یمتنعون عن ذلک ایام الفترة ویختفون قال ذلک امتناع ضرورة ولوردوا لعادوا لما نهوا عنه کما نشاهد قال وسالنا الشیخ اباشجاع عنه فقال یباح قتله ویثاب قاتله اھ

(قوله افتی الناصحی) لعل الوجوب بالنظر للامام ونوابه والاباحة بالنظر لغیرهم (ردالمحتار ص۱۰۰ ج۳) والله تعالی اعلم ۲۷ جمادی الاخرة ۹۸ھ

## آیاخلق جبراً په اسلام کښې داخلولې شی؟

**سوال** آیا دکافرانو په زبردستئې په اسلام کښې د داخلولو دپاره جهادکول جائزدې اوکه نه؟ د مستشرقینو ددې پروپاګند چه په زبردستئې خلق په اسلام کښې داخلولې شی،، آیا حقیقت دې؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** جبراًدچادمسلمانانولودپاره دجهادعمل یاکوم قسم حربه استعمالول جائزنه دی، **قال الله تعالی: (لا اکراه فی الدین قد تبین الرشد من الغی ـ الایة) (۲:۲۵۶) وقال تعالی : (فمن شاء فلیؤمن ومن شاء فلیکفر ـ الایة) (۱۸:۲۹)**

داسلام دَدشمنانو داواویلاء چه پیغمبراسلام دتورې په زور باندې خلق په اسلام کښې داخل کړل.یوداسې واضح اوبدیهی دروغ دی چه دتردیدمحتاج ندی، که چیرې په دې خلقو کښې د ذرې برابرعقل اوشعور اود رائې برابرانصاف اودیانت وی نوسوچ دې وکړی چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم کله دنیا والو ته داسلام دعوت پیش کړونودوئ صلی الله علیه وسلم یواځې اوتنهاوو.څوک ددوئ صلی الله علیه وسلم یاراومددګارنه وو. خپل ،خپلوان ئی ټول دشمنان وو. څوکالوپورې دوئ صلی الله علیه وسلم په خفیه طریقه باندې خلقوته دعوت ورکولو اوپه دې طویله موده کښې یوڅو ضعیف کسان مسلمانان شول . دیارلس کاله په مکی دَورکښې خودوئ صلی الله علیه وسلم توره اوچته کړې نه ده،په دې حالاتوکښې دا پروپاګند چه دوئ صلی الله علیه وسلم جبراً خلق مسلمانان جوړکړی د دې څه علمی دلیل دې؟ که چیرې اووئیلې شی چه ددوئ صلی الله علیه وسلم وفاداروددوستانو داکاروکړو نوسوال دادې چه په دې جابرینوچاجبرکړې وو؟ هغوئې کوم طاقت ددوئ صلی الله علیه وسلم وفادارجوړکړل ؟

ددې ټولو خبرو نه قطع نظرکه چرې دانصاف په نظروکتلې شی نوجبراً څوک مسلمان جوړول ممکن نه ده، د دې وجې نه چه په جبرباندې دزیات نه زیات چاته زبانی کلمه وئیلې شې. دهغه په زړه اودماغوکښې خوداسلام حقیقت نه شی وچتولې.که چرې کوم شخص ظاهراً کلمه اووائی لیکن په باطن کښې ئی کفریه عقائدپټ ناست وی نودامسلمان نه دې بلکه دعاموکفارونه هم بدترکافر((منافق)) دې.نوددې مخالفینو په قول ګویادوئ صلی الله علیه وسلم عام کفار جبراً منافقان جوړکړه چه په دشمنئ کښې دعاموکفارو نه هم دوه ګامه وړاندې وو۔

الغرض دمستشرقینو دا پروپاګند هیڅ حقیقت نه لری. که غورپرې وکړې شی نودا دخپل تردید مترادف دې-والله اعلم ۶،ربیع الاول ۱۳۹۹هـ

## دهغوزمکو حکم چه انگریزانو دمخالفینونه په زور سره واخلی اوخپلووفادارو ته ئې ورکړی

**سوال** : انگریزان چه کله ددې ملک نه تلل نوهغه وخت دمسلمانانودوه ډلې وې : یوه دانگریزانو مخالفه دله او دویمه دانگریزانووفاداره ډله ، انگریزچه کله اقتدارسنبال کړو هغه وخت دزمکومالکان اوقابضین دانگریزانو مخالف وو، انگریز چه کله ددې ملک نه تلل نووددې نه وړاندِ انگریزدخپلووفادارودخوشحالولودپاره اودخپلومخالفینونه دآخری انتقام اخستودپاره دخپلو مخالفینو ټولې زمکې خپلو وفادارو کښې تقسیم کړې اولاړل. چنانچه زمکې دانگریزانو د وفادارو په نوم ثبت شوې اوپه سنه ۱۸۷۲ء کښې دبندوبست په دوران ئې اصل مالکان دمحکمه مال په کاغذاتو کښې جبراً مزارعین ولیکل اودانگریز وفادارئې دزمکومالکان کړل-

دهغې نه بعد دانگریزانو وفادارو دانگریزانو په مخالفینوباندې هغه ظلمونه وکړل چه په تاریخ کښې دهغې مثال مشکل دې، دمحنت اومشقت کولووالا دانگریزانو مخالف وو او وفادار مخالفینو دهغوئ نه د سزا په طور خاصه حصه جبراً اخستله. تاریخ گواه دې چه دسلهاؤکالونه دزمکې اصلی مالکان دانگریز مخالف وو اوداقبضه تراوسه پورې راروانه ده، کله چه دانگریزانووفاداردبهرنه راغلل او آباد شول نو په سنه ۱۹۵۰ء کښې دسرحد اسمبلئ داصل مالکانونه دزمکودمعاوضې وصولولو سره دوئ ته مالکانه حقوق ورکړل دارنگه زمکې بیا اصل مالکانوته ملاؤشوې .اوس د د پوښتنې ځائ دا دې چه :

(۱) آیا دسرحداسمبلئ فیصله ((معاوضه اخستل زمکې اصل مالکانواوقابضینوته واپس کول)) صحیح دی او کنه؟

(۲) آیاانگریزان دخپلومخالفینونه جبراً زمکې وصولولوسره خپلووفادارو ته ورکولې شی؟

(۳) دانگریزانو دمخالفینو آبادی د انگریزانو دوفاداراو نه په اکثریت کښې ده او دانگریزانو وفاداران په لګ تعداد کښې دی -

(۴) آیاشریعت ددې خبرې اجازت ورکوی چه دلګې آبادئ له کبله دزیاتې آبادئ نقصان وی اوزیاته آبادی په تکلیف اومشقت کښې مبتلاء کړې شی اوهغوئې بې کوره کړی-

(۵) آیاپه ملک کښې داسلامی نظام دجاری کیدونه وړاندِ دټولومقبوضه زمکو تحقیق کولو سره دوباره نوې طریقې باندې تقسیمولې شی؟ اوکه ماقبل قبضې باقی پرېښودلې شی لکه دفتح مکه په موقع باندې حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دمهاجرینوهغه زمکې اومکانات په کوموباندې چه کفارو قبضه کړې وه واپس کولو سره دوباره تقسیم کړې-

(۶) آیاکله چه دانگریز تقسیم صحیح شی اودسرحداسمبلی قانون غلط شی اوزیاته آبادی

په مشقت کښې مبتلا، کولې شی ددې نه بعدهم زمکې دانګریزانودوفادارونه څې اوزیاته آبادی
دمزارعت هم نشی قبلولې، ددې نه بعد هم دانګریزانووفاداران دمخالفینونه قبضه اخستل غواړي
اومخالفین قبضه ورنه کړی نوآخری خبره دجنګ اوجدل نه علاوه ګوم دویم بل صورت هم نشته چې
په هغې باندې عمل وکړې شی. آیایومسلمان قوم دبل مسلمان قوم سره صرف دزمکې دوجې نه
جنګیدې شی؟ آیا په شریعت کښې په دې معامله باندې دجنګ اوقتال اجازت شته؟ همدارنګه
کوم خلق چه دسرحداسمبلی فیصله غلطه ګڼی او زیاتره آبادی په مشقت کښې مبتلا، کوی ددې
وجې نه عندالله وعندالناس ددوئ مؤاخذه کیږی اوکنه؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د کافرحکومت داصل مالکانونه زمکې اخستل ظلم وو، د
استیلا، سره له دې نه د استیلا، دوجې نه حکومت ددې زمکې مالک شو. لیکن حکومت دا
زمکې خپلووفادارونه په طوردرشوت ورکولې، اومرتشی درشوت مالک نه جوړیږی. دې وجې نه
هغه زمکې قانونًا دحکومت په ملک کښې دی، دهندوستان دتقسیم په وخت دازمکې دپاکستان
دحکومت ملک ته منتقلې شوې. لهذا دحکومت سابقه مالکانو لره دمعاوضی اخستلو سره زمکه
ورکول صحیح شول اوددې بیع دوجې نه سابقه مالکان بیامالکان جوړشول. دانګریزانود
وفادارو قبضه کول ناجائز، حرام اوظلم دې. مالک ته اختیاردې چه هغه دغاصب اوظالم نه خپله
دفاع وکړی ،که چرې په دې کښې دا وه وژلې شو نوشهیددې. لقوله علیه الصلوة والسلام من
قُتل دون ماله فهو شهید. اوکه چرې دغاصب نه دفاع بغیر دهغه دقتل نه ممکن نه وی نو دهغه
قتل کول جائزدی. والله تعالی اعلم ۱۳/رجب۱۴۱۲هـ.

## دجنګ په ورځوکښې نقل مکانی

**سوال** : دجنګ په دوران کښې سرحدته نژدې اوسیدونکو خپل مقامات پریښودل او د امن
ځائې ته منتقل کیدل شرعاجائزدې اوکنه؟ بعضې حضرات فرارعن الوبا باندې قیاس کولوسره
دیته ناجائز وائی، آیا دهغوئ خیال صحیح دې؟بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دحاکم په رائې باندې عمل کول واجب دی.که چرې دحکومت
دطرف نه ممانعت نه وی نومنتقل کیدل جائزدې، په وباء باندې قیاس کول صحیح نه دی.والله
تعالی اعلم

۱۳، رجب ۱۴۱۲ هـ

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ ءَامَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّن بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا ﴾

# اسلامي سياست

- دموجوده سياست يوه سرسري ځيړنه.
- دهغې په جهاني مفاسدو او قبائحو او وتباه كوونكو نتائجو باندې انتهائي سنجيده تنقيد.
- د غربي مفكرينو له جملې نه د معتدل نظرو اعتراف.
- داسلامي سياست تنقيح، دهغې طريقه، كاراودهغې نه چه كوم مشكلات په نظرراځي دهغې حل
- د قرآن . حديث او سليم عقل په رڼا كښې يو ځانګړې تحقيق.

## اسلامی سیاست

- ○ د سياسی مصالحو په خاطرد شرعی منكراتو ارتكاب جائز ندې
- ○ قرآنی نصوص
- ○ نبوی ارشادات
- ○ سليم عقل
- ○ د حضرت حكيم الأُمت قد سره سياسی افكار.
- ○ په اسلام كښې د سياست مقام.
- شخصی حكومت.
- حكمرانی يوه ذمه داری ده ، حق ندې.
- د حكومت فرائض
- ○ د دين د اقامت لپاره د سياسی كوششونو شرعی حيثيت اودهغې حدود
- سياسی كوششونه او د اخلاقو تزكيه
- قطع تعلقات او د لاريونونو شرعی حكم.
- بهوك هرتال (يعنی د لوږې اعتصاب)
- د پروپاګند او تبليغاتو موجوده ذرائع
- له حكومت سره طرز عمل
- دحكومت دغير شرعی قوانينو او اقداماتو خلاف كاركردګی
- دحكومت خلاف راوتل.

## د اسلامی حکومت قائمولودپاره داسلام دکوم حکم خلاف ورزی جائزنه ده

**سوال**: کوم سیاسی جماعتونه چه دحکومت اسلامی دقائمولودجدوجهد دعوې کوی دهغوئ سربراه اوارکان دشریعت خلاف قِسم قِسم ترکیبونه اوسیاسی چلونه ایجادکوی-ددوئ حکومت عملی، دمصلحت اوسیاست په نوم باندې حلال اودجائزثابتولو کوششونه کوی .په خپل دې تحریف باندې دکعبې په باره کښې دحضورصلی الله علیه وسلم ارشاد **(لولاان قومك حديث عهد بكفر الحديث)** نه استدلال کوی.آیاددوئ داخیال اواستدلال صحیح دې ؟ په دې موضوع باندې په تفصیل سره رڼا واچوئ دأمت راهنمائی اوفرمایئ. بینواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داحقیقت خوهرکس پیژنی چه ددُنیوی مصلحت اونفع دپاره ګُناه کول یاکوم فرض اوواجب پریښودل جائزنه دی، مثلاً کوم سړې ددُنیوی نفع دپاره دروغ اووائی. دهوکه ورکوی. مونځ نه کوی یاجماعت پریږدی نوظاهره ده چه داسې کول فسق اوحرام دی دارنګه دکوم دینی مصلحت دپاره هم دکوم معصیت ارتکاب حرام دې-الله اودهغه درسول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت په ټولومصالحوباندې مقدم دې اوأم المصالح دې- په دې باندې ټول مصالح قربانولې شی. مثلاً کوم سړې سنیمایا د سود په ذریعه دې وجې نه رقم کموی چه دې نه دینی مدارس چلیږی- یاپه دې نیت رقص کوی. چه خلق جمع شی بیاده ته وعظ اوکړې شی-داسې کول ډیره سخته ګُناه اونهایت خطرناکه ګُمراهی ده-

البته که چرې کوم کار شرعًا نه فرض دې نه واجب بلکه صرف مباح یامستحب دې. دادکوم دینی مصلحت مثلاً عوامو دفتنې یامعصیت یاتکلیف نه دبچ کولودپاره پریښودل جائزدی. لکه څنګه چه حضرات فقهاء رحمهم الله تعالی لیکلی دی چه که چرې په تراویحو کښې خلقوته ملال او سترپیا وی نودهغوئې په رعایت باندې په آخره کښې درودشریف مختصرکول اودُعاپریښودل جائزدی-

قال العلامة الحصکفی رحمه الله ویزید الامام علی التشهد الاان یمل القوم فیاتی بالصلوات باللهم صل علی محمد لانه الفرض عند الشافعی رحمه الله تعالی ویترك الدعوات (ردالمحتار ص۶۶۳ ج۱)

مصلحةً دمستحب یامباح پریښودلوکښې هم داشرط دې چه په دې سره قانون شرع کښې تحریف اومداخلت فی الدین نه شی کیدې. مثلاً دامستحب یامباح کاراعتقاداً یاعملاً حرام ګڼې یادکوم مباح شرعی دممانعت قانون جوړکړې شی-

ددې نه معلومه شوه چه دکوم مصلحت په بناباندې نکاح ثانی یادصغیره نکاح باندې دپابندئ

قانون لګول جائزنه دی- حالانکه نکاح ثانی اوپه صغرسنی کښې نکاح کول فرض یاواجب نه ده صرف مباح ده-

نکاح امرشرعی دې دې وجې نه په دې باندې پابندی لګول مداخلت فی الدین دې، ځکه دیومباح شرعی سره عملاً دحرام په شان معامله کولې شی چه جائزنه ده-

هو ! که چرې دامورانتظامیه په متعلق کوم داسی قانون جوړکړې شی نودامداخلت فی الدین نه دی، دې وجې نه جائزدې، مثلاً چپ طرفته تللو یاخی طرفته تللوقانون یاصرف دیوطرف لاره متعینول اودټریفک سره متعلق نورضوابط-

دارنګه که چرې کومه محکمه په انتظامی مصلحت باندې دخپلو کارکنانو دپاره دپرتوګ یا پاجامې داغوستلو قانون جوړکړی او د تهبند نه ئې منع کړی نودا ددې وجې نه جائزدې چه دا د امورشرعیونه نه دې ،دې وجې نه داسې پابندی لګول مداخلت فی الدین نه دی-

کعبة الله دسره نوې تعمیرچه دهغې په سوال کښې ذکر شوې دې داهم دامورانتظامیؤدقبیلې څخه ده، شرعاً دا ترمیم نه فرض وونه واجب، حتی چه دامستحب ګڼل هم مشکل ده، دې وجې نه چه حطیم په کعبه کښې داخلول اودروازې لاندې راؤړل اودوه دروازې جوړول، دا اُمورداسې دی چه په دې کښې داستحباب څه وجه نشته،صرف دراحت اوآرام مصلحت وو چه دامورانتظامیؤنه دی، البته په عبادت کښې دسهولت دذریعې کیدودوجې نه دې ته مستحب لغیره وئیلې شی - علی سبیل التنزل مستحب لعینه کیدل دې هم تسلیم کړې شی لکه څنګه چه دامورمذکورونه په امراول کښې ظاهرده نو زیات نه زیات دومره خبره ثابته شوه چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم خلق دفتنې دبچ کولواودهغوئ داسلام دحفاظت دپاره یومستحب کارپریښودلو، دا له کوم ځائ نه ثابته شوه چه دکوم مصلحت دپاره دفرائضواوواجباتو اوارتکاب سیئات هم جائزدې؟-

چنانچه حافظ ابن حجر رحمه الله تعالی ددې واقعې نه دانتیجه اخلی او فرمائی-

**وان الامام یسوس رعیته بما فیه اصلاحه ولو کان مفضولاً مالم یکن محرما (فتح الباری ص ۳۰۰ ج)**

امام بخاری رحمه الله تعالی هم په دې حدیث باندې داباب قائم کړې دې:

**باب من ترك بعض الاختيار مخافة ان يقصر فهم بعض الناس فيقعوا فى اشد منه-**

یعنی افضل اومختارکارئې ددې اندیښنې نه پریخودو چه خلق دکم فهمئې دوجې نه په کومه فتنه کښې مبتلانه شی-

حاصل داچه دکوم مصلحت په خاطر مستحب کارخوپریخودې شی لیکن دحدودالله نه تجاوز اودشریعت دقانون نه خلاف ورزی هرګز جائزنه ده-

په دې سلسله کښې یوڅوواقعات ذکرکولې شی چه دهغې څخه ثابتیږی چه حضوراکرم صلی

الله علیه وسلم اوحضرات صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم داحکام شرعیۍ په مقابله کښې نوم اونشان مصالح هم داعتبارقابل نه شی ګڼلې-

(۱) حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دحضرت زینب رضی الله عنها سره دنکاح اراده اوفرمائیله چه بلاشبهه مباح اوجائزه وه . لیکن د دوئ صلی الله علیه وسلم په زړه کښې خیال پیداشو چه عوام دمتبنی ښځه حرامه ګڼي دې وجې نه ددې نکاح نه فتنه پیدا کیږی. جدیدالاسلام خلق دطعن اوتشنیع کولوسره خپل ایمان بربادوی – اوددین اسلام نه خلق متنفرکیږی- په دې باندې دالله تعالی دطرف نه تنبیه نازله شوه- ﴿وَتَخْشَى النَّاسَ وَاللَّهُ أَحَقُّ أَنْ تَخْشَاهُ﴾ (۳۳-۳۷)

بالآخره الله تعالی دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم نکاح دحضرت زینب رضی الله عنها سره اوکړه دفتنې هیڅ پروائې ونه کړه، دې وجې نه چه د مباح دپریښودلو نه ددې ضروری مسئلې عملی اظهار وشی چه د متبنی ښځه حقیقةً انګور نه جوړیږی اوددې سره نکاح حلاله ده-

ددې مباح په ترک کښې التباس فی الدین بلکه دتحریف فی الدین خطره وه دې وجې نه ددې دترک اجازت ئې ورنه کړو-

(۲) دقبلې په تحویل کښې دیهودودطرف نه دسخت مخالفت اوفتنې اندیښنه وه ددې نه علاوه دا په اسلام کښې اوله نسخ وه دې وجې نه دخلقودارتداد ډیره خطره وه . ددې باوجود دالله تعالی دطرف نه تنبیه نازلیږی- ﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ إِنَّكَ إِذًا لَمِنَ الظَّالِمِينَ﴾ (۲- ۱۴۵)

چنانچه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دکوم مصلحت پرواکولونه بغیرپه حکم الهی باندې قائم اودائم وو-

(۳) دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم دوفات نه بعد فوراً هرطرفته ارتداد وغیره دډیروفتنو ډیره غټه پیمانه باندې سلسله شروع شوه، حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ته داستحکام خلافت نه وړاندې ددې ټولوفتنونه صرف نظر کول پکار وو، بې وخته دجهاد یوڅومحاذونه پرانستل شو. په دې فتنوکښې یوفتنه دداسې اعرابو هم وه چه دائې وئیل چه داموال ظاهرو دزکاة وصولولو حق صرف حضورصلی الله علیه وسلم ته وو، ددوئ نه بعد کوم خلیفه ته داحق نه حاصلیږی-

حضرت ابوبکرصدیق رضی الله تعالی عنه دهغوئ سره هم دجهاد فیصله اوفرمائیله نوحضرت عمررضی الله عنه اونوروصحابه کرامورضی الله تعالی عنهم عرض اوکړو چه اوس خو ستا دخلافت ابتداء ده، استحکام حاصل نه دې، هلته څلوروطرفونوته بغاوت خوردې یوڅومحاذونه کولاؤشوی دی، مصلحت دادې چه نه په دې وخت کښې دجهاد نوې محاذ خلاص نه کړې، هغوئ

په همدې حال پریږدي. امید دې چه دغه مودې نه بعد به داخلق زکاة په بیت المال کښې داخل کړي.

حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه ددې سختوخطرو باوجود دځلوروسوؤ نه د زیاتو مخالفتونو څه پروان ونه کړه. اودمصلحت ترټولو د لوړې حصې (جهاد) اعلان ئې وکړو. بالآخر حضرت عمر اونورصحابه کرام رضی الله تعالی عنهم هم اقراروکړو چه زما دحضرت ابوبکرصدیق رضی الله تعالی عنه په اعلان جهاد باندې شرح صدرشوې ده-

(۴) دحضرت عمررضی الله تعالی عنه په دورِخلافت کښې دغسان بادشاه جبلة بن ایهم مسلمان شو. هغه طواف کولو په معمولی خبره باندې ئې یواعرابی په سپیړه اووهلوچه دهغې له کبله دده غابس مات شو. هغه دحضرت عمررضی الله تعالی عنه سره مقدمه درج کړه. حضرت عمررضی الله تعالی عنه په قصاص کښې دهغې بادشاه دغابس ماتولوفیصله اوفرمائیله. حالانکه مصلحت داؤ چه دده نه قصاص وانه خستلې شی ځکه چه دده دوجې نه اسلام اواهل اسلام ته غټ شوکت حاصل وو. داهم ممکن وو چه صاحب حق ته وه وایي چه معاف ئی کړه. لیکن حضرت عمررضی الله تعالی عنه په زړه کښې دیولمحې دپاره هم داخیال تیرنه کړو. دوئ داسلام فیصله صفا واؤروله چه صاحب حق راضی کړه ګینې قصاص اخستلې شی. هغه دسوچ کولومهلت اوغوښتو. ملاؤشو اوهغه شپه په شپه مرتدشو اوتختیدو-

غرض داچه دکوم مصلحت په خاطر دمعصیت ارتکاب هرګزجائزنه دې. البته شریعت کښې د لوئ محظور (ګناه) نه دبچ کیدودپاره وړوکې محظور کولې شی- مثلاً کوم سړې مونځ کوی. اخوا څوک نابینا په کوهی کښې غورځیږی نومونځ ماتول او دهغه بچ کول فرض دی- حالانکه په عامو حالاتو کښې مونځ ماتول ګناه ده لیکن دیوغټ مصیبت نه دبچ کیدودپاره ئې دااختیارکړه. په داسې صورت کښې **اهون البلیتین** یعنی دعظیم ضرر د دفع کولودپاره دلګې درجې ضررئې اختیارکړو-

ددې فیصله چه دبلیتینونه کوم یو اهون او سپك دې دهرکس کارنه دې. ځکه چه عامو اوقاتو کښې انسان اتباع هوی. عصبیت یادحُب مال اوځائ په بناء باندې غیراهون. اهون ګڼي. دې وجې نه دافیصله صرف هغه څوك کولې شی چه په علوم اسلامی کښې دپوره مهارت نه علاوه په دیانت اوتقوی کښې هم اعلی مقام ولری. بلکه په اهمو اموروکښې د دغه رنګې علماؤ د جماعت فیصله ضروری ده-

د **اهون البلیتین** کلیات شریعت بیان کړی دی. ددې کلیاتوپوره احاطه. ددې مفهوم په صحیح طورباندې پیژندل. بیا مخې ته راتلونکې جزئې په باره کښې دافیصله کول چه داپه کومه کلیه کښې داخله ده اوکه نه؟ که چرې داخله وی نوپه کومه کلیه کښې داخله ده؟ ددې امورو دپاره په

علوم دینیه کښې مهارت تامه، دډیرې اوچتې درجې تدبراو تفقه اودتدین او تصلب ضرورت دې
که چرې دکوم ناجائز کارپه باره کښې دښه غوراوسوچ نه بعد دا متحقق شی چه هغه دغه کار اهون البلیتین وګڼلو اواختیار ئی کړو نود دې وضاحت بلکه په عمومی حالاتو کښې ددې باربار اعلان ضروری دې چه داکار ناجائز دې مګردشرعی ضرورت په اساس مونږ هغه اختیارکړې دې، که چرې دا وضاحت ونه کړې شی نوعامة المسلمین به بیا داګناه، ګناه نه ګڼي اوچرته چه شرعی مجبوری نه وی هلته به هم ددې ارتکاب کولې شی-

ددې واضح مثال تصویر اخستل دې، چه دهغې حرام کیدل متفق علیه دې، لیکن حکومت دحج اوشناختی کارډ دپاره تصویرلازم ګڼلی دې، ددې ضرورت شدیده لاندې علماؤ ددې اجازت ورکړې دې، بلکه په دې خاصه موقع کښې داجازت باوجود دهغې په شدت سره ددې حرمت لیکل اوتقریباً بیانول غوښتل ، په دې اندازه ونه شو ، بلکه دبعض علماؤ په طرزعمل باندې مسلمانانو دا ګناه کبیره جائزګڼلې ده ، ځکه چه ددې علماؤ تصویران اخستلې شی نوهغوئ ئې نه منع کوی ،په اخباراتو وغیره کښې ددوئ تصاویر شائع کیږی لیکن دوئ په دې معصیت باندې د انکار هیڅ یوحرف هم ونه وئیلو ، ددې نه عوام دا ګڼي چه داځه ګناه نه ده-

داحال دتیلی ویژن دې،صرف دانه دې چه علماء په دې باندې انکار نه کوی بلکه ډیرعلماء په خپله په دې کښې مبتلاء دی چه دهغې په وجه باندې دعوامودزړونونه ددې قباحت ویستلی دی اودوئ هغه جائزګڼي-

حاصل دا دې چه په کوم دینی یادنیوی مصلحت باندې دکوم معصیت ارتکاب جائزنه دې نن سبا دسیاسی خلقو داخیال دې چه سیاسی کارکولو کښې جائزاوناجائز کتلوته ضرورت نشته داسراسرغلطه خبره ده، مسلمان خوهغه دې چه په هرقدم باندې دالله تعالی د رضا خیال وساتی او د هغه دقائم کړې شوی حدودو نه لګ شان هم تجاوز ونه کړی، کوم خلق چه دسیاست کارصرف د اقتدار دحصول دپاره کوی اودده دملک ددینی اودنیوی فلاح سره ځه غرض نه وی او هغه په سیاسی کارکښې داسلام احکام محفوظ ونه ساتی نو دا دکوم تعجب خبره نه ده، حیرانتیا خو په هغه حضراتو باندې دې چه دادعوی کوی چه «په موجوده سیاست کښې دحصې اخستونه زمونږ مقصود ملک کښې د صحیح اسلامی نظام قائمول دی» لیکن بیاهم هغوئ په سیاسی کارونو کښې داسلام داحکامو پروانه کوی، غیرمشروع تدابیر اختیاروی ، کله چه دوئ ته وئیلې شی «تاسوخو د اسلامی نظام قائمولو دعوه کوله لیکن تاسوپه خپله داسلام نافذولودپاره کومې طریقې اختیاروئ چه هغه غیر اسلامی اوناجائزې دی»

نوجواب ورکوی چه «اګرچه دا طریقې ناجائزې دی لیکن ددې نه بغیر اسلام راؤړل ممکن نه دی، دې وجې نه اوس خودجائزاوناجائزپرواکولوته بغیر داقتدارحاصل کولوجدوجهدلازم دې»

داقتدارحاصل کیدونه بعد په پوره طورباندې اسلام نافذکړو »-

دامحض دهوکه ده، مونږته ددوئ په نیت باندې شبهه نشته، لیکن دده طریقه کارداسې دې چه په دې سره دنفاذ اسلام توقع هرګزنه شی کیدلې، ځکه چه په غیراسلامی طریقو باندې دبې دینوکامیابی خوممکنه ده لیکن دیندارو ته اولاً خوکامیابی نه کیږی، اوکه چرې صورةً کامیابی هم وی لیکن ددې په نتیجه کښې اسلام نه راځی بلکه داسلام په نوم کوم بل کارکیږی، اوصورةً چه کومه کامیابی کیږی هغه هم دیوځوورځونه وړاندې نه ځی، کله چه دده بنیاد کمزورې وی نوپه دې باندې دعمارت په شان مضبوط شې به څنګه قائم شی؟

عقل، نقل اومشاهده دټولومتفقه فیصله ده چه دالله تعالی نافرمانی کولوسره مسلمانانوته هرګز، هرګزکامیابی نشی کیدې-

که چرې کله غیرمشروع اوناجائز طریقوباندې کفارواوفساقو ته کامیابی شوی وی نوپه دې باندې دمسلمانانو قیاس کول غلط دی ځکه چه دمسلم اوکافرطبعی تکلیف اوپه مزاج کښې یی دزمکه اودآسمان فرق دې- کیدې شی چه یونسخه یومزاج ته مفیده اوبل مزاج ته مضره وی لکه چه یوقصه مشهوره ده:

«بهنګی دعطرددوکان خواته تیریدلو دده دماغ چه دپاخانې (غټ بول) بدبوئې سره مانوس وو خوشبوئې برداشت کولې نه شوه دې وجې نه بیهوشه شو، ډیرعلاجونه ئې وکړل لیکن ټول ناکام شول.دده ورور د دې خبرې نه خبر شو نوهغه په یوشیشه کښې ګندګی واچوله، رائې وړه دده دپوزې ته ئې نژدې کړه، هغه فوراً په هوش کښې راغې»-

همدارنګه دکفارو او فساقو دماغ دمعصیت دتعفن نه ډك دی، دې وجی نه هغوئ ته دا حرام او ناجائز کارونه او بدبو نافع دی، په خلاف دمسلمان چه داشهزاده دې دده دماغ نهایت صاف اوپاکیزه دی، ده ته خوصرف داحکام شرعیه خوشبو ورکولې شی ، کوم احمق شهزاده ده لره په بهنګی باندې قیاس کړو او هغه ګندګی یی په ده باندې بوئ کړه او وې ویل چه په دې سره دشهزاده دماغ کولاویږی-

مسلمانان په کفارواوفساقو باندې قیاس کول غلط دی چه کوم څیز ده ته نافع دې هغه دده دپاره هم نافع دې، دا بوج بجهګړ په شان قیاس دې چه د ده په دماغو کښې د یوسړی د ونې نه د راکوزیدلو لپاره موجود وؤ ، قصه داسې پیښه شوه چه:

«یو سړې په ونه کښې وختلو اود راکوزیدوهمت ئې نه وو، خلقوته ئې آوازکړ، هغوئ جمع شول اومختلف تدبیرونه بیان کړل لیکن اطمینان ئې ونه شو، بالآخره ئې فیصله وکړه چه دا فیصله دې بوجه بجهګړ یوړې شی، ځکه چه هغه په کلی کښې دټولونه زیات عقلمنددې، هغه ته ئې درخواست اوکړو نوهغه په موقع باندې را ورسیدلو او وې وئیل چه تاسوټول بې عقله یئ، زمانه

بغير ديومعمولي غونتې خبرې حل نه شئ را ايستلې، ددې خو ډيرآسان تدبيردې، يواوګده رسئ ددې سرې په طرف ور واچوئ هغه دې دغه رسئ دځپلې ملانه څه کلکه وتړی، بيادې لاندې خلق په څه زور باندې راکاږی، په ډيره آسانئ به لاندې راشی -

چنانچه دوئ همداسې وکړل، هغه سړې په داسې شده سره وغورځيدلو چه هډوکی ئې مات شول اومړشو، خلقو بوجه بجهکړ ته اووئيل چه دادې څه وکړل؟ هغه جواب ورکړو چه ددې سړی قسمت خراب وو اوکه نه نو ما ډير خلق په دې طريقې سره له کوهی نه راويستی دی-»

څنګه چه د دې بوجه بجهکړ دونې ختونکی والاپه کوهی کښې دغورځيدووالا باندې قياس کول صحيح نه دې، دغه رنګ دمسلمانانوپه کفاروباندې قياس کول غلط اومهلک دی، کفار لاندې دی اومسلمانان په اوچته باندې، کفارچه دکومو تدابيرو په ذريعه دلاندې نه د اوچتې په طرف راتلو کښې کاميابيږی که چرې هغه تدابير مسلمانان اختيارکړی نود اوچت ځائ نه به لاندې اوغورځيږی-

په څپليو کښې که نجاست ولګی نوهغه نه وينځل کيږی ليکن که په ټوپئ کښې که دکوم څيز لګ غونتې هم ګرد ولګی نوفوراً ئې اوچتوی، دالله تعالی په نزدمسلمان دټوپئ په شان معزز دی اوکفار د څپليو په شان ذليل –

مسلمانانوته په معصيت سره هرګزکاميابی نه حاصليږی، دجنګ احدواقعه دې وکتلې شی چه مسلمانان په کفاروباندې غالب راغلی وو ليکن په يوې اجتهادی غلطئ باندې ددوئ فتح په شکست باندې بدله شوه ، الله تعالی فرمائی:

﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فَشِلۡتُمۡ وَتَنَٰزَعۡتُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِ وَعَصَيۡتُم مِّنۢ بَعۡدِ مَآ أَرَىٰكُم مَّا تُحِبُّونَۚ مِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلدُّنۡيَا وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلۡأٓخِرَةَۚ﴾ (۳-۱۵۲)

په دې آيت کښې دشکست سبب معصيت ګڼلې شوې دې، باقی څيزونه يا د هغې افراد دی او يا دَ هغې اثر دې ، دې ته معصيت وئيل دظاهری صورت په اعتبارباندې دې، په حقيقت کښې داخطا داجتهاد دقبيلې څخه ده، واقعه داسې شوې وه چه : «حضوراکرم صلی الله عليه وسلم تقريباً پنځوس صحابه کرام رضی الله عنهم په يومورچه باندې مقرراوفرمائيل داتاکيدئې ورته فرمائيلې وو چه مونږته فتح وی اوکه شکستۇ داځائ به نه پريږدئ! ليکن کله چه دوئ وليدل چه مسلمانان فاتحان شول، نودمال غنيمت جمع کولودپاره ئې دا مورچه پريخوده، کفارودې جانب نه حمله وکړه اودمسلمانانوفتح په شکست باندې بدله شوه »

حالانکه دحضرات صحابه کرام رضی الله عنهم مقصودبالذات دنيانه وه بلکه مقصودئې ټولو مسلمانانوته دنيوی نفع رسول وو چه په يواعتبارباندې دين دې، اوکه نه نو که چيرته صرف ئې

دخان دپاره دنیا جمع کول مقصود وای نو ددې دپاره دمورچې پرېښودل ضروري نه وو، ځکه چه شرعي قانون دادې چه په مال غنیمت کښې هغه سړې هم شریک دې چاچه مال غنیمت نه وی جمع کړې لیکن دجنګ دکارونونه په کوم کارکښې مشغول وی.

ددې نه ثابته شوه چه هغوئ ته دنیامن حیث الدنیا مقصودنه وه بلکه ددې نه ئې هم آخرت مقصود وو. دې وجې نه یې اوفرمایل چه ﴿مِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلدُّنْيَا وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلْآخِرَةَ﴾ او د (من یرید الآخرة) معنی ده من یرید الآخرة الصرفة.

ددې نه علاوه دامطلب هم کیدې شی چه حفاظت هم دآخرت عمل وو اومال غنیمت جمع کول هم. لیکن ددې حضراتو دپاره دمورچې حفاظت عمل زیات اهم وو. اوددین اهم کارئې پرېښودل په غیراهم کښې مشغول کیدل جائزنه دی. ددې حضراتو د اجتهادی غلطئې سره ناجائزکاراوشو. چه د هغې بی په «دنیا» باندې تعبیراوفرمائیلو. د «دنیا» دمختلفو معانیو نه یوه دا هم ده چه هر ناجائز کار«دُنیا» دې.

ددې نظیرد حضرت سلیمان علیه السلام قصه ده. «دوئ دجهاد په نیت دبهترین نسل آسونه پالل. یوځل دې د آسونو په معاینه کښې دومره یات مشغول شو چه دهغه وخت کوم اهم معمول او وظیفه ترینه پاتې شوه. نو دهغې په باره کښې اوفرمائیل چه ﴿إِنِّيٓ أَحْبَبْتُ حُبَّ ٱلْخَيْرِ عَن ذِكْرِ رَبِّي﴾ (۳۸-۳۱)

ددې خبرې مطلب همدادې چه د آسونومعاینه هم اګرچه دآخرت عمل وو لیکن بل معمول چه کوم وو هغه زیات اهم وو. د «حب الخیر» دا فرد فی نفسه محموداومقصوددوومګردبل زیات اهم معمول دترک کیدوباعث دجوړیدلو له وجه نه قبیح اومذموم شو. دحضرت سلیمان علیه السلام د ارشاد دامطلب دې چه دا «حب الخیر» چه اصالةً اوابتداءً محمود اومقصود وؤ. هغه انتهائ بوج عارض او مذموم شو. معمول متروک که چرې فرض هم وی نوبیا هم چونکه د ذهول اونسیان له وجې نه ترک شو دې له دې وجې نه دعصمت منافی نه ده.

غرض داچه دصحابه کرامو دغه اجتهادی غلطی هم دفتح نه مانع جوړه شوه. حالانکه صحابه کرام رضی الله عنهم ته دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم معیت هم حاصل وو اوکومه غلطی چه دهغوئ نه صادره شوه په هغې کښې ددوئ نیت هم معاذالله بدنه وو بلکه دغه عمل د دوئ هم دآخرت په نیت وو.

دغه رنګه په غزوهٔ حنین کښې د صحابه کرام رضی الله عنهم په زړونوکښې دخپل کثرت لږ غوندې نشه راغله. صرف په دومره خبره ئې اولاً شکست وخوړلو

کله چه دصحابه کرامورضی الله عنهم داجتهادی لغزش له فتحې نه مانع جوړشو نو د ننن سبا دمسلمانانو غلطیانې به ددوئ په کامیابئ کښې ولې مانع او خنډ نه جوړیږی؟

بیا صحابه کرامورضی الله عنهم اودنن مسلمانانو کښې یوفرق داهم دې چه داخلق معصیت د کامیابئ ذریعه گڼي. له دې وجې نه ددوئ طریقه ئې کارغلط دې. دحضرات صحابه کرامورضی الله عنهم طریقهٔ کارصحیح وه. اتفاقًا په دې کښې اجتهادی خطاشامله شوې وه.

په جهاداونورودینی اوسیاسی کارونوکښې کامیابی اودثابت قدمئ حاصلولوطریقه هم داده چه دالله تعالی دنافرمانئ نه انسان بچ شی. او دهغه اطاعت وکړی. په دې باره کښې الله تعالی، حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اوحضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم ته یوڅوصریح ارشادات او واضحه فیصلې پیش کوی: (۱) ﴿وَأَوْفُوا بِعَهْدِي أُوفِ بِعَهْدِكُمْ وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ﴾ (۲: ۴۰).

((یعنی تاسوزماعهدپوره کړئ زه به ستاسو عهدپوره کړم اوصرف له ځخه وه ویریږئ)).

(۲) ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿١٥٣﴾﴾ (۲: ۱۵۳)

((اې مؤمنانو! په صبراومونځ سره مدحاصل کړئ. بیشکه الله تعالی دصبرکولوو الاسره دې))

دصبرحقیقت په دین باندې استقامت اود حدودالله حفاظت دې.

(۳) ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَالسَّائِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ وَحِينَ الْبَأْسِ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴿١٧٧﴾﴾ (۲: ۱۷۷)

((ټول کمال په دې کښې نه دې چه تاسوخپل مخونه مشرق ته کړئ یامغرب ته. لیکن کمال خودادې چه کوم انسان په الله تعالی باندې یقین وکړی اودقیامت په ورځ باندې اوپه فرشتوباندې اوپه کتابونوباندې اوپه انبیاؤ باندې. اومال ورکوی دالله په محبت کښې رشته دارانوته اویتیمانوته اومحتاجوته اومسافروته اوسوال کوونکوته اوپه آزادولودستونوکښې. اودمونځ پابندی کوی اوزکاة هم اداکوی. او هغه خلق چه خپل عهد پوره کولووالاذی کله چه عهدوکړی. اوهغه خلق چه صبر کوونکی دی په تنگدستئ کښې اوپه بیمارئ کښې اوپه جنگ کښې. هم داخلق ریښتونی دی. اوهم دغه خلق متقیان دی)).

(۴) ﴿وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَىٰ وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ (۲: ۱۸۹)

«او په دې کښې څه فضیلت نه دې چه کورونو ته د شا د طرفه راځئ، هو، لیکن فضیلت د هغه چا دې چه د حرامو نه بچ شی، او کورونو ته د هغې د دروازو نه راشئ، او د الله تعالی نه یریږئ، امید دې چه تاسو کامیاب شئ»

په دې کښې د تقوی د حکم نه علاوه د طریق اتیان بیوت د تعلیم نه هم ثابته شوه چه هر کار د هغه د طریق شرعی په مطابق کول لازم دی. د دې نه خروج جائز نه دې۔

(۵) ﴿وَقَٰتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱلَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا۟ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ ﴿١٩٠﴾﴾ (۲: ۱۱۹)

«او تاسو جنګیږئ په لاره د الله تعالی کښې د هغه خلقو سره چه تاسو سره جنګیږی او د حد نه مه وځئ، واقعی الله تعالی د حد نه وتونکی نه خوښوی۔»

(۶) ﴿وَقَٰتِلُوا۟ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٤﴾﴾

«او د الله تعالی په لار کښې جنګ وکړئ او پوهه شئ چه الله تعالی آوریدونکې او علیم دې».

یعنی الله تعالی ستاسو د اقوالو او اعمالو او نیتونو څخه باخبره دې، د دې وجی نه د جهاد په حالت کښې د کوم مصلحت له وجې نه د هغه د رضا نه خلاف کوم کار نه دی کول پکار۔

(۷) ﴿فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِٱلْجُنُودِ قَالَ إِنَّ ٱللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ فَمَن شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّى وَمَن لَّمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُۥ مِنِّىٓ إِلَّا مَنِ ٱغْتَرَفَ غُرْفَةًۢ بِيَدِهِۦ ۚ فَشَرِبُوا۟ مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُۥ هُوَ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مَعَهُۥ قَالُوا۟ لَا طَاقَةَ لَنَا ٱلْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِۦ ۚ قَالَ ٱلَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا۟ ٱللَّهِ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةًۢ بِإِذْنِ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿٢٤٩﴾﴾ (۲: ۲۴۹)

«بیا کله چه طالوت فوجونه واخستل روان شو نو دوئ او وئیل چه الله تعالی ستاسو امتحان کوی په یو نهر سره، پس څوک چه د دې نهر نه اوبه وڅښی هغه زما په ملګرو کښې نه دې او چا چه هغه په ژبه هم کینه ښودلې هغه زما په ملګرو کښې دې، لیکن څوک چه په خپل لاس یوه لپه ډکه کړی، پس د دوئ نه دیو څو خلقونه سوا ټولو د هغې نه څښل شروع کړل، پس کله چه طالوت او کوم مؤمنان چه د ده سره وو د نهر نه تیر شول، نو وې وئیلې چه نن خو په مونږ کښې د جالوت او د هغه د لښکر په مقابله کښې طاقت نه معلومیږی، وه وئیل هغه خلقو د چا دا خیال وو چه هغوئ د الله تعالی سره مخامخ کیدونکی دی: چه ډیر خله وړوکی جماعتونه په غټو غټو جماعتونو باندې د الله په حکم غالب شوی دی او الله تعالی له صبر کونکو سره دې۔»

(۸) ﴿وَلَمَّا بَرَزُوا۟ لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِۦ قَالُوا۟ رَبَّنَآ أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا

وَٱنصُرۡنَا عَلَى ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿٢٥٠﴾ (۲: ۲۵۰)

«اوکله چه هغه خلق دجالوت اودده دفوجونوخواته میدان ته راغلل نووې وئیل چه: اې زمونږه ربه! په مونږ باندې صبر نازل کړه اوزمونږ قدمونه کلک کړې اومونږ په دې کافرقوم باندې غالب کړې »

ددې دعاء دترتیب نه ثابته شوه چه په دین باندې داستقامت نه ثبات د قدمونو حاصلیږی او بیا په کفارو باندې نصرت، لکه څنګه چه په ۱۳ نمبر آیت کښې د دې تصریح راځی چه ثبات د قدمونو او د فتح اونصرت مدارپه ترک معاصی باندې دې۔

(۹) ﴿وَإِن تَصۡبِرُواْ وَتَتَّقُواْ لَا يَضُرُّكُمۡ كَيۡدُهُمۡ شَيۡـًٔاۗ إِنَّ ٱللَّهَ بِمَا يَعۡمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿١٢٠﴾﴾ (۳: ۱۲۰)

«اوکه چیرې تاسود صبر اوتقوی سره کل وئ نودهغې خلقوتدبیرتاسو ته لګ ضررهم نه شی رسولې، بیشکه الله تعالی دهغوئ په اعمالوباندې احاطه کوی»

(۱۰) ﴿بَلَىٰٓۚ إِن تَصۡبِرُواْ وَتَتَّقُواْ وَيَأۡتُوكُم مِّن فَوۡرِهِمۡ هَٰذَا يُمۡدِدۡكُمۡ رَبُّكُم بِخَمۡسَةِ ءَالَٰفٖ مِّنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِينَ ﴿١٢٥﴾﴾ (۳: ۱۲۵)

«هو! ولې نه که چرې تاسو صبر وکړو اومتقیان شوئ اوهغه خلق په تاسوباندې یک دم راشی نو ستا سورب به ستاسوسره امداد وکړی په پنځوزرو فرشتو سره چه یوه خاص وضع به جوړوی۔»

(۱۱) ﴿وَلَا تَهِنُواْ وَلَا تَحۡزَنُواْ وَأَنتُمُ ٱلۡأَعۡلَوۡنَ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴿١٣٩﴾﴾ (۳: ۱۳۹)

«اوتاسوهمت مه بیلئ اوغم مه کوئ اوغالب به هم تاسویئ که چرې تاسوپوره مؤمنان شئ۔»

(۱۲) ﴿أَمۡ حَسِبۡتُمۡ أَن تَدۡخُلُواْ ٱلۡجَنَّةَ وَلَمَّا يَعۡلَمِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ جَٰهَدُواْ مِنكُمۡ وَيَعۡلَمَ ٱلصَّٰبِرِينَ ﴿١٤٢﴾﴾ (۳: ۱۴۲)

«هو! آیا تاسو خیال کوئ چه جنت ته به داخل شئ حالانکه تراوسه پورې خوالله تعالی هغه خلق کتلی نه دی څوک چه ستاسونه جهادکوی اونه ئ هغه کتلی چه ثابت قدم اوسیدو والاوی»۔

(۱۳) ﴿وَمَا كَانَ قَوۡلَهُمۡ إِلَّآ أَن قَالُواْ رَبَّنَا ٱغۡفِرۡ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسۡرَافَنَا فِيٓ أَمۡرِنَا وَثَبِّتۡ أَقۡدَامَنَا وَٱنصُرۡنَا عَلَى ٱلۡقَوۡمِ ٱلۡكَٰفِرِينَ ﴿١٤٧﴾ فَـَٔاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ ثَوَابَ ٱلدُّنۡيَا وَحُسۡنَ ثَوَابِ ٱلۡأٓخِرَةِۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿١٤٨﴾﴾ (۳: ۱۴۷، ۱۴۸)

«او د هغوئ دژبونه هم ددې نه سوا نورڅه نه راوخی چه هغوئ عرض وکړو چه اې زما ربه! زمونږ ګناهونه اوزمونږ کارونه زمونږ دحدنه وتل را اوبښلې شی او زمونږ قدمونه ثابت کړې اومونږ په کافروخلقو باندې غالب کړې، سواد دې نه الله تعالی ددنیاهم بدله ورکړه اودآخرت ئې

هم عمده بدله ورکړه، او دالله تعالی دداسې نیکوکارو سره محبت دی»

په دې کښې دالله والاؤ معمول دا وینا ده چه هغوئ دثبات قدمئ اودنصرت الهیه ددعاء غوښتلو نه وړاندې دخپلو ګناهونو اوخطایانو معافی غواړی، ددې نه ثابته شوه چه الله تعالی دوئ په دنیا او آخرت دواړو کښې په فلاح اوکامیابی سره عزتمند کړی وو، او ددې نه ئې هم اوچت کړل دخپل محبوبیت امتیاز ئې ورته عطاء ورکړو.

(۱۴) ﴿وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ إِذْ تَحُسُّونَهُم بِإِذْنِهِ حَتَّىٰ إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِي الْأَمْرِ وَعَصَيْتُم مِّن بَعْدِ مَا أَرَاكُم مَّا تُحِبُّونَ مِنكُم مَّن يُرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ الْآخِرَةَ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٥٢﴾﴾ (۳: ۱۵۲)

«اویقیناً الله تعالی ستاسو سره خپله وعده رښتیاکړیده کله چه تاسو دا کفار دالله په حکم باندې قتلول ، دې پورې چه تاسوپه خپله کمزوری شوئ اوپه حکم کښې مواختلاف شروع کړو اونافرمانی مو وکړه دهغې نه بعد چه تاسوته یی ستا سو خواهشات وښودل، ستاسونه بعضو دنیاغوښتله اوبعضې نور د آخرت طلبګاروو،بیا تاسو دا کفار وشړل چه الله تعالی ستاسو ازمائش وکړی اویقین وکړئ چه الله تعالی تاسومعاف کړی یئ اوالله تعالی په مسلمانانوباندې دغټ فضل والا دې»

ددې آیت تفسیر اول لیکلې شوې دې.

(۱۵) ﴿إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا الَّذِي يَنصُرُكُم مِّن بَعْدِهِ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٦٠﴾﴾ (۳: ۱۶۰)

«که چرې الله تعالی ستاسو سره مدد وکړی نو په ستاسو به هیڅوک غالب نشی اوکه چرې ستاسو سره نه وی نو د د هغه نه بعدداسې څوک دې چه ستاسوسره شی، او په الله تعالی باندې صرف مؤمنانو اعتماد او توکل کوی.

(۱۶) ﴿الَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِلَّهِ وَالرَّسُولِ مِن بَعْدِ مَا أَصَابَهُمُ الْقَرْحُ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٢﴾﴾ (۳: ۱۷۲)

«هغه خلق چه دالله تعالی اودرسول الله وینایی قبوله کړه وروسته له دې نه چه هغوئ ته زخمونه رسیدلی وو، هغه خلق چه هغوئ نیکان اومتقیان دې هغوئ ته لوئ ثواب دې»

(۱۷) ﴿إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ الشَّيْطَانُ يُخَوِّفُ أَوْلِيَاءَهُ فَلَا تَخَافُوهُمْ وَخَافُونِ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ (۳: ۱۷۵)

«ددې نه زياته څه خبره نشته چه داشيطان دې چه خپل دوستان يروي، پس تاسو دهغوئ نه مه يريږئ اوزمانه يريږئ که چرې تاسو مؤمنان يئ»

معلومه شوه چه ددشمن نه دسختې خطرې په حالت کښې هم دحفاظت مصلحت باندې دکوم کار ارتکاب جائزنه دې۔

(۱۸) ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ (۳: ۲۰۰)

«اې مؤمنانو! په خپله صبر وکړئ اوپه مقابله کښې صبر وکړئ او د مقابلې دپاره مستعد او تيار اوسئ، اودالله تعالی نه يريږئ چه تاسو پوره کامياب شئ»

(۱۹) ﴿وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا وَقَالَ اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكَاةَ وَآمَنتُم بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّأُكَفِّرَنَّ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ فَمَن كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ﴾ (۵: ۱۲)

«اوالله تعالی دبنی اسرائيلو نه عهد اخستې وو اومونږه دهغوئ نه دولس سرداران مقرر کړل اوالله تعالی دا اوفرمائيل چه زه ستاسو سره يم که چرې تاسو د مونځ پابندی کوئ اوزکوة ادا کوئ اوزما په ټولو رسولانو باندې مو ايمان راوړو اودهغوئ مدد مو اوکړو اوالله تعالی ته په ښه طريقه باندې قرض ورکوئ نوزه به ضرور ستاسو ګناهونه ستاسونه لرې کوم اوضرور به تاسو په داسې باغونو کښې داخلوم چه دهغې نه لاندې نهرونه دی اوڅوک چه ددې نه بعد هم کفر کوی نوبيشکه هغه دنيغې لارې نه لرې لاړو»

(۲۰) ﴿وَمَن يَتَوَلَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالَّذِينَ آمَنُوا فَإِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْغَالِبُونَ﴾ (۵: ۵۶)

«او څوک چه دالله تعالی سره دوستی کوی اودهغه درسول سره او ايمان والاؤ سره پس دالله تعالی ډله بيشکه غالبه ده»

(۲۱) ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِم﴾ (۵: ۶۶)

«اوکه چرې دې خلقو دتورات اوانجيل اوکوم کتاب چه ددوئ درب دطرف نه دوئ ته رانيولی

شوي دي پوره تابعداري کړې واى نو دوئ به خوراك کړې له بره طرف نه او لاندې طرف نه.))-

(۲۲) ﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَاتٍ مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَلَٰكِن كَذَّبُوا فَأَخَذْنَاهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٩٦﴾﴾ (۷: ۹۶)

((اوکه چرې ددې کلووالا ایمان راوړې واى اوپرهیز ئې کړى واى نومونږبه په دوئ باندې دآسمان اوزمکې برکتونه را خلاص کړی وای ، لیکن دوئ تکذیب وکړو نومونږ دوئ داعمالو په وجه ونیول))-

(۲۳) ﴿قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اسْتَعِينُوا بِاللَّهِ وَاصْبِرُوا ۖ إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ ۖ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿١٢٨﴾﴾ (۷: ۱۲۸)

((موسی خپل قوم ته اوفرمائیل چه دالله تعالی نه مدد وغواړئ اوصبرکوئ دا زمکه دالله تعالی ده، دخپلوبندګانونه چه څوک غواړی مالک ئې جوړوی او آخرکامیابی به دهغوئ وی چه دهغه نه یریږی-))

(۲٤) ﴿وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ مَشَارِقَ الْأَرْضِ وَمَغَارِبَهَا الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا ۖ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ بِمَا صَبَرُوا ۖ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ ﴿١٣٧﴾﴾ (۷: ۱۳۷)

((اومونږ هغه خلق چه بالکل کمزوری شمارکیدل دهغه زمکې دمشارقو اومغاربو مالکان جوړکړل په کومه کښې مونږ برکت ایښې دې او ستا د رب نیکه وعده دبنی اسرائیلوپه حق کښې دهغوئ دصبرپه وجه پوره شوه اومونږ دفرعون اودهغه دقوم هغه کارخانې اوهغه اوچت اوچت عمارتونه چه هغوئ به جوړول هغه مو ټول ړنګ کړل))

(۲٥) ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٤٥﴾ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ۖ وَاصْبِرُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٤٦﴾﴾ (۸: ٤٥، ٤٦)

((اې مؤمنانو! کله چه تاسو له یوې ډلې سره مخامخ شئ نوثابت قدمه شئ اوالله تعالی بنه په کثرت سره یادوئ اُمیددې چه تاسوکامیاب شئ، اودالله تعالی اودهغه درسول اطاعت کوئ او اختلاف مه کوئ کنه نو کم همته به شئ او ستاسو هوا به لاړه شی اوصبر وکړئ بیشکه الله تعالی دصبرکونکوسره دې-))

ددشمن په مقابله کښې یی دثبات قدمی نسخه اوفرمائیله «کثرت ذکر» اوداذکرالله روح دادې چه دالله تعالی سره تعلق مضبوط وی، اوتعلق مع الله دمعصیت نه مانع دې- بیاورانډې دنور تاکید دپاره دالله تعالی اودهغه درسول الله صلی الله علیه وسلم د اطاعت تصریح یی هم اوفرمائیله ددې نه علاوه یې په مینځ کښې دتنازع نه منع اوفرمائیله، اوبل ځائې کښې ئې دتنازع نه دمنع طریقه داسې فرمائیلې ده: ﴿فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ﴾ (٤: ٥٩)

یعنی دالله تعالی اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم اتباع کوئ

(۲٦) ﴿وَإِن يُرِيدُوا أَن يَخْدَعُوكَ فَإِنَّ حَسْبَكَ اللَّهُ هُوَ الَّذِي أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِ وَبِالْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٢﴾﴾ (٨: ٦٢)

«اوکه چرې هغه خلق تاته دوکه درکول غواړی نوالله تعالی ستا دپاره کافی دې، الله تعالی هغه ذات دې چاچه تاته په خپل امداد باندې اومسلمانانوته قوت ورکړې»-

(۲۷) ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ ۚ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ ۚ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ﴿٦٥﴾﴾ (٨: ٦٥)

«اې نبی! ته مؤمنانوته دجهاد ترغیب ورکړه- که چرې ستاسونه شل کسان ثابت قدم اوسیدو والا وی نوپه دوه سوه کافرانو به غالب کیږی اوکه چرې ستاسونه سل کسان وی نوپه زرو کفارو باندې به غالب کیږی، له دې وجې نه چه هغوئ داسې خلق دی چه په څه نه پوهیږی»-

(۲۸) ﴿الْآنَ خَفَّفَ اللَّهُ عَنكُمْ وَعَلِمَ أَنَّ فِيكُمْ ضَعْفًا ۚ فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ ۚ وَإِن يَكُن مِّنكُمْ أَلْفٌ يَغْلِبُوا أَلْفَيْنِ بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٦٦﴾﴾ (٨: ٦٦)

«اوس الله تعالی په تاسو باندې تخفیف وکړو اومعلومه ئې کړه چه په تاسو کښې دهمت کمې دې پس که چرې ستاسونه سل کسان ثابت قدمئ والاوی نوپه دوه سوه باندې به غالب کیږی اوکه چرې ستاسونه زرکسان وی نوپه دوه زره باندې به دَ الله تعالی په حکم سرهغالب کیږی اوالله تعالی دصابرینو سره دې-»

(۲۹) ﴿وَإِن يُرِيدُوا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ فَأَمْكَنَ مِنْهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٧١﴾﴾ (٨: ٧١)

«اوکه چرې داخلق ستاسره دخیانت کولو اراده لری نو ددې نه وړاندې دوئ دالله تعالی سره خیانت کړې وو بیاالله تعالی دوئ گرفتارکړل، اوالله تعالی ښه پوهیدووالادې ، غټ حکمت والادې»-

(۳۰) ﴿كَيْفَ يَكُونُ لِلْمُشْرِكِينَ عَهْدٌ عِندَ اللَّهِ وَعِندَ رَسُولِهِ إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ فَمَا اسْتَقَامُوا لَكُمْ فَاسْتَقِيمُوا لَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ﴿٧﴾﴾ (۹: ۷)

«پس تر کومه پورې چه داخلق ستاسره په سمه طريقه وی ته هم ددوئ سره په سمه طريقه اوسه ، بیشکه الله تعالی متقیان خوښوی»۔

(۳۱) ﴿لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ ۙ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ ۙ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ ﴿٢٥﴾﴾ (۹: ۲۵)

«تاسو ته الله تعالی په ډيرو مواقعو کښې غلبه درکړه او دحنين په ورځ هم کله چه تاسو دخپلې مجمع په کثرت باندې غره شوی وئ بیاهغه کثرت ستاسو په کار رانغلو اوپه تاسوباندې زمکه باوجود د فراخئ نه تنګه شوه بیا تاسوشاه کړه او وته تښتیدلئ»۔

(۳۲) ﴿وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ﴿٣٦﴾﴾ (۹: ۳٦)

«او ددې مشرکینو سره ټول جنګیږئ لکه څنګه چه دوئ ستاسو ټولو سره جنګیږی۔ اوپوهه شئ چه الله تعالی دمتقینو سره دی»۔

(۳۳) ﴿التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدُونَ الْآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللَّهِ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١١٢﴾﴾ (۹: ۱۱۲)

«هغه داسې دی چه توبه کولوولا دی عبادت کولوولا حمدکولو والا روژه نیولووالارکوع اوسجده کولووالا دنیکوخبروکولووالا اوبدوخبرونه څان ساتلووالا اودالله تعالی دحدودودخیال ساتلووالا اوداسې مؤمنانوته خوشخبرې واوروه»۔

(۳۴) ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قَاتِلُوا الَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ﴿١٢٣﴾﴾ (۹: ۱۲۳)

«اې مؤمنانو ! له هغه کفاروسره جنګ وکړئ چه ستاسوسره نزدې دی چه دوئ په تاسوکښې سختی اومومی ،اویقین لرئ چه الله تعالی دمتقیانوسره دی»۔

په دې کښې هم دجهاد په حالت کښې د تقوی یعنی د حدودالله د تجاوز نه د بچ کیدوحکم

فرمائیلي شوي دي:

(۳۵) ﴿أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٢﴾ الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ ﴿٦٣﴾ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ ۚ لَا تَبْدِيلَ لِكَلِمَاتِ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٦٤﴾﴾ (۱۰: ۶۲ نه تر ۶۴)

«یاد لره دالله تعالی په دوستانو باندې نه څه اندیښنه شته اونه هغوئ غمجن دی. دا هغه خلق دی چه ایمان راوړی اوپرهیزگاروی، ددوئ دپاره په دنیوی ژوند کښې هم اوآخرت کښې هم خوشخبری ده، دالله تعالی په خبرو کښې هیڅ فرق نه راځی داغته کامیابی ده»۔

(۳۶) ﴿فَاصْبِرْ ۖ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٤٩﴾﴾ (۱۱: ۴۹)

«پس صبر وکړئ یقیناً نیک انجام دمتقیانو دپاره دي»۔

(۳۷) ﴿وَيَا قَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ ﴿٥٢﴾﴾ (۱۱: ۵۲)

«او اې زماقومه! تاسو ښښنه وغواړئ دخپل رب نه، بیادهغه په طرف متوجه شئ هغه په تاسو باندې پرله پسې بارانونه رالیږی اوتاسوته به نورقوت درکړی ستاسوپه قوت کښې به ترقی وکړی او مه گرځئ مجرمان»

(۳۸) ﴿قَالُوا أَإِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ ۖ قَالَ أَنَا يُوسُفُ وَهَٰذَا أَخِي ۖ قَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا ۖ إِنَّهُ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٠﴾﴾ (۱۲: ۹۰)

« واقعی څوک چه دګناهونونه بچ کیږی اوصبرکوی نوالله تعالی دداسې نیک کارکونکو اجرنه ضائع کوی»۔

(۳۹) ﴿ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا مِن بَعْدِ مَا فُتِنُوا ثُمَّ جَاهَدُوا وَصَبَرُوا إِنَّ رَبَّكَ مِن بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٠﴾﴾ (۱۶: ۱۱۰)

«بیابیشکه ستارب دداسې خلقو دپاره چه چاپه کفرکښې دمبتلاء کیدونه بعد هجرت وکړو بیائې جهاد وکړو اوقائم پاتې شو نو ستارب ددې نه بعدد ډیرمغفرت کولو والا غټ رحمت کولو والادي»۔

(۴۰) ﴿وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِن بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ ﴿١٠٥﴾﴾

(۲۱: ۱۰۵)
((اوموږ په کتابونو کښې دلوح محفوظ نه بعدلیکلی دی چه ددې زمکې مالکان به زمانیک بندګان کیږی))-

(۴۱) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ يُدَٰفِعُ عَنِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٖ كَفُورٍ ۝٣٨﴾ (۲۲: ۳۷)
((بیشکه الله تعالی د مؤمنانو نه دفع کوی بیشکه الله تعالی نه خوښوی هر خائن کافر))

(۴۲) ﴿ٱلَّذِينَ أُخۡرِجُواْ مِن دِيَٰرِهِم بِغَيۡرِ حَقٍّ إِلَّآ أَن يَقُولُواْ رَبُّنَا ٱللَّهُۗ وَلَوۡلَا دَفۡعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ بَعۡضَهُم بِبَعۡضٖ لَّهُدِّمَتۡ صَوَٰمِعُ وَبِيَعٞ وَصَلَوَٰتٞ وَمَسَٰجِدُ يُذۡكَرُ فِيهَا ٱسۡمُ ٱللَّهِ كَثِيرٗاۗ وَلَيَنصُرَنَّ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ۝٤٠﴾ (۲۲: ۴۰)
((ځوک چه دخپلو کورونونه په ناحقه ویستلې شوی دی صرف په دومره خبره باندې چه هغوئ داوائی چه زموږه رب الله دې، اوکه چیرې نه وای دفع کول د الله تعالی خلقو لره بعضې په بعضو نورو سره نو د نصاراؤ خلوت خانې اوعبادت خانې اودیهودوعبادت خانې اوهغه مسجدونه چه په هغې کښې دالله تعالی نوم په کثرت سره اخستلې شی ټول به وران شوی وؤ، اوبیشکه الله تعالی دهغه چا امدادکوی ځوک چه دالله تعالی مددکوی، بیشک الله تعالی قوت والاغلبې والادې))-

(۴۳) ﴿إِنَّمَا كَانَ قَوۡلَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ إِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَهُمۡ أَن يَقُولُواْ سَمِعۡنَا وَأَطَعۡنَاۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ۝٥١﴾ (۲۴:۵۱)
((دمسلمانانو قول کله چه دوئ ته دالله تعالی اودهغه درسول دطرفه آوازاوکړې شی صرف دادې چه دوئ وائی چه موږه واؤریده او ومو منله، اوداسې خلق کامیابیږی))-

(۴۴) ﴿وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَخۡشَ ٱللَّهَ وَيَتَّقۡهِ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡفَآئِزُونَ ۝٥٢﴾ (۲۴: ۵۲)
((اوځوک چه دالله اودهغه درسول خبره ومنی اودالله تعالی نه وه یریږی اودهغه دمخالفت نه بچ شی بس داسې خلق بامراده دی او کامیاب دی))-

(۴۵) ﴿وَعَدَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنكُمۡ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَيَسۡتَخۡلِفَنَّهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ كَمَا ٱسۡتَخۡلَفَ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمۡ دِينَهُمُ ٱلَّذِي ٱرۡتَضَىٰ لَهُمۡ وَلَيُبَدِّلَنَّهُم مِّنۢ بَعۡدِ خَوۡفِهِمۡ أَمۡنٗاۚ يَعۡبُدُونَنِي لَا يُشۡرِكُونَ بِي شَيۡـٔٗاۚ وَمَن كَفَرَ بَعۡدَ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡفَٰسِقُونَ ۝٥٥﴾ (۲۴: ۵۵)
((په تاسو کښې چه کوم خلق ایمان راوړی اونیک عمل وکړی دهغوئ سره الله وعده فرمائی چه هغوئ ته به په زمکه کښې حکومت ورکوی لکه څنګه چه ددوئ نه وړاندې خلقوته ئی حکومت

ورکړي وو اوکوم دین چه ئې دَهغوئ دپاره خوښ کړي دې هغه ته به قوت ورکوی اوهغوئ ته به دا خوف په امن سره بدلوی، په دې شرط چه زماعبادت کوئ، زماسره کوم قسم شرک نه کوئ، اوڅوك چه ددې نه بعد ناشکری کوی نو دا خلق فاسقان دی»۔

په دې آیت کریمه کښې په ایمان اواعمال صالحوباندې دفتح اونصرت وعده ده اودعمل صالح بنیاد ترک معصیت دې، دمعصیت په وجه باندې فتح اونصرت په ناکامئ اونامردئ باندې بدلیږی، چه دهغې بیان پورته تیرشوې دې»۔

(۴۶) ﴿ يَٰبُنَيَّ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ وَأۡمُرۡ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَٱنۡهَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَٱصۡبِرۡ عَلَىٰ مَآ أَصَابَكَۖ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ ٱلۡأُمُورِ ﴿١٧﴾ ﴾ (۳۱: ۱۷)

«زویه! مونځ اداکوه اودښوکارونو نصیحت کوه اودبدوکارونونه منع کوه اوپه تاباندې چه کوم مصیبت واقع وی په هغې باندې صبرکوه، دادهمت دکارونونه دې»۔

نهی عن المنکر جهاد اکبردې، په دې کښې د د سختو مصیبتونو مقابله راځی، دې وجې نه ئې دصبراواستقامت حکم اوفرمائیلو۔

(۴۷) ﴿ وَلَقَدۡ سَبَقَتۡ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴿١٧١﴾ إِنَّهُمۡ لَهُمُ ٱلۡمَنصُورُونَ ﴿١٧٢﴾ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ ٱلۡغَٰلِبُونَ ﴿١٧٣﴾ ﴾ (۳۷: ۱۷۱ نه تر۱۷۳)

اوزمونږ خاص بندګانوته یعنی رسولانوته زمونږ دا قول داول نه مقررشوې دې چه بیشکه هغوئ به غالب کولې شی اوزمونږ لښکر به غالب کیږی»۔

(۴۸) ﴿ قُلۡ يَٰعِبَادِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمۡۚ لِلَّذِينَ أَحۡسَنُواْ فِي هَٰذِهِ ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةٞۗ وَأَرۡضُ ٱللَّهِ وَٰسِعَةٌۗ إِنَّمَا يُوَفَّى ٱلصَّٰبِرُونَ أَجۡرَهُم بِغَيۡرِ حِسَابٖ ﴿١٠﴾ ﴾ (۳۹: ۱۰)

«ته وه وایه چه اې زما مؤمنو بندګانو، تاسو د خپل رب نه یریږئ، کوم خلق چه په دې دنیا کښې نیکی کوی دهغوئ دپاره نیکه صله ده اودالله تعالی زمکه فراخه ده مستقل اوسیدونکوته به ددوئ صله بې شماره ملاویږی»۔

(۴۹) ﴿ إِنَّا لَنَنصُرُ رُسُلَنَا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا وَيَوۡمَ يَقُومُ ٱلۡأَشۡهَٰدُ ﴿٥١﴾ ﴾ (۴۰: ۵۱)

«مونږ دخپلورسولانواودایمان والاؤ په دنیوی زندګیانوکښې هم مددکووا وپه هغه ورځ کښې هم چه په هغې کښې ګواهی ورکولووالا ودریږی»۔

(۵۰) ﴿ وَنَجَّيۡنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ ﴿١٨﴾ ﴾ (۴۱: ۱۸)

«اومونږه هغه خلقوته نجات ورکړو چه ایمان ئې راوړو اویریدل»۔

(۵۱) ﴿ إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا اللَّهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١٣﴾ ﴾ (۴۶: ۱۳)

((کومو خلقو چه اووئیلې چه زمونږ رب الله دې بیا مستقیم شی پس په هغه باندې څه یره نشته او نه به هغوئ غمګین شی))۔

(۵۲) ﴿ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴿٧﴾ ﴾ (۴۷: ۷)

((اې مؤمنانو ! که چرې تاسو د الله تعالی مدد کوئ نو هغه به ستاسو مدد کوی او ستاسو قدمونه به کلک کړی)).

(۵۳) ﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ مَوْلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَأَنَّ الْكَافِرِينَ لَا مَوْلَىٰ لَهُمْ ﴿١١﴾ ﴾ (۴۷: ۱۱)

((دا ټول په دې سبب باندې دی چه الله تعالی دمسلمانانو کار ساز دې او د کافرانو څوک کارساز نشته)).

(۵۴) ﴿ كَتَبَ اللَّهُ لَأَغْلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِي ۚ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٢١﴾ ﴾ (۵۸: ۱۲)

((الله تعالی دا خبره لیکلی ده چه زه او زما رسولان به غالب کیږی ،بیشکه الله تعالی د قوت والا غلبې والا دې)).

(۵۵) ﴿ لَّا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ ۖ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ ۚ أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٢٢﴾ ﴾ (۵۸-۲۲)

((کوم خلق چه په الله او قیامت باندې ایمان لری تاسو به هغوئ ونه ګورئ چه هغوئ د داسې خلقو سره دوستی وکړی چه د الله او د رسول نه خلاف وی، اګرچه هغوئ د دوئ پلاران یا ځامن یا یا ورونه او یا خپلوان وی ، د دې خلقو په زړونو کښې الله تعالی ایمان ثابت کړې دې او دوئ ئې په خپل فیض باندې قوی کړی دی او دوئ به په داسې باغونو کښې ورننه کړی چه دهغې لاندې به نهرونه جاری وی چه په هغې کښې به دوئ همیشه وی الله تعالی به دهغوئ نه راضی کیږی او دوئ به د الله تعالی نه راضی وی، دا خلق د الله تعالی ډله ده- ښه واورئ چه دَالله تعالی ډله کامیابی موندونکې ده))-

(۵۶) ﴿ وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ﴿٢﴾ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ۚ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ ۚ إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ ۚ قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا ﴿٣﴾ ﴾ (۶۵:۲،۳)

«او څوك چه دَالله تعالى نه يريږى الله تعالى دهغه دپاره د خلاصى لار را اوباسى اوهغه ته د داسې ځائ نه رزق رسوی چه د هغه ځائ نه به دده گمان هم نه وی. اوڅوك چه په الله تعالى باندې توكل كوی نوالله تعالى دهغه دپاره كافى دې، الله تعالى خپل كار پوره كوی الله تعالى دهرشئ يوه اندازه مقرر كړې ده»۔

(۵۷) ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا﴾ (۶۵: ۴)

«اوڅوك چه دالله تعالى نه يريږى الله تعالى دهغه هركاركښې آسانى پيدا كوى»۔

(۵۸) ﴿فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ﴿١٠﴾ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ﴿١١﴾ وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا ﴿١٢﴾﴾ (۷۱: ۱۰ نه تر ۱۲)

«اوما اووئيل چه تاسودخپل رب نه دگناه ښښنه وغواړئ بيشكه هغه ډيرلوئ ښښونكې دې. په كثرت باندې په تاسو بارانونه راليږى او ستاسو په مال او اولادكښې ترقى دركوى او ستاسو دپاره باغونه جوړوى او ستاسو دپاره نهرونه روانوى»۔

(۶۰) ﴿وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّي بَعْضَ الظَّالِمِينَ بَعْضًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٢٩﴾﴾ (۶: ۱۲۹)

«اودارنگه مونږ بعض ظالمان په بعضو باندې مسلط كوو ددوئ دبدواعمالو دوجې نه»۔

(۶۱) **قال ابن عباس رضى الله عنهما تفسيرها ان الله اذا اراد بقوم شرا ولى عليهم شرارهم اوخيرا ولى عليهم خيارهم وفى بعض الكتب المنزلة افنى اعدائى باعدائى ثم افنيهم باوليائى (البحر المحيط ص ۲۲۲ ج ۴)**

«حضرت ابن عباس رضى الله عنهما فرمائى: ددې آيت تفسيردادې چه بې شكه الله تعالى كله كوم قوم دبدواعمالوپه وجه باندې دهغوئ دپاره بدى مقدر فرمائى نوپه هغوئ باندې بد حاكمان مسلط كوى اوكوم قوم چه اوچتوى نوپه هغوئ باندې ښه خلق حاكمان جوړوى. اوپه بعض آسمانى كتابونو كښې دى چه خپل دشمنان دخپلو دشمنانوپه ذريعه تباه كوى. بيا دوئ دخپلو دوستانوپه لاسونو تباه كوى»۔

(۶۲) **قال مالك بن دينار قرأت فى الزبور انى انتقم المنافقين بالمنافقين ثم انتقم من المنافقين جميعا وذلك فى كتاب الله قوله تعالى نولى بعض الظلمين بعضا۔**

**وقد روى الحافظ ابن عساكر فى ترجمة عبد الباقى بن احمد من طريق سعيد بن عبد الجبار الكرابيسى عن حماد بن سلمة عن عاصم عن ذر عن ابن مسعود رضى الله تعالى عنه مرفوعا من اعان ظالما سلطه الله عليه وهذا حديث غريب وقال بعض الشعراء:**

وما من ید الا ید الله فوقها ولا ظلم الا سیبلی بظالم

ومعنی الآیة الکریمة کما ولینا هؤلاء الخاسرین من الانس تلك الطائفة التی اغوتهم من الجن کذلك نفعل بالظالمین نسلط بعضهم علی بعض جزاء علی ظلمهم وبغیهم (تفسیر ابن کثیر ص ۱۶۷ ج ۲)

«مالک بن دینار رحمه الله فرمائی، ماپه زبورکښې وئیلی دی: زه دمنافقانو نه دمنافقانوپه ذریعه انتقام اخلم بیا د ټولومنافقانونه انتقام اخلم، اوداپه کتاب الله کښې هم دی (وکذلك نولی بعض الظالمین بعضا)

اوحضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې: څوک چه دکوم ظالم مددکوی الله تعالی هغه ظالم په دې ظالم باندې مسلط کوی.

اوددې آیت معنی داده چه مونږه بعض ظالمان په بعضوباندې مسلط کوو دوئ ته دظلم اوسرکشئ دسزااورکولودپاره».

(۶۳) واخرج ابوالشیخ عن منصور بن ابی الاسود قال سالت الاعمش عن قوله وکذلك نولی بعض الظالمین بعضا ما سمعتهم یقولون فیه قال سمعتهم یقولون اذا فسد الناس امر علیهم شرارهم (الدر المنثور ص ۳۰ ج ۳)

اعمش رحمه الله فرمائی: ما د اکابرونه ددې آیت تفسیرداسې اوریدلې دې چه کله خلق خراب شی نو الله تعالی به په دوئ باندې شریرخلق حاکمان جوړکړی».

(۶۴) واخرج ابن ابی حاتم وابوالشیخ عن مالك بن دینار مثل ما اخرج عنه ابن کثیر وقدمر نصه (تیره شوې حواله)

(۶۵) واخرج الحاکم فی التاریخ والبیهقی فی شعب الایمان من طریق یحیی بن هاشم ثنا یونس بن ابی اسحق عن ابیه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم کما تکونون کذلك یؤمر علیکم قال البیهقی هذا منقطع ویحی ضعیف (تیره شوې حواله)

«څنګه به چه تاسو یئ هم هغسې به تاسو باندې حاکمان مقررکیږی».

(۶۶) ابوبکرة: کما تکونوا یولی علیکم او یؤمر علیکم (مسند الفردوس للدیلمی ص ۲۵۲ ج ۳)

«څنګه به چه تاسو یئ هم هغسې به تاسو باندې حاکمان مقررکیږی».

(۶۷) عن ابی اسحق السبیعی کما تکونوا کذلك یولی علیکم (شعب الایمان للبیهقی ج ۶ ص ۲۲)

«څنګه به چه تاسو یئ هم هغسې به تاسو باندې حاکمان مقررکیږی».

(۶۸) قال الامام السخاوی رحمه الله تعالی: حدیث: کما تکونون یولی علیکم او یومر علیکم. الحاکم ومن

طریقه الدیلمی من حدیث یحی بن هاشم حدثنا یونس بن ابی اسحاق عن ابیه اظنه عن ابی بکرة مرفوعًا بهذا، ومن هذا الوجه اخرجه البیهقی فی السابع والاربعین بلفظ: یؤمر علیکم، بدون شک وبحذف ابی بکرة، وقال: انه منقطع وراویه یحیی فی عداد من یضع (المقاصد الحسنة ص۳۳۰)

(۶۹) وله طریق اخری فاخرجه ابن جمیع فی معجمه والقضاعی فی مسنده من جهة الکرمانی بن عمرو حدثنا مبارك بن فضالة عن الحسن عن ابی بکرة بلفظ: یولی علیکم، بدون شك، وفی سنده الی مبارك مجاهیل-

(۷۰) عند الطبرانی معناه من طریق عمرو کعب الاحبار والحسن فانه سمع رجلاً یدعو علی الحجاج فقال له: لاتفعل انکم من انفسکم اتیتم انا نخاف ان عزل الحجاج اومات ان یستولی علیکم والشد بعضهم: بذنوبنا دامت بلیتنا، والله یکشفها اذا تبنا، وفی الماثور من الدعوات: اللهم لاتسلط علینا بذنوبنا من لایرحمنا (المقاصد الحسنة ص۳۳۰)

حضرت حسن بصری رحمه الله تعالی څوک ولیدلو چه حجاج ته یی بد دعائی کوله، دوئ اوفرمائیل: داسې مه کوه، تاسو په خپلو بدو عملونو باندې دا راوستې دې، مونږ یریږو چه که چرې حجاج معزول شی یا مړشی نو په تاسو باندې به بیزو او خنزیر حاکم جوړ کړې شی

روایت دې: «بې شکه الله پاك ستاسو اعمال په تاسو باندې حاکمان جوړوی، اوځنګه چه تاسو یئ هم هغسې به په تاسو حاکمان مسلط کولې شی، زمونږ په ګناهونو باندې په مونږ مصیبتونه مسلط دی مونږ دعا کوو نو الله تعالی مونږ ته ددې مصائبو نه نجات راکوی، او په ماثوره دعاء راغلی دی چه: یاالله! زمونږ دګناهونو په وجه په مونږ باندې داسې حاکم مسلط نکړې چه په مونږ باندې رحم نه کوی»-

(۷۱) واخرج البیهقی عن کعب الاحبار قال ان لکل زمان ملگا یبعثه الله علی نحو قلوب اهله فاذا اراد صلاحهم بعث علیهم مصلحا واذا اراد هلکهم بعث علیهم مترفیهم (الدر المنثور ص۔ ج۔)

«په هره زمانه کښې الله تعالی دخلقو دزړونو دحالاتو په مطابق بادشاه مسلط کوی کله چه ددوئ اوچتوالې غواړی نو ښه حاکم پرې مقرر کوی اوچه ددوئ هلاکت غواړی نو بد حاکم پرې مسلط کوی»-

(۷۲) واخرج البیهقی عن الحسن ان بنی اسرائیل سالوا موسی علیه السلام فقالوا سل لنا ربك یبین لنا علم رضاه عنا وعلم سخط فساله فقال یاموسی انبئهم ان رضای عنهم ان استعمل علیهم خیارهم وان سخطی علیهم ان استعمل علیهم شرارهم (تیره شوې حواله)

«الله تعالی حضرت موسی علیه السلام ته اوفرمائیل: خلقوته اووایه چه زما د رضا علامت

دادې چه دوئ دپاره ښه حاکم مقرر وی او زما دغضب علامت دادې چه په دوئ باندې بد حاکم مسلط وی))-

(۷۳) واخرج البيهقي عن عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه قال حدثت ان موسی اوعیسی قال یارب ماعلامة رضاك عن خلقك قال ان انزل علیهم الغيث ابان زرعهم واحبسه ابان حصادهم واجعل امورهم الی حلمائهم وفيئهم فی ایدی سمحائهم قال یارب فما علامة السخط قال ان انزل علیهم الغيث ابان حصادهم واحبسه ابان زرعهم واجعل امورهم الی سفهائهم وفيئهم فی ایدی بخلائهم (تيره شوې حواله)

((الله تعالی حضرت موسی یاعیسی علیهما السلام ته اوفرمائیل: دمخلوق نه زمادرضا علامت داده چه زه دکروندې په وخت باران وروم اودکټ کولو په وخت ئې اودروم اوپه دوئ باندې نرم خلق حاکمان جوړوم، اوددوئ حاجات مالیه دسخیانو په حواله کوم ، اوزمادغضب علامت دادې چه دفصل دکټ کولو په وخت باران وروم اودکروندې په وخت کښې بندوم اوپه دوئ باندې احمق خلق حاکمان جوړوم اوددوئ حاجات مالیه بخیلو خلقو ته حواله کوم))-

(۷۴) قال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی: واستدل به علی ان الرعية اذا كانوا ظالمين فالله تعالی يسلط علیهم ظالما مثلهم وفی الحديث كما تكونوا یولی علیكم (روح المعانی ص۳۳ ج۸)

((حضرات فقهاء رحمهم الله تعالی ددې آیت نه استدلال کړیدې چه الله تعالی په ظالمانو باندې ددوئ غونتې ظالم حاکم مسلط کوی، اوپه حدیث کښې دی چه څنګه ته ئې هم هغسې به په تاباندې حاکم مسلط کولې شی))-

(۷۵) عن ابی الدرداء رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان الله تعالی یقول انا الله لا اله الا انا مالك الملوك وملك الملوك قلوب الملوك بیدی وان العباد اذا اطاعونی حولت قلوب ملوكهم علیهم بالرحمة والرافة وان العباد اذا عصونی حولت قلوبهم السخطة والنقمة فساموهم سوء العذاب فلا تشغلوا انفسكم بالدعاء علی الملوك ولكن اشغلوا انفسكم بالذكر والتضرع كی اكفيكم ملوككم (حلية ص ۳۸۸ ج۲،مشكوة ص۳۲۳)

((الله تعالی فرمائی: زه الله یم، زمانه سوا کوم معبود نشته، دبادشاهانو مالک یم اودبادشاهانو بادشاه یم، دبادشاهانو زړونه زما په لاس کښې دې، زمابنده چه کله زما اطاعت کوی زه دهغه دباشاهانو زړه دهغه طرف ته په رحمت اوشفقت باندې متوجه کوم، اوبنده چه کله زما نافرمانی کوی زه دهغه په طرف دبادشاهانوزړه په غصه اوانتقام باندې متوجه کوم، پس هغوئ به ده ته سخت عذابونه ورکوی، دې وجې نه خپل ځانونه د بادشاهانو په بدعائی باندې مه مشغول کوئ

بلکه په خپله دالله ذکراوتضرع کښې مشغول اوسئ چه زه تاسولره ستاسو د بادشاهانو د مظالمونه محفوظ کړم))۔

(۷٦) و کذا فی مجمع الزوائد بروایة الطبرانی (الاعتدال ص۳)

(۷۷) اذا اراد الله بقوم خیر اولی علیهم حلماء هم وقضی بینهم علماؤهم وجعل المال فی سمحاءهم واذا اراد بقوم شر اولی علیهم سفهاء هم وقضی بینهم جهالهم وجعل المال فی بخلاءهم (فر) عن مهران (ض) (الجامع الصغیر ص۱۰ ج۱)

((کله چه الله تعالی دکوم قوم دنیکئ په وجه باندې دهغوئ اوچت والې غوارِی نوپه هغوئ باندې نرم خلق حاکمان جوړوی، اودهغوئ فیصلې علماء کوی، اومالونه ئی سخیانو خلقوته ورکوی، اوکله چه دکوم قوم د بدواعمالوپه وجه باندې ددوئ دپاره بدی مقرر کوی نواحمقان په دوئ باندې حاکمان جوړوی اوددوئ فیصلې به جاهل خلق کوی، اومالونه به یی بخیلو خلقوته حواله کوی))۔

(۷۸) ان الله تعالی اذاغضب علی امة لم ینزل بها عذاب خسف ولامسخ غلت اسعارها ویحبس عنها امطارها ویلی علیها اشرارها، ابن عساکر عن علی رضی الله تعالی عنه (الجامع الصغیر ص۲۲ ج۱)

((بیشکه الله تعالی چه کله له یوقوم نه ناراض شی نو په دوئ باندې په زمکه کښې د ننه ویستلو اودصورتونو دمسخ کولو عذاب نه نازلوی لیکن د ضرورت دخیزونونرخ ګرانوی ، اوبارانونه بندوی اوپه دوئ باندې بدحاکمان مسلط کوی))۔

(۷۹) وفی مجمع الزوائد عن جابر رضی الله عنه رفعه ان الله عزوجل یقول انتقم ممن اغضب بمن اغضب ثم اصیر کلا الی النار، رواه الطبرانی فی الاوسط احمد بن بکر الباسی ضعیف (الاعتدال ص۱۱)

((بې شکه الله تعالی فرمائی: په کوموخلقوباندې چه زماغضب دې زه دهغوئ نه دهغوئ غونتې د مغضوبو خلقوپه ذریعه انتقام اخلم بیاټول په جهنم کښې غورزوم))۔

(۸۰) لاتسبوا الائمة وادعوا الله لهم بالصلاح فان صلاحهم لکم صلاح (طب) عن ابی امامة رضی الله عنه (الجامع الصغیر ص۱۹۱ ج۲)

((حکاموته کنزلې مه کوئ، ددوئ دپاره دالله نه دصلاحیت او ښه کیدو دُعا وغوارئ، ځکه ددوئ دصلاحیت (ښه کیدلو) سره ستاسوصلاحیت تړلې دې))۔

(۸۱) لاتشغلوا قلوبکم بسب الملوك ولکن تقربوا الی الله بالدعاء لهم یعطف الله علیکم، ابن النجار عن عائشة رضی الله عنها (الجامع الصغیر ص۲۰۰ ج۲)

«خپل زړونه دبادشاهانوپه کنزلوباندې مه مشغوله کوئ، بلکه ددوئ دپاره دعاء وکړئ دالله تعالی تقرب حاصل کړئ، الله تعالی به ددوئ زړونه په تاسوباندې مهربانه کړی»۔

(۸۲) واخرج ابن ابی شیبه عن مالك بن مغول قال فی زبور داؤد علیه السلام مکتوب انی انا الله لااله الاانا ملك الملوك قلوب الملوك بیدی فایما قوم کانوا علی طاعة جعلت الملوك علیهم رحمة وایما قوم کانوا علی معصیة جعلت الملوك علیهم نقمة لاتشغلوا انفسکم بسب الملوك ولاتتوبوا الیهم توبوا الی اعطف قلوبهم علیکم (الدر المنثور ص۱۱۱ ج۲)

«دحضرت داؤد علیه السلام په زبورکښې لیکلې شوی دی چه: بیشکه زه الله تعالی یم، زمانه سوابل معبودنشته دبادشاهانوبادشاه یم، دبادشاهانوزړه زماپه لاس کښې دی، پس کوم قوم چه زمافرمانبرداروی ، زه بادشاهان په هغوئ باندې رحمت جوړوم اوکوم قوم چه نافرمان وی زه بادشاهان په دوئ باندې عذاب جوړوم ، خپل ځانونه دباشاهانوپه کنزلوکښې مه مشغولوئ اود دوئ طرف ته توجه مه کوئ ، زماطرفته توجه کوئ زه به ددوئ زړونه په تاسوباندې مهربانوم»۔

(۸۳) عن علی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا ابغض المسلمون علماءهم واظهروا عمارة اسواقهم وتناکحوا علی جمع الدراهم رماهم الله عزوجل باربع خصال بالقحط من الزمان والجوار من السلطان والخیانة من ولاة الاحکام والصولة من العدو (مستدرك حاکم ص۲۱۵ ج۴)

«کله چه مسلمانان دخپلوعلماؤسره بغض وکړی اودخپلوبازارونو عمارت ظاهر کړی اوپه مال جمع کولوباندې نکاح کوی نوالله تعالی دوئ په څلورقسمه عذاب باندې مبتلاء کوی، قحط، دبادشاه ظلم تسلط، دحاکمانوخیانت، ددشمنانوحملې»۔

(۸٤) اخرج عبدبن حمید عن معاذبن جبل رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم والذی نفسی بیده لتامرن بالمعروف ولتنهون عن المنکر اولیسلطن الله علیکم شرارکم ثم لیدعون خیارکم فلایستجاب لهم (الدر المنثور ص۳۰۰ ج۲)

«حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: په هغه ذات قسم چه دهغه په قبضه کښې زماځان دې تاسو د نیکوکارونوضرورحکم کوئ اودبدوکارونونه لازمًا ځان منع کوئ، او که نه نو الله تعالی به په تاسو باندې بدترین خلق مسلط کړی، بیا به ستاسو نیک خلق دعا ګانې کوی او دهغوئ دعاګانې به نه قبلیږی»۔

په درمنثوراوجامع صغیر کښې ددې مضمون نورهم ډیرروایات دی۔

(۸۵) عن ابن مسعود رضی الله تعالی عنه عن الرسول الله صلی الله علیه وسلم فی حدیث طویل لایحملنکم

استبطاء الرزق ان تطلبوه بمعاصی الله فانه لایدرك ما عند الله الا بطاعته رواه البغوی فی شرح السنه والبیهقی فی شعب الایمان۔

«تاسو د رزق د تاخیرپه وجه باندې هیڅکله په ناجائزوطریقو پسې مه ځئ اوهغه ناجائزه طریقې مه اختیار کوئ، ځکه چه د الله تعالی دخزانې نه دهغه درضاء نه بغیر څه نه شی اخستې»۔

(۸۶) عن انس بن مالك رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من کانت الاخرة همه جعل الله غناه فی قلبه وجمع له شمله و اتته الدنیا وهی راغمة ومن کانت الدنیا همه جعل الله فقره بین عینیه وفرق علیه شمله ولم یاته من الدنیا الا ما قدر له رواه الترمذی۔

«دچاپه زړه کښې چه دآخرت اهمیت وی الله تعالی دهغه زړه په غناباندې ډکه وی، اودهغه حاجات پوره کوم اودنیادده خواته په منډه او ذلیله راځی، او د چا په زړه کښې چه ددنیا اهمیت وی الله تعالی هغه په فقراوفاقه باندې همیشه ویرو اودهغه حاجات نه پوره کوی اودنیاهمدومره ورته ملاویږی چه څومره مقدره ده»۔

(۸۷) عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قال کنت خلف رسول الله صلی الله علیه وسلم یوما فقال یاغلام احفظ الله یحفظك احفظ الله تجده تجاهك واذا سالت فاسال الله واذا استعنت فاستعن بالله واعلم ان الامة لواجتمعت علی ان ینفعوك بشیء لم ینفعوك الا بشیء قد کتبه الله علیك رفعت الاقلام وجفت الصحف رواه احمد والترمذی۔

«دالله تعالی داحکامو حفاظت کوه الله تعالی به ستاحفاظت کوی، دالله تعالی داحکامو حفاظت کوه نو الله تعالی به په هرحاجت کښې په خپله خواکښې وومومې، اوسوال کوه صرف دالله تعالی نه اومدد طلب کوه صرف دالله تعالی نه اوپه الله تعالی باندې یقین کوه، که چیرې ټوله دنیا یو ځائ شی او تاته کومه نفع رسول غواړی نو دهغې نه زیاته نفع به هیچرې تاته ونشی رسولې کومه چه الله تعالی ستاپه قسمت کښې لیکلې ده، اوکه چرې ټوله دنیا راجمع شی او تاته څه نقصان رسول غواړی نو د هغې نه زیات نقصان هیڅ کله تا ته نه شی رسولې کوم چه الله تعالیٰ ستاپه تقدیر کښې لیکلې دې، دتقدیرقلمونه چلیدلې دی اولیکل شوې او دفتر وچ شوې دې»۔

(۸۸) عن ابی هریرة رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم قال قال ربکم عزوجل لوان عبیدی اطاعونی لاسقیتهم المطر باللیل واطلعت علیهم الشمس بالنهار ولم اسمعهم صوت الرعد رواه احمد۔

«که چرې زمابندګان زما اطاعت وکړی نوزه به دوئ په شپه کښې په باران باندې سیراب کړم او دورځې به نمرر راوباسم اودوئ به د تندر آوازنه آوری»۔

(۸۹) عن ابي ذر رضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال انی لاعلم اية لواخذ الناس بها لكفتهم ومن يتق الله يجعل له مخرجا ويرزقه من حيث لا يحتسب رواه احمد وابن ماجة-

((حضوراكرم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل: زه يوداسې آيت پېژنم چه خلق په هغې عمل وكړی نوهغه به ددوئ دپاره كافی شی (ومن يتق الله يجعل له مخرجا ويرزقه من حيث لا يحتسب)،

((څوک چه د الله تعالى نه يريږی دهغه دپاره به دهرمشكل نه دويستلو لارپيدا كړم اوهغه ته به د داسې ځائ نه رزق ور اورسوم چرته نه به چه دده گمان هم نه وی))-

(۹۰) قال حنظلة الاساحی بعث ابوبكر خالدبن الوليد رضی الله تعالى عنهما الى اهل الردة وامره ان يقاتلهم على خمس خصال فمن ترك واحدة من الخمس قاتله شهادة ان لا اله الا الله وان محمدا عبده ورسوله واقام الصلاة وايتاء الزكاة وصيام شهر رمضان وحج البيت (خميس ص۲۰۰ ج۲)

((حضرت ابوبكررضی الله تعالى عنه حضرت خالدبن وليد رضی الله تعالى عنه دمرتدينوسره دجهاد كولو د ډلې اميرواستولو نوده ته ئې وصيت اوفرمائيلو چه:

ددوئ سره په پنځو څيزونو قتال كوئ، ((كلمهٔ شهادت، مونځ، زكوة، روزه، حج))-

يعنى څوك چه ددې نه هم انكار وكړی دهغه سره جنگ وكړئې-

(۹۱) دحضرت ابوبكرصديق رضی الله تعالى عنه په زمانه كښې په ((اجنادين)) كښې دروميان وسره ډير سخت جنگ وشو، په دې كښې لاندينئ قصه مخې ته راغله:

عن ابن اسحق لما تراء ای العسكران بعث القلنقار رجلا عربيا فقال له ادخل فی هؤلاء القوم فاقم فيهم يوما وليلة ثم ائتنی بخبرهم فدخل فی الناس رجل عربی لا ينكر عليه فاقام فيهم يوما وليلة ثم اتاه فقال له ماوراءك فقال له بالليل رهبان وبالنهار فرسان ولوسرق ابن ملكهم لقطعوا يده ولوزنی لرجم لاقامة الحق فيهم فقال له القلنقار لئن كنت صدقتنی لبطن الارض خير من لقاء هؤلاء على ظهر ولوددت ان الله يخلی بينی وبينهم فلا ينصرنی عليهم ولا ينصرهم علی (خميس ص۲۲۵ ج۲)

((درومیانو سپه سالار يوعربی كس دمسلمانانو د تحقيق كولودپاره جاسوس وليگلواوهغه ته ئې اوئيلې چه يوه ورځ او شپه دمسلمانانوپه لښكركښې تيره كړه بيا د هغوئ دحالاتو خبر مونږ ته راكړه، نو دغه عربی سړې په خلكو كښې داخل شو اوچه په ده باندې څه انكار ونكړو او يوه شپه او ورځ بې تكلفه هلته وؤ، هغه واپس لاړو اووئې وئيل: ((داخلق دشپې راهبان اودورځې شهسواران دی، يعنى ټوله شپه الله تعالى ته پوزه گنده كوی اود ورځې په اسونوباندې سواره وی جهاد كوی، كه چرې ددوئ دبادشاه ځوئ هم غلا وكړی نو د حق دحمايت دپاره دهغه لاس هم كټ

کوی او که زنا وکړی نو سنګسار کوی یی »۔

سپه سالار او وئیل: «که چرې تاریښتیا وئیلی وی نو دداسې خلقو دمقابلې نه مرګ بهتر دې»۔

(۹۲) فکتب الامراء الی ابی بکر و عمر رضی الله تعالی عنهما یعلمونها بما وقع من الامر العظیم فکتب الیهم ان اجتمعوا و کونوا جندا واحدا والقوا جنود المشرکین فانتم انصار الله والله نصر من نصره وخاذل من کفره ولن یؤتی مثلکم عن قلة ولکن من تلقاء الذنوب فاحترسوا منها (الهدایة والنهایة ص ۷ ج ۷)

حضرت عمروبن العاص رضی الله تعالی عنه او نورو امراؤ دحضرت ابوبکر او عمر رضی الله عنهما په خدمت کښې دهرقل دفوج د ډیر زیاتوالی اوقوت خبر ولیکو، حضرت ابوبکر رضی الله عنه په جواب کښې ولیکل:

«تاسو ټول یوځائی شئ یولښکر جوړشئ اودمشرکینو مقابله وکړئ، تاسو دَ الله تعالی انصارینئ، الله تعالی دخپلو فرمانبردارو مدد فرمائی او نافرمانان ذلیل کوی، تاسو د قلت تعداد د وجې نه نه شئ مغلوب کیدې، لیکن په ګناهونو کښې دمبتلاء کیدو نه د زیات عدد باوجود مغلوب کیدې شئ، دې وجې نه دمعاصیو نه بچ شئ»۔

(۹۳) حضرت ابوبکر رضی الله تعالی عنه په غزوۀ یرموک کښې حضرت خالد بن ولید رضی الله تعالی عنه ته په دې کامیابیو باندې مبارک باد ولیکل چه دهغې سره ئې دانصیحت هم لیکلې وو:

ولا یدخلنك عجب فتخسر و تخذل وایاك ان تدل بعمل فان الله تعالی له المن وهو ولی الجزاء (خمیس ص ۲۳۱ ج ۲)

په تاسو کښې دې کبر اوغرور هرګز رانه شی، ددې نه نقصان پیدا کیږی او تاسې ذلیل کیږئ، په خپل کوم یو عمل باندې بالکل ناز او فخر مه کوئ، بیشکه دا صرف دَالله تعالی احسان دې او هغه جزا ورکولو والا دې»۔

(۹٤) قال عمر لعتبة رضی الله عنهما ..... فانی ارید اوجهك الی ارض الهند....... فسر علی برکة الله واتق الله ما استطعت واحکم بالعدل وصل الصلوة لوقتها واکثر ذکر الله (طبری ص ۹۰ ج ۴)

حضرت عمر رضی الله تعالی عنه حضرت عتبه رضی الله عنه دهند دلښکر امیر جوړ کړو داوصیت ئې ورته اوفرمائیلو:

«حتی الامکان تقوی اختیاروه اوپه انصاف باندې فیصله کوه اومونځ په خپل وخت اداکوه اوذکر الله په کثرت باندې جاری ساته»۔

(۹۵) فارسل عمر رضی الله تعالی عنه الی سعد رضی الله تعالی عنه فقدم علیه فامره علی حرب العراق واوصاه فقال: یاسعد بن وهیب لا یغرنك من الله ان قیل خال رسول الله صلی الله علیه وسلم وصاحب رسول الله فان الله عزوجل لا یمحو السیئ بالسیئ لکنه یمحو السیئ بالحسن، فان الله لیس بینه وبین احد نسب الا طاعته

فالناس شریفهم ووضیعهم فی ذات الله سواء، الله ربهم وهم عباده یتفاضلون بالعافیة ویدرکون ما عنده بالطاعة فانظر الامر الذی رایت النبی صلی الله علیه واله وسلم علیه منذ بعث الی ان فارقنا فالزمه فانه الامر هذه عظتی ایاك ان ترکتها ورغبت عنها حبط عملك وکنت من الخاسرین ولما اراد ان یسرحه دعاه فقال انی قد ولیتك حرب العراق فاحفظ وصیتی فانك تقدم علی امر شدید کریه لا یخلص من الا الحق فعود نفسك ومن معك الخیر واستفتح به، واعلم ان لکل عادة عتادا فعتاد الخیر الصبر فالصبر الصبر علی ما اصابك او نابك یجتمع لك خشیة الله واعلم ان خشیة الله تجتمع فی امرین فی طاعته واجتناب معصیته وانما اطاعه من اطاعه ببغض الدنیا وحب الاخرة عصاه من عصاه بحب الدنیا وبغض الاخرة وللقلوب حقائق ینشئها الله انشاء منها السر ومنها العلانیة فاما العلانیة فان یکون حامده وذامه فی الحق سواء واما السر فیعرف بظهور الحکمة من قلبه علی لسانه وبمحبة الناس فلا تزهد فی التحبب فان النبیین قد سالوا محبتهم وان الله اذا احب عبدا حببه واذا ابغض عبدا بغضه فاعتبر منزلتك عند الله تعالی بمنزلتك عند الناس ممن یشرع معك فی امرك (طبری ص، ج، البدایة والنهایة ص۳۰ ج۷)

((حضرت عمررضی الله تعالی عنه حضرت سعدبن ابی وقاص دعراق دجنگ امیر ولیگلونوهغه ته ئي دانصیحت اوفرمائیلو: ((اې سعده! په دې غرور مه کوه چه تاته درسول الله صلی الله علیه وسلم ماما او صحابی وئیلې شی، الله تعالی بدی په بدی باندې نه ورانوی بلکه بدی په نیکئ ورانوی ، دالله تعالی اودهغه درسولانو په مینځ کښې رشته نشته، دهغه سره صرف دبندګئ معامله ده، دهغه په نیزشریف اوذلیل ټول برابردی، دهغوئ تر مینځ چه کوم تفاوت و مرتبې د نوهغه د عافیت نفس اودګناهونو نه دبچ کیدو په اعتبار سره دی، دهغه انعامات دهغه په اطاعت باندې حاصلیږی ،دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم دپوره زندګئ دنبوت نه وروسته تر وصال پورې څه چه تاکتلی دی هغې ته نظر کوه اوهغه مضبوط ونیسه ، دازماخاص نصیحت دې که چرې تاد ونه منل نوعمل به دې ضائع شی اونقصان به پیدا شی، ته دیوډیرسخت کاردپاره لیګل کیږې چه دهغې دذمه داریانونه خلاصې داتباع حق نه سوا په بل کوم صورت کښې نشی کیدې، دې وجې نه خپل ځان اوخپل ملګری دنیکیو کارونو عادی جوړکړه۔

دالله تعالی نه ویره کول ضروری دی اودالله تعالی نه ویره په دوه څیزونوکښې منحصر ده، دهغه په اطاعت کښې اودهغه دمعصیت نه په اجتناب کښې، اودالله اطاعت چه چاته هم نصیب شو هغه ته د دنیابغض اودآخرت سره محبت نصیب شو ، اوچاچه هم دالله تعالی نافرمانی وکړه هغه ددنیا دمحبت اودآخرت دبغض د وجه نه وکړه))۔

(۹۶) وحدث عن خالد بن الوليد رضی الله تعالی عنه من سمعه يقول شهدت عشرين زحفا فلم ار قوما اصبر لوقع السيوف ولا اضرب بها ولا اثبت اقداما من بنی حنيفة يوم اليمامة انالما فرغنا من طليحة الكذاب ولم تكن له شوكة قلت كلمة والبلاء موكل بالقول وماهو حنيفة ماهی الا كمن لقينا فلقينا قوما ليسوا يشبهون احدا ولقد صبروا لنا من حين طلعت الشمس الی صلاة العصر حتی قتل عدوالله (خميس ص ۲۳ ج ۲)

حضرت خالدبن وليدرضی الله عنه فرمائی: «كله چه مونږ دطليحه كذاب سره جګړه وكړه او فارغ شو اوددې شوكت څه زيات نه وو ددې نه بعد دبنی حنيفه په طرف متوجه شو نو زما دخولې نه د كبر او لوئوالی يوه كلمه ووتله، اودا دمصيبت سره تړلې وه ما اووئيلې: بنی حنيفه څه شئ دی؟ داهم دطليحه دجماعت په شان دی دچا نه چه مونږ فارغ شوی يو، ليكن كله چه مونږ بنی حنيفه سره جنګ وكړو نومونږ وكتل چه ددوئ په شان جماعت نه وؤ، د لمر خاته نه واخله د مازديګر ترمونځ پورې هغوئ پوره په مقابله كښې لګياوو دهغې نه بعدهغوئ شكست وخوړلو»۔

دخولې نه دداسې كلمې ويستلو دا اثروشو، نوتاسو خپله سوچ وكړئ چه دالله تعالی په نافرمانئ سره به نصرت څنګه راشی؟

(۹۷) قال سعد رضی الله تعالی عنه والله لينصرن الله وليه، وليظهرن الله دينه، وليهزمن الله عدوه ان لم يكن فی الجيش بغی اوذنوب تغلب الحسنات (البداية والنهاية ص ۶۰ ج ۲)

«حضرت سعدرضی الله عنه اوفرمائيل: «په الله قسم! الله تعالی دخپلو دوستانو ضرورمدد كوی اوخپل دين ضرورغالبوی اوخپل دشمنان ضرور مغلوبوی تر څو پورې چه په لښكركښې ظلم نه وی اوپه نيكيوباندې ګناه غالبه نه شی»۔

داپوره قصه وړاندې دفتح مدائن په بيان كښې راځی۔

(۹۸) ونزل سعد رضی الله عنه القادسيه واقام بها شهرا لم ياته من الفرس احد فارسل سعد رضی الله تعالی عنه عاصم بن عمرو رضی الله تعالی عنه الی ميسان فطلب غنما اوبقرا فلم يقدر عليها وتحصن منه من هناك فاصاب عاصم رضی الله تعالی عنه رجلا بجانب اجمة فساله عن البقر والغنم فقال ما اعلم فصاح ثور من الاجمة كذب عدوالله هانحن! فدخل فاستاق البقر فاتی بها العسكر، قسمه سعد رضی الله تعالی عنه علی الناس فاخصبوا اياما. فبلغ ذلك الحجاج فی زمانه فارسل الی الجماعة فسالهم فشهدوا انهم سمعوا ذلك وشاهدوه فقال كذبتم، قالو ذالك ان كنت شهدتها وغبنا عنها، قال صدقتم فماكان الناس يقولون فی ذلك، قالوا وانه ستدل بها علی رضی الله وفتح عدونا. فقال مايكون هذا والجمع ابرار اتقياء قالوا ماندری ما اجنت قلوبهم فامامارأينا فمارأينا قط ازهد فی دنيا منهم ولا اشد بغضا لها ليس فيهم جبان ولا عار ولا غدار، وذلك يوم

الابأقر (الكامل لابن الاثير ص... ج...)

حضرت سعدرضی الله تعالی عنه په قادسيه کښې يومياشت قيام اوفرمائيلو دلښکرسره دخوراک څکاک سامان نه وو نودوئ حضرت عاصم بن عمرو رضی الله تعالی عنه دميسان طرفته وليګلو، هغه دلښکردخوراک څکاک دپاره څه غواګانې چيلئې وکتلې ليکن پيدانه شوې، داهل فارس يوچراهګاه ديوبندسره خوا کې وه، دهغه ځائ سړی نه ئې تپوس وکړو چه څه غواګانې چيلئ به تله پيدا شی؟ هغه دروغ اووئيل چه ماته پته نشته- دبڼ دننه نه يوغوايی آواز وکړو:

((كذب عدوالله هانحن)) ((دالله تعالی دشمن دروغ اووئيل، مونږدلته موجوديو))

عاصم بڼ ته لاړو هغه ئې راونيول، حضرت سعدرضی الله عنه داپه لښکرباندې تقسيم کړل، خلقوخوورځې ښه وخوړل-

دحجاج به يوسف په زمانه کښې دده خواته ددې قصې تذکره راغله، ده خلق را وغوښتل چه ددې تصديق وکړی ، حجاج اووئيل: ((خلقوددې واقعې په متعلق څه خيال کولو))-

هغوئ اووئيل: ((خلقوددې واقعې نه په دې باندې استدلال کولوچه الله تعالی دمسلمانانونه راضی دې اودفتوحاتو همرکاب دی))

حجاج اووئيلې: ((داهله کيدې شی چه پوره لښکرصالح اومتقی وی))-

خلقواووئيل: ((دلښکردزړونوخبره خومونږ ته معلومه نه ده، ليکن په ظاهره کښې چه مونږځئ وکتل هغه داوؤ چه ددنياپه باره کښې دهغوئ نه زيات زاهدان اوددنياسره دهغوئ نه زيات بغض لرلو والامونږ څوک نه دی ليدلی، په دوئ کښې کوم بزدل اوکوم شريراوکوم غدارنه وو))-

(۹۹) وقدسال (هرقل) رجلاممن اتبعه كان قداسرمع المسلمين، فقال اخبرني عن هؤلاء القوم، فقال اخبرك كانك تنظر اليهم هم فرسان بالنهار رهبان بالليل لاياكلون فى ذمتهم الابثمن، ولايدخلون الابسلام، يقفون على من حاربوه حتى ياتواعليه. فقال لئن كنت صدقتنى ليملكن موضع قدمى هاتين (البداية والنهاية ص... ج...، طبری ص... ج...)

((يو سړې دمسلمانانوقيدنه وه وتلو د هرقل خواته ورسيدو نوهرقل دهغه نه دمسلمانانو حالات وپوښتل، هغه اووئيل: ((داخلق دورځې شهسواران دی اوپه شپه کښې راهبان دی، دذميانو نه هم څه څيز بغير له قيمت څخه نه اخلی، ديوبل سره چه کله هم ملاويږی نوسلام کوی، جنګ کښې چه تر کوم وخته پورې په دشمن باندې غالب نه وی راغلی ميدان نه پريږدی))-

هرقل اووئيل: ((که چرې تاريښتياوئيلی وی نوهغوئ به ددې ځائ مالکان جوړيږی))-

دلته صرف دهغه آيتونو او احاديثو او آثارو نقل کولوباندې اکتفاء کړې شوې ده چه بغير

دقصد د لنډیز نه صرف په سرسری توجه سره په ذهن کښې راغلی، او که چیرته ددې ټول آیتونه اواحادیث جمع کړې شي یومستقل ضخیم جلد ترینه جوړیږی.

ددې نه په بعضې کښې دفوز او فلاح دپاره صراحةً شرطِ تقوی ذکر شوې ده اوپه بعضې کښې مقتضیات دتقوی ذکر شوی دی ، یعنی ایمان بالله، تعلق مع الله، توکل علی الله، صبراواستقامت وغیره وغیره.

حضرات صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم اونوروکوموحضراتوچه په هرې یوې فیصلې او هر یو اقدام کښې دالله تعالی اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم احکام پیش نظرلرل اودقادرمطلق قانون اودهغه رضاجوئ ئې په هرسیاست اومصلحت باندې مقدمه کړې وه، الله تعالی په هرې مرحلې اوپه هرقدم باندې دوئ په فتح اونصرت باندې کامران او کامیاب کړی وؤ او د اکثرو اسبابو ظاهرو سراسر خلاف په داسې ذرائعویې ورسره مدداوفرمائیلو چه هغه داهل دنیاعقل ته ناممکن ښکاری، د مثال په طور دداسې قسم یوڅوواقعات نقل کولې شي:

(۱) عن ابن المنکدران سفینة رضی الله عنه تعالی عنه مولی رسول الله صلی الله علیه وسلم خطاء الجیش بارض الروم اواسر فانطلق هاربایلتمس الجیش فاذاهو بالاسد فقال یاابا الحرث انامولی رسول الله صلی الله علیه وسلم کان من امری کیت و کیت فاقبل الاسد له بصبصة حتی قام الی جنبه کلما سمع صوتا اهوی الیه ثم اقبل یمشی الی جنبه حتی بلغ الجیش ثم رجع الاسد رواه فی شرح السنة (مشکوة ص۵۴۵)

«حضرت سفینه رضی الله تعالی عنه په روم کښې دلښکرنه ورك شوې یا د قیدنه تښتیدلې وؤ، ناګهانه یې زمرې مخې ته راغې، ده هغه ته اوفرمائیل: «زه درسول الله صلی الله علیه وسلم غلام یم ، دلښکرنه ورک شوې یم»-

هغه شیرلګئ وخوزوله دده طرفته راغې، چه کله به یې دڅه خطرې آواز آوریدلو هغې طرفته به ورتلو، دهغې ختمولونه به بیادده سره تلو، حتی چه دې یې تراسلامی لښکره پورې ورسولو او بیا واپس لاړو»-

(۲) دمعاویه رضی الله عنه دخلافت په زمانه کښې حضرت عقبة بن نافع رحمه الله تعالی دفتح دافریقې نه بعد دجهاد مصالحو په نظر کښې نیولو سره هلته یونوې ښار «قیروان» آبادکړو، دهغې ښار دبنیاد قصه داده :فجمع عقبة حینئذ اصحابه وقال: ان اهل هذه البلاد قوم لاخلاق لهم ،اذاعضهم السیف اسلموا واذا رجع المسلمون عادوا الی عادتهم ودینهم ،ولست اری نزول المسلمین بین اظهرهم رایا، وقد رایت ان ابنی ههنا مدینة یسکنها المسلمون، فاستصوبوا رایه فجاؤوالی موضع القیروان وهی فی طرف البر وهی اجمة عظیمة وغیضة لایشقها الحیات من تشابك اشجارها، وقال انما اخترت هذا الموضع لبعده من

البحر لئلا تطرقها مراکب الروم فتهلکها وهی فی وسط البلاد، ثم امر اصحابه بالبناء فقالوا:

هذه غیاض کثیرة السباع والهوام فنخاف علی انفسنا هنا، وکان عقبة مستجاب الدعوة فجمع من کان فی عسکره من الصحابة رضی الله تعالی عنهم وکانوا ثمانیة عشر ونادی: ایتها الحشرات والسباع نحن اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم، فارحلوا عنا فانا نازلون فمن وجدناه بعد قتلناه، فنظر الناس یومئذ الی امر هائل، کان السبع یحمل اشباله والذئب یحمل اجراءه والحیة تحمل اولادها وهم خارجون اسرابا اسرابا فحمل ذلك کثیراً من البربر علی الاسلام ثم اختط دار اللامارة واختط الناس حوله واقاموا بعد ذلك اربعین عاما لا یرون فیها حیة ولا عقرباً. (معجم البلدان ص۳۲۰ ج۴)

((د حضرت عقبه رحمه الله تعالی فوجیانو اووئیل: ((دلته درندګان ماران لړمان وغیره موذی ځناورډیردی، دې وجې نه مونږته دلته په حیصاریدلو کښې خطره ده))-

حضرت عقبه رحمه الله تعالی دخپل لښکر نه حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم جمع کړل چه تقریبًا اتلس وو، بیائې اعلان وکړو: ((اې په زمکه کښې دننه اوسیدونکو ضرری ځناورو اودرندګانو! مونږ درسول الله صلی الله علیه وسلم اصحاب یو او دلته اوسیدول غواړو، دې وجې نه تاسو ددې ځائ نه لاړشئ، ددې نه بعد موکه چرې ستاسونه کوم اوموندلو نوقتل کوو به ئې))-

پس خلقو یو خوفناک منظروکتلو چه درندګانو لکه شرمخان وغیره خپل بچی واخستل او روان شو اومارانو هم خپل بچی اوچتول او ډلې ډلې تښتیدل، دائې چه وکتل ددشمن یعنی د بربر د قوم ډیرخلق مسلمانان شول-

ددې نه بعد دا حضرات هلته څلویښت کاله اوسیدل، په دې زمانه کښې دوئ نه هلته مار وکتلو اونه لړم وغیره)).

(۳) دفتح المدائن او ملک کسری ذکر: لما فتح سعد رضی الله تعالی عنه نهر شیر واستقر بها وذلك فی صفة لم یجد فیها احدًا ولا شیئًا مایغنم، بل قد تحولوا بکماهم الی المدائن ورکبوا السفن وضموا السفن الیهم ولم یجد سعد رضی الله عنه شیئا من السفن وتعذر علیه تحصیل شیٔ منها بالکلیة وقد زادت دجلة زیادة عظیمة واسودّ ماؤها، ورمت بالزبد من کثرة الماء بها واخبر سعد رضی الله تعالی عنه بان کسری یزدجرد عازم علی اخذ الاموال والامتعة من المدائن الی حلوان وانك ان لم تدرکه قبل ثلاث فات علیك وتفارط الامر، فخطب سعد رضی الله تعالی عنه المسلمین علی شاطئ دجلة، فحمد الله واثنی علیه وقال ان عدوکم قد اعتصم منکم بهذا البحر فلا تخلصون الیهم معه، وهم یخلصون الیکم اذا شاؤا فینا وشونکم فی سفنهم، ولیس وراء

کم شئ تخافون ان تؤتوا منه، وقد رایت ان تبادروا جهاد العدو بنیاتکم قبل ان تحصرکم الدنیا، الا انی قد عزمت على قطع هذا البحر الیهم، فقالوا جمیعًا: عزم الله لنا ولك على الرشید فافعل، فعند ذلك ندب سعد رضی الله تعالى عنه الناس الى العبور ویقول: من یبدء فیحمی لنا الفراض -یعنی ثغة المخاضة من الناحیة الاخرى- لیجوز الناس الیهم امنین، فانتدب عاصم بن عمرو وذوو البأس من النّاس قریب من ستمائة فامر سعد رضی الله عنه علیهم عاصم بن عمرو فوقفوا على حافة دجلة فقال عاصم: من ینتدب معی لنکون قبل الناس دخولا فی هذا البحر فنحمی الفراض من الجانب الاخر؟ فانتدب له ستون من الشجعان المذکورین- والاعاجم وقوف صفوفًا من الجانب الاخر- فتقدم رجل من المسلمین وقد احجم الناس عن الخوض فی دجلة ،فقال: اتخافون من هذه النطفة؟ ثم تلا قوله تعالى: ((وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللّٰهِ كِتَابًا مُؤَجَّلًا))-

ثم اقحم فرسه فیها واقتحم الناس، وقد افترق الستون فرقتین اصحاب الخیل الذکور: واصحاب الخیل الاناث. فلما راٰهم الفرس یطفون على وجه الماء قالوا: دیوانا دیوانا ،یقولون مجانین مجانین ،ثم قالوا: والله ماتقاتلون انسا بل تقاتلون جنًا. ثم ارسلوا فرسانا منهم فی الماء یلتقون اول المسلمین لیمنعوهم من الخروج من الماء، فامر عاصم بن عمرو اصحابه ان یشرعوا لهم الرماح ویتوخوا الاعین، ففعلوا ذلك بالفرس ففقأوا عیون خیولهم، فرجعوا امام المسلمین لا یملکون کف خیولهم حتى خرجوا من الماء واتبعهم عاصم واصحابه فساقوا وراءهم حتى طردوهم عن الجانب الاخر، ووقفوا على حافة الدجلة من الجانب الاخر ونزل بقیة اصحاب عاصم من الستمائة فی دجلة فخاضوها حتى وصلوا الى اصحابهم من الجانب الاخر فقاتلوا مع اصحابهم حتى نفوا الفرس عن ذلك الجانب وکانوا یسمون الکتیبة الاولى کتیبة الاهوال، وامیرها عاصم بن عمرو، والکتیبة الثانیة الکتیبة الخرساء وامیرها القعقاع بن عمرو، وهذا کله وسعد والمسلمون ینظرون الى مایصنع هؤلاء الفرسان ،وسعد رضی الله تعالى عنه واقف على شاطئ دجلة، ثم نزل سعد ببقیة الجیش، وذلك حین نظروا الى الجانب الاخر قد تحصن بمن حصل فیه من الفرسان المسلمین ،وقد امر سعد رضی الله تعالى عنه المسلمین عند دخول الماء ان یقولوا: ((نستعین بالله ونتوکل علیه، حسبنا الله ونعم الوکیل ،ولا حول ولا قوة الا بالله العلی العظیم))-

ثم اقتحم بفرسه دجلة واقتحم الناس لم یتخلف عنه احد فساروا فیها کانما یسیرون على وجه الارض حتى ملؤا ما بین الجانبین ،فلا یرى وجه الماء من الفرسان والرجالة ،وجعل الناس یتحدثون على وجه الماء

كما يتحدثون على وجه الارض، وذلك لما حصل لهم من الطمانينة والامن، والوثوق بامر الله ووعده ونصرة وتاييده. ولان اميرهم سعد بن ابى وقاص رضى الله تعالى عنه احد العشرة المشهود لهم بالجنة، وقد توفى رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو عنه راض ودعا له، فقال: ((اللهم اجب دعوته، وسدد رميته))

والمقطوع به ان سعدًا دعا لجيشه هذا فى هذا اليوم بالسلامة والنصر، وقد رمى بهم فى هذا اليم فسددهم الله وسلمهم، فلم يفقد من المسلمين رجل واحد غير ان رجلاً واحدًا يقال له غرقدة البارقى زل عن فرس له شقراء، فاخذ القعقاع بن عمرو بلجامها، واخذ بيد الرجل حتى عدله على فرسه، وكان من الشجعان، فقال: ((عجز النساء ان يلدن مثل القعقاع بن عمرو))-

ولم يعدم للمسلمين شئ من امتعتهم غير قدح من خشب لرجل يقال له مالك بن عامر، كانت علاقته رثة فاخذه الموج فدعا صاحبه الله عزوجل، وقال: ((اللهم لا تجعلنى من بينهم يذهب متاعى))-

فرده الموج الى الجانب الذى يقصدونه فاخذه الناس ثم ردوه على صاحبه بعينه، وكان الفرس اذا اعيا وهو فى الماء يقيض الله له مثل النشز المرتفع فيقف عليه فيستريح، وحتى ان بعض الخيل ليسير وما يصل الماء الى حزامها، وكان يومًا عظيماً وامرًا هائلا، وخطبًا جليلا، وخارقًا باهراً، ومعجزة لرسول الله صلى الله عليه وسلم خلقها الله لاصحابه لم ير مثلها فى تلك البلاد، ولا فى بقعة من البقاع، سوى قضية العلاء بن الحضرمى المتقدمة، بل هذا اجل واعظم، فان هذا الجيش كان اضعاف ذلك، قالوا: وكان الذى يساير سعد بن ابى وقاص فى الماء سلمان الفارسى، فجعل سعد رضى الله تعالى عنه يقول: ((حسبنا الله ونعم الوكيل، والله لينصرن الله وليه وليظهرن الله دينه، وليهزمن الله عدوه، ان لم يكن فى الجيش بغى اوذنوب تغلب الحسنات))-

فقال له سلمان: ((ان الاسلام جديد، ذللت لهم البحور كما ذلك لهم البر، اما والذى نفس سلمان بيده ليخرجن منه افواجاً كما دخلوا افواجا))-

فخرجوا منه كما قال سلمان لم يغرق منهم احد ولم يفقدوا شيئا-

ولما استقل المسلمون على وجه الارض خرجت الخيول تنفض اعرافها صاهلة، فساقوا وراء الاعاجم حتى دخلوا المدائن، فلم يجدوا بها احداً، بل قد اخذ كسرى اهله وما قدروا عليه من الاموال والامتعة والحواصل وتركوا ما عجزوا عنه من الانعام والثياب والمتاع، والانية والالطاف والادهان مالا يدرى قيمة وكان فى خزانة كسرى ثلاثة الاف الف الف دينار ثلاث مرات فاخذوا من ذلك ما قدروا عليه وتركوا ما عجزوا عنه وهو

مقدار النصف من ذلك اوما يقاربه. فكان اول من دخل المدائن كتيبة الاهوال ثم الكتيبة الخرساء، فاخذوا في سككها لا يلقون احدًا ولا يخشونه غير القصر الابيض ففيه مقاتلة وهو محصن-

فلما جاء سعد رضي الله تعالى عنه بالجيش دعا اهل القصر الابيض ثلاثة ايام على لسان سلمان الفارسي، فلما كان اليوم الثالث نزلوا منه وسكنه سعد واتخذ الايوان مصلى، وحين دخله تلا قوله تعالى:

((كم تركوا من جنات وعيون وزروع ومقام كريم. ونعمة كانوا فيها فاكهين كذلك واورثناها قومًا آخرين))

ثم تقدم الى صدره فصلى ثمان ركعات صلاة الفتح، وذكر سيف في روايته انه صلاها بتسليمة واحدة وانه جمع بالايوان في صفر من هذه السنة فكانت اول جمعة جمعت بالعراق. وذلك لان سعدًا رضي الله تعالى عنه نوى الاقامة بها، وبعث الى العيالات فانزلهم دور المدائن واستوطنوها، حتى فتحوا جلولاء وتكريت والموصل، ثم تحولوا الى الكوفة بعد ذلك كما سنذكره. ثم ارسل السرايا في اثر كسرى يزدجر فلحق بهم طائفة فقتلوهم وشردوهم واستلبوا منهم اموالا عظيمة، واكثر ما استرجعوا من ملابس كسرى وتاجه وحليه. وشرع سعد رضي الله تعالى عنه في تحصيل ما هنالك من الاموال اوالحواصل والتحف مما لا يقوم ولا يحد ولا يوصف كثرة وعظمة، وقد روينا انه كان هناك تماثيل من جص فنظر سعد رضي الله تعالى عنه الى احدها واذا هو يشير باصبعه الى مكان، فقال سعد: ان هذا لم يوضع هكذا سدى فاخذ ما يسامت اصبعه فوجدوا قبالتها كنزًا الاكاسرة الاوائل فاخرجوا منه اموالا عظيمة جزيلة، وحواصل باهرة وتحفًا فاخرة واستحاذ المسلمون على ما هنالك اجمع مما لم ير احد في الدنيا اعجب منه، وكان في جملة ذلك تاج كسرى وهو مكلل بالجواهر النفيسة التي تحير الابصار، ومنطقته كذلك وسيفه وسواره وقباؤه وبساط ايوانه، وكان مربعاً ستون ذراعا مثلها من كل جانب، والبساط مثله سواء، وهو منسوج بالذهب واللآلئ والجواهر الثمينة، وفيه مصور جميع ممالك كسرى، بلاده بانهارها وقلاعها، واقاليمها، وكنوزها، وصفة الزروع والاشجار التي في بلاده. فكان اذا جلس على كرسي مملكته ودخل تحت تاجه، وتاجه معلق بسلاسل الذهب، لانه كان لا يستطيع ان يقله على راسه لثقله. بل كان يجيء فيجلس تحته ثم يدخل راسه تحت التاج وسلاسل الذهب تحمله عنه، وهو يستره حال لبسه، فاذا رافع الحجاب عنه خرت له الامراء سجودا- وعليه المنطقة والسواران والسيف والقباء المرصع بالجواهر فينظر في البلدان واحدة واحدة، فيسأل عنها ومن فيها من النواب، وهل حدث فيها شيء من الحوادث ؟ فيخبره بذلك ولاة الامور بين يديه ثم ينتقل الى الاخرى، وهكذا حتى يسأل عن احوال بلاده في كل وقت لا يهمل

امر المملكة وقد وضعوا هذا البساط بين يديه تذكار اله بشان الممالك وهو اصلاح جيد منهم في امر السياسة فلما جاء قدر الله زالت تلك الايدي عن تلك الممالك والاراضي وتسلمها المسلمون من ايديهم قسرا، وكسروا شوكتهم عنها واخذوها بامر الله صافية ضافية، ولله الحمد والمنة

(البداية والنهاية ص ٦٠ ج ٧، طبري ص ١١١ ج ٣)

((كسرى پورې په رسيدو كښې دريائې دجله حائل وو، دلښكرامير حضرت سعد رضى الله تعالى عنه ته د زيات كوشش باوجود څه كشتئ ملاؤنه شوه، دلته په دجله كښې ډير سخت طوفان بهيدلو، ډيرو ويرونكو موجونو له تصادم نهاوبه بالكل تورې په نظر راتلې، حضرت سعد رضى الله تعالى عنه د دجلې په كنارې باندې خپل لښكرته خطاب اوفرمائيلو، اول ئې د الله تعالى حمداوثناء وكړه بيائې اوفرمائيل: ((دشمن پورې درسيدلو دپاره ددې درياب نه دتيريدو هيڅ لارنشته، ما دا سمندر قطع كولو سره د دشمن پورې درسيدو فيصله كړې ده))-

ټول لښكر ددې فيصلې په ښه جوش سره خيرمقدم وكړلو، هغه حكم اوكړو: ((په درياب كښې اسونه واچوئ))

دشمن چه دامنظر وكتلو نو داسې وينا يې شروع كړه چه: ((ديوانان ديوانان)) يعنى دوئ خو ليونى دى بيائې په خپلو كښې اووئيل: ((تاسو د انسانانو سره قتال نه كوئ، بلكه ستاسو په مقابله كښې جنات دى))-

په درياب كښې د آسونو د تيرولو په وخت حضرت سعد رضى الله تعالى عنه لښكرته ددې كلماتو د وئيلو حكم وكړو: ((نستعين بالله ونتوكل عليه، حسبنا الله ونعم الوكيل، ولا حول ولا قوة الا بالله العلي العظيم))

بيادوئ په درياب كښې آس ورواچولو، ورسره پوره لښكرهم بې يرې په درياب كښې خپل آسونه ورواچول، يو سړى په درياب كښې د آس اچولو په وخت اووئيل: ((ددې نطفې نه يريږو؟))

بيا هغه دا آيت ولوستلو: وما كان لنفس ان تموت الا باذن الله كتابا مؤجلا (٣-١٤٥)

((او د الله د حكم نه بغير هيچا ته مرګ راتلل ممكن نه دى، ددې ئې پوره ميعاد ليكلې دې)) په درياب كښې يې په داسې اطمينان باندې خبرې كولې لكه په زمكه باندې روان وى كه څوك به تر خپل آس پورې تللو نو الله تعالى به دهغه خواكښې په درياب يوه ټيله را اوچته كړه، هغه به په دې باندې اودريدلو، دمه به يې وكړه بيابه په درياب كښې تللو، د درياب په سفر كښې حضرت سعد رضى الله تعالى عنه فرمائيل: ((حسبنا الله ونعم الوكيل والله لينصرن الله وليه، وليظهرن الله دينه وليهزمن الله عدوه ان لم يكن في الجيش بغي او ذنوب تغلب الحسنات))-

((په الله قسم! الله تعالی دخپلو دوستانو ضرور مدد کوی او خپل دین ضرور غالب کوی او خپل دشمنان ضرور مغلوب کوی تر هغه وخته پورې چه په لښکر کښې ظلم نه وی او په نیکیو باندې گناهونه غالب نشی))-

دالله تعالی په مدد باندې پوره لښکر سلامت ددریاب بلې کنارې ته ورسیدلو، آسونه ددریاب نه وه وتلی او خپله لاره ئې ونیوله ا دخپلو سټونو ویخته ئې څنډل او په مستئ باندې شیشنیدل.

لښکرپه مدائن کښې داخل شو نوهغه ئې بالکل خالی وموندلو، کسری دخپل فوج سره دهغه ځائ نه تختیدلې وو، مسلمانانو بې حده اوبې حسابه خزانې وموندلې))-

وبعث ابوبکر رضی الله تعالی عنه العلاء الحضرمی الی البحرین الی اهل الردة، وفی حیاة الحیوان بعث العلاء الحضرمی الی البحرین فسلکوا مفازة وعطشوا عطشا شدیدا حتی خافوا الهلاك فنزل وصلی رکعتین ثم قال یاحلیم یاعلیم یاعلی یاعظیم اسقنا فجاءت سحابة کانها جناح طائر فقعقعت علیهم وامطرت حتی ملؤا الآنیة علی خلیج من البحر ماخیض فیه قبل ذلك الیوم ولاخیض بعد فلم نجد سفنا وکان المرتدون قد احرقوا السفن فصلی رکعتین ثم قال یاحلیم یاعلیم یاعلی یاعظیم اجزنا ثم اخذ بعنان فرسه ثم قال جوزوا بسم الله قال ابوهریرة رضی الله تعالی عنه فمشینا علی الماء فوالله ما ابتل لنا قدم ولاخف ولاحافر وکان الجیش اربعة آلاف، وفی روایة وکان البحر مسیرة یوم وسفر هجر، وفی الاکتفاء سار العلاء الحضرمی الی الخط حتی نزل علی الساحل فجاءه نصرانی فقال له مالی ان دللتك علی مخاضة تخوض منها الخیل الی دارین قال وماتسالنی قال اهل بیت بدارین قال هم لك فخاض به وبالخیل الیهم فظهر علیهم عنوة وسبی اهلها ثم رجع الی عسکره، وقال ابراهیم بن ابی حبیبة حبس لهم البحر حتی خاضوا الیهم وجاوزه العلاء واصحابه مشیا علی ارجلهم وکانت تجری فیه السفن قبل ثم جرت فیه بعد فقاتلهم فاظفره الله بهم وسلبوا له ماکانوا منعوا من الجزیة الی صالحهم علیها رسول الله صلی الله علیه وسلم، ویروی انه کان للعلاء بن الحضرمی ومن کان معه جؤار الی الله تعالی فی خوض هذا البحر فاجاب الله دعاءهم وفی ذلك یقول عفیف بن المنذر وکان شاهدا معهم،

الم تر ان الله ذلل بحره　　وانزل بالکفار احدی الجلائل

دعانا الذی شق البحار فجاءنا　　باعظم من فلق البحار الاوائل

(خمیس ص۲۲۱ ج۲)

((حضرت ابوبکر رضی الله تعالی عنه دمرتدینو سره دجهاد دپاره حضرت علاء الحضرمی رضی الله تعالی عنه دلښکرامیر جوړ کړو دبحرین طرف ته ئې ولیګلو، په یو خشک میدان باندې

تیریدلو ، خلق دتندې دشدت دوجې نه هلاکت ته نژدې شول، حضرت علاء رضی الله تعالی عنه د آس نه راکوز شو دوه رکعته لمونځ ئې وکړو، بیائې دا دعا وکړه ((یاحلیم یاعلیم یاعلی یاعظیم اسقنا)) یونهایت معمولی غونتې وریځ را اوچته شوه اوفوراً په دومره زورسره باران شروع شو چه ټولو اوبه وسکلې، لوښی ئې ډک کړل اوسورلیوته ئې هم اوبه ورکړې، ددې ځائ نه لاړل او ددشمن دتعاقب دپاره یې د دارینو قصدئې وکړو، هلته درسیدودپاره دسمندرنه تیریدل وو، سمندر دومره زیات وو چه په هغې کښې کله هم څوک نه ددې نه اول داخل شوې وو او نه روسته، مرتدینوکشتئ ګانی هم سوزولې وې چه مسلمان ددوئ تعاقب ونه کړې شی، حضرت علاء حضرمی رضی الله تعالی عنه دوه رکعته لمونځ وکړو او دعاء ئې وکړه: ((یاحلیم یاعلیم یاعلی یاعظیم اجزنا)) بیائې د آس قیضه ونیوله او په سمندرکښې ورکوزشو اولښکرته ئې اوفرمائیل: ((دالله نوم واخلئ او راکوزشئ))

حضرت ابوهریره رضی الله تعالی عنه فرمائی: ((مونږپه اوبو باندې تللو، په الله قسم ! نه زمونږقدمونه لامده شول اونه زمونږ پایزار لوند شو اونه د آسونو خپې لمدې شوې او په دغه ورځ د څلور زره کسانو لښکر وؤ . په بعض روایاتونوکښې دی چه داسمندردیوورځې مسافت وو-

عفیف بن مندرپه دې جهادکښې شریک وو هغه په دې باره کښې دوه شعرونه اووئیل چه دهغې ترجمه داده:

((آیاته ګورې نه چه الله تعالی سمندرمطیع کړو + اوپه کفاروباندې ئې څومرمصیبتونه نازل کړل))

مونږهغه پاک ذات واړولوچاچه دبنی اسرائیلودپاره سمندرساکن کړې وو، هغه زمونږسره دبنی اسرائیلو نه هم زیات د اعانت اوکومك معامله اوفرمائیله))-

(۵) پورته په ۲۸ نمبرکښې د اوبن قصه :

((دالله تعالی، اود حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اودحضرات صحابه کرامو رضی الله عنهم د واضحو ارشاداتو او مذکوره واقعاتونه ثابته شوه چه دکامیابئې صحیح طریقه صرف داده چه په سیاست کښې صرف مشروع اوجائزطریقې اختیارکړې شې، بیاکه چرې صورةً کامیابی هم حاصله نشی نوحقیقی کامیابی یعنی رضائې الهی خو بهرحال حاصله ده، اوانسان مکلف هم ددې دې چه جائز اسباب اختیارکړی اونتیجه الله تعالی ته پریږدی- بیاکه غالب شی اوکه مغلوب، ظاهراً که کامیاب وی اوکه ناکام بهرصورت عندالله کامیاب دې-

حضرت حرام بن ملحان رضی الله تعالی عنه کوم کافر ناګهانه په نیزه وه وهلو، د وینې فواره ترې روانه شوه، دوئ په لاس کښې وینه راواخسته په مخ ئې اووهله او وې فرمائیل: فزت ورب

الکعبة ((یعنی دکعبې په رب مې دې قسم وی زه کامیاب شوم))
وګورئ په ظاهره دناکامه کیدوباوجود خپل خان کامیاب ګڼي.

په قرآن کریم کښې ارشاددي : ﴿وَمَن يُقَٰتِلۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيُقۡتَلۡ أَوۡ يَغۡلِبۡ فَسَوۡفَ نُؤۡتِيهِ أَجۡرًا عَظِيمًا﴾ (۴-۷۴)

﴿قُلۡ هَلۡ تَرَبَّصُونَ بِنَآ إِلَّآ إِحۡدَى ٱلۡحُسۡنَيَيۡنِۖ﴾ (۹-۵۲) ﴿إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ وَأَمۡوَٰلَهُم بِأَنَّ لَهُمُ ٱلۡجَنَّةَۚ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيَقۡتُلُونَ وَيُقۡتَلُونَۖ وَعۡدًا عَلَيۡهِ حَقًّا فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِ وَٱلۡإِنجِيلِ وَٱلۡقُرۡءَانِۚ﴾ (۹- ۱۱۱)

په دې نصوصو کښې د هغه خلقودپاره چه دالله تعالی درضادپاره جهادکوی ظاهراً کامیاب وی اوکه ناکام په دواړوصورتونوکښې بشارتونه دی، دې دپاره چه اصل مقصدیعنی رضائې الهی حاصله ده- دالله تعالی داحکاموتعمیل اوحدودوپابندی اودهغه په قوانینوباندې داستقامت په صورت کښې ژوندی پاتې شی اوکه مړشی بهرصورت کامیابی کامیابی ده-

په قرآن مجید کښې ځائ په ځائ دفلاح اوفوز بشارتونه اودکامیابئ تمغې صرف هغې خلقوته ورکړې شوی دی چه په هرحال کښې دخپل مالک په بیان شوو حدودوباندې قائم وی :

(اولئك هم المفلحون)،(اولئك هم الفائزون)،(قد افلح المؤمنون) الایات.

(ان الانسان لفی خسر الا الذین امنوا وعملوا الصلحت)- الایة

دارنګه په ډیرو آیتونوکښې په هرحالت کښې فرمانبرداروبندګانوته کامیاب وئیلې شوی دی، اګرکه ظاهراً هغوئ ناکام ښکاری - اصل کامیابی دمالک درضا حصول دې چه صرف دهغه په اطاعت او په ترک معصیت سره حاصلیږی، که چیرې ظاهری کامیابی مقصود وګڼلې شی نوپه دې باندې ضرور دا اعتراض راځی چه معاذالله ! ډیرانبیاء کرام علیهم السلام کامیاب شوې نه دی، دې وجې نه چه دوئ ته حکومت ملاؤشوې نه وو، بلکه دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاددې چه بعض انبیاء داسې هم تیرشوی دی چه په هغه باندې صرف شخص ایمان راوړې اوپه بعض باندې یو شخص هم ایمان نه دې راوړې، اوپه قرآن کریم کښې په بعض مقاماتوکښې تصریح ده چه ډیرانبیاء کرام علیهم السلام ئې قتل کړی دی، نوآیامعاذالله! داټول به ناکام وی؟ هیڅکله نه ، پس د کامیابئ معنی داده چه د الله تعالی د رضاء دحصول په خاطر دهغه په وئیلې شوو قواعدو اوضوابطو باندې ثابت قدم وی وفقنا الله الجمیع لما یحب ویرضی، وهو العاصم من جمیع الفتن وله الحمد اولا واخرا-

۲۴ رمضان ۹۷ هجری

# دحکیمُ الامة رحمه الله تعالی سیاسی افکار

**«تحریر مولانا محمد تقی عثمانی»**

حکیم الامت مجدد الملت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سرهُ نه چه الله تعالی ددین په هرې شعبې کښې کوم عظیم خدمات اخستی دهغې نظیر دماضی په څوصدیو کښې په تلاش سره نه ملاویږی- دمسلمانانو ددینی ضرورت شایدهیڅ موضوع داسې نه وی چه په هغې باندې دحکیم الامت قدس سره څه مفصل یامختصر کارموجودنه وی- دحضرت رحمه الله تعالی تصانیف، مواعظ اوملفوظات دخپل دورپه دینی ضروریاتوباندې مشتمل دی اود زندګئ کومه شعبه داسې نشته چه دهغې په باره کښې یی ددین تعلیماتوته په یوه نه یوه شکل باندې دواضح کولو کوشش نه وی کړې-

پدې وخت کښې زما پیش نظر دحضرت حکیم الامت قدس سره دسیاسی افکارو تشریح او توضیح ده- اګرچه دحضرت رحمه الله تعالی شخصیت په هیڅ حیثیت باندې څه سیاسی شخصیت نه وو اونه سیاست ددوئ خصوصی موضوع وه، لهذددوئ کوم تصنیف خالصةً دسیاست په موضوع باندې موجودنه دې، لیکن چونکه داسلام ددین احکام دنوروشعبوپه شان دسیاست سره هم متعلق دی، دې وجې نه داسلامی احکامودتشریح اووضاحت په ضمن کښې حضرت رحمه الله تعالی داسلام په سیاسی احکاموباندې هم خپل تصانیف اومواعظ اوپه ملفوظاتوکښې مختصر لیکن جامع بحثونه فرمائیلی دی چه په هغې کښې داسلامی احکامودتوضیح سره سره د عصر حاضر نورسیاسی نظامونواودسیاست په میدان کښې موندونکی په فکری اوعملی ګمراهیو باندې هم پوره تبصرې شاملې دی- په دې مقاله کښې ددې بحثونویوداسې مطالعه مقصودده چه دهغې په ذریعه حضرت حکیم الامت قدس سره دبیان مطابق دسیاست په باره کښې داسلامی تعلیمات یوواضح تصور مخې ته راوستل دی.

دنن په دُنیا کښې چه کوم سیاسی نظامونه عملاً قائم دی، ددې کړې شوی تصورات دخلقوپه زړونو او دماغوباندې دارنګه پیژندل شوی چه ددې په اثراتوباندې سوچ آزادول ډیرمشکل شوی دی. دې سیاسی نظامونو څه څیزونه ښه اوڅه څیزونه بدوګڼل دخپلودې نظریاتوپرو پاګند ئې ددومره شدت سره کړې ده چه خلق ددې نه خلاف دڅه وئیلو یاکولوتصورهم نه شی کولې-اول خو ددې دپاره چه د پروپاګند مهیب طاقتونو ذهنونه داسې جوړکړی دی چه دوئ دانظریات دیومسلم ریښتونی په طورباندې قبول کړی دی، اوبل ددې دپاره چه که چرې کوم شخص په عقلی طور باندې ددې نظریاتونه اختلاف هم لری ئودهغې په خلاف څه وئیل دټولې دنیادملامتئې اوطعن اوتشنیع ددعوت ورکولومترادف دې، لهذاهغه په خاموشئ کښې خپل عافیت ګڼي-

په دې بناء باندې کله چه دنن په دُنیاکښې داسلام سیاسی تعلیماتوتشریح څوك کوی نوښه ښه خلق چه په هغې کښې ډیرعلماء هم داخل دی، خپل ذهن دزمانې ان فیشن ایبل تصوراتونه نه شی آزادولې، اوددې په نتیجه کښې چه کله هغه داسلام دسیاسی ډهانچې تفصیلات بیانوی نو دا تصورات استعارةً اخلی او په دې چوکاټ کښې یې برابرول ضروری گنی، دارنگه په دې نازکې موضوع باندې دالتباس او خلط بحث دومره غالبه شوې دې چه حقیقت حال ئې پټ کړې دې.

حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سره نه الله تعالی په څوارلسمه صدئ کښې ددین دتجدیدعظیم الشان کارواخستلو، اوداکارهغه څوك کولې شی چه په چاباندې دقرآن اوسنت ماخذِ شریعت پوخ رنگ دارنگه اچول شوې وی چه کوم بل رنگ په دې باندې نه شی اچول کیدې- دداسې شخص دزمانې پیژندل ضروری دی، لیکن قبولوالې هغه خبره کوی چه ددې پوخ رنگ په مطابق وی- هغه خپلې سترگې په پُوره شان باندې کولاولې شی، لیکن دگرداوپیش کیدونکې د پروپاگند دشورشغب نه، نه مرعوب کیږی- اوکه چرې بالفرض ټوله دنیا په کوم یو طرف لاړه شی بیاهم هغه دالله تعالی د خاص توفیق نه په هغه خبره باندې قائم اوسیږی کومه چه دماخذ دشریعت په رُوباندې رینښتونې وی اوددې په اظهارکښې څه مرعوبیت یاشرم یادمخلوق یره دده په زړه کښې نه راځی-

دسیاست په معامله کښې هم حکیم الامت قدس سره ددین په صراط مستقیم باندې دهغې ثابت قدمئ مظاهره اوفرمائیله، اوپه دې دورکښې کله چه دډیروباطلونظریاتو آمیزش دسیاست په باره کښې اسلامی تعلیماتوته خړ رنگ ورکړو، حضرت رحمه الله تعالی د الله پاك په توفیق خاص سره د اتعلیمات په خپل صحیح شکل اوصورت کښې پیش کړل او د پروپاگند دشوراوشغب نه مرعوب نه شو-

چونکه دنن سباسیاست (چه په هغې کښې هغه سیاست هم داخل دې چه دهغې مقصد داسلام نفاذ ښودلې شی) په یوخاص طرف باندې روان دې ، اوپه دې کښې دبعضې خبرې د موضوع د وجې نه دحضرت رحمه الله تعالی داسیاسی افکار هغه سیاسی ذهنونوته یقینًا اجنبی محسوسیږی چه په بنیادی طورباندې دمغربی سیاست نه متاثردی لیکن د حضرت رحمه الله تعالی دا افکار ددوئ ذاتی افکارنه دی، بلکه ددې بُنیاد په قرآن اوسنت اودخلافت راشده په طرزعمل باندې دې او دهغې شاته دنقلی اوعقلی دلائلو مضبوط طاقت دې، دې وجې نه ددې مطالعه پکار ده اوپه دې باندې پهیخ زړه اوغیرجانبدارذهن سره غورکول ضروری دی چه حقیقت حال واضح شی-

دحضرت رحمه الله تعالی سیاسی افکار زه په درې حصوکښې تقسیم کوم اوبیا یې پیش کوم:

(١) په اسلام کښې دسیاست مقام-

(۲) داسلام نظامي حکومت اودحکومت فرائض-
(۳) په اسلام کښې دسیاسی جدوجهد طریقه کار-

## (۱) په اسلام کښې دسیاست مقام:

دټولونه اوله مسئله داده چه په دین کښې دسیاست مقام څه دې؟ اوپه دهن کښې دیوصحیح سیاسی نظام دقیام اهمیت په کومه درجه کښې دې؟ دعیسائیت داباطله نظریه ډیره مشهوره ده چه: «دقیصرحق قیصرته ورکړه، اودکلیساحق کلیساته»

دهغې حاصل دادې چه دمذهب په سیاست کښې هیڅ دخل نشته، اودمذهب اوسیاست دواړو دائره دعمل مختلفه ده، دواړوته په خپلوخپلو دائروکښې دیوبل دمداخلت نه بغیرکارکول غواړی، ددین اوسیاست دتفریق دانظریه په عصرحاضرکښې ترقی کولوسره د«سیکولرزم» شکل اختیارکړو چه دنن په سیاسی نظامونو کښې مقبول ترینه نظریه گڼلې شی-

ظاهره ده چه په اسلام کښې ددې نظرئې څه گُنجائش نشته ، داسلام تعلیمات چونکه دهرې شعبې دزندګئ سره متعلق دی چه په هغې کښې سیاست هم داخل دې، دې وجې نه په اسلام کښې دسیاست ددین اومذهب نه دبې تعلقه ساتلو هیڅ جواز موجودنه دې-

چنانچه په عصر حاضرکښې ډیرومسلمانانو دعیسائیت اودسیکولرزم ددې باطلې نظرئې سخت تردید کړې دې ، اودائې ثابته کړیده چه سیاست ددین نه هیڅکله نشی جدا کیدلې، په قول داقبال مرحوم : ع : جُدا ھوں دین سیاست سے تو رہ جاتی ہے چنگیزی

لیکن دسیکولرزم اودین اوسیاست دتفریق ددې نظرئې په رد کولو کښې ډیر مسلمانان مفکرین اود اهل قلم نه یوه نهایت باریکه غلطی واقع شوه چه په کتوکښې ډیره باریکه اومعمولی وه، لیکن ددې اثرات ډیرلرې رسیدلی وو- دا باریکه غلطی مونږ په مختصرو الفاظوکښې بیانول غواړو او له هغې نه دارنګه تعبیرکولې شی چه دوئ د«سیکولرزم» دتردیدپه جوش کښې دسیاست اسلامی جوړولوپه ځائ اسلام سیاسی جوړکړو، ویناداوه چه: «سیاست ددین نه ځانته کیدل نه دی پکار» لیکن وئیل ئې دا چه: «دین دسیاست نه ځانته کیدل نه دی پکار»

ددې اجمال تفصیل دادې چه داسلام ډیراحکام دسیاست اوحکومت سره متعلق ضروردی او د ایمان تقاضا هم داده چه دهرمسلمان اسلام دنوروااحکاموپه شان په دې احکاموباندې هم په قدر د استطاعت دعمل کولواوپه بل باندې دکولوکوشش وکړی، دحاکم فرض دی چه هغه اسلامی احکام نافذکړی او د اسلام داحکامو مطابق حکومت وکړی اودعوامو فرض دی چه هغوئ دشرعی احکامو مطابق دداسې حکومت دقیام کوشش وکړی اوکه چیرې هغه قائم شی نودهغې اطاعت وکړی.

لیکن دعصرحاضر بعض مفکرین اومصنفین ، چاچه دسیکولرزم په تردید کښې کارو کړو، دتردیدپه جوش کښې دې حده پورې وړاندې لاړل چه دوئ سیاست اوحکومت داسلام مقصود حقیقی، ددې حقیقی نصب العین اودانبیاؤعلیهم السلام مطمح نظر، بلکه دانسان دتخلیق اصل هدف وګڼلو او د اسلام نوراحکام مثلاً عبادات وغیره ته ئې نه صرف دویم حیثیت ورکړو، بلکه هغه یی د داسې مقصود اصلی یعنی د«سیاست» دحصول یو ذریعه اودهغې دتربیت یوطریقه وګڼله.

ددې انتهاء پسندی اول غټ نقصان خو دا شو چه ددې په نتیجه کښې ددین مجموعی تصویراودهغې دترجیحاتو ترتیب (ORDER OF PRIORITY) کوم څیزچه وسیله وو هغه ئې مقصد جوړکړو اوهغه یی په زړه اودماغوباندې ومنلو، اوکوم چه مقصدوو هغه یوغیراهمه وسیله جوړه شوه اوپس منظرکښې لاړه،، چنانچه ددې طرزفکرلاندې ذهن څه په دې شان جوړشو چه دیو مسلمان اصل مقصددسیاست زندګی اودحکومت اصلاح کیدل ئې غوښتل، کارهغه کاردې چه په دې طریقه سرته ورسولې شی، قربانی هغه قربانی ده چه په دې لاره کښې پیش کړې شی، اومثالی انسان هغه انسان دې چاچه داکارخپل مقصد جوړکړو او شپه ورځ ئې ددې دپاره وقف کړه - اود دین دنورو شعبو مثلاً طاعات عبادات، زهد اوتقوی، اصلاح النفس اوخشیت اوانابت وغیره لپاره نه صرف داچه خاص اهمیت ئې باقی پاتې نه شوبلکه کوم شخص چه په دې کارونوکښې مشغول وی دهغه په باره کښې یی داتصورقائم کړو چه ګویاهغه په مبادی کښې لګیادې اوددین دبنیادی مقاصدو نه لرې دې-

دویم نقصان دا وشو چه کله داسلام اصل اوبنیاد سیاست اوحکومت وګڼلې شو، او دعباداتو وغیره احکاموحیثیت صرف دوسیلې شو نو دا یوه بدیهی خبره ده چه کله کله وسائل په مقصد باندې قربانیږی هم ، اودمقصددحصول دپاره که چیرې په کومه وسیله کښې څه لاندې باندې یاکمې زیاتې هم کیږی نوهغه خوش ذائقه کولې شی- لهذا د مذکوره انتهاپسندئ په نتیجه کښې شعوری یاغیر شعوری طورباندې ددې خبرې ډیرغټ ګُنجائش پیداشو چه دسیاسی مقاصدو دحصول دپاره دعباداتو وغیره احکاموکښې که څه کمې اوکوتاهی هم وشی نوهغه دملامتئ قابل نه ده، ځکه چه هغه دیوغټ مقصد دحاصلولودپاره شوې دې-

سیاست ددین یوشعبه نه ، بلکه ددین دمقصود اصلی دګڼلو مثال بالکل داسې دې لکه تجارت اومعیشت هم ددین یو شعبه ده، په دې حیثیت سره ډیراحکام دتجارت اومعیشت سره هم متعلق دی بلکه دحلال کسب ډیرفضائل هم په احادیثوکښې واردشوی دی، اوس که چرې ددې فضائلو په نظر کښې نیولو سره کوم شخص دا اوائی چه ددین اصل مقصددې تجارت اومعیشت اوکسب حلال وګرځی نوداخبره دومره غلطه ده چه په دې باندې ددلائلو قائمولو هم ضرورت نشته

بعینه دغه شان سیاست په دې معنی سره ددین یوه شعبه ضرورده چه ددین ډیراحکام له هغه سره متعلق دی اوددې ډیرفضائل هم په قرآن اوحدیث کښې وارد شوی دی لیکن ددې فضائلوپه بنیاد باندې دا ددین مقصوداصلی ګڼل داسې غلطی ده لکه څنګه چه تجارت اومعیشت ددین اصل نصب العین ګڼل دی۔

لیکن دڅوارلسمې صدئ دهجری کال په شروع کښې چه دکوم وخت نه په مسلمانانوکښې د مغربی استعمارنه دآزادیدلو تحریکونه شروع شول، دهغې وخت نه هغه انتها پسندانه طرزفکر عام شو چه په هغې کښې سیاست د«خلافت فی الارض»او«حکومت الهیه » وغیره په عنوانانو باندې ددین بنیادی مقصد وګڼلې شو- دطرزفکردې غلطئ په مسلمانانوکښې په دومره آرام خپل ځائ جوړکړو چه ښو ښو خلقوته دا احساس نه شو کیدې چه دده دفکراوعمل نقطه بدله شوه- د«سیاسی استقلال » ضرورت اواهمیت په دې درجه ذهنونوباندې منل شوی ووچه ددې باریک مګر په لرې غلطئ باندې غورکولوسره «په دین کښې دسیاست»دصحیح مقام متعین کولوفرصت نه وو، نتیجه داشوه چه دا تصور بعضو حضرات په شعوری طورباندې اختیارکړواوبعضو په غیر شعوری طورباندې، اود اسلامی تحریکونو اجتماعی عمل په دې باندې داسې مهر ولګولو چه ښه ښه اهل علمو ته هم دکانتې ددې تبدیلئ نه احساس نه شوای کیدې-

په دې ماحول کښې داحقردعلم مطابق حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سره هغه اول بزرګ دې چاچه دا باریکه غلطی په دوه ټکو او لفظونوکښې واضحه اوفرمائیله اودقرآن اوسنت ددلائلونه ئې ثابته کړه چه په دین کښې دسیاست صحیح مقام کوم دې؟حضرت رحمه الله تعالی فرمائی: دحق تعالی ارشاددې

﴿ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِي ٱلْأَرْضِ أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُوا۟ بِٱلْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا۟ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلْأُمُورِ ﴿٤١﴾ ﴾

«هغه خلقو ته که چیرې مونږ د زمکې حکومت عطاء کړو نوهغه مونځ قائم کوی اوزکوة اداکوی او امربالمعروف اودنهی عن المنکرفرض انجام کوی، او د ټولوکارونوانجام دالله تعالی په لاس کښې دې-»

ددې نه واضحه شوه چه دیانت مقصود بالذات دې،اوسیاست اوجهادمقصوداصلی ندې، بلکه داقامت دیانت لپاره وسیله ده- دا وجه ده چه دیانت او د دیانت احکام ټولو انبیاء علیهم السلام ته په مشترک طورباندې ورکړې شوی وؤ اوسیاسیات اوجهاد ټولوته نه دې ورکړې، بلکه چرته چه ضرورت اومصلحت وګڼلې شو نو حکومت ورکړې شو اوکه نه نو ورنکړې شو- دوسائلوداشان دې چه هغه دضرورت دپاره او د ضرورت مطابق ورکولې شی-

شاید چاته داشبه وی چه په نورآیاتونو کښې خو ددې خلاف مضمون موجود دې چه په هغې سره دوسیله کیدو اوتمکین فی الارض اودسیاست مقصود کیدل په ذهن کښې راځی اوهغه دادې

﴿ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ ﴾

«په تاسو کښې چه کوم خلق ایمان راوړی اونیک عمل وکړی دهغوئ سره الله تعالی وعده فرمائیلې ده چه دوئ ته به په زمکه کښې حکومت ورکوی لکه څنگه چه ددې نه وړاندې خلقوته حکومت ورکړې شوې وؤ اوکوم دین چه ئې ددوئ دپاره خوښ کړې دې ، دوئ ته ددې دپاره قوت ورکولې شی۔»

دلته ایمان اوعمل صالح شرط گڼلې شی دتمکین فی الارض لپاره، چه دهغې نه تمکین او دسیاست مقصود اصلی کیدل لازمیږی.

پس جواب ددې دادې چه دلته یې په ایمان اوعمل صالح باندې دتمکین اوشوکت وعده کړې ده او بطورخصوص یې شوکت په دین باندې مرتب کړې دې، پس په دین باندې سیاست اوقوت موعود شو لیکن دموعود مقصود کیدل ضروری ندی ، اوکه نه نو دا آیت وگورئ:

﴿ وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِم ﴾

«اوکه چرې داخلق دتورات اوانجیل اوکوم کتاب چه ددوئ دپروردگارد طرف نه ددوئ خواته رالیږلې شوې (یعنی قرآن) ددې پوره پابندی کوی نو دا خلق به له پاسه اودلاندې طرف نه په ښه وسعت سره خوراکونه وکړی»

په کوم آیت کښې چه په اقامت د تورات اوانجیل اوقرآن، یعنی عمل بالقرآن باندې دوسعت رزق وعده کړې شوې ده، آیا څوک وئیلې شی چه ددین نه مقصود همدا دې ؟ بلکه په دین باندې دا وعده شوې ده چه وږې او تږې به نه شی اوسیدې، پس دموعود مقصود کیدل ضروری نه دی - دلته هم ایمان اوعمل صالح باندې شوکت اوقوت اوسیاست وغیره موعود دی چه بطوردخاص په دې باندې مرتب کیږی، نه مقصود بالذات چه غایه شی .

بهرحال ؛ واضحه شوه چه په سیاست اودیانت کښې سیاست وسیله ده اودیانت مقصوداصلی دې۔ لیکن ددې دامطلب نه دې چه سیاست په یوه درجه کښې هم مطلوب نه دې ،بلکه ددې درجه ښودل مقصود دی چه هغه په خپله مقصود اصلی نه دې اودیانت په خپله مقصوداصلی دې .

(اشرف السوانح جلد۳(خاتمة السوانح)ص۲۰۸طبع ملتان)

حقيقت دادې چه حضرت حكيم الامت رحمه الله تعالى ديوې صفحې دامختصره ليكنه انتهائى پُر مغزه او په جامع تقرير كښې يې دالله تعالى په توفيق خاص سره دا موضوع په داسې اندازې سره واضحه اوفرمائيله چه په دې كښې څه اشتباه باقى نه پاتې كيږي- چه دهغې خلاصه داده:

((نه هغه سيكولرنظريه صحيح ده چه سياست اوحكومت كښې ددين څه عمل دخل نه كيدل پكاردى، اونه داخيال صحيح دې چه ددين اصل مقصدسياست اوحكومت دې، واقعه داده چه د دين اصل مقصد دبنده خپل الله سره تعلق قائمول دى چه دهغې مظاهره دعباداتواوطاعاتو په ذريعې سره كيږي- سياست اوحكومت هم ددې مقصد دتحصيل يوذريعه ده چه نه په خپل ځائ مقصد دې اونه د اقامت ددين مقصدپه دې باندې موقوف دې، بلكه دهغې حصول دمقاصدو او وسائلونه يو مقصد او وسيله ده.

## (۲) داسلام حكومتى نظام:

په منځنيو پيړيو كښې په اروپا كښې چه كوم شخصى حكومتونه په عام طورسره رائج ووُ هغه مطلق العنان بادشاهان ووچه په هغې كښې دبادشاه ژبې دقانون حيثيت درلودلو اوپه دې باندې څه قانونى انتقاد او طعن نه كيدلو ، ددې مطلق العنان حكمرانئې په نتيجه كښې ظلم اوستم او دنا انصافيانو بازارگرم وو،له دې وجې نه ددې خلاف په اروپ كښې شديد رد عمل وشو- ((شخصى حكومت)) بذات خود نهايت معيوب وگڼلې شو اوددې په ځائې((جمهوريت)) ديومثالى طرزِحكومت په طورباندې پيش كړې شو، تر دې پورې چه په مزه مزه شخصى حكومتونه ختم شو اوددې په ځائ جمهورى نظامِ حكومت په وجودكښې راغې، په زيادتره ملكونو كښې جمهوريت قائم كړې شو، تر دې چه جمهوريت يو داسې فيشنى اوماډرن نظامِ حكومت گڼلې شى چه په سياست كښې دعدل اوانصاف اودحق اوصداقت ضامن دې- چنانچه تيره شوې (هجرى) صدئ نه واخله تر اوسه پورې چه څومره تحريكونه را اوچت شوى دى، دهغوئ په ذهن كښې د جمهوريت حيثيت (معاذالله) ديوه داسې ((كلمه طيبه )) شوې ده چه دهغې نه بغير په ننى دوركښې دسياست تصورنه شى كيدې.

دا په ټوله دُنياباندې ومنلې شو ، ددې پروپاگند نتيجه داشوه چه په عصر حاضر كښې كومو سياسى جماعتونو د اسلام نوم واخستلو او را اوچت شو ،ددوئ اكثريت هم نه صرف داچه جمهوريت يې يومسلم اصل وگڼلو او پدې كښې وړاندې لاړل، بلكه دوئ هم په خپلو مقاصدو كښې دجمهوريت قيام دفهرست په سركښې ايښې دې اوپه خپله ئې هغه جماعت هم په جمهورى چو كاټ باندې آباد كړې دې - چنانچه په دې ضمن كښې يې دا دعوې هم په كثرت سره كړې ده چه جمهوريت داسلام عين مطابق دې بلكه اسلام دجمهوريت تعليم وركړې دې، چاد ډير احتياط له

وجه نه دا اوئیل چه کوم جمهوریت د اسلام نه خلاف و مونږ د هغې قائل نه یو، لهذا زمونږ جمهوریت «اسلامی جمهوریت» دې۔

دا تصورات زمونږپه دورکښې په دومره قدرمشهورشوی دی چه ددې خلاف څه سوچ کول یاوئیل دټولې دنیا لعنت اوملامتی په خپل سر داخستلو مترادف دی، اوکه چیرې په داسې ماحول کښې کوم شخص دجمهوری حکومت په ځائ دشخصی حکومت حمایت کوی نوداسې شخص په نننۍ سیاسی فضاکښې تقریبًا دکفر دکلمې دوئیلومرتکب ګڼلې شی۔

لیکن کوم شخص چه الله تعالی دخپل دین اودخالص دین ددعوت اودتجدیددپاره منتخب کړې دې ، هغه په زمانې باندې منلې ده، په تصوراتو او خوشنما نعروسره نه مرعوب کیږی او نه متاثره کیږی، بلکه په هرحال کښې حق حق اوباطل باطل ګڼي- چنانچه حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سرهٗ کله دیوې لمحې دپاره هم دا تسلیم نکړه چه اسلام دجمهوریت تعلیم ورکړې دې یا جمهوریت داسلام عین مطابق دې- د دې په ځائ دوئ په خپلو متعددو مواعظو اوملفوظاتو اوتصانیفوکښې په جمهوریت باندې نهایت جاندارتنقیدونه کړی دی اوخپله دینی نقطه ئې نظرنه یې ددې خرابیانې واضحې کړی دی۔

عام طورباندې دجمهوریت متعلق دخلقوذهنونوکښې صرف دومره خیال وو چه دمطلق العنان بادشاهیت په مقابله کښې دا نظام عواموته د اظهار رائې آزادی ورکوی کوی اوپه حکمرانانو باندې داسې پابندیانې عائدکوی چه دهغې په ذریعې هغوئ نه شی بې مُهاره کیدې- اوچونکه اسلام د«مشاورت» حکم ورکړې دې، دې وجې نه ئې «جمهوریت » د«مشاورت» هم معنی وګڼلو خلقو دا ویناشروع کړه چه «جمهوریت» عین اسلام دې- حالانکه خبره دومره ساده نه ده، په حقیقت کښې د«جمهوری نظام حکومت» نه شاته یوه مستقله فلسفه ده چه ددین سره یوقدم هم نشی تلې دکوم دپاره چه په سیکولرزم باندې ایمان راوړل تقریبًا دلازمی شرط حیثیت لري-

دجمهوریت دحقیقت واضح کولودپاره داجمله مشهوره ده:

(IT IS A GOVERNMENT OF THE PEOPLE BY THE PEOPLE FOR THE PEOPLE)

جمهوریت دعوامودحکومت نوم دې چه دعواموپه ذریعه اودعوامو دفائدې دپاره قائمیږی-

لهذا د«جمهوریت » دټولونه اول رکن اعظم دادې چه په دې کښې عوام حاکم اعلی تصورکولې شی اودعوامو هره فیصله چه دکثرت رائې په بُنیاد باندې شوی وی هغه واجب اونا قابل تنسیخ ګڼلې شی- دکثرت رائې په دې فیصلې باندې څه طعن اوکومه پابندی نه شی عائدکیدې-که چرې دحکومت دستوردعوامی دنمائندګانو په اختیار په قانون سازئ باندې څه پابندی هم عائدکړی (مثلاً داچه هغوئ کوم قانون د قرآن اوسنت یا دبنیادی حقوقوپه خلاف نه شی جوړولې) نودا

پابندي ددې دپاره واجب التعميل نه کيږي چه دا دعوامو نه بالاتره کوم قوت عائدکړې ده – يا دا دالله تعالى حکم دې چه په هرحال کښې يې منل ضروري دي ،بلکه صرف ددې دپاره واجب التعميل ګڼلې شي چه داپابندي په خپله کثرت الرائې عائدکړې ده- لهذا که چرې کثرت رائې کوم وخت غواړي نوهغه منسوخولې هم شي-

خلاصه داچه په جمهوريت کښې کثرت رائې ته (معاذالله) دخدائې مقام ورکړې شوې دې چه ددې ځه فيصله نه شي ردکولې- چنانچه په دې بنيادباندې په مغربي ممالکوکښې دبدنه بدتره قوانين دکثرت رائې په زورباندې مسلسل نافذولې شي ،اوترننه پورې نافذولې شي- دزنا په شان بدکارئ نه واخله دهم جنسئ په شان ګنده عمل پورې يې د جواز سند ورکړې دې، او دې طرزفکر دُنيا داخلاقي تباهئ آخري حده پورې رسولې ده .

حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علي صاحب تهانوي قدس سرهُ دکثرت رائې په دې جمهوري فلسفې باندې ځائ په ځائ تبصرې کړې دي دهغې کمزورياني يې واضح کړې دي.

دقرآن کريم ارشاددې : ﴿ وَإِن تُطِعۡ أَكۡثَرَ مَن فِي ٱلۡأَرۡضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ ﴾

((اوکه چيرې ته دزمکې دخلکو داکثريت اطاعت وکړې نوهغوئ به تادالله تعالى دلارې نه ګمراه کړي))-

کثرت رائې دمعيارحق دګڼلونه خلاف ددې نه زيات او واضح اعلان نورڅه کيدې شي؟ ليکن په زمانې باندې دمنل شويو نظرياتو نه مرعوبه شوو مسلمانانو کښې هم دې خيال تقويت ومونډلو چه په کوم طرف کثرت رائې وي هغه خبره ضرورحق وي- حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علي صاحب تهانوي قدس سرهُ په خپلو تاليفاتو اومواعظو اوملفوظاتو کښې په ډيرومقاماتو باندې ددې خورې شوې غلطئ ترديد فرمائيلې دې، په يووعظ کښې فرمائي: ((نن سبا دا عجيبه مسئله راوتلې ده چه په کوم طرف کثرت رائې وي هغه خبره حق وي، صاحبانو! دايوحده پورې صحيح ده، ليکن داهم معلومه ده چه درائې نه دچارائې مرادده؟ آياددې عوامو کالانعامو؟ که چرې ددوئ رائې مرادوي نو حضرت هود عليه السلام دخپل قوم رائې باندې عمل ونه کړو، ټول قوم په يوطرف وؤ اوحضرت هودعليه السلام په بل طرف- آخردوئ ولې توحيدپرې نښودلو او بُت پرستي يې اختيارنه کړه؟ ځکه چه د قوم د تفريق الزام سرراوړې دې؟ دې وجې نه چه هغه قوم جاهل وو، دهغوئ رائې جاهلانه رائې وې)) (فضائل العلم والخشية ص۰۰ومعارف حکيم الامت ص۲۱۱)

مطلب دادې چه دعوامو کثرت رائې کله هم معيارحق نه شي کيدې، ځکه چه په عوامو کښې اکثريت عمومًا دکم علمو خلقو وي - حضرت حکيم الامت رحمه الله تعالى په يوه بله موقع باندې ارشادفرمائي چه : ((مولانا محمدحسين اله آبادي سيداحمدخان ته وئيلي وو چه تاسوخلق په کوم

کثرت رائې باندې فیصله کوئ، دهغې حاصل دادې چه دحماقت رائې باندې فیصله کوئ، ځکه چه قانونِ فطرت دادې چه په دنیاکښې عقلاء کم دی اوبې وقوف زیاتدی . نوددې قاعدې په بناء باندې دکثرت رائې فیصله دبی وقوفئ فیصله کیږی»-(**تقلیل الاختلاط مع الانام ص۳ ومعارف حکیم الامت ص۱۳۲**)

په یوه بله موقع باندې ارشادفرمائی: «په غزوه اُحد کښې ) په هغه پنځوس کسانوکښې چه دغر په سرباندې مقرر شوی وو، اختلاف شو، بعضواووئیلې چه زمونږرونړوته فتح حاصله شوې ده، اوس مونږ ته دغره په سرباندې داوسیدوضرورت نشته، حضورصلی الله علیه وسلم چه دکوم غرض دپاره مونږ دلته متعین کړی ووهغه غرض حاصل شو، دې وجې نه حکم قرار هم ختم شو، اوس ددې ځائ نه په کوزیدوکښې د حضورصلی الله علیه وسلم دمقصودمخالفت نه کیږی، اومونږ اوسه پورې په جنګ کښې څه حصه وانه خسته نوڅه خومونږ ته هم کول پکاردی- زمونږ رونړه دکفاروتعاقب کوی، مونږ ته مال غنیمت جمع کول پکاردی، بعضود دې رائې مخالفت وکړو او وې وئیل چه حضورصلی الله علیه وسلم صاف فرمائیلی وو چه زما د اجازت نه بغیر ددې ځائې نه مه کوزیږئ ، له همدې وجې نه مونږته بغیر ددوئ داجازت نه هرګز کوزیدل ندی پکار- لیکن د اولې رائې والا دا خبره ونه منله اوځلویښت کسان دغره دسر نه کوزشول اوپه مال غنیمت جمع کولوکښې مشغول شول، دا د دوئ نه اجتهادی غلطی وشوه اودغره په سرباندې صرف لس کسان او یو افسردهغوئ پاتې شو .

په دې واقعه کښې کثرت رائې په غلطئ باندې وه اوقلت رائې په صواب باندې وه، کوم خلق چه کثرت رائې علامه د حق ګڼي- هغه دې ددې نه سبق واخلی »۔ (**ذم النسیان ص۱۲،معارف حکیم الامت ص۱۱۸**)

په دې وعظ کښې وړاندې لاړو حضرت حکیم الامت قدس سرهُ دکثرت رائې لازمی حقانیت نه خلاف د حضرت صدیق اکبررضی الله تعالی عنه ددې طرزعمل مثال هم ورکړې دې چه ددوئ صلی الله علیه وسلم د وصال نه بعدچه کله بعضې قبائلو دزکوة ورکولونه انکار وکړو نو دهغې خلاف دوئ دجهاد اراده اوفرمائیله، دحضرت عمررضی الله تعالی عنه اونور بهترو صحابه کرامورضی الله تعالی عنهم رائې داوه چه ددې خلقوسره جهاد ونه کړې شی، لیکن حضرت صدیق اکبر رضی الله تعالی عنه په خپله رائې باندې قائم وو او دهغې مطابق فیصله هم وشوه او وروسته ټولو خلقو دا اعتراف وکړو چه صاحب رائې همدې وو-

حضرت حکیم الامت رحمه الله تعالی کثرت رائې دمعیارحق ګڼلوپه نظرئې باندې د شرعی اوعقلی دواړه قسمه دلائلو سره تنقید فرمائیلې دې اوپه ساده ساده لفظونوکښې یې داسې حقائق

بيان کړی دي چه کله هم څوك په يخ زړه سره غور پرې وکړی نو د هغې نتيجې پورې رسيږی. چنانچه دجديدعلم سياست بعض حقيقت پسندماهرينو هم د ((جمهوريت)) نقصانات تسليم کړي دي- يومشهورماهرسياسيات ايډمنډبورک (BURKE) ليکی:

((داکثريت فيصلې کول څه دفطرت قانون نه دې، لږ تعداد والا خلق بعضې اوقات زيات مضبوط طاقت هم کيدې شی، او د اکثريت دحرص اوهوس په مقابله کښې پدې کښې معقوليت هم کيدې شی. لهذا دا مقوله: داکثريت فيصلې څوک جوړول غواړی

په دې کښې دافاديت اوپاليسئ هم دومره کمې دې څومره چه دحقانيت کمې دې [1]

حکيم الامت قدس سرهُ په يووعظ کښې ارشادفرمائی: ((اول خوپه کثرت رائې کښې احمقان جمع کولې شی، ددې کثرت خودحماقت په طرف دې، بيادې نه هم اول خپلې رائې منلې شی او دسبق په شان وئيلې شی چه مونږ داوايو تاسودا وايئ، لکه څنګه چه وکيل ګواهانوته وائی، اوس هغه کثرت څه خاورې کيږی)) **(وعظ الانساء، ماخوذ ازاصلاح المسلمين ص ۵۱۰ مطبوع اداره اسلاميات، لاهور)**

(بعضې جمهوريت پسندو خلقو دحضرت رحمه الله تعالی دا تبصره يوه سطحې تبصره ګڼلې ده اوبعضې خلقو داهم وه وئيل چه دا ديو داسې بزرګ تبصره ده چه دهغه ميدان علم سياست نه وو. ليکن حقيقت دادې چه دحضرت نظر دخپلې ګوشه نشينی باوجوددزمانې په ژورو رګونوباندې وؤ ، ددې اصل ماخذ قران اوسنت وو اود وحی دې روشنائی دوئ ته هغه نورفراست ورکړې وو چه دهغې په ذريعه هغه دا مسائل په انتهائی سادګئ باندې بيان کړی دی کومه چه خلقويومستقله فلسفه جوړکړې ده. چنانچه دا تبصره هم دهغه فراست ايمانی نتيجه وه دسياست علم بيشکه د دوئ اصل ميدان نه وو، ليکن کوم څيز چه د رينښتونې وحی په نورسره معلوم شوې وی هغې ته درسمی علوموحاجت نه وی-

ليکن ددې علم سياست هغه ماهرين چاچه د پروپاګند نه دلږ آزاديدو دسوچ کولوکوشش کړې دې هغوئ هم بالآخره دې نتيجې پورې رسيدلی دی-

د ډاکټراې اپادو رائې په برصغيرکښې دخپلوسياسی تصانيفو دوجی نه خصوصی شهرت لری هغه د((جمهوريت)) تعارف او د هغې دکاميابئ په شرائطو باندې دبحث کولونه بعد ليکی:

((دجمهوريتونو تاريخ ئې داوئيلې دې چه داشرائط (چه دچاپه وجودباندې دجمهوريت کاميابی موقوف ده) شاذ اونادره ده - په عملی اعتبارسره جمهوريت په اصل کښې دجهالت دحکمرانئ نوم

دي - ددې ټوله توجه په کمیت اوتعداد (QUANTITY) باندې ده- کیفیت (QUALITY) باندې نده- په دې کښې ووټ شمارل کیږي په هغې نشي راتلې، دښاریانوډیرلوئې تعداد اوس هم حکومت دخپلو بنیادی وظائفو دزندګئ نه نه شی ګټلې، چنانچه دهغوئ دحکومت سره کومه خاص دلچسپی نشته، هغوئ کارکوی اولوبیږي، خپلی پیشې والا اوفنی کارونه سرته رسوی، اودا ونیلې شی چه هغه په اصل کښې دملک حاکم دي- په جمهوریت کښې دا حقیقی خطره موجود ده چه دښاریانوداسې ذهنی ترتیب نه شی موندې چه دهغې په ذریعه هغوئ ددې مسائلو دحقیقی مفهوم ادراک کولې شی چه دانتخاباتو په موقع باندې ددې سره دفیصلې دپاره راځی، لهذا هغوی طبقاتی جذباتو اودنعروسره ګمراه کیدلې شی- سرهزی مین تویهانتک وائی چه جمهوریت کله هم داکثریت دحکمرانئ نمائندګی نه شی کولې، ځکه چه قاعده داد ه چه عوام خومحض خپل لیډران تسلیموی»[1].

دمغر ب مشهور مؤرخ اوفلسفی (کارلائل) دې اقتباس د سیاست په علم کښې کافی شهرت موندلې دې:

(Surely of all "rights of mon" this right of the ignorant man to be guided by the wiser, to be, gently or forcibly, held in the true course by him, is the indisputablest. Nature herself ordains it from the first, society struggles towards perfection by enforcing and accomplishing it more and more ....... In rome and Attens, as elsewhere if you look practical we shall find that it was not by loud voting and debating of many, but by wise inright and ordering of a few that the word war done. So is it ever, so will it ever be")

«په انسانی حقوقو) کښې په یقینی طورباندې دجاهلوافرادوداحق دټولونه زیات غیرمتنازع دې چه عقل مند افراد ددوئ رهنمائی وکړی اودوئ په نرمئ سره یا دطاقت په زور په سمه لاره باندې برابرکړی، دفطرت دشروع نه همداحکم دې، ددې حکم په نافذولوسره اوددې زیات نه زیات په تکمیل کولوسره جامعه تر کمال پورې درسیدو جدوجهد کوی

که چرې مونږ له عملی نقطۀ نظره وګورو نو معلومیږی چه په روم او ایتهنزکښې دنوروممقاماتو په شان په اوچت آواز باندې رائې شمیرل او د ډیرو خلقود بحث اومباحثې په ذریعې نه ده بلکه د لږو افرادو په حکم سره کار چلیدلو، دا خبره له ډیر وخت نه ربښتونی ده، لهذا آئنده هم داخبره ربښتونی کیږی-»

---

۱- A. Appadorai, op cit p. ۱۴۳

## شخصی حکومت

حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سرهٔ په جمهوریت باندې تنقید کوی او په څومقاماتو کښې یی ددې په مقابله کښې د «شخصی حکومت» حمایت کړې دې- د نن په جمهوریت پرست دورکښې دشخصی حکومت حمایت کول دکفردکلمې په شان ملامت ګڼلې شی- لیکن ددې بنیادی سببونه دوه دی [۱] یو دا چه دجمهوریت په حمایت کښې یی پروپاګند په دومره زوراوشورسره کړې دې چه دکوم مخالف نظام حکومت باندې دسنجیدګئ سره په سوچ کولو باندې ذهن نه اماده کیږی. اودویمه وجه داده چه دشخصی حکومت «نوم راځی ذهن ددې مطلق العنان بادشاهانو په طرف ځی دچا ژبې چه دقانون حیثیت لرلواو په دې باندې بالاتره پابندی عائدنه وه، یا بیا ددې نوم نه دهغه فاشی حکمرانانوتصور راځی د چا په نزد چه دحکومت بنیاد صرف په زور او زبردستئ باندې وه- حالانکه حکیم الامت حضرت تهانوی قدس سرهٔ «شخصی حکومت» نه هغه «مثالی اسلامی حکمران» مراد اخلی لکه «امیرالمؤمنین» یاخلیفه دوخت چه ورته وئیلې شی-

ددې اجمال لږ غونتې تفصیل دادې چه په دُنیاکښې کوم غیر اسلامی شخصی حکومتونه رائج کیږی ددې دخرابیانو او مفاسدو اسباب په لاندې ډول دی:

(۱) ددې «شخصی حکومتونو» بنیاد په شاهی حکومتونو کښې عمومًا په خاندانی وراثت باندې بناء وو او د فاشزم په فلسفې کښې صرف په «قوت» باندې، چه دهغې مطلب دادې چه هرهغه شخص چه قوی وی په کمزورو باندې دحکومت حق درلودې شی.

لهذا ددې شخصی حکومتونوپه قیام کښې سنجیده غوراوفکراودمناسب انتخاب څه قابل ذکرکردارنه وو.

(۲) ددې شخصی حکمرانانودپاره کوم داسې لازمی صفاتِ اهلیة ضروری نه وو چه دهغې نه بغیر هغه دحکمرانئ ترمنصبه پورې نه شی رسیدلې.

(۳) داشخصی حکومتونه عمومًا دداسې آسمانی قوانینو پابندنه وو چه دهغې فیصلوته لګیدلی بندونه په حدودوکښې محدودشی-

لهذا قانون سازهغه خپله وو اودمطلق العنان کیدوپه بناء باندې دهغه ژبه قانون جوړه شوې وه

(۴) په دې حکومتونوکښې کومه داسې لازمی اداره موجوده نه وه چه ددې اقدامات، ددې صادرکړې شوی احکام اوددې جوړشوی قوانینوته کوم لګیدلی بندونه په معیارباندې ډک کړې شی او ددوئ دطرف نه دآسمانی قانون خلاف ورزی دخپلوحدودواختیارنه تجاوزیادکوم ظلم

---

۱- Chartism (۱۸۳۹) as quoted by Appadorai, op cit p. ۱۲۸

اوستم په صورت کښې ددې داقداماتو تلافی کولې شی۔

دا وو هغه اسباب چه دهغې په بناء باندې په شخصی حکومتونو کښې دخلقو حقوق پامال شو او انسان دانسان غلام جوړشو، اوکه نه نو که چیرې دا خرابیانې موجودې نه وای نو یو زیات شمیر ماهرین سیاست په دې خبره باندې متفق دی چه په شخصی حکومت کښې بذات خود څه خرابی نشته، دا دجمهوریت په مقابله کښې څه زیات کامیاب او دعوامو دپاره مفید ثابت کیدلې شی، تر دې ځایه پورې «روسونې» هم اعتراف کړې دې:

«دحکومت بهترین اودټولونه فطری انتظام دادې چه عقلمند ترین انسان ته په کثرت باندې حکومت کول پکاردی، پدې شرط چه ددې خبرې تضمین وشی چه هغه ددې اکثرو عوامو د مفادو لپاره کار کوی، نه د خپلو مفاد لپاره»[1].

کارلائل لیکی: «په هرملک کښې دهغه ځائ قابل ترین شخص پیدا کړئ، بیاهغه اوچت کړئ د اطاعت په اوچت ترین مقام باندې یی کښینوئ اودهغه عزت وکړئ، دارنګه تاسو ددې ملک دپاره یومکمل حکومت پیداکولې شئ، بیا «بیلټ بکس» وی اوکه پارلمان کښې کیدونکې فصاحت اوبلاغت یا رائې شماری یا دستورسازی یا کوم بل قسم ماشین آلات وی، په دې حکومت کښې کومه بهتره اضافه نه شی کولې، دا یومکمل ریاست کیږی اوهغه ملک یومثالی ملک جوړیدې شی»[2].

حکیم الامت حضرت تهانوی قدس سرهُ چه کوم«شخصی حکومت»داسلام تقاضاګڼي هغه دشخصی حکومت د پورتنیو مفاسدو نه خالې دې، هغه په دې معنی کښې بیشکه «شخصی حکومت» دې چه په دې کښې د جمهوری انداز پارلمان مختارِ کل نه دې او اختیارات دحکومت تر زیاته حده پورې «خلیفه» یاد«امیرالمؤمنین» په ذات کښې مرکوز دی.

لیکن دټولونه وړاندې خبره داده چه ددې «خلیفه» یا«امیرالمؤمنین» تعین دوراثت یادقوت په بنیاد باندې نه کیږی بلکه داهل حل اوعقد دانتخاب په ذریعه کیږی اوددې انتخاب دپاره«خلیفه» کښې دیوڅومعیاری اوصافوموندل ضروری دی چه دهغې نه بغیر داهل حل اوعقددپاره دکوم شخص انتخاب جائزنه دې- په دې اوصافوکښې دعلمی قابلیت نه علاوه دکرداراعلی ترین پوخوالې اودرائې اصابت هم داخل دې-

دنن سباپه جمهوریتونوکښې دسربراه دانتخاب دپاره عمومًا نه څه قابلیت شرط ګڼل کیږی،نه دکردار او عمل څه خوبی- لیکن د«خلیفه دپاره اسلام کښې نهایت ولاړشرطونه تجویزفرمائیلی

---

۱ - Roussian, The Social Contract bk ۱۱۱, Ch. V. as quoted by Appadorai, op cit p. ۱۲۷

۲ - G. N. Sabine, A History of political Theory p. ۷٦٤ (Appadorai p. ۱۲۲)

شوی دی او د اهل حل او عقد ئې دا فرض وظیفه ګڼلې ده چه هغوئ ددې شرائطو د مکمل اطمینان حاصلولو نه بعد د خلیفه انتخاب وکړی.

بیا دا خلیفه چه د اعلی ترین علمی او عملی اوصافو حامل دې مطلق العنان قانون ساز نشی کیدې، بلکه د قرآن او سنت او د اجماع امت پابند به وی . یا په بل عبارت : اسلامی حکومت قانون نه وضع کوی بلکه د یوداسې آسمانی قانون په بنا باندې مینځ ته راځی او هغه نافذکوی چه د کائناتو اعلی ترین ذات لخوا جوړشوې دې او د قرآن او سنت په صورت کښې محفوظ دې.

هو ! د قرآن او سنت په دائره کښې او سیدونکی انتظامی قوانین او احکام جاری کول د حکومت په اختیار کښې وی - لیکن ددې دپاره هم په دغه حکومت باندې دا خبره لازمه کړیده چه هغه شخص باید د داسې قسم اقداماتو دپاره د اهل شوری نه مشوره واخلی، ددې مشورې مقصد دا نه دې چه هغه په لازماً د کثرت رائې پابندی وکړی، بلکه ددې مقصد دادې چه د مسئلې ټول اړخونه مخې ته راشی او د دې ټولو اړخونو په نظر کښې نیولو نه وروسته خپل بهترین قابلیت استعمال کړی او د الله تعالی په مدد سره خپله فیصله وکړی.

ددې نه علاوه د حکومت د سرابراه هر اقدام، او د هغه هر حکم او د هغه جوړشوې هر قانون چونکه باید د قرآن او سنت تابع وی لهذا که چیرته کوم وخت دا سربراه د قرآن او سنت د احکامونه تجاوز وکړی یا د عدل او انصاف په خلاف څه کار وکړی نو د قاضی د عدالت نه ددې خلاف فیصله حاصلول د هر ادنی ښاری نا قابل تنسیخ حق جوړیږی.

ددې نظام حکومت ټول تفصیلات بیانول ددې مقالې د حدودو نه بهر دې، لیکن دلته و ښنا صرف داوه چه حکیم الامت قدس سرهُ په اسلام کښې د کوم «شخصی حکومت» چه ئې تذکره فرمائیلې ده په دې کښې دوړاندینو بادشاهانو او نوو فاشی حکمرانانو او د دیکتاتورانو د فسادونو بنیادی اسباب موجود نه دی.

حضرت حکیم الامت قدس سرهُ په جمهوریت او شخصی حکومت باندې خپل متعدد مواعظ او په ملفوظات کښې تبصره فرمائیلې ده چه د هغې نه غالبًا د ټولو نه جامع او مفصل بحث ئې په دې وعظ فرمائیلې دې چه د «تقلیل الاختلاط مع الامام» په نوم باندې شائع شوې دې- د هغې یو څو مختصر اقتباسات لاندې پیش کیږی؟

«حقیقت دادې چه کوم خلق د جمهوریت او سلطنت حامی دی هغوئ هم د شخصیت حامی دی، لیکن کله حقیقی وی، کله حکمی، د فلسفې مسئله ده چه مجموعه هم شخص واحد دې- لیکن هغه واحد حکمی دې، حقیقی نه دې، نو دا خلق چه د کوم پارلمان د فیصلو اتباع کوی هغې کښې په ظاهره ډیرکسان وی لیکن مجموعه چه یوځائ کړې شی نو شخص واحد دې، ځکه چه کوم قانون منظوریږی هغه د ټولو په رائې باندې منظوریږی په پارلمان کښې هم هرشخص آزاد نه دې چه څوک

رائې ورکړي هغه به کامیابوي ، که چیرې داسې هم وي کله چه دکوم قدرشخص دعوی صحیح وي. لیکن هلته خود پارلمان هم دهرشخص انفرادی رائې معتبره نه ده، بلکه اجماعی رائې معتبره ده اواجماعی رائې بیاشخصی رائې ده، ځکه چه ټول یوځائ کړې شی نو واحدحکمی ترې جوړیږي، خلاصه داشوه چه مونږ دشخصِ واحدحقیقی حامی یو اوتاسې ټول دشخصِ واحدحکمی حامی یئ - دجمهوریت حامی خوتاسوهم نه یئ، جمهوریت او کامله آزادی هغه وخت کیږي چه کله هر شخص په خپل فعل کښې آزاد وي ، او هیڅوك د بل چا تابع نه وي، نه دیوبادشاه، نه دپارلمان دلس ممبرانو، دا څه آزادی ده چه تا دلاکهونواوکروړونو کسان دپارلمان دلسو ممبرانود رائې تابع جوړکړل، مونږ دا ټول خلق دیوشخص غلامان جوړول او تاسې دلسو غلامان جوړکړل، تاسو فیصله وکړئ چه دیوغلام کیدل صحیح دی اوکه دلسو یاشلو؟ ظاهره ده چه په کوم شخص باندې دیو سړی حکومت وی هغه د هغه چا نه بهتردې چه په چاباندې دلسویا شلوحکومت وي.

دا د جمهوری سلطنت حاصل دې چه درعایاؤ دغلامئ نه خو هغه هم انکارنه دې کړې لیکن هغه دا وائی چه تاسودلسو یا شلوغلامی وکړئ اومونږ وایو چه صرف دیوغلامی وکړه»

وړاندې ارشاد فرمائی : «نظام علم بغیرددې نه نه شی قائمیدې چه په مخلوق کښې بعض تابع وی اوبعضې متبوع وی، د مطلقې آزادی نه فسادخوریږي، له همدې وجې نه دې خبرې ته راغلو چه دوئ ته دخپلې دعوی دآزادئ نه لرې کیدل پکاردې اوشریعت ته کله هم دخپلې دعوې نه لرې کیدل نه دی پکار.ځکه چه هغه خوداول نه دتابعیت اومتبوعیت حامی دې، هغه خودآزادئ سبق نه ورکوی ،د اولې ورځې نه د نبی داتباع حکم ورکوی چه په هغې باندې یې ټول مخلوق دیوتابع کړو، بلکه که چرې کوم وخت الله تعالی په یوه زمانه کښې دوه نبیان هم دیوقوم په طرف لیږلی دی نو په هغې کښې به هم یوتابع وو او بل متبوع ، چنانچه حضرت موسی اوهارون علیهما السلام په یوه زمانه کښې دوه نبیان وو،چه دبنی اسرائیلواوقوم قبط طرفته مبعوث شوی وو،لیکن په دې کښې حضرت موسی علیه السلام متبوع ووحضرت هارون علیه السلام تابع وو،دواړه په برابره درجه کښې نه وو او دا تابعیت صرف دضابطی تابعیت نه وو بلکه واقعی تابعیت وو چه حضرت موسی علیه السلام په حضرت هارون علیه السلام باندې پوره حکومت لرلو ، هغه دده مخالفت نه شو کولې»

نور هم زیاتوی او فرمائی چه :

«غرض دا چه په اسلام کښې جمهوری سلطنت هیڅ ځیزنه دې- په اسلام کښې صرف دشخصی حکومت تعلیم دې اودکوموفاسدوپه وجه باندې چه سلطنت قائم کړې شوې دې هغه په سلطنت شخصی کښې اگرچه احتمال لری لیکن په جمهوری حکومت کښې متیقن دی، په شخصی سلطنت کښې دا مفاسد بیانولې شی چه په دې کښې دیو شخص رائې ته ټول انتظام پرېښودلې شی چه

هغه څه غواړي هغه کوي، حالانکه ممکنه ده چه کوم وخت دده رائې غلطه هم وي - دې وجې نه دیو شخص په رائې باندې ټول انتظام نه دی پرېښودل پکار، بلکه دیو جماعت په رائې باندې کارکیدل پکاردی.

زه وائم چه څه رنګه دشخصی سلطنت دبادشاه په رائې کښې کله دغلطۍ احتمال وی دغه رنګ دجماعت په رائې کښې هم دغلطۍ احتمال شته، ځکه چه داضروری نه ده چه دیو شخص رائې همیشه غلطه وی او د لسورائې همیشه صحیح وی- بلکه داسې هم کیږی چه بعض اوقاتو کښې دیو شخص ذهن هلته رسیږی چرته چه د زرو کسانو ذهن نه رسیږی.

دعالم دنیا په ایجاداتو کښې شپه ورځ ددې مشاهده کیږی، ځکه چه څومره ایجادات دی، هغه اکثر دیو یو شخص دعقل نتیجه ده، چاځه ګټلی، چاځه ګټلی، یو سړی برقی تارایجاد کړو، بل سړی ریل ایجاد کړو، نو موجد اکثر یو شخص وی اودده ذهن هلته رسیږی چرته چه د زرګونو خلقو ذهن نه رسیږی.

په علوموکښې هم دا امرمشاهده شوې دې چه بعض اوقاتو کښې یو شخص کوم مضمون دارنګه صحیح حل کړی چه ټول شارحین او د محشیینوتقریرونه ددې مخې ته غلط ثابتیږی.

نودجماعت درائې غلطیدل هم احتمال لری، اوس وه وایه: «که چرې کوم وخت دبادشاه رائې صحیح شوه اودپارلمان رائې غلطه شوه نوعمل به په کومې باندې کیږی؟»

په جمهوری سلطنت کښې کثرت رائې باندې فیصله کیږی، بادشاه په خپله رائې باندې فیصله نه شی کولې، بلکه دکثرت رائې نه مغلوب وی ، دغلطې رائې په موافقت باندې مجبوریږی اوپه شخصی سلطنت کښې بادشاه په خپلې رائې باندې هروخت عمل کولې شی، اوپه جمهوری کښې که چرې کثرت رائې په غلطۍ باندې شوې وی نوصحیح رائې باندې دعمل کولوهیڅ صورت نشته، ټول مجبوردی دغلطې رائې په موافقت باندې، اودا څومره غټ ظلم دې، دې وجې نه داقاعده کلیه غلطه ده چه: «په کثرت رائې باندې فیصله کیدل پکاردی».

بلکه قاعده داکیدل پکاردی چه: «په صحیح رائې باندې دې عمل وکړې شی خواه که هغه دیوکس رائې وی».

وړاندې نور ارشادفرمائی: نو کوم خلق چه په کثرت رائې باندې دفیصلې مدارلری هغه بادشاهانوته دتنهافیصلې کولواختیارنه ورکوی، هغه داول نه داتسلیموی چه زمونږبادشاه داسې ضعیف الرائې دې چه دده تنها رائې قابل اعتبارنه ده، اوهغه نا اهل دې، نو واقعی کوم خلق چه نیل بادشاه داسې ګڼي مونږ دهغوئ سره خبرې نه کوو، دوئ ته دې جمهوریت مبارک وی. داسې نا اهل بادشاه هیڅ کله ددې قابل نه دې چه هغه دې دشخصی سلطنت بادشاه جوړکړې شی. په سلام کښې چه کوم دشخصی سلطنت تعلیم دې نودهغې سره داحکم هم دې چه: «اې اهل حل

اوعقد، اواې دعقلاؤجماعته ؛ بادشاه داسې شخص جوړکړئ چه دومره صاحب الرائې وی چه که چرې کله ددوئ رائې دټول عالم هم خلاف وی نوبیا هم دا احتمال پکښې وی چه شاید د ده رائې صحیح وی، او د چاپه رائې کښې چه دومره درایت نه وی هغه بالکل بادشاه جوړنه کړئ»

اوس او وایه: «دچارائې چه دومره مضبوطه وی چه دټول عالم په مقابله کښې هم دده درائې د حق ته رسیدو احتمال وی هغه دحکومت شخصی قابل دې اوکه نه؟

یقینًا قابل دې په دې شرط چه اهل حل اوعقدپه انتخاب کښې خیانت ونه اوکړي-

بس مونږ دشخصی سلطنت دې وجې نه حامی یو چه مونږ بادشاه قوی العقل،صاحب الرائې گڼو اوتا سو دکثرت الرائې ددې دپاره حامی یاستئ چه تاسوخپل بادشاه ضعیف الرائې اونا اهل گڼئ، نو د داسې شخص د بادشاه جوړولوضرورت څه دې چه دهغه دپاره دضم ضمیمه ضرورت وی؟ بلکه د اول نه بادشاه داسې جوړکړئ چه دضم ضمیمه محتاج نه وی- مستقل الرائې وی- اوکه چیرې تاسوهم خپل بادشاه مستقل الرائې، صائب العقل اومضبوط گڼئ نوبیاپه کثرت الرائې باندې دفیصلې مدارساتل اوکامل العقل دناقصینو د رائې تابع جوړول ظلم دې چه دهغې حماقت کیدل بدیهی دی.

بعض خلقوته داحماقت په فکر کښې راغلې دې چه هغه جمهوری سلطنت په اسلام کښې ورننویستل غواړی او دعوی کوی چه په اسلام کښې دجمهوریت تعلیم دې اوپه استدلال کښې دا آیت پیش کوی: ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾.

لیکن دا بالکل غلطه ده، دې خلقو د مشورې درجې ختمې کړې اوپه اسلام کښې چه دمشورې کومه درجه ده هغه بالکل نه پیژنی- په اسلام کښې دمشورې درجه داده چه یو ځل حضوراقدس صلی الله علیه وسلم حضرت بریره رضی الله عنها ته اوفرمائیل چه ته خپل خاوندته رجوع وکړه.

قصه داده چه حضرت بریره رضی الله تعالی عنها اول وینزه وه اوپه هغې حالت کښې ددې نکاح دیو شخص سره چه دهغه نوم مغیث وو ددې مالک کړې وه، کله چه هغه آزاده شوه نوداسلام دقانون مطابق دې ته دا اختیارورکړې شو چه کومه نکاح دغلامئ په حالت کښې شوې وه که چیرې غواړی نوهغه دې باقی وساتی، اوکه چرې غواړې فسخ دې کړی ، دشریعت په اصطلاح کښې دې ته اختیارعتق وئیلې شی، ددې اختیارپه بناء باندې حضرت بریره رضی الله تعالی عنها خپله سابقه نکاح فسخ کړه، لیکن ددې دخاوند له هغې سره ډیرمحبت وو- هغه دفراق په غم کښې دمدینې په کوڅوکښې په ژړا گرځیدلو- دحضورصلی الله علیه وسلم په ده باندې رحم راغلو اوحضرت بریره رضی الله تعالی عنها ته ئې اوفرمائیل: «اې بریره! څومره به ښه وی که چیرې ته خپل خاوندته رجوع وکړې»

نوهغې پوښتنه وکړه چه: «یارسول الله! داستاحکم دې اوکه ستاسو مشوره ده؟ که چرې حکم وی نوپه سرسترګو منظوردې اګرکه ماته تکلیف هم وی»

دوئ صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: «دا حکم نه دې صرف مشوره ده»

حضرت بریره رضی الله تعالی عنها صفاعرض اوفرمائیلو: «که چرې مشوره وی نوزه هغه نه قبلوم»

وګورئ! په اسلام کښې دا درجه دمشورې دې، که چیرې نبی اوخلیفه په اوله درجه کښې د رعایاؤ کوم شخص ته څه مشوره ورکړی نوهغه ته حق دې چه په مشوره باندې عمل ونکړی او دا دمحض ضابطې حق نه دې، بلکه واقعی حق دې، چنانچه حضرت بریره رضی الله تعالی عنها چه کله دحضورصلی الله علیه وسلم په مشوره باندې عمل ونکړو نوحضور صلی الله علیه وسلم لږ هم ناراض نه شو اونه دحضرت بریره رضی الله عنها څه ګناه وشوه، نه په دې باندې څه عتاب راغې - پس کله چه اُمت اورعایا دخپل نبی یا بادشاه په مشورې باندې دعمل کولودپاره په اسلام کښې مجبورنه دی نونبی یا خلیفه به درعایاؤ په مشوره باندې څنګه مجبورکیږی چه رعایاڅه مشوره ورکړی دهغې موافق دې عمل وکړی، او ددې خلاف به کله هم نه کوی؟

نو په ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ﴾ سره فقط دا خبره ثابته شوه چه حاکمان دې درعایاؤسره مشوره وکړی، دا ثابته نشوه چه دده په مشورې باندې دې ضرور عمل هم وکړی، اودغه رنګه دا نه ثابتیږی چه که چیرې کثرت رائې د بادشاه په خلاف شی نوهغه دې دکثیرینو په مشوره باندې دعمل کولودپاره مجبوروی. اوهرکله چه داثابته نشوه نو د «شاورهم فی الامر» نه جمهوریت هرګزنه شی ثابت کیدې، کله چه په اسلام کښې یومعمولی شخص هم دبادشاه په مشوره باندې مجبورنه دې نوتاسو بادشاه درعایاؤپه مشوره باندې ولې مجبورکوئ؟ او زمونږسره دحضرت بریره رضی الله تعالی عنها نه دلیل موجوددې چه دچاپه مشوره باندې عمل کول ضروری نه دی، اګرچه د نبی مشوره هم وی.

ددې نه داخبره ثابته شوه چه که چیرې حکام درعایاؤنه مشوره واخلی نوهغه ددوئ په مشوره باندې دعمل کولودپاره هرګزمجبورنه دې، بلکه عمل دې په خپله رائې باندې وکړی، خواه که هغه دټولې دنیا دمشورې خلاف وی- چنانچه په دې آیت کښې وړاندې ارشاددې: ﴿فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾ . یعنی چه دمشورې نه بعد کله ته دکومې خبرې اراده وکړې نوپه الله تعالی باندې توکل کولوسره په دې باندې عمل وکړه، دلته د «اذا عزمت» صیغه واحد ده، معلومه شوه چه په عزم کښې حضورصلی الله علیه وسلم مستقل وو- درانګه ددوئ نائب یعنی سلطان هم په عزم کښې مستقل دې- که چرې دعزم مدارپه کثرت رائې باندې وای نو «اذاعزمت» به ئې نه فرمائیلو، بلکه

ددې په ځائې به ئې: «اذاعزم اکثرکم فتوکلوا علی الله» به یې ویلی وای.
پس دکوم آیت نه چه داخلق جمهوریت باندې استدلال کوی دهغې اخیرجزپه خپله ددوئې ددعوې تردیدکوی- لیکن دهغوئ حالت دادې چه: «حفظت شیئا وغابت عنک اشیاء».
یوجزته گوری اودبل جزنه سترگې بندوی.
بل په دې آیت کښې صرف حاکمانو ته دا وئیلې شوی دی چه هغوئ درعایاؤسره مشوره وکړی- رعایاؤ ته خو ئې داحق ورنه کړو چه په خپله استحقاقًا حاکمانو ته مشوره ورکړی- خواه هغه مشوره واخلی اوکه وائې نه خلی، اهل مشوره به ددوئ په مشورې آوریدوباندې مجبوروی- چنانچه په شریعت کښې: «اشیروا الحکام وهوحقکم علیهم» چرته هم داسې نه دی وئیلی شوی.
چه کله رعایاؤ ته دخپل طرف نه دمشورې ورکولوځه حق په درجه دلزوم کښې پاتې نشو نو بیا په اسلام کښې جمهوریت له کوم ځائ نه راغې؟ ځکه چه جمهوریت کښې خوپارلمان ته دخپلې رائے ورکولوحق حاصل وی. که بادشاهان ددوئ نه رائې واخلی اوکنه»
(تقلیل الاختلاط مع الانام ص۹ نه تر۱۷ اواشراف الجواب ص۳۰ نه تر۳۱ مطبوع ملتان ومعارف حکیم الامت ص۶۲۰ نه تر۶۳۰)

## حکمرانی یوذمه داری ده نه حق:

بیا په غیراسلامی شخصی حکومتونوکښې او اسلام شخصی حکومت کښې یوبنیادی فرق دادې چه په غیر اسلامی معاشروکښې «شخصی حکومت» یو «حق» (PRINILEGE) یایوه فائده (ADVANTAGE) ده، له همدې وجې نه دا سوال پیداکیږی چه داحق باید چاته ملاؤشی؟ اوچاته ملاؤنه شی؟ اوددې دپاره خلق په خپله ددې دحصول دپاره یو له بل نه مخکښې والې کوی- ددې برعکس په اسلام کښې دایو«امانت» یا یو«ذمه داری» ده چه دحکمران دپاره اسبابو دعیش دفراهم کولو ذریعه نه ده بلکه په اوگو باندې د دُنیا اوآخرت دیو غټ بوج دسورولو مترادف دې- لیکن داپه خپله دکوشش کولوسره دحاصلولو ځیزنه دې بلکه داسې ځیزدې چه دهغې نه انسان دخپل استطاعت ترحده پورې ځومره چه تښتی دومره بهتره ده- له همدې وجې نه په اسلام کښې هغه شخص د«حکومت» دپاره نا اهل گڼلې دې چه په خپله ددې طلب گاروی ،چنانچه په اسلامی سیاست کښې دُ«اُمیدواری» (CANDIDATURE) ځه تصورموجودنه دې-

## دحکومت فرائض اوذمه داری

لهذاکوم شخص ته چه دا ذمه داری وسپارلې شی هغه ته ددې نقطهٔ نظرسره هغه سنبالول ضروری دی چه «حکومت» بذاتِ خود مقصودنه دې چه دهغې نه مقصود په هرحال کښې دخپل ځان اوچت کیدل ضروری وی، بلکه اصل مقصوددالله تعالی رضاء ده، لهذاکه چرې کله حکومت

اودالله تعالی خوشحال اوسیدلوکښې تعارض راضی نوهغه بلا تامل خپل حکومت دالله تعالی دخوشحالولو لپاره قربانوی- په دې سلسلې کښې حضرت حکیم الامت رحمه الله تعالی په یووعظ کښې فرمائی:

((یاد لرئې! سلطنت مقصودبالذات نه دې، بلکه اصل مقصود دحق رضاده، که چرې زمونږنه الله پاك راضی نه وی نو مونږ دسلطنت په حالت کښې فرعونان یو، اولعنت دې په داسې سلطنت باندې چه په کوم باندې مونږ دفرعون مشابه کیږو- که چیرې سلطنت مقصود بالذات وای نو فرعون، هامان، نمرود، شداد ټول غټ مقربان کیدل پکاروو، حالانکه هغه مردُود دی- معلومه شوه چه هغه سلطنت مطلوب دې چه هغې سره سره د الله تعالی رضا هم وی، اوپه کوم سلطنت کښې چه د الله تعالی رضاء نه وی هغه وبال دې، که چیرې زمونږنه الله راضی وی نومونږپه غټو بولو اوچتولوباندې راځی یو، اوپه داسې حالت کښې مونږ بادشاهان یو.

آیا حضرت ابراهیم بن ادهم رحمه الله تعالی ستاسوپه نزدپاګل او کم عقل وو؟ هغه ته خوسلطنت ملاؤشوې وو، بیائې ولې پریښودلو؟ صرف ددې دپاره چه په مقصودکښې خلل واقع کیدلو، معلومه شوه چه سلطنت په خپله مقصودنه دې، بلکه مقصودبل څیزدې چه که چرې په هغې کښې خلل واقع شی نوهغه وخت ترک سلطنت، سلطنت دې- حضرت ابراهیم بن ادهم رحمه الله تعالی دهرفن امام دې، په حدیثوکښې ثقه اومحدث دې، اوپه فقهاؤکښې فقیه، اوپه صوفیانو کښې خوامام دې، هغه ته څوک پاګل نه شی وئیلې، څوک چه هغه ته پاګل وائی هغه په خپله پاګل دې- بیا وګورئ چه هغه څه وکړل؟ کله چه یی دحق په رضاکښې سلطنت مزاحم ولیدلو نو بادشاهی یی پریښودله او له هغې نه جدا شو.

حضرت ابوبکر اوعمررضی الله تعالی عنهما لره مضرسلطنت مقصود نه وو نو ځکه حضور صلی الله علیه وسلم هغوئ ته اجازت ورکړو چه منصب خلافت قبول کړی، اوحضرت ابوذر رضی الله تعالی عنه دپاره مضر وو نودهغه دپاره حکم دا وؤ چه ((لاتلین مال یتیم ولاتقضین بین اثنین)) ددې نه صفامعلومه شوه چه سلطنت په خپله مقصودنه دې، بلکه مقصود د حق رضاء ده که چیرې په سلطنت سره مقصود ته نقصان وی نوهغه وخت ددې نه منع کولې شی)) (تقلیل الاختلاط مع الانام ص ۶۲، ۶۱، اشراف الجواب ص ۴۵۶، ۴۵۵)

لهذااسلامی حکمران ذمه داری ده چه هغه حکومت درضائ الهی د وسیلې جوړولودپاره په اسلامی احکاموباندې عمل او دهغې دنفاذ دپاره دخپل ځان دماتولو کوشش وکړی، اوکه نه نو دده حکومت محض بیکاره دې اوداسې حکومت پریښودل ناجائزاوحرام دې- لهذدده دافرض دی چه د انتهائی ذهانت سره دخپلو اقداماتو اندازه وکړی، اودشریعت په معامله کښې ادنی غفلت دبرداشت قابل نه کړی.

حضرت رحمه الله تعالی فرمائی «بادشاهان کوم چه تللی دی زمایه نزد د وړوکو شیانو داهتمام دغفلت نه تللی دی، ځکه چه دوړو وړوجزئیاتو دطرف نه کوم غفلتونه کیږی هغه ټول چه راجمع کړې شی بوه غټه مجموعه دغفلتونوترینه جوړیږی چه په آخره کښې رنګ راؤړی د سلطنت د زوال موجب کیږی، همدارنګه کله چه دوړو وړوخبرو اهتمام ونشی نو بیا انسان دغفلت عادی شی، بیا په غټوغټوأمورو کښې هم غفلت کوی، اوهغه براه راست مُخل دې دسلطنت» (اصلاح المسلمین ص ۱۷۹ بحواله الافاضات حصه هفتم ملفوظ ص ۲۵۹).

دمسلمان حاکم فرض لکه څرنګه چه دادې چه هغه په خپله دانصاف نه خلاف کوم کار ونه کړی، دارنګه دهغه فرض داهم دې چه هغه خپلوماتحتانوته هم دظلم نه کولو سبق ورکړی، حضرت رحمه الله تعالی فرمائی:

«حاکم یواځې دخپل احتیاط نه نجات نه شی موندلې، بلکه دهغې خبرې انتظام هم دده په ذمه باندې دې چه متعلقین هم باید ظلم ونه کړی، او دهغې صورت دادې چه په عام طورباندې اشتهار ورکړی چه زما په حکومت کښې رشوت بالکل نشته، له همدې وجې نه که چیرې زما دحکومت په خلقو کښې څوك هم دچانه رشوت وغواړی نوهرګزدې نه ورکوی، بلکه مونږته دې دهغې اطلاع وکړی، بیا د اطلاع نه بعدچه چا داسې حرکت کړې وی دهغه نه دې پیسې واپس کړی اوکافی سزادې ورکړی ........همدارنګه حاکمانو ته داهم پکاردی چه دخلقوتعلقات براه راست دخپل ځان سره وساتی دکوم شخص په واسطه ئې جوړنه کړی، ځکه چه داواسطه ډیرستم او ظلم خوروی- که چیرې څو وه وایئ چه صاحبه! داخو ډیره مشکله ده، نو مونږ وایو چه جناب! حکومت کول آسان نه دی، دا د خولې خبره نه ده بلکه هروخت دجهنم په غاړه باندې اوسیدل دی» (انفاس عیسی ص ۳۲۷ جلداباب ۴).

په اسلامی حکومت کښې دحکمرانانو اوعلماؤ په مینځ کښې دکارتقسیم کیدل پکاردی ؟ ددې په باره کښې حضرت رحمه الله تعالی فرمائی:

«په حضورصلی الله علیه وسلم کښې دوه شانه وو، شانِ نبوت اوشان سلطنت، له هغه نه بعد خلفاء راشدین رضی الله تعالی عنهم هم د دواړو جامع وو، لیکن اوس دا دواړه شانه په دوؤ ډلو باندې تقسیم شول، دشان نبوت مظهرعلماء دی او دشان سلطنت مظهر مسلمانان بادشاهان دی، اوس که چیرې دا بادشاهان دعلماؤنه استغناء کوی نو د حضورصلی الله علیه وسلم دیوشان نه اعراض لازمیږی، اوکه چیرې علماء دسلاطینو مخالفت کوی نو پدې سره هم دحضورصلی الله علیه وسلم دیوشان نه اعراض لازمیږی، اوس صورت د دواړو د جمع کولو دا دې چه بادشاهانوته زه داوائیم چه «هغوئ دې له خپل ځان نه کوم حکم تر هغه وخته پورې نه نافذ کوی تر څو پورې ئې چه دعلماء حق نه استفتاء نه وی کړې»

اوعلماؤته دا وائيم چه: ((هغوئ دې دنفاذ نه وروسته دهغې پابند وی)).

((که چرې دا دواړه شانونه چه دحضورصلی الله دی دغه شان جمع شی نو دمسلمانانو دخوشحالئ اودفلاح صورت به مینځ ته راشی، او د دوئ ډوبه شوې کشتئ له غرقیدو نه بچ شی اوکه نه نو الله تعالی ئې حافظ دې)) (اصلاح المسلمين ص ۵۳۶)

دمُباحاتو په دائره کښې اوسیدونکی دحکمران فرائضو کښې داهم داخل دی چه هغه عقلمند او تجربه کاروخلقو سره مشوره وکړی، لیکن دمشورې نه بعد چه کله د کوم جانب رُجحان ورته معلوم شی اودالله تعالی په مدد باندې د هغې مطابق فیصله وکړی نوپه ټولوخلقوباندې دهغې اطاعت واجب دې اگر که دهغوئ درائې خلاف وی.

حضرت رحمه الله تعالی فرمائی: ((سلطان ته پکاردی چه همیشه دعقلاؤنه رائې واخلی، بغیر د رائې اخستلو نه ډیرې خبرې دنظرنه غائبیږی ، اودامشوره اورائې خومطلوب ده، لیکن دامخترعه متعارفه تش په نامه جمهوریت محض چل اودوکه ده، بالخصوص داسې جمهوری سلطنت چه دمسلم اوکافر له ارکانو نه مُرکب وی هغه خو بالکل غیر مُسلم سلطنت دې ، داسې سلطنت اسلامی سلطنت نه شی گنلې))

په دې باندې یوصاحب عرض وکړو چه که چیرې دسلطان دمشورې اخستوپه وخت په اهل شوری کښې داهل رائې ترمینځ اختلاف راشی نودهغې متعلق څه حکم دې؟ آیا دسلطان درائې نه اختلاف کول خومذموم نه دې،په دې باندې یې اوفرمائیل: ((کوم اختلاف چه په حکمت اومصلحت اوتدین اوخیرخواهئ باندې مبنی وی هغه مذموم نه دې، لیکن دهغې هم یوحددې، یعنی دا اختلاف هغه وخت پوره جائز دې تر څو پورې چه دمشورې درجه وی، لیکن وروسته له نفاذ نه دا اختلاف کول یا له هغې نه خلاف کول مذموم دی ،د نفاذ نه بعد خو اطاعت واجب دې))

(الافاضات اليومية ص ۱۱۲،۱۱۱ جلد۳ ملفوظ ۲۵۲)

داپه حقیقت کښې ددې قرآنی آیت توضیح ده چه په هغې کښې باری تعالی ارشادفرمائیلې دې:

﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾

اوددوئ سره په معامله کښې مشوره کوه، اوکله چه کوم عزم وکړئ نوپه الله تعالی باندې توکل کوئ))

## (۳) ددین داقامت دپاره دسیاسی جدجهدشرعی مقام او دهغې حدود

دریمه موضوع چه په هغې باندې په دې مقالې کښې دحضرت حکیم الامت قدس سرهُ ارشادات پیش کول مقصوددی هغه داده چه آیا دمسلمانانو دپاره ضروری ده چه دیوصحیح اسلامی حکومت قیام اودغیراسلامی دطاقتونودشرنه ددفاع دپاره جدوجهد وکړی؟ که چرې ضروری وی

نوددې جدوجهد کوم حدود دی ؟ په دې موضوع باندې حضرت رحمه الله تعالی یوه مستقله رساله د«الروضة الناضرة فی المسائل الحاضرة» په نوم باندې لیکلې ده ، چه په هغې کښې په أصولی طورباندې دسیاسی جدوجهدشرعی حیثیت هم واضح شوې دې اودخپلې زمانې دسیاسی حالاتوپه باره کښې یی خپله رائې هم ظاهره کړیده ده- دا رساله مختصره لیکن ډیره معززه اوجامعه ده- لیکن چونکه داهل علمو دپاره ئې لیکلې ده ، له همدې وجې نه په دې کښې ئی علمی اواصطلاحی اسلوب اختیارکړې دې- په دې کښې حضرت رحمه الله تعالی فرمائی:

«د کفارو دفاع مطلقًا له اهل اسلام نه، اوخصوصًا له اسلامی سلطنت نه چه په هغې کښې دخلافت اوغیرخلافت، په کو م کښې چه دسلطنت اسلامی واقعی اوسلطنت اسلامی مزعومه کفارټول داخل دی، بیادخصوصی شعائراسلام نه په کوم کښې چه مقامات مقدسه،بالخصوص حرمین شریفین هم داخل دې، په ټولو مسلمانانوباندې د دې دفاع فرض ده، کله علی العین کله علی الکفایة علی اختلاف الاحوال، لیکن ددې دفرضیت یو څه شرائط دی چه هغه دفقه په کتابونو کښې ذکردی.

منجمله ددې یوشرط استطاعت هم دې، او د استطاعت نه مراد استطاعت لغویه نه دې بلکه استطاعت شرعیه دې، کوم چه دې حدیث صفاکړې دې: **عن ابی سعید الخدری رضی الله تعالی عنه عن رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: من رای منکم منکرًا فلغیره بیده فان لم یستطع فبلسانه ــ الحدیث، رواه مسلم (مشکوة، باب الامر بالمعروف)**

ظاهره ده چه استطاعت باللسان هروخت حاصل وی ، بیا ددې دانتفاء تقدیرکله محقق کیږی؟ ددې نه ثابته شوه چه داستطاعت نه مراد دادې چه په دې کښې دا خطره نه وی چه دهغې مقاومت په ظن غالب سره عادةً ناممکن وی.

دغه رنګې یوشرط داهم دې چه ددې دفاع نه بعدددې نه په زیات شرکښې مبتلاء نه شی، مثلاً دکفارو په ځایونوباندې کفارمسلط وی یا د کافر او مسلمان نه مخلوط هوی، چه مجموعه تابع اخس کیږی، ځکه چه په دې صورت کښې غایت مقصوددې، اوهغه اخلاء الارض من الفساد دې، اوقاعده ده چه: **الشیٔ اذاخلاعن الغایة انتفی-**

اوکه چرې داسې خطره وی نوبیا وجوب خوساقط کیږی، او په جواز کښې یی تفصیل دې، په بعضې صورتونوکښې جوازهم نشته، په بعض کښې جواز مستحب دې- اومدار د بناء دجواز او یا عدم جواز اویااستحباب په اجتهاد د رائې باندې دې- پس په دې کښې ددوؤ اختلافاتو ګنجائش دې : یوعلمی چه دواقعاتونه دیو شخص په نزد عدم جواز محقق دې اودنوروپه نزد جواز یا استحباب.

اودویم عملی چه په جواز یا استحباب باندې دمتفق کیدو نه وروسته یو په رخصت باندې عمل وکړو، اودویم بنابراستحباب په عزیمت باندې عمل وکړو- یو لره په بل باندې دملامت کولوحق نشته-

اوکه چرې په کوم مقام باندې تسلط دمسلمانانووی، لیکن هغه دکافرنه مسالمت لری نودې ته تسلط دکافروئیل محل تامل دې» (افاداتِ اشرفیه در مسائل سیاسیه ص۱۰)

**خلاصه :**

که چرې استطاعت وی اود لویٔ فساد اندیښنه نه وی نودا جدوجهد واجب دې کله علی العین اوکله علی الکفایة، لیکن که چیرې دکوم لویٔ فساد اندیښنه وی یا استطاعت نه وی نوواجب نه ده، لیکن په مختلفوحالاتوکښې جائزیامستحب کیدلې شی اوددې تعین کښې داهل علموآراء هم مختلف کیدلې شی اودا اختلاف آراء اګرچه داخلاص سره وی نونه مذموم دی او نه په دې کښې چاته په دویم باندې دملامت کولوحق دې-

لیکن چونکه ددین مقصوداصلی سیاست نه دې، بلکه دیانت اوددې په ذریعه درضایٔ الهی حصول دې ، لکه چه دمقالې په شروع کښې د حضرت حکیم الامت رحمه الله تعالی په الفاظوکښې ددې تفصیل عرض کړې شوې دې، له همدې وجې نه هرقسم سیاسی جدوجهد دشرعی احکامو په دائره کښې کیدل پکاردی، دسیاسی مقصد دحصول دپاره ددین کوم معمولی نه معمولی حکم یا تقاضا هم قربانول جائزنه دې، او دا هغه وخت ممکن دی کله چه جدوجهد کولووالا دپوره اخلاص اوللهیت سره صرف ددین حق دسر بلندئې او د باری تعالی درضا حاصلولوپه نیت باندې داجد اوجهد کوی اوصرف دجاه اوجلال حصول دهغه مطمح نظرنه وی اوهغه دسختو نفسانی تقاضو باوجود خپل ځان دشریعت په تابع کولوقادروی ،اوکه نه نو سیاست داسې خوارااو زاردې چه په هغې کښې قدم په قدم باندې دنوم اوجاه اومال فتنې پیداکیږی، دنفس اوشیطان تاویلات په انسان باندې یلغارکوی اوعامو اوقاتو کښې هغه ددې ټولومحرکاتوسره په هغې لارې باندې روانیږی چه په هغې باندې دنیا قربان ده،او په مزه مزه هغه سیاست دسیاست اسلامی په ځایٔ لادینی سیاست کیدې شی-

## سیاسی جدوجهد اود اخلاقو تزکیه

لهذاددې جدوجهد اول شرط دادې چه دانسان داعمالو او اخلاقو تزکیه باید شوې وی- اوددې نه جذبات اوخیالات داعتدال په چوکاټ کښې جمع شوی وی- همدا وجه ده چه حضرت محمدصلی الله علیه وسلم درویشت کاله عهدنبوت کښې ابتدائی دیارلس کاله داسې تیرکړې دی چه نه په دې کښې څه جهاد دې نه حکومت اوریاست دې، نه کوم قسم سیاسی جدوجهد دې، څوک که چیرې

وهل کیږی اوتکلیفونه ورکول کیږی نودهغې جواب کښې هم دلاس اوچتولو اجازت نشته اوددې په ځای دمسلسل صبرتعلیم اوتلقین جاری دې، دا دیارلس کاله تعلیم اوتربیت اوتزکیه او داخلاقو کالونه دی، دمجاهدات نفس له دې سختې مرحلې څخه دتیریدونه بعدپه مدنی زندګئ کښې حکومت اوسیاست او دجهاد او قتال سلسله شروع شوې ده، حضرت حکیم الامت قدس سره داحقیقت واضح کوی او فرمائی چه:

«وګورئ! ددې په تائید کښې یوه باریکه نکته درته ښایم اوهغه دا چه مسلمانانوته په مکه کښې داوسیدو په وخت کښې دقتال اجازت ونه شو او کله چه مدینې ته ورسیدل نو اجازت ورته وشو. ددې څه وجه ده؟ ظاهره کښې دا ګڼلې شی چه دجماعت لږوالې اود اسبابو لږوالې ددې سبب وو، لیکن دا خبره خلاف تحقیق ده. ځکه چه کله مسلمان مدینې ته ورسیدل نو آیا جماعت زیات شوې وو؟ بلکه دومره نه وؤ زیات شوې او دکفاروبیاهم غلبه وه- دمدینې ټول جماعت دټولوعربوپه مقابله هیڅ څیز نه وو؟ بلکه که چرې دا وکتلې شی چه دټول عالم د کفارو په مقابله کښې د جهاد اجازت شوې وو، بیانومدینه څه چه ټول عرب هم لګ وو، همدارنګه کله چه دوئ مدینې ته ورسیدل نو آیا په سامان کښې یې څه زیاتې شوې وو؟..........دنصوصونه په خپله معلومیږی چه دمسلمانانوجماعت دکفاروپه مقابله کښې په اکثرومواقعوکښې دومره اندازه کم شوی وو چه دملائکو صف به ورسره یوځای کیدلو...... او دا صورت دملائکوپه مکه کښې اوسیدل هم ممکن وو لیکن بیاهم ددې صورت په اختیارکولوسره یې هلته اجازت ورنه کړو، نوددې معلومیږی چه د دې څه بله وجه وه، اهل ظاهر ددې شافی اوکافی وجه نشی وئیلې

محققینو فرمائیلی دی چه اصل خبره داوه چه په مکه کښې دعامومسلمانانودننه اخلاق حمیده داخلاص اوصبر اوتقوی په کامل طوربانديې راسخ شوی نه وو، دې وخت که چیرې دقتال اجازت شوې وای نوټوله مقابله به دغضب اوجوش او د انتقام للنفس لپاره شوې وه ، صرف داخلاص اواعلاء کلمة الله دپاره به نه وه، په دې حالت کښې به هغوی ددې قابل نه وؤ چه دملائکوجماعت دې ددوئ امداد وکړی اوحمایت الهی دې ددوئ شاملِ حال شی - چنانچه په آیت مذکوره کښې د ((بَلٰى إِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا)) شرط لګولې شوې دې چه حمایت الهی په دې شرط سره متوجه کیږی ځکه چه مسلمان په صبراوتقوی کښې راسخ وی، اودتقوی معنی ده : **احتراز عما نهی الله عنه وامتثال ما امربه** چه په هغې کښې اخلاص اواحتراز عن الریاء وعن شائبة النفس هم داخل دی، اومدینې ته چه کله ورسیدل نو دا اخلاق راسخ شوی وو- مهاجرینو په مکه کښې د اوسیدو په وخت کښې دکفارو په ایذاء باندې صبرکولوسره دنفس مقاومت آسان شوې وؤ، همدارنګه قوت غضب نفسانی یې ضعیف بلکه زائل شوې وو-

بیاهجرت په وخت کښې کله چه دوئ په خپل وطن، اهل اوعیال اومال اودولت تولوباندې خاورې واچولې نو ددوئ محبت الهی کامل شو، اومحبت دنیا ددوئ دزړونو نه بالکل وه وتلو- دمدینې انصارو په خوشحالئ خوشحالئ سره دغه حضرات مهاجرین په خپلو اموالو اومکاناتو کښې شریکول غوښتل.

غرض داچه د هجرت د واقعې نه دمهاجرینو او انصارو دواړو امتحان وشو چه په هغې کښې هغه کامل شول - ددې نه بعد ئې دوئ ته دقتال اجازت ورکړو چه اوس که څه څوك قتال کوی نو صرف دالله تعالی دپاره به ئی کوی، دغضب ، جوش او د انتقام دخواهش اود د غیظ او د شفاء دنفس دپاره به څه نه کوی. هغه وخت دا خلق د دې قابل کیږی چه حمایت الهی دې له دوئ سره وی اوملائکې د رحمت دې ددوئ مدد وکړی- چنانچه دحضرات صحابهٔ کرامو رضی الله تعالی عنهم واقعات په دې باندې گواه دی چه هغوئ هرڅه کوَل دالله تعالی دپاره ئې کول تردې چه په مثنوی کښې ذکر دی چه یوځل حضرت علی رضی الله تعالی عنه یویهودی دقتال په معرکه کښې رالاندې کړو اود ذبحې اراده ئې وکړه – مړکوونکې یعنی حضرت علی رضی الله عنه لا تر اوسه څه نه وو کړی لیکن هغې کم بخت ددوئ په چهرې مبارکې باندې لاړې توکړې- اوس پکاروو چه حضرت علی رضی الله تعالی عنه هغه فوراً قتل کړې وای ، لیکن دتُوکلونه بعد دوئ فوراً دهغه دسینې نه پاسیدلو- اوفوراً ئې هغه پریښولدو- هغه یهودی ډیر حیران شو، اودحضرت علی رضی الله تعالی عنه نه ئې دهغې وجه وپوښتله چه تاخو زه کافروگڼلم او زما قتل کول دې وغوښتل نو په تُوکلودې ولې پریښودم ؟ حضرت علی رضی الله تعالی عنه ورته اوفرمائیل:

((خبره داده چه اول ځل ماپه تاباندې حمله وکړه نوهغه وخت د الله تعالی د رضاء نه زما بل څه مطلوب نه وو- اوکله چه تا په ماباندې لاړې تُوکړې نو زما دغصی او د انتقام جوش پیداشو، ما وکتل چه اوس زماقتلول تالره صرف دالله تعالی دپاره نه دی بلکه په دې کښې دنفس هم دخل کیږی اومانه غوښتل چه دنفس دپاره په کارکولوسره خپل عمل ضائع کړم نو له همدې وجې نه مې ته پریښودلې)).

هغه یهودی فوراً مسلمان شو اوپوهه شو چه واقعی دامذهب حق دې چه په هغې کښې دشرك نه په دومره درجه نفرت ښودلې شوې دې چه باید هیڅ یو کاردنفس دپاره ونه کړی- بلکه صرف دالله تعالی دپاره باید هرکارکوی- په دوستئ اودشمنئ کښې هم دنفس د خواهشاتو نه هم دا خلق بند شوی دی.

اوس زمونږداحالت دې چه کوم خلق دخدمت اسلام دعوی کوی په هغې کښې اکثرهغه خلق دی چه دنفس په واسطې کارکوی، دخپلو ذره ذره کارنامې په مجلو او اخبارونوکښې شائع کوی، داحکام الهیو پروا نه کوی- پس ددې مقصود دادې چه دوي کارکیدل غواړی خواه دشریعت

موافق وی یامخالف، په چنده کښې دجائزاوناجائز پروا نشته، په صرف کښې دحلال اوحرام خیال نشته، نو بیابه حمایت الهی له دوئ سره څنگه ملگرې شی؟ بلکه اوس خو دا وئیلې شی چه «ملا صاحبه! مسئله اومسائل اوس پریږده داوخت خوکارکول پکاردی». وروسته په له مسئلې او مسائلو سره کتلې شی- «اناالله وانا الیه راجعون» دې صاحبانوته داخبره نه ده معلومه چه دمسئلې اومسائلو نه بغیر خومسلمان ته نه دنیوی فلاح نصیب کیدلې شی اونه أخروی، او د ټولونه زیات د اخلاص دنیت ضرورت دې چه هغه دلته صفردې»

(وعظ محاسن اسلام درمجموعه مواعظ «محاسن اسلام ص۳۸۰، مطبوعه ملتان»

داخبره مشهوره ده چه حضرت حکیم الامت قدس سرهٗ دهندوستان دسیاسی تحریکاتونه جدا او لرې وو، په هغه وخت کښې یوصاحب دا پیشنهاد وکړو چه مونږ تالره امیرالمؤمنین جوړوو او تاسو زمونږ قیادت وکړئ - حضرت رحمه الله تعالی ددې پیشنهاد د مناسب جواب ورکولونه بعداوفرمائیل: «دټولونه اول چه څوک امیرالمؤمنین شی اوحکم کوی نو هغه دادې چه لسو کالو پورې دې ټول تحریکونه او شوراوغالمغال بند شی ، په دې لسوکالوکښې دې دمسلمانانو د اصلاح کوشش کولې شی، کله چه دا قابل اطمینان شی بیابه مناسب حکم ورکوی»

(الافاضات الیومیه ص ۷۶ ج۳ ملفوظ ۹۸ ملقب به تدبیر الفلاح)

که چیرې مونږ د حقیقت پسندئ په رڼا کښې دخپلوحالاتوجائزه واخلو نومحسوسیږی چه حضرت حکیم الامت قدس سره په دې اقتباس کښې زمونږپه خوزیدونکی رگ باندې لاس ایښې دې. که چیرې نن زمونږدسیاست غوایه په منډهی کښې نه خرڅیږی نودهغې بنیادی سبب دادې چه مونږ دمکی زندگئ د دیارلسو کالو هغه حالت پریږدو او د مدنی زندگئ د اولې ورځې نه د خپلې زندگئې آغازکول غواړو- مونږ خپل ځان په اخلاقی اوروحانی اعتبارسره دتیارولونه بغیر داصلاح قوم بیرغ په لاس کښې اخلو او ولاړیو- مونږته داهم معلومه نه ده چه دا بیرغ څه رنگه نیول پکار دی؟ نه مونږه ته دا معلومه ده چه ددې دسربلندولوطریقه څه ده؟ نه مونږددې کارڅه تربیت حاصل کړې دې- مونږ فقط د نوروقومونو دخپلوسیاسی مقاصدو دحصول دپاره جهنډه اوچته کتلې ده نو د هغوئ پیښې مونږ هم شروع کړی دی، نتیجه داده چه زمونږ د سیاسی جدوجهد طرز او انداز، زمونږدکوششونوطریقه، کار، زمونږ اختیارکړې شوی تدبیرونه تقریباً ټول په ټوله هغه دی چه مونږ دنورو قومونونه مستعاراخستی دی اوبغیر له دې نه چه په صحیح اودرست شریعت باندې برابر کړو مونږ په غلط فهمئې کښې مبتلاء شوی یو او وایو چه کله ددې طریقو نه لادینی سیاست کامیابیدې شی نو اسلامی سیاست هم دکامیابئې ترمنزل پورې رسیدلې شی- حالانکه اسلامی سیاست په لادینی سیاست باندې قیاس کول دکجهورو ونې په کوهی باندې دقیاس کولومترادف دی.

## سياسی تدبيرونه

حضرت حكيم الامت قدس سرهُ خپل تصانيف اومواعظ اوملفوظاتوكښې ځاىٔ په ځاىٔ په دې خبرې باندې زور وركړې دې چه په اسلامی سياست كښې صرف د مقصد نيک کيدل اودشريعت موافق كيدل كافى نه دى، بلكه ددې طريقهٔ كاراو ددې دتدبيرونه هم دشريعت مطابق كيدل ضرورى دى- كه چيرې كوم شخص دا غوارى چه هغه دشريعت احكام شاته وچوى اوددې په مخالفت كولوسره اسلامى حكومت قائموى نوهغه په داسې خام خيالىٔ كښې مبتلاء دې چه دهغې نتيجه دمحرومىٔ نه سِوا بل څه نه ده- كه چيرې دارنګه كوم حكومت قائم هم شى نوهغه اسلامى حكومت نه دې، بلكه داسلامى حكومت په نوم دهوكه ده-

لكه څنګه چه دمقالې په شروع كښې دحكيم الامت رحمه الله تعالى ارشاد ناقابل انكار دلائلوسره تيرشوې دې په اسلام كښې سياست اوحكومت بذات خود مقصود نه دى، بلكه داصل شريعت اتباع اودهغې په نتيجه كښې د الله تعالى د رضاء حصول مقصود دې، له همدې وجې نه داطرز فكر داسلام په دائرې كښې نه شى داخليدې چه داسلامى حكومت دقيام په جدوجهد كښې داسلام بعضې احكام نظرانداز شى او د اعلى مقصد دحصول دپاره د شريعت جزئى احكام قربان كړې شى د دې په ځاىٔ د مسلمان كار دا دې چه هغه د شرعى احكامو په دائره كښې جدوجهدوكړى او د هر هغه طريقې نه خپله لمن بچ كړى چه دهغې نه دكوم شرعى حكم خلاف ورزى كيږى- دمسلمان دكاميابىٔ راز په اتباع دشريعت كښې دې - په دې باندې دنصرت الهى وعده شوې ده، لهذا كاميابى به ان شاء الله په همدې طريقې باندې كيږى- اوكه چيرې بالفرض دكوم شرعى حكم دپابندئې دوجې نه ظاهراً كومه كاميابى حاصله نشى ، نو بياهم مسلمان ددې نه زيات مكلف نه دې، نه ددې ناكامىٔ ذمه دارى په ده باندې عائدكيږى اونه به په آخرت كښې په دې ناكامىٔ باندې له ده نه پوښتنه كيږى - كه چيرې هغه دشريعت په فرمان باندې ځى نوهغه په پوره شان كامياب اودالله تعالى له طرفه داجرمستحق دې اود ده د زندګىٔ اصل مقصدپه پوره شان حاصل دې-

لهذا دسياسى جدوجهدپه دوران كښې هرتدبيراودهرقدم په باره كښې دا اطمينان كول ضرورې دى چه آيا هغه دشريعت له نقطهٔ نظر نه جائز دې اوكه ناجائز؟ د يو تدبيردااختيارولودپاره صرف دومره خبره كافى نه ده چه دغه تدبير دموجوده سياست په دنياكښې عام رواج دې او يا هغه په سياسى تحريكونو كښې ډيرمؤثر ثابت شوې دې، اوهغه دنن په سياست كښې بې مثله او بې مثاله ګڼلې شى-

كه چيرې دغه تدبير داُصول شرعيو په اعتبار سره جائزنه وى او يا په شرعى مفاسدوب اندې مشتمل وى اګركه دموجوده سياست علمبرداران هغه ډير ضرورى هم ګڼى خو بيا هم هغه هيڅ كله

اختیارول ندی پکار، ځکه چه سیاست مقصودنه دې بلکه دشریعت اطاعت مقصوددې
دسرداردوعالم صلی الله علیه وسلم سیرت طیبه اودصحابه کرام رضی الله تعالی عنهم حالاتو کښې داسې بې شماره مثالونه ملاویږی چه په هغې کښې دوئ صلی الله علیه وسلم یا د دوئ صلی الله علیه وسلم پاکباز صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم دمؤثرنه مؤثرتدبیرونه صرف ددې دپاره پریښودل چه هغه دشریعت خلاف وو-
دغزوهٔ بدر په موقع باندې چه کله دحق اوباطل اول فیصله کن جنګ راپیښ شو، اودرې سوه دیارلس بې سراوسامانه صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم ددومره غټ طاقت سره ټکروهلوته تلل نو د یویو شخص غټ قدراوقیمت وو اوپه قدرتی طورباندې په نفری کښې لګ غونتې اضافه هم په کامیابئ کښې مؤثرکیدله، په دې موقع باندې د حضرت حذیفه بن یمان رضی الله تعالی عنه غونتې قربانئ والاصحابی اودهغه پلارپه لښکرکښې شاملیدل غوښتل لیکن آنحضرت صلی الله علیه وسلم هغوئ په دې بناء باندې په جهادکښې دشامل کیدونه بندکړل چه د راتلوپه وخت دوئ کفارو ګرفتارکړی وو-او د هغه وعدې مطابق یې پریښې وو چه دوئ به د آنحضرت صلی الله علیه وسلم مددنه کوی، آنحضرت صلی الله علیه وسلم دوئ دجهاد دشرکت نه بندولو سره اوفرمائیل :

**نفی لهم بعهدهم ونستعین الله تعالی علیهم-**

یعنی مونږدهغوئې سره کړې وعدې پوره کوواودهغوئ په خلاف دالله تعالی نه مددغواړو-
**(صحیح مسلم ص ۱۰۶، ج ۲، سیراعلام النبلاء ص ۳۶۲، ۳۶۳ ج ۲ والاصابة ص ۲۲۳ ج ۲)**

په دې غزوې کښې یو نهایت تجربه کارمشرک سړې چه په خپلې بهادرئ اوجنګجویی کښې مشهوروو، له دوئ صلی الله علیه وسلم سره په جنګ کښې شامل کیدل غوښتل، لیکن دادحق اوباطل اوله معرکه وه اوپه دې اولې معرکې کښې دکوم کافر مدداخستل داسلام دپاره مناسب نه وو- چنانچه هغه وخت حکم داووچه دکافرانونه دې مددوانه خستلې ش- له دې وجې نه حضرت صلی الله علیه وسلم دهغوئ هم په جنګ کښې دشاملیدونه انکاراوفرمائیلواو ارشادئې اوفرمائیلو چه : **ارجع فلن استعین بمشرك**

یعنی زه دکوم مشرک نه هرګز په جنګ کښې مدد نه اخلم، (**جامع ترمذی، کتاب السیرباب فی اهل الذمه یغزون مع المسلمین**).

دخلفاء راشدینورضی الله تعالی عنهم مقام خو ډیر اوچت دې- له هغوئ لاندې صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم هم په دې اصولوباندې همیشه پابند وو- د حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه درومیانوسره دجنګ بندئ معاهده وه دهغې دمودې ختمیدونه اول حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه خپل فوجونه په سرحدباندې واچول اودمدت ختمیدوسره ئې حمله وکړه- رومي خلق په

ناخبرئ کښې وو دې وجې نه پسپسې شروع شوې - اوحضرت معاویه رضی الله تعالی عنه فاتحانه مخ په وړاندې تللو، په دې کښې حضرت عمروبن عبسه رضی الله تعالی عنه دشا له طرف نه آس غلونکې را ورسیدلو اوحضرت معاویه رضی الله تعالی عنه ئې منع کړو، هغه یوحدیث اوفرمایلو چه دهغې په رویه باندې داحمله شرعًا جائزه نه وه- حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه په دې پوهیدلو چه حمله چونکه دجنگ بندئ ختمیدونه بعدشوې ده له دې وجې نه دا په عهدشکنئ کښې داخله نه ده-لیکن دحدیث په آوریدو باندې د تاویل په ځائ دخپل پوره لښکرسره واپس شو.

(جامع ترمذی، ابواب السیر، باب ماجاء فی الغدر)

کوم سپه سالار د لښکرچه دخپلې کامیابئ نه بعد د فتح په نشه کښې مخ په وړاندې ځی- هغه دخپلې کامیابې حملې منع کول او حصارول مشکل ګڼی- لیکن حضرت معاویه رضی الله عنه د دې حدیث په آوریدو سره هغه مفتوحه علاقه هم واپس کړه- نو معلومه شوه چه په اسلام کښې چونکه مقصد سیاست اوحکومت نه دې بلکه د شریعت اطاعت مقصود دې ،نو له همدې وجې نه کله چه ورته دتدبیر دناجائزکیدو علم حاصل شی نو له ټولو تدبیرونو نه دستبردارکیږی.

غرض زمونږ تاریخ دداسې ښائسته مثالونونه ډک پروت دې چه په هغې کښې مسلمانانو دمؤثرنه مؤثرتدبیردپاره هم دشریعت ادنی خلاف ورزی مناسب نه ده ګڼلې بلکه هغه تدبیر یې پریښې دې او له شریعت نه یې خلاف ورزی نده کړې.

لهذا په اسلامی سیاست کښې دجدجهد دتدبیرونوشرعاً جائزکیدل ضروری دی لیکن نن سبا عموماً دسیاسی جدوجهددوران روپه رودنظرونونه بالکل پناه کیږی، کوم تدبیرونه چه د بې دینه سیاستمدارانو له خوا نه اختیارکړې شوی دی اود کومو تدبیرونو چه رواج عام شوې دې هغه فوراً اختیار کولې شی بغیر له دې نه چه وکتلې شی چه آیا دا تدبیرونه دخپلو ټولو لوازموسره جائزهم دی اوکه نه؟ حکیم الأمت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سرهُ دسیاسی جدوجهد په څه مروجو طریقو باندې له شرعی نقطهٔ نظرنه بحث کړې دې اودهغې شرعی احکام ئې واضح کړی دی-

## دبائیکاټ (قطع تعلق) اوهرتال (اعتصاب) شرعی حکم

مثلاً دحکومت نه دخپلومطالباتودمنلودپاره نن سبا دهرتالونوطریقه اختیارولې شی، که چیرې خبره صرف دې حده پورې کیدله چه خلق په خپله خوشحالئ احتجاجًا کاروباربندکړی نو دنورو مفاسدوپه عدم موجودګئ کښې هغې ته یومباح تدبیر وئیلې شی چنانچه حضرت رحمه الله تعالی فرمائی: قطع تعلق یا د ډوډئ نه خوړل داشرعاً دجها له افرادو څه ندی . په دلائلو کښې دې وکتلې شی ، بلکه د مقاومت نور مستقل تدابیر دې اختیار کړې شی چه فی نفسه مباح وی.

(الروضةالناضرة، افادات اشرفیه درمسائل سیاسیه ص ۱۰)

ليکن داسې هرتال کوم چه خلقودې کاملاً په خپله خوښه کړې وی، نن صبا عملاً په دنيا کښې دهغې وجودنشته ، اکثر او زياتره خوخلق دهغوئ دخواهش اوراثې برخلاف هرتال کښې په حصه اخستو باندې مجبورولې شی، که چيرې څوک حصه وانخلی نوهغه ته جسمانی اومالی ضررونه ورکولې شی، په کاڼو ويشتل او هوربلول دهرتال لازمی حصه جوړه شوې ده- د سرکونو په بنده ولو سره خلق خپلو ضروری کارونوته له تللو بندولې شی - په چليدلوګاډوباندې کاڼی ورول کيږی- ډيرخلق ددې قسم ضرر رسولودخوف نه خپل کاروباربندساتی اوکوم ضرورت مند شخص چه باهروتلو ته په کومه وجه باندې مجبوره وی هغه هروخت دځان اومال نقصان په خطره کښې وينی اوبعضې اوقات يو نه يو بې ګناه وهلې شی، بعض وقتونو کښې دمريض علاج نه کيږی او رخصت کيږی اوډيرغريب خلق د لوږې او بې روزګاری ښکارکيږی .

دا ټولې خبرې دهرتال يوه داسې لازمی حصه جوړه شوې ده چه ددې نه بغير څوک د«کامياب هرتال» تصورنه شی کولې، ظاهره ده چه دا ټولې خبرې شرعاً حرامې اوناجائزې دی اوکوم څيزچه ددې حرامو اوناجائزوخبرو لازمی سبب جوړشی نو هغه به څنګه جائزشی؟

لهذاحضرت حکيم الامت قدس سرهُ دهرتال مروجه طريقې شرعاً ناجائزې ګڼلی دی- دتحريکاتِ خلافت په زمانه کښې د«ترک موالات» چه کومې طريقې اختيارکړې شوې وې په هغې کښې هرتال هم داخل و - دترک موالات لاندې يو دا تحريک هم را پورته شوې وؤ چه دبرطانوی مصنوعاتو بائيکاټ دې وکړې شی،چنانچه اهل تحريک په داسې دکانونوباندې چه برطانوی مصنوعات ئې خرخول رضاکارئ پرې مقررکړی وو کوموخلقوته چه څه رنګه ممکن وی دهغه ځائ نه ئې داخستلونه منع کول. که چيرې چا څه اخستلی وای نوهغه به ئې په واپس کولوباندې مجبورکولو. هم دارنګه به ئې دکانداران مجبورکول چه هغوئ دارنګه اشياء په خپلودکانونوکښې کينږدی، که چرې هغه به خبره ونه منله نوهغه ته به ئې نقصان ور رسولو اګرچه له هغه دکاندارسره به بله ذريعه دمعاش هم نه وه اوددې تجارت دبندولونه به دهغه په اهل وعيال باندې د لوږې نوبت هم راتلو- حضرت ددې طريقوشرعی حکم بيانوی ليکل اوفرمائی چه : داواقعه هم په متعددو ګناهونو باندې مشتمله ده.

يو دا چه ديومباح فعل په ترک باندې مجبورول ځکه چه بغير دبعضې خاص تجارتونو،نه دنورو ټولو څيزونو دخريدوفروخت معامله داهل حرب سره هم جائزده دمعاهدينوسره خوپريږده.

دويم وروسته داتمام دبيع نه په واپسئ باندې مجبورول نوره زياته ګناه ده، ځکه چه بغير دقانون دخيار نه دا واپسی هم شرعاً د هغه بيع په شان ده چه په هغې کښې تراضی دمتعاقدينو شرط ده.

دريم نه منونکوته ضررورکول ،چه دا هم ظلم دې.

څلورم اهل اوعیال ته تکلیف رسول چه داهم ظلم دې.
پنځم که چیرې دیته واجب شرعی اوویلې شی نودشریعت تغییر اوتحریف کیدل......))
ددې نه بعدحضرت دهرتال ذکرکوی اوفرمائی: ((په دې کښې هم هغه خرابیانې دی چه په دریم نمبر کښې ذکرشوې، اوکه چیرې په دې احتجاجاتومذکوروکښې په شرکت نه کولوباندې جسمانی ضرر ته هم نوبت ورسیږی نودا ګناه د اضرارِ مالی نه هم زیاته ده او د اسلام د تقاضاء نه خلاف ده ، بیاپه دې مقطعاتوباندې مجبورکولوکښې دا جابرین په خپله خپل تسلیم کړې شوې قانون (قانون حریت) نه هم خلاف کوی- اوکه نه نو څه وجه ده چه دخپلې آزادئ کوشش کوی، او دنورو آزادی سلب کوی)) **(معاملة المسلمین- افادات اشرفیه ص ۲۸، ۲۷)**
ددې نه علاوه حضرت رحمه الله تعالی دهرتال په موضوع باندې یوه مستقله رساله د((تلبیین العرائک)) په نوم لیکلی ده، چه دهغې اصل موضوع خوپه تعلیمی اداروکښې دطلبه کراموهرتال دې- لیکن په دې کښې دمطلق هرتال په باره کښې هم اُصولی بحثونه راغلی دی- ددې رسالې حاصل هم دادې چه دهرتال مروجه طریقهٔ کار دشریعت نه خلاف اوناجائزه ده -**(ملاحظه کړئ امدادالفتاوی ص ۲۰۱ج ۶)**

## بهوک هرتال ((دلوږې اعتصاب))

دغه رنګې دمطالباتودمنلودپاره یوه طریقه دبُهوک هرتال هم اختیارولې شی – ددې په باره کښې حضرت رحمه الله تعالی نه سوال وکړې شو : ((که چیرې څوك د حکومت لخوا ګرفتارشی اوجې ته لاړ شی نودهغوئ نه بعضې خلق په جیل کښې د لوږې اعتصاب کوی تر دې پورې چه مړشی اوپه قوم کښې دهغه مدح کولې شی))
حضرت رحمه الله تعالی ددې شرعی حکم بیانوی او فرمائی: ((دده خودکشی اوحرام کیدل ظاهردی)). **قال الله تعالی: (وَلَا تَقْتُلُوٓا أَنفُسَكُمْ)**

**وفی الهدایة کتاب الاکراه : فیاثم کما فی حالة المخمصة، وفی العنایة: فامتناعه عن التناول کامتناعه من تناول الطعام الحلال حتی تلفت نفسه اوعضوه، فکان اثما -الخ**

ددې روایت نه معلومه شوه چه ځان بچ کول په په هغه اندازه فرض دی چه که چیرې په حالت اضطرار کښې اندیښنه دمړکیدووی او د مردارې خوړونه ځان بچ کولې شی نوددې نه خوړل اوځان مړکول معصیت اوګناه ده، نو دحلال طعام پریښودل به ولې ګناه نه وی اوددې فعل مدح کولو کښې خو اندیښنه دکفرده چه صریح تکذیب دې دشریعت یعنی په شریعت کښې یو فعل ته مذموم وئیلې شوې دې او دوئ هغې ته محمود وائی))

(افادات اشرفیه درمسائل سیاسیه ص ۲۸، ۲۹، نمر ۶)

په یوه بله موقع باندې ارشاد فرمائی چه: ((دا ـ بهوک هرتال ـ دخوکشئ مترادف دې- که چرې د دې په نتیجه کښې مرګ راشی نوهغه مرګ حرام دې)) (الافاضات الیومیة ص۳۰ ج۳ ملفوظ نمبر ۱۴)

## دپبلسټۍ (پروپاګند اوتبلیغاتو) مروجه ذرائع

دنن په سیاست کښې پبلسټی اوپروپاګند لره هم نهایت اهم مقام حاصل دې، اوپه دې سلسله کښې عمومًا دمغربی سیاست دیومشهورنمائنده ګوئبلزپه دې مقولې باندې عمل کولې شی چه:

((دروغ په دومره شدت سره وایئ چه دنیاهغه رښتیا وګڼي))

که دنن سباحکومتونه دی اویا بې دینه سیاسی جماعتونه هغه ټول په دې اصولوباندې عمل کوی لیکن بعضې اوقات داسلام دپاره سیاسی جدوجهد کولو والا حضرات هم دغوښتونکی ماحول نه متاثره شوی وی دپبلسټې اومروجه ذرائع استعمالول شروع کوی اودهغې دجائزاوناجائز کیدو په طرف یاخو توجه نه کوی او یا بیا هغه نظریه وایی چه دسیاست اصلاح یواوچت مقصددې اودې دحصول دپاره دوړو وړو اُمورو قربانی ورکول پروا نه کوی.

غلط بیانی خوحرامه ده لیکن دسیاسی مخالفینو بلاوجه غیبت، دهغوئ خلاف ناجائزه بدګوئی، په هغوئ باندې دبهتان اوافتراء اوتحقیق نه بغیر افواه ګانې خورول، یاپه هغې باندې دتحقیق نه بغیر یقین کول دا ټولې هغه خبرې دی چه زمونږسیاسی تحریکونو کښې شعوری یا غیر شعوری طور باندې داخلې شوی دی اوددې په وجه باندې د افتراق اوانتشار، پارټی بازیو اوفتنو اوفسادونو کښې اضافه کیږی.

حضرت حکیم الامت قدس سرهُ خپلو تصانیفو اومواعظو اوملفوظاتوکښې په دې طریق کارباندې هم تنقید فرمائیلې دې اوداسې سیاسی تدبیرونه ئې ناجائزاوواجب الترک ګڼلی دی چه په دې مفاسدوباندې مشتمل وی.

دغه رنګه جلسه اوجلوس هم پبلسټی اوخپل نقطهٔ نظرتر عوامو پورې درسولواهمه ذریعه ګڼلې شی، لیکن په دې کښې هم بعضې اوقات احکام شرعیه نظرانداز کولې شی –

ددې په باره کښې حضرت رحمه الله تعالی فرمائی: ((کله چه کوم تدبیردتدابیرومنصوصه وۀ په خلاف اختیارولې شی، هغې ته خوممنوع وئیلې شی- خصوصًا کله چه هغه فعل عبث یامضر هم وی نوددې په حرمت کښې بیاڅه شبهه کیدې شی؟ هلته خود ((الضرورات تبیح المحظورات)) شبه هم نشی کیدې- مثلاً هرتالونه دی، جلوسونه دی، په دې کښې دوخت ضائع کیدل ،دروپو مصرف کیدل ، حاجت مندوخلقوته تکلیف رسول، مونځونه ضائع کیدل، دا ټول ښکاره مفاسددی نو دا افعال له کوم ځائ نه جائزکیدې شی؟

«يوصاحب عرض وکړو چه که چيرې پدې کښې نيت د حق امداد کول وی نو بيا ؟
نودوئ رحمه الله او فرمائيل چه : ددې خبرونه خوحق ته څه امدادنه رسيږی،بل دا چه نامشروع فعل په نيت سره نه مشروع کيږی» **(الافاضات اليوميه ص۱۳۶ج۵، ملفوظ نمبر۱۵۲)**

دمروجه سياسی تدابيروپه باره کښې په يوې بلې موقع باندې دوئ خپله نقطهٔ نظرواضح فرمائيلې ده، ددوئ نه تپوس شوې وو چه : « ځينې خلق (دحکومت) دمقابلې دپاره ځی اوګرفتاريږی، او ځينې خاموشه مقابله کوی، که چرې دحکومت دطرف نه تشددهم وی بياهم جواب نه شی ورکولې- ددې صورتونوپه متعلق شرعی حکم څه دې؟

ددې په جواب کښې دوئ اوفرمائيل: «عقلی دوه احتماله دی، ياخو به د مقابلې قوت وی، اويا به قوت نه وی، که چيرې قوت وی نو د ګرفتارکيدوڅه معنی ده بلکه مقابله کول پکاردی اوکله چه مقابله نه شی کولې نودا صورت دعدم قوت دې، لکه څنګه چه ظاهره ده، نودعدم قوت په حالت کښې قصداً د داسې صورت د اختيارولو چه په خپله په ضرب اوحبس کښې مبتلاشی شريعت د دې اجازت نه ورکوی، بلکه د داسې مخترع مقابلې په ځائ په مکاره «ناقابل برداشت زورزياتی» امورو باندې دصبرنه کاراخستل پکار دی- خلاصه دا چه که چيرې قوت وی نو مقابله دې وکړی، او که چيرې قوت وی نو صبر دې وکړی، ددوۀصورتونونه علاوه دريم کوم صورت منقول نه دې-

وړاندې ارشاد فرمائی: په دې وخت کښې دټولونه لويه وجه دناکامئ داده چه دمسلمانانوپه سرونو باندې څوک مشر نشته، نه دمسلمانانو قوت په کوم مرکزباندې جمع دې اونه کيدلې شی. تر څو پورې چه بالاتفاق يومشر اوامام جوړنه کړی، که چيرې امام وی نوټول کارصحيح کيدلې شی- دهغه په حکم سره چه ميدان ته لاړشی نوکه بيا ساه هم ورکړی نو کوم حرج نشته، او د دې بالعکس چه واړه واړه هلکان په خپل سر لاړشی او قتل شی نو دا کوم انسانيت دې، ، اصل خبره داده چه بره ذکرشوه چه په خيرالقرون کښې دوه صورتونه وو چه دقوت په وقت کښې مقابله وه، اودعدم قوت په وخت صبر کښې صبر وۀ - ددې نه سِوا ټول له ځان نه جوړ شوی تدبيرونه دی –له همدې وجې نه په دې کښې خيراوبرکت نه شی کيدې، اوکله چه خيراوبرکت نه وی اومسلمانان ظاهراً هم کامياب شی نوپه داسې کاميابئ باندې به څه خوشحالی وی چه د الله اورسول الله صلی الله عليه وسلم دمرضئ په خلاف تدبيرونه اختيارولو سره کومه کاميابی حاصله کړې شی ، اوحسی (ظاهری) کاميابئ حاصليدل څه کمال خبره نه ده- ځکه چه داکاميابی دکافرانو لپاره هم حاصليدې شی ، اودمسلمانانواصل کاميابی خوهغه ده چه اګرچه غلامی هم وی ليکن چه الله پاك راضی وی، اوکه چيرې حکومت وی خو د الله تعالی درضاء خلاف وی ، اوهغه پرې راضی نه وی نودفرعون حکومت او ستاسو په حکومت کښې څه فرق شو؟ پس دهغه درضا فکروکړئ او له هغه سره په صحيح معنوکښې تعلق جوړکړئ، داسلام اود احکام اسلام پابندی وکړئ – ددې بتانو

اتباع خو تر ډیره وخت پورې وکتلې شوه، اوس الله تعالی لره سر کیږدئ اودهغه نه حاجت اوضروریات وغواړئ نوبیا وګورئ چه څه کیږی؟ ‹الافاضات الیومیه ص ۱۶۸ ج ۵ ملفوظ نمبر ۱۹۰›

## له حکومت سره طرزِعمل

اسلام په خپلواحکامو کښې اصل زورپه دې خبرې باندې ورکړې دې چه په هرحالت کښې داحکام شریعت اتباع وکړې شی، که چیرې دحاکم وقت له طرف نه دخلاف شرع امورو حکم ورکړې شی نودهغې اطاعت واجب نه دې- بلکه تر څو پورې چه د اکراه شرعی حالت متحقق نه وی دشریعت په احکامو باندې عمل ضروری دې، په دې لارې کښې چه څومره تکلیفونه مخې ته راځی په هغې باندې صبرکول پکاردی چه هغه موجب داجردی- دارنګه که چیرې کوم حاکم دشریعت خلاف کارکوی نوهغه په نیغه لاره باندې درا اړولو دپاره امربالمعروف اونهی عن المنکردهغې دشرائطوسره سم سرته رسول هم ضروری دی اودضرورت په وخت دهغې ترڅنګ ه اظهارحق هم هم ضرور دې لکه څنګه چه حدیث کښې«افضل الجهاد»ګڼلې شوې دې- دا ټول کار دشریعت دتقاضوعین مطابق دې په دې شرط چه شرعی حدودوکښې وی او مقصد پکښې دالله تعالی راضی کول وی او په خپله یې د اقتدار طلب په نیت کښې نه وی.

لیکن دنن سیاسی فضاء کښې دامعامله هم په سخت افراط اوتفریط کښې داخله ده، کوم خلق چه د«حزب اقتدار» سره په مقابله کښې دی یا دحکومت طرفدارکیږی، هغه په هرحال کښې دحکومت دتعریفونه او تائید کوی او د حکومت دهر جائز اوناجائز تائید حمایت کوی- دحکومت ناجائز یا ظالمانه اقداماتوته په رڼو سترګوګوری بیاهم چپ پاتې کیږی اودهغې دتاویلاتوتلاش کوی چه صریح د دین سپکاوې دې-

اوپه بل طرف چه کوم خلق «حزب اختلاف» سره په مخالفت کښې دی اودحکومت مخالفین دی، هغوئ د حکومت مخالفت خپل مقصد جوړوی اوهغه مخالفت په یو سیاسی رنګ کښې استعمال کوی – په خاص طورباندې داخبره خپل منصبی فرض ګڼي چه هغوئ دحکومت په هره خبره کښې چینچی را اوباسی اود حکومت دکومې ښې خبرې هم اعتراف نه کوی- ددې طرزعمل او له عوامونه دبهادرئ داد حاصلول وی.

په عواموکښې هم حاکمانوته وقت بې وقته بده بلا وئیل اوحکومت ته ترکنځلوکولو پورې جوړیږی اودهغې په خلاف دهائ هائ نعرې وهلې کیږی- په جلوسونوکښې د حکمت د سربراهانو نه د «سپې» او «سور» شکلونه طورباندې دحکامو د ذکرکولوسره دهغوئ بدی بیانولې شی، چه دکومې معقولې وجې نه بغیر

دهغې ویل په غیبت کښې داخل دی، بعضې اوقات افتراء اودبهتان په حدودوکښې هم داخل کیدې شی اوداګڼې چه فاسق اوفاجرحکمرانانو ته بدوئیل په غیبت کښې داخل نه دی.

حضرت حکیم الامت قدس سرهٔ په دې طرزعمل باندې هم تنقید فرمائیلې دې- حضرت رحمه الله تعالی فرمائی: ((حجاج بن یوسف ددې اُمت دټولونه په لوئې ظالم سره مشهوردې، لیکن د یو بزرګ په مجلس کښې یوشخص په هغه باندې څه الزام ولګولواوغیبت ئې وکړو نوهغوئ اوفرمائیل چه هغه اګرچه ظالم اوفاسق دې لیکن د الله تعالی له هغه سره کومه شخصی دشمنی نشته، الله پاك چه څه رنګه دنورومظلومانو انتقام دحجاج نه اخلی دغه رنګه که چیرې څوك په حجاج باندې ظلم کوی نودهغه نه هم انتقام اخستلې شی)) (مجالس حکیم الامت ص۲۹، ملفوظات رمضان ۱۳۴۸هـ)

ددې نه علاوه حضرت رحمه الله تعالی په یوڅومقاماتو باندې داخبره واضح فرمائی، چه دکوم ضرورت نه بغیر د حاکمانو علی الاعلان اهانت شرعًا ښه کارنه دې ، فرمائی چه : ((داسلام دسلاطینو علی الاعلان اهانت کښې جمهورو عوامو ته ضرردې ، دهیبت ویستونه فتنې خوریږی، دې وجې نه داسلام دسلاطینو احترام کول پکاردی)) (انفاس عیسی ص۳۸۵ ج۱-باب ۴)

دحضرت حکیم الامت رحمه الله تعالی داخبره په حقیقت کښې دسرکاردوعالم صلی الله علیه وسلم ددې ارشادشرح ده چه حضرت عیاض بن غنم رضی الله عنه روایت کړې دې :(من اراد ان ینصح لذی سلطان بأمر فلا یبدله علانیة ولکن لیاخذ بیده فیخلوا به فان قبل منه فذاك والا کان قد ادی الذی علیه)

((کوم شخص چه کوم صاحب اقتدارته دکومې خبرې نصیحت کول غواړی نودانصیحت دې علانیة ظاهره نه کړی بلکه دده لاس دې ونیسی او په خلوت کښې دې ورته دغه نصیحت وکړی که چیرې هغه دده خبره قبوله کړی نوبهتره ده اوکه نه نو هغه خپل فرض اداکړل))

(مجمع الزوائد ص۲۲۹ ج۵- بحواله مسنداحمدورجاله ثقات)

په یوبل وعظ کښې حضرت حکیم الامت رحمه الله تعالی فرمائی: ((بعضې خلق دبعض مصائبو نه تنګ شی او د وقت حاکمانو ته بده وینا شروع کړی، داهم د بې صبره نښه ده، اواو له خپل ځان نه جوړ شوی تدبیرونه دی، اوپه حدیث شریف کښې ددې ممانعت هم راغلې دې، فرمائی: ((لاتسبوا الملوك)) یعنی بادشاهانو ته بدمه وایئ، دهغوې زړونه زماپه قبضه کښې دی زما اطاعت وکړئ، زه ددوئ زړونه په تاسو باندې نرموم)) (وعظ الصبر ص۳۶، ماخوذازاصلاح المسلمین ص ۵۲۲)

دکوم حدیث په طرف چه حضرت رحمه الله تعالی اشاره فرمائیلې ده هغه دمختلفوصحابه کرامورضی الله تعالی عنهم نه په مختلفو الفاظو کښې مروی دی- حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها نه ددې حدیث دا الفاظ مروی دی : ((لاتشغلوا قلوبکم بسب الملوك ولکن تقربوا الی الله تعالی

بالدعاء لهم يعطف الله قلوبهم عليكم))

((یعنی خپل زړه بادشاهانو ته په بدوئیلو کښې مه مشغولوئ- بلکه ددوئ په حق کښې دعاء کولو سره دالله تعالی تقرب حاصل کړئ، الله تعالی به ددوئ زړونه ستاسو په طرف متوجه کړی (کنزالعمال ص۲ ج۶ حدیث ۹ بحواله ابن لنجار)

او دحضرت ابوالدرداء رضی الله عنه نه داالفاظ منقول دی: **ان الله يقول: انا الله لا اله الا انا، مالك الملك وملك الملوك قلوب الملوك بيدي، وان العباد اذا اطاعوني حولت قلوب ملوكهم عليهم بالرافة والرحمة، وان العباد اذا عصوني حولت قلوبهم عليهم بالسخط والنقمة، فساموهم سوء العذاب فلا تشغلوا انفسكم بالدعاء على الملوك، ولكن اشغلوا انفسكم بالذكر والتضرع اكفكم ملوكهم-**

((الله تعالی فرمائی چه زه الله تعالی یم، زما نه سواء بل معبود نشته، زه مالک الملک او بادشاه یم او د بادشاهانو بادشاه یم دبادشاهانو زړونه زما په لاس کښې دی او بنده چه کله زما اطاعت کوی نوزه دهغوئ دبادشاهانو زړونه ددوئ په طرف په رحمت اورافت باندې متوجه کوم، او کله چه بندګان زمانافرمانی کوی نوزه ددوئ په زړونو کښې ددوئ په خلاف په ناراضګئ اوعذاب سره متوجه کوم، چنانچه هغه هغوئ دوئ ته بدترین ضررونه رسوی- لهذا تاسو بادشاهانو ته په بددعایانو کښې مشغول نه شئ، بلکه خپل ځانونه په ذکراودعاء اوتضرع کښې مشغول کړئ، زه ستاسو د بادشاهانو په معامله کښې ستاسو مدد کوم)) (مجمع الزوائد ص۲۴۹ ج ۵ بحواله طبرانی، وفیه ابراهیم بن راشد، وهومتروک)

او حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه داالفاظ مروی دی: **(لا تسبوا الائمة وادعوالله لهم بالصلاح فان صلاحهم لكن صلاح).**

((ائمه (دحکومت سرابراهانو) ته بده بلا مه وائې، بلکه دهغوئ په حق کښې دنیکئ دعا وکړئ- ځکه چه ددوئ په نیکئ کښې ستاسو نیکی ده)) (السراج المنير للعزيزی ص۴۱۱ ج۴، وقال: اسناده حسن)

بهرصورت (حاکمانو ته بلاضرورته بدوئیل مشغله جوړول شرعاً ښه نه دی، که چیرې هغوئ دومره بدوی چه ددوئ په خلاف خروج (بغاوت)) جائزوی نوبیادشرعی احکامو په مطابق خروج کولې شی(چه دهغې څه تفصیل ان شاء الله په آینده کښې راځی) لیکن دبدګویی داندازجوړولو نه ئې منع کړې ده-دغیبت دنقصان نه علاوه حضرت حکیم الامت رحمه الله تعالی ددې بدګوئ دیوبل نقصان په طرف هم اشاره فرمائیلې ده، اوهغه داچه دحکومت فی الجمله هیبت دامن اوامان دقیام دپاره ضروری دې اوکله چه داهیبت دزړونو نه اوچت شی نوددې لازمی نتیجه دا کیږی چه مجرمان دبې باکئ په صورت کښې میدان ته راوځی او په ملک کښې بدامنی خوریږی اوددې نقصان ټول قوم ته رسیږی.

## دحكومت دغيرشرعي قوانينو اواقداماتو په خلاف طريقۀ كار

دلته په طبعي طورباندې داسوال پيداكيږي چه كه چرې هرتال، بهوك هرتال اوداحتجاج مروجه بهتر صورتونه له مينځ نه لاړ شي نو دموجوده حكومتونوغيرشرعي قوانينو او اقداماتو خلاف له اُمت بله څه لاره چاره كيدې شي؟ آياموجوده حكومتونه همدارنګه آزاد پريښودل پكار دى چه هغوئ اسلامي احكام پامال كوى؟ خلق داسلام اواسلامي تعليماتونه د اړولو دپاره دحكومت پوره مشينري استعمالولې شى؟ دتعليمي ادارو اود ذرائع ابلاغ په ذريعه دغيراسلامي نظرياتو ترويج كيږى، اوكوم مسلمان چه په دين باندې عمل كول غواړى هغه دزباني وعظ اونصيحت نه سواڅه نه كوى؟چونكه دنن سبا دحكومتوتجربه ده چه هغه زباني وعظ اونصيحت باندې اعتماد كول نه پيژني او ترڅو پورې چه په دوئ باندې داحتجاج دباؤ وانه چولې شى هغه وخته پورې هغوئې كومې مطالبې عموماً نه تسليموى-

ددې سوال جواب حضرت حكيم الامت رحمه الله تعالى د ارشاداتو په رڼا كښې دادې چه د مغربي سياست په عمومي توګه په رواج كيدلو سره زمونږ په ذهنونو كښې دا خبره ناسته ده چه داحتجاج طريقه هرتالونه، اوجلوسونو اومظاهروكښې منحصرده، حالانكه يومسلمان ته داحتجاج طريقه هم په خپله دخپل دين داحكامونه اخستل پكاردى اوهغه دا چه كه چيرې دحكومت داغير اسلامي اقدامات تر دې حده پورې رسيدلى وى چه دحكومت په خلاف خروج (مسلح بغاوت) جائز شوې وى، نو هلته خودخروج احكام جارى كيږى (چه دهغې څه تفصيل په آينده كښې راځى) ليكن چيرته چه خروج جائزنه وى نوهلته دوعظ اونصيحت نه علاوه دمسلمانانوسره داحتجاج يوطريقه دا هم ده چه دغتوغتوحكومتونو نه مخ واړولې او اودوئ په نظر كولو سره مجبور كړې شى اوهغه طريقه داده چه : **(لاطاعة لمخلوق فى معصية الخالق)** . ((دخالق په نافرمانئ كولوسره دكوم مخلوق اطاعت جائزنه دې))

اوداطريقه په خپله دسرداردوعالم صلى الله عليه وسلم ديوارشادنه ثابتيږى، حضرت معاذبن جبل رضى الله تعالى عنه نه مروى دى چه آنحضرت صلى الله عليه وسلم ارشاداوفرمائيلو: **(خذوا العطاء مادام عطاء، فاذا صار رشوة على الدين فلا تأخذوه ولستم بتاركيه يمنعكم الفقر والحاجة الا ان رحا الاسلام دائرة فدوروا مع الكتاب حيث دار، الا ان الكتاب والسلطان سيفترقان فلا تفارقوا الكتاب، الا انه سيكون عليكم امراء يقضون لانفسهم مالا يقضون لكم فان عصيتموهم قتلوكم، وان اطعتموهم اضلوكم، قالوا: يارسول الله كيف نصنع؟ قال: كما صنع اصحاب عيسى بن مريم نشروا بالمناشير وحملوا على الخشب، موت فى طاعة الله خير من حياة فى معصية الله)**

((تنخواهغه وخته پورې اخله كله پورې چه هغه تنخواه وى، ليكن كه چيرې هغه ددين (فروشئ

دپاسه رشوت جوړشي نومه ئې اخله، اوتاسو دفقراوحاجت د ویرې نه هغه مه پریګدئ، ښه واورئ د اسلام ژرنده تاویدونکې ده نو تاسو د کتاب الله خواو شا تاویږئ لهذا قرآن چه چرته هم ځی تاسو دهغې سره لاړشئ- خبردار! قرآن اواقتدار دواړه جداجدا کیږی، پس تاسو قرآن مه پریږدئ ، یادلرئ چه په تاسوباندې څه داسې امیران راځی چه په خپل حق کښې به هغوئ فیصلې کوی او ستاسو په حق کښې به ئې نه کوی- که چیرې تاسودهغوئ خلاف ورزی وکړه نوهغوئ تاسوقتلوی اوکه چیرې تاسو دهغوئ اطاعت وکړونوهغوئ به تاسوګمراه کوی- صحابه رضی الله تعالی عنهم عرض وکړوچه یارسول الله ! مونږ په دې وخت کښې څه وکړو؟ دوئ صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه هغه کار وکړئ چه دعیسی بن مریم علیهما السلام ملګرو وکړو، هغووئ ئې په اروباندې وشلول. اوپه لرګوباندې زوړند کړې شول ،دالله تعالی په اطاعت کښې چه مرګ راشی نوهغه دالله تعالی په نافرمانئ کښې دزندګئ تیریدونه بهتره ده)) (**مجمع الزوائد ص ۲۳۸ ج ۵ بحواله طبرانی ،وقال الهیثمی: یزیدبن مرثدلم یسمع من معاذالوضین بن عطاء وثقة ابن حبان وغیره وضعفه جماعة وبقیة رجاله ثقات**)

دې حدیث واضح اوفرمائیل چه که چیرې کله د وخت د حکومت له طرف نه داسې احکام جاری کړې شی چه دالله تعالی دکتاب نه صراحةً خلاف وی (په کوم کښې چه داسلام ټول اوقطعی نور منصوص احکام داخل دی) نودیومسلمان کاردادې چه هغه ددې احکاموپه ځائ دالله تعالی دحکم پابندی وکړی دا طریقهٔ کار څنګه چه په انفرادی طورباندې اوداخروی نجات لاره ده همدغه شان په دې کښې داجتماعی اصلاح هم ډیر لوئ صلاحیت دې ځکه چه اوس که چیرې په عواموکښې داعام دینی شعورپیداکړې شی چه هغه خالص په خپلې دینی جذبې باندې دحکومت دغیراسلامی احکاموپه تنفیذکښې دحصه دارجوړیدلو نه لاس بند کړی نوپه یوحکومت باندې ددې نه غټ د کوم بل شی د دباؤ تصورنه شی کیدې، فکر وکړئ ! چه که چیرې مسلمان دخپل دینی شعور مطابق دا فیصله وکړی چه هغوئ به دبانکونو په سودی شعبو کښې خپلې پیسې نه بندوی- ملازمین دافیصله وکړی چه دوئ به دسودی بانکونو سره کار پریږدی اوتجاران فیصله اوکړی چه هغوئ به دکوم بانك نه په سود باندې قرض نه اخلی، نو آیا دا سودی نظام یوه ورځ باقی پاتې کیدې شی؟ که چیرې مسلمان جج (قاضی) دا فیصله وکړی چه هغه به دکوم غیراسلامی قانون لاندې فیصلې نه کوی- او که پدې سره دې له خپلې وظیفې نه برطرف کیږی نو دې ورته تیار وی ، خواه دوئ دخومره مالی فوائدونه لاسونه اووینځی نو آیا دا غیراسلامی قوانین به عوامو په سرونو باندې مسلط کړې شی؟ که چیرې مسلمانان سرکاری ملازمین دا عزم وکړی چه دوئ به دحکومت دکوم غیراسلامی اقدام په تنفیذکښې حصه اخستل نه برداشت کوی اوکه چیرې دوئ ته

داسې کول وی نو دوئ تول به له خپلې وظیفې نه استعفاء ورکوی. نو آیا دا غیراسلامی اقدامات باقی پاتې کیدې شی-؟

داحتجاج دمروجه طریقوپه مقابله کښې په دې تجویزکښې صرف داخرابی ده چه دا طریقه دمغربی سیاست نه نده راوتلې له دې وجې نه د ذهنونو دپاره اجنبی اوغیر مانوس ښکاری لیکن که چیرې په دې تجویز باندې په صحیح طریقې سره عمل وکړې شی نوپه دې کښې دملک دنظام بدلولو پوره صلاحیت موجود دې او ددې مروجه تدبیرونو دمفاسدونه هم خالی دې، لیکن ددې دپاره ضروری ده چه دنفاذ اسلام دجدوجهدکولووالاپه زړه کښې دالله یره، دآخرت فکر، دالله تعالی مخې ته د جواب ورکولواحساس اوداتباع شریعت احساس موجودوی-اوهغه اول په خپل ذات باندې داسلامی احکامو دنفاذدپاره تیاروی-

ددې برعکس مروجه طریقۀ کارخلقوته له دې وجې نه آسانه معلومیږی چه په دې کښې په خپل ځان باندې داسلام د نافذ کولو څه شرط نشته دې ، دکوم انسان خپل ذات چه داسلام د اسلام له بیناء نه د اسلام تر تعلیماتو پورې خالی وی، هغه هم د نفاذ اسلام د بیرغ اوچتولو سره په سرکونوباندې نعرې وهلې شی، په دې طریقۀ کار کښې د «اسلامی جذبو» اظهاردپاره یوورځ په هرتال کښې حصه اخستل کافی دی- ددې نه اول اوددې نه بعد په دکانونواودفترونوکښې ناست وی خالص غیراسلامی معاملات دخپلولاسونونه فیصله کولې شی نوددې نه په جدوجهدباندې څه فرق نه غورځیږی-

سوال دادې چه کوم خلق په خپله په خپلې ذاتی زندګئې باندې داسلام احکام نه نافذوی هغه څنګه دا توقع کولې شی چه د نفاذ اسلام دپاره ددوئ جدوجهداومطالبات به پوره کیږی؟ ددې عظیم کاردپاره دومره شرط خوکیښودل پکاردی چه کوم خلق ددې جدوجهد پیتې اوچت کړی کم ازکم چه هغوئ خوخپله زندګی داسلام په چوکاټ کښې برابره کړې وی اوپه دې لاره کښې دځان اومال او دجذباتواومفاداتوقربانی پیش کولوعزم ی مضبوط وی - که چرې دا بنیادی شرط پکښې نه وی نو دنفاذ اسلام دجدوجهد حیثیت اواهمیت یوبې روحه اودسطحی اندازې نه زیات بل څه نه شی کیدلې.

## دحکومت په خلاف راوتل

سرکاردوعالم صلی الله علیه وسلم داسلامی حکومت په خلاف دبغاوت کول شدیدجرم ګڼلې دې اودباغی سزاء ئې مرګ ګڼلې ده- چنانچه په دې خبره باندې دفقهاء کرام رحمهم الله اجماع ده- دعادل حکومت خلاف بغاوت کوم وخت جائزکیږی؟ په دې مسئلې کښې فقهاء امت کافی مفصل بحثونه کړی دی، داخبره خو د احادیثو نه واضحه ده چه که چیرې دحکمران نه دکفر بواح (واضح کفر) صدوروشی نو د هغه خلاف بغاوت بالکل برحق دې لیکن که چیرې له هغه نه فسق اوفجور

ښکاره شی نو په دې صورت کښې عمومًا فقهاء کرامو دبغاوت کولو جواز ندې ورکړې ځکه چه په حدیث کښې فقط د کفر بواح په صورت کښې دبغاوت اجازت ورکړې شوې دې-

لیکن په بل طرف دبعضې احادیثوځه الفاظ ددې خلاف هم په نظرراځی چه په هغې باندې دحکمران دفسق په صورت کښې دخروج گنجائش معلومیږی، په دې بناء باندې دبعض فقهاء رحمهم الله تعالی عبارتونه هم ځه متضادپه نظرراځی- په خپله راقم الحروف په دې مسئلې کښې یوې مودې پورې په ډیر اشکال کښې وؤ، اوکومه صافه خبره یی مخې ته رانه غله.

لیکن حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سرهُ په دې موضوع باندې یو نهایت جامع مفصله اومدلل رساله لیکلې ده چه په امدادالفتاوی پنځم جلد کښې د«جزل الکلام فی عزل الامام»په نوم باندې شائع شوې ده- په دې کښې حضرت رحمه الله تعالی ددې موضوع ټول احادیث او د فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی اقوال یوځائ کړی دی او دا مسئله یی دومره واضحه کړې ده چه پدې مسئله بندې د احقر په نیزد له دې نه کومل بهتر بحث ندې تیر شوې، حضرت رحمه الله تعالی دمسئلې دټولوصورتونو تجزیه اوفرمائیله دهرصورت حکم یی داحادیثو او فقهی حوالوپه ذریعه واضح فرمائیلې دې-

دحضرت رحمه الله تعالی ددې بحث خلاصه داده چه دحکمرانانوغیراسلامی اقداماتو یوځو صورتونه دی او د هرصورت حکم جدادې:

(۱) دحکمران فسق که دهغه ترحده پورې محدودوی، مثلاً شراب نوشی وغیره،ددې حکم دادې چه: «که چیرې بغیردکومې فتنې نه په آسانئ سره دهغې ختمول ممکن وی نو ختم دې شی، که چرې دفتنې اندیښنه وی صبر دې وکړې شی.....اوکه چیرې دنهی عن العزل په صورت کښې د هغه په خلاف باندې ځه خروج وکړی نو په عمومی مسلمانانو باندې دهغه نصرت واجب دې بالخصوص کله چه امام حکم هم وکړی. «لقوله فی العبارة السادسة فاذاخرج جماعة مسلمون»الخ

(۲) دویم صورت دادې چه دهغه فسق تر نوروپورې متعدی وی- یعنی د خلقو مالونه په ناحقه طریقې سره اخلی لیکن په هغې کښې د اشتباه جواز هم وی لکه د سلطنت د مصالحو په نوم سره ټیکس وغیره اخستل کیږی ، ددې صورت حکم دادې چه په دې کښې دهغه اطاعت واجب دې خروج جائز نه دې.

(۳) داسې مالی ظلم وکړی چه په هغې کښې دجواز شبه هم نه وی بلکه صریح ظلم وی، ددې حکم دادې چه: «دخپل ځان نه ظلم دفع کړی . اګرچه دقتال نوبت راشی ......... اوصبرهم جائزدې- بلکه غالبًا اولی دې ..........»

(۴) خلق په معصیتونوباندې مجبورکړی، لیکن دهغه منشاء ددین استخفاف یاکفراومعصیت خوښی نه وی، نوددې حکم دادې چه په دې باندې داکراه هغه احکام جاری کیږی چه په فقه کښې

دتفصيل سره مذکوردی- ليکن خروج جائزنه دي-

(۵) خلق په معصيت باندې مجبورکړی ، اودهغه منشاء ددين استخفاف يادکفراومعصيت خوښول وی نو دا کفردې ، يا اګرچه فی الحال خو داکراه منشاء داستخفاف وغيرنه وی ليکن اکراه عام د قانون په شکل په داسې طورباندې وی چه يوې مودې پورې په دې باندې دعام عمل کيدو نه په آينده کښې ظن غالب وی چه په طبائعو کښې استخفاف پيداکيږی نوداسې اکراه هم په حکم دکفر کښې ده اوپه دې ټولوصورتونو کښې هغه حکم دې کوم چه دکفربواح دې اوکوم چه په شپږم صورت کښې راځی-

(۶) نعوذبالله ! کافرشی، ددې حکم دادې چه : ((معزول دې شی اوکه چيرې معزول نه شی نو په شرط دقدرت يې معزول کول علی الاطلاق واجب دی- ليکن په دې کښې شرط دادې چه هغه کفر متفق عليه وی اوڅه رنګه چه ددې کفر کيدل قطعی وی دغه رنګه ددې صدورهم يقينی وی، مثلا د رؤيت عين په درجه کښې وی نه دمحض ظنيی رواياتو په درجه کښې، **(کمادل عليه قوله عليه السلام الاان تروا المرادبه رؤية العين بدليل تعديته الى مفعول واحد)**

کوم امر چه موجب د کفر وی نو دهغې دلالت په الکفر مختلف فيه کيدې شی دغه رنګې هغه امر چه موجب د کفر وی دهغې ثبوت په مقامی اويا مقالی قرائنو په اختلاف سره مختلف فيه کيدې شی او په خپله قطعيت هم مختلف فيه کيدلې شی ، دغه رنګه کله اجماع هم مختلف فيه کيدې شی............ په دې صورت کښې هرعامل په خپل عمل کښې معذورکيږی-

دغه رنګه په يوبل صورت کښې هم درائې اختلاف کښې جواز دې، هغه داچه په پنځم عبارت کښې د مصالحو دتعارض په وقت کښې داخف المضرتين دتحمل حکم شوې دې ، نوممکنه ده چه ددوؤکسانو اجتهاد دمختلفو مضراتو په اخف او اشد کيدوکښې مختلف وی **وبه ينحل کثيرمن الاشکالات من اختلاف جماعات الثقات فی مثل هذه المقامات- (امدادالفتاوی ص۱۲۰-ج۵)**

بياپه کوموصورتونو کښې چه دخروج اجازت ياوجوب بيان کړې شوې دې په هغې کښې شرط دادې چه دخروج دپاره مناسب قوت موجودوی- اوددې په نتيجه کښې کوم پل د بدترحکمران مسلط کيدوياکوم بل غيرمسلم دقبضې اچولو انديښنه نه وی-

دلته د حضرت رحمه الله تعالی دتحقيق نهايت اجمالی خلاصه پيش کړې شوه اوکه نه نو حضرت رحمه الله تعالی دهرصورت حکم د احاديثو او د فقهې ددلائلونه مدلل فرمائيلې دې اودټولو ممکنو شبهاتو ازاله ئې هم فرمائيلې ده- داهل علم دپاره دا رساله نهايت مفيداواطمينان بخښلو والاده-

**فهذا اخرما اردنا ايراده فی هذه العجالة واخردعوانا ان الحمدلله رب العلمين والصلاة والسلام على سيدنا ومولانا محمد النبی الامين وعلى اله واصحابه اجمعين**

(ماهنامه - البلاغ - شعبان ورمضان ۱۴۱۰هـ)

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ﴾

گریز از طرز جمہوری غلام پختہ کاری شو — کہ در مغز دوصد خر فکر انسانی نمی آید

فرنگ آئین جمہوری نہاد است — رسن از گردن دیوی کشاد است

# رفع النّقاب عن وجه الانتخاب

- اسلامي جمهوريت
- د ښځو د مشرئ د حرمت په باره کښې د اکابرو علماؤ متفقه فیصله

★ قرآن ★ حدیث ★ فقه ★ عقل ★ د أمت اجماع

## دبحث خلاصه :

- اسلامی جمهوریت
- په اسلامی جمهوریت او مروجه جمهوریت کښې فرق
- د امیر شرائط
- د انتخاباتو طریقه
- د ښځې مشری — د اکابرو علماؤ فیصله
- قرانی نصوص
- د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشادات
- د څلورو مذاهبو فقه
- عقل سلیم
- دأمت اجماع
- د ملحدینو د دلائلو جوابات
  - ابن جریر طبری رحمه الله
  - د بلقیس قصه
  - حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها
  - حضرت تهانوی رحمه الله تعالی
- د پاکستان دهرمکتبهٔ فکر دعلماؤ فیصله
- د دې نه علاوه
  - د ملحدینو د نورو تلبیساتو جوابونه
  - بعضی فقهی جزئیات
  - شجرة الدر
  - امام ابن تیمیه رحمه الله تعالی
  - امام مالک رحمه الله تعالی

# اسلامی جمهوریت

**سوال**: آیا په اسلام کښې شاهی طرز حکومت دې او که جمهوری؟ که چرې جمهورې وی نو د انتخاب طریقه یې څه ده؟

په اسلامی جمهوریت کښې دمسلمانانو سربراه څنګه منتخب کولې شی؟ آیا سړیو اوښځو ټولو ته درائې ورکولوحق دې اوکه صرف سړیو ته؟ او آیاصرف ارباب عقولو اودپوهو خلقونه رائې باید واخستلې شی اوکه دټولونه، دپوهواونا پوهو ،شپونکیانواوبې وقوفونه هم؟ لکه څنګه چه دنن سبا در یفرنډم طرزعمل دې ، مطلب دا چه کوموخلقوته چه په خپل خلیفه منتخب کولوکښې څه پوهه نوی چه څوک اهلیت لری، آیا ددوئ نه هم رائې واخستلې شی اوکه نه؟ بینواتوجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسلام طرزحکومت جمهوری دې، په جمهوریت اسلامیه او جمهوریت مروجه کښې دوه فرقونه دی:

(۱) په جمهوریت مروجه کښې سربراه مملکت نه خود مختارکیږی بلکه دمقننه فیصلو پابند وی اوپه جمهوریت اسلامیه کښې امیرالمؤمنین خود مختاروی، په اهمو امورو کښې داهل حل اوعقدسره دمشورې نه بعدکومه چه دووئ په رائې صواب وی دهغې په مطابق فیصله کولې شی، دشوری دفیصلې پابند نه دې. قال الله تعالی ﴿وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ﴾ (۳-۱۵۹)

(۲) په جمهوریت مروجه کښې هرشخص ته درائې ورکولوحق دې لیکن جمهوریت اسلامیه کښې دانتخاب خلیفه حق صرف اهل حل اوعقدته دې۔

**داهلیت حل اوعقدەپاره پنځه شرائط دی**:

(۱) داسلام په عقائدو کښې رسوخ اومضبوطوالې.

(۲) ذکورة۔　(۳) په علم دین کښې رسوخ۔　(۴) تقوی اوتصلب فی الدین۔

(۵) په ملکی حالاتواو حاضرو سیاستونو کښې کامل بصیرت.

## دلائل:

(۱) قال الله تعالی ﴿وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ ۖ وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ يَسْتَنبِطُونَهُ مِنْهُمْ﴾ (۴-۸۳)

هرکله چه دعمومی مسائلوډپاره داهل حل والعقدپه طرف درجوع کولو حکم شوې دې نو دخلافت په شان داهمې او لوې مسئلې دپاره به دعوام کالانعام په طرف درجوع کولو څنګه اجازت ورکولې شی؟

(۲) وقال تعالی ﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡۖ ﴾ (٤-٥٩)

په دې آيت کښې داولی الامردوه تفسيرونه کړې شوی دی:

(۱) احکام (۲) اهل حل والعقد.

په اول آيت کښې داولی الامرنه اهل حل والعقد معنی متعينه شوې ده، ددې نه ثابته شوه چه په دويم آيت کښې هم دا تفسيرراجح دې.

کله چه په عامو معاملاتو کښې داهل حل والعقد د اطاعت حکم شوې دې نو د انتخاب امير په شان اهمه مسئله کښې په طريق اولی سره ددوئ اطاعت فرض کيږی.

(۳) وقال تعالی ﴿ وَإِن تُطِعۡ أَكۡثَرَ مَن فِي ٱلۡأَرۡضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِۚ ﴾ (٦-١١٦)

(٤) وقال تعالی ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ يَأۡمُرُكُمۡ أَن تُؤَدُّواْ ٱلۡأَمَٰنَٰتِ إِلَىٰٓ أَهۡلِهَا ﴾ (٤-٥٨)

ددې نه لکه څنګه چه دا خبره ثابته شوه چه هرکله اميرداسې شخص منتخب کول فرض دی په چاکښې دامارت اهليت وی، نو دغه رنګه داهم ثابته شوه چه په عوامو باندې دافرض دی چه دانتخاب اميرمسئله په خپله دفيصلې کولوپه ځائ داسې اهل حل والعقد ته حواله کړی چه په هغوئ کښې دانتخاب اهليت وی.

(۵) دنصوص شرعيونه علاوه دعقل فيصله هم داده چه داميرانتخاب دهر چا کار نه دې بلکه ددې دپاره دکمال عقل ضرورت دې اودعلم دين اوتقوی نه بغيرعقل نه شی کامل کيدې۔

## د امير شرائط

دامير د اهليت دپاره د اهل حل والعقددشرائطو مذکورو نه علاوه شپږم شرط هم دې چه صاحب همت اوشجاع به هم وی.

## داميردانتخاب طريقه

په اسلام کښې د امير د انتخاب کولو درې طريقې دی:

(۱) بيعت داهل حل والعقد، کماوقع لسيدنا ابی بکر رضی الله تعالی عنه۔

(۲) استخلاف، د وخت خليفه چه يوځو اهل حل والعقد سره دمشورې کولو نه وروسته دچا په باره کښې وصيت وکړی چه زمانه بعدبه دا سړې خليفه کيږی، لکه حضرت ابوبکررضی الله تعالی عنه حضرت عثمان، عبدالرحمن بن عوف، سعيدبن زيد، اسيدبن حضير او د مهاجرينو او انصارو رضی الله تعالی عنهم له نورو اهل حل والعقدسره له مشورې کولونه وروسته يې حضرت عمررضی الله تعالی عنه منتخب کړو.

روى ابن الاثير رحمه الله تعالى ان ابابكر الصديق رضى الله تعالى عنه لما مرض دعا عبد الرحمن يعنى ابن عوف رضى الله تعالى عنه فقال له اخبرنى عن عمر بن الخطاب. فقال عبد الرحمن رضى الله تعالى عن ما تسالنى عن امر الا وانت اعلم به منى. قال ابوبكر وان. فقال عبد الرحمن هو والله افضل من رايك فيه ثم دعا عثمان بن عفان رضى الله تعالى عنه فقال اخبرنى عن عمر. فقال انت اخبرنا به فقال على ذلك يا اباعبدالله. فقال عثمان رضى الله تعالى عنه اللهم علمى به ان سريرته خير من علانية وان ليس فينا مثله. فقال ابوبكر رضى الله تعالى عنه يرحمك الله والله لو تركته ما عدوتك وشاور معهما سعيد بن زيد اباالاعور واسيد بن حضير وغيرهما من المهاجرين والانصار رضى الله تعالى عنهم. فقال اسيد بن حضير وغيرهما من المهاجرين والانصار رضى الله تعالى عنهم. فقال اسيد رضى الله تعالى عنه اللهم علمه الخيرة بعدك يرضى للرضى ويسخط للسخط الذى يسر خون من الذى يعلن ولن يلى هذا الامر احد اقوى عليه منه (اسد الغابة ص ٦٨ ج ٣)

## داستخلاف په ذريعه دخلافت د انعقا شرائط

دابوبكررضى الله تعالى عنه د استخلاف د ذكر شوى تفصيل نه ثابته شوه چه داستخلاف په ذريعه د انعقاد خلافت دپاره درې شرائط دى:

(١) اول خليفه كښې بايد دخلافت ټول شروط موجودوى.

(٢) دويم خليفه هم بايد دټولو شروطو دخلافت مستجمع وى.

(٣) شورى، خليفهٔ وقت ديوڅو اهل حل والعقد شورى متعين كولو سره داوصيت وكړى چه زمانه بعد دې دا خلق په اتفاق رائې سره دځان نه كوم يوخليفه منتخب كړى. لكه څنګه چه حضرت عمررضى الله تعالى عنه د حضرت عثمان. حضرت على. حضرت زبير. حضرت طلحه. حضرت سعد. حضرت عبدالرحمن بن عوف رضى الله تعالى عنهم شپږ كسان د شورى اركان متعين اوفرمائيل. او د دوئ په ذريعه د حضرت عثمان رضى الله تعالى عنه انتخاب په عمل كښې راغې.

رواه الامام البخارى رحمه الله تعالى عن عمرو بن ميمون رضى الله تعالى عنه ولفظه قال (عمر رضى الله تعالى عنه) ما اجد احق بهذا الامر من هؤلاء النفر اوالرهط الذين توفى رسول الله صلى الله عليه وسلم وهو عنهم راض فسمى عليا وعثمان والزبير وطلحة وسعدا وعبدالرحمن ابن عوف وقال ويشهد كم عبدالله بن عمر وليس له من الامر شئ كهيئة التعزية له فان اصابت الامرة سعدا فهو ذاك والا فليستعن به ايكم ما امر فانى لم اعزله من عجز والا خيانة (وبعد اسطر) فلما فرغ من دفنه اجتمع هؤلاء الرهط فقال عبدالرحمن رضى الله تعالى عنه اجعلوا امركم الى ثلثة منكم. قال الزبير رضى الله تعالى عنه قد جعلت امرى الى على فقال طلحة رضى الله تعالى

عنه قد جعلت امری الی عثمان وقال سعد رضی الله تعالی عنه قد جعلت امری الی عبد الرحمن بن عوف فقال له عبد الرحمن رضی الله تعالی عنه ایکما تبرا من هذا الامر فنجعله الیه والله علیه والاسلام لینظرن افضلهم فی نفسه فاسکت الشیخان رضی الله تعالی عنهما فقال عبد الرحمن بن عوف رضی الله تعالی عنه افتجعلونه الی والله علی ان لا الو عن افضلکم قال نعم فاخذ بید احدهما فقال لک قرابة من رسول الله صلی الله علیه وسلم والقدم فی الاسلام ما قد علمت فالله علیک لئن امرتک لتعدلن ولئن امرت عثمان لتسمعن ولتطیعن ثم خلا بالآخر فقال له مثل ذلک فلما اخذ المیثاق قال ارفع یدیک یا عثمان فبایعه فبایع له علی رضی الله تعالی عنه وولج اهل الدار فبایعوه (صحیح البخاری ص ۵۲۰ ج ۱)

دانتخاب امیر دادرې طریقې دی. البته دانعقاد خلافت یوه څلورمه طریقه د استیلاء او تغلب هم ده، یعنې دخلیفۀ وخت دمرګ نه بعد یو شخص جبراً اوقهراً په خلافت مسلط شي نو دده خلافت منعقد کیږي، له همدې وجې نه دده اطاعت واجب دې.

بیا ددې دوه قسمونه دي:

(۱) دا شخص باید دشروط خلافت مستجمع وی او خلق په صلحې اوپه حسن تدبیر سره خپل ځان ته مائل کوی، کوم ناجائز اقدام نه کوی- دا قسم جائزدې، دحضرت معاویه رضی الله تعالی عنه خلافت همدارنګه منعقد شوې وو.

(۲) په دې شخص کښې شروط دخلافت نه وی او خپل مخالفین په قتال اونورو ناجائزو حربو باندې د خپل ځان تابع کړی، داجا ئزنه ده، داسې شخص فاسق اوسخت ګنهګاردې، لیکن ددې باوجود دده دتسلط نه بعد دده اطاعت واجب دې پدې شرط چه دده حکم خلافِ شرع نه وی- دده نه مخالفت اودده دمخالفت اومعزول کولو کوشش جائزنه دې-

قال الامام ولی الله رحمه الله تعالی :انعقاد خلافت بچهار طریق واقع شود:

طریق اول بیعت اهل حل وعقد ست از علماء وقضاة وامراء ووجوه ناس که حضور ایشان میسر شود واتفاق اهل حل وعقد جمیع بلاد اسلام شرط نیست زیراکه آن ممتنع ست وبیعت یک ویا دو کس فائده ندارد زیراکه حضرت عمر درخطبۀ آخر فرموده اند فمن بایع رجلا علی غیر مشورة من المسلمین فلا یبایع هو والذی بایعه تغرة ان یقتلا وانعقاد خلافت حضرت صدیق رضی الله تعالی عنه بطریق بیعت بوده است-

طریق دوم استخلاف خلیفه است مستجمع شروط را یعنی خلیفۀ عادل بمقتضای نصح مسلمین

شخصی را ازمیان مستجمعین شروط خلافت اختیار کندوجمع نماید مردمان راونص کند باستخلاف وی ووصیت نمایدباتباع وی-پس این شخص میان سائر مستجمعین خصوصیتی پیداکند وقوم رالازم ست که همان شخص راخلیفه سازند، انعقاد خلافت حضرت فاروق رضی الله تعالی عنه بهمین طریق بود-

طریق سوم شوری ست وآن آنست که خلیفه شائع گرداندخلافت رادرمیان جمعی ازمستجمعین شروط وگویدازمیان این جماعه هرکه رااختیارکنندخلیفه اوباشد پس بعدموت خلیفه تشاورکنند ویکی رامعین سازندوارگ برائ اختیارشخصی رایاجمعی رامعین کنداختیار همان شخص یاهمان جمع معتبرباشد، وانعقاد خلافت ذوالنورین رضی الله تعالی عنه بهمین طریق بود که حضرت فاروق رضی الله تعالی عنه خلافت را درمیان شش کس شائع ساختندوآخرهاعبدالرحمن بن عوف رضی الله تعالی عنه برائ تعیین خلیفه مقررشد ووی حضرت ذی النورین رضی الله تعالی عنه را اختیار نمود-

طریق چهارم استیلاء ست چون خلیفه بمیرد وشخصی متصدی خلافت گردوبغیر بیعت واستخلاف وهمه ر ابرخود جمع سازد بایتلاف قلوب یابقهر ونصب قتال خلیفه شود ولازم گردد وبرمردمان اتباع فرمان اودرآنچه موافق شرع باشد، واین دونوع ست:

یکی آنکه مستولی مستجمع شروط باشدوصرف منازعین کندبصلح وتدبیرازغیرارتکاب محرمی،واین قسم جائزست ورخصت، وانعقاد خلافت معاویة بن ابی سفیان بعدحضرت مرتضی بعدصلح امام حسن رضی الله تعالی عنهم بهمین نوع بود-

دیگر آنکه مستجمع شروط نباشد وصرف منازعین کندبقتال وارتکاب محرم وآن جائزنیست وفاعل آن عاصی ست لیکن واجب ست قبول احکام اوچون موافق شرع باشد، واگر عمال او اخذ زکوة کنند از ارباب اموال ساقط شود چون قاضی اوحکم نمایدنافذگردد حکم او، همراه اوجهاد می توان کرد، واین انعقاد بنابر ضرورت ست زیراکه درعزل اوافنائ نفوس مسلمین وظهور حرج ومرج شدیدلازم می آید وبیقین معلوم نیست که این شدایدمفضی شودبصلاح یانه، یحتمل که دیگر بدترازاول غالب شود، پس ارتکاب فتن که قبح اومتیقن به ست چرابایدکرد برائی مصلحتی

که موهوم ست ومحتمل ، وانعقاد خلافت عبدالملک بن مروان واول خلفائ بنی عباس بهمین نوع بود(ازالة الخفاء ص ۵ مقصداول) فقط والله تعالی اعلم ۱۶ذی الحجه سنه ۹۹هـ

## دښځې سربراهی (مشری)______داکابروعلماؤ فیصله

تحریر: مولانا محمد رفیع عثمانی

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وکفی وسلام علی عبادہ الذین اصطفی

دقرآن اوسُنت دواضحوارشاداتو په بناء باندې داخبره دڅوارلس سوو کالونه په فقهاء امت کښې مسلمه اوغیرمتنازعه راروانه ده چه په کوم اسلامی حکومت کښې دسربراهئ دمنصب ذمه داريانې ښځو ته نه شی ورکولې- علامه ابن حزم رحمه الله تعالی د«مرتب الاجماع » په نوباندې يوکتاب ليکلې دې چه په هغې کښې ئې دامسائل جمع کړی دی چه په هغې باندې دأمت اجماع اواتفاق دې- په دې کتاب کښې هغه ليکل کيږی: **واتفقواان الامامة لاتجوز لامراة (مراتب الاجماع لابن حزم ص۱۲۶)**

« يعنی په دې خبره باندې ټول علماء متفق دی چه دحکومت دسربراهئ منصب دکومې ښځې دپاره جائزنه دې» ، ددې اجماع بنياد دقرآن اوسنت په ډيرودلائلو باندې دی کوم چه مونږدصراحت په ترتيب باندې لاندې پيش کوی:

(۱) په صحيح بخاری وغيره کښې درسول الله صلی الله عليه وسلم داارشادپه متعددو سندونو باندې نقل دې:

**لن يفلح قوم ولوا امرهم امراة (صحيح البخاری کتاب المغازی باب کتاب النبی صلی الله عليه وسلم الی کسری وقيصر حديث نمبر ۴۴۲۵ ،وکتاب الفتن باب الفتنة التی تموج کموج البحر، حديث نمبر ۷۰۹۹)**

«هغه قوم هيڅکله هم کاميابی نشی موندلې چه دخپلومعاملاتوذمه داری کومې ښځې ته حواله کړی»

په همدې حديث کښې د دې خبرې هم صراحت دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم داخبره هغه وخت ارشاد فرمائيلې وه کله چه دايران اوسيدونکو يوه ښځه خپله سربراه جوړه کړې وه- لهذادا حديث دښځې د سربراه جوړولوپه عدم جوازباندې واضح دليل دې-

(۲) دحضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله صلی الله عليه وسلم ارشاد اوفرمائيلو:

**اذا كانت امراؤكم خياركم واغنياؤكم سمحاءكم وامور كم شورى بينكم فظهر الارض خيرلكم من بطنها، واذا كانت امراؤكم شراركم واغنياؤكم بخلاءكم وامور كم الى نساء كم فبطن الارض خيرلكم من ظهرها (جامع الترمذى ابواب الفتن ص۵۱ ج۲)**

«کله چه ستاسو حاکمان په تاسوکښې بهترين خلق وى، اوستاسودولتمندخلق ستاسونه سخيان خلق وى، او ستاسو معاملات په مشورې باندې فيصله کيږى نود زمکې شا ستاسو دپاره دهغې دخيتې نه بهتره ده. اوکله چه ستاسو حاکمان ستاسو بدترين خلق وى- ستاسودولت مند خلق ستاسو بخيل خلق وى، او ستاسومعاملات ستاسو ښځوته حواله شى نو د زمکې خيټه ستاسو دپاره دهغې دشانه بهتره ده.

داحديث هم دومره واضح دى چه ددې دځه تشريح ضرورت نشته.

(۳) حضرت ابوبکرصديق رضى الله عنه روايت فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم يو لښکر چرته وليګلو، دهغه ځائ نه کوم سړى دفتح خوشخبرى راوړه، رسول الله صلى الله عليه وسلم چه دفتح خوشخبرى واوريده نو په سجدې باندې وغورځيدلو، اودسجدې نه بعد يى دپيغام راوړونکى نه تفصيلات معلومول اوفرمائيل، هغه تفصيلات بيان کړل چه : **فكان فيما حدثه من امر العدو كانت تليهم امراة فقال النبى صلى الله عليه وسلم هلكت الرجال حين اطاعت النساء (مستدرك الحاكم ص۲۹۱ ج۴ كتاب الاداب باب سجدة الشكر)**

«په دې تفصيلاتوکښې هغه ددشمن په باره کښې داهم اووئيل چه دهغوئ سربراهى يوې ښځې کوله، رسول الله صلى الله عليه وسلم دا اوفرمائيل:«کله چه سړى دښځوتابعدارى کوى نوهغه تباه اوبرباد دى» ، داحديث امام حاکم رحمه الله تعالى صحيح الاسنادګڼلې دې، اوحافظ ذهبى هم دې ته صحيح وئيلې دى.

(۴) دقرآن کريم ارشاد دې چه :

﴿ٱلرِّجَالُ قَوَّٰمُونَ عَلَى ٱلنِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ﴾ ، (سورة النساء)

(سړى په ښځوباندې قوام (نګرانان، حاکمان) دى په وجه د هغه فضيلت چه کوم الله تعالى ددوئ نه يوته په بل باندې ورکړې دې»

په دې آيت کښې الله تعالى په واضح طورباندې دقواميت مقام سړوته ورکړې دې- اګرچه براه راست دا آيت دخانګى اُمورو سره متعلق معلوميږى، ليکن اول خو په آيت کښې څه لفظ داسې نه نشته چه هغه له خانګى امورو سره خاص کړى ، دويم دا يوه بديهى خبره ده چه کوم صنف ته الله تعالى ديو وړوکى کور ذمه دارى نه سپارى، هغه ته دټولوکورونو دمجموعى اوديوره ملک دسر

براهئ ذمه داری څنګه سپارلې شی؟ لهذا دا آیت که چیرې دعبارة النص په طورباندې نه وی نو د دلالة النص په طورباندې یقیناً په دې خبرې باندې دلالت کوی چه ښځه دکوم اسلامی ملک سربراه نه شی جوړیدلې.

(۵) په سورة احزاب کښې الله تعالی دښځې دائرهٔ عمل په واضح طورباندې بیان فرمائیلې ده، ارشاددې چه: ﴿ وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ ﴾.

«اوپه خپلوکورونوکښې په قرارسره اوسئ، اودتیرشوی جاهلیت په شان لوڅې اوبربنډې بهر مه ځئ»

په دې آیت کښې په واضح طورباندې وئیلې شوې دی چه دښځې اصل ذمه داری د دوئ دکور ذمه داری ده، هغه ئې دبهر جدوجهدنه یوخواکړه دخپل کورداصلاح اودخپل کوردتربیت فریضه سرته رسول دوئ ته پکاردی چه په حقیقت کښې پوره قوم او د معاشرې بنیاددې - لهذا دکورنه دباهر څه ذمه داری (بغیر له استثنائی حالاتو نه) په اصولی حیثیت سره کومې ښځې ته نه شی سپارلې-

بعضې حضرات وائی چه داخطاب په خاص طورباندې درسول الله صلی الله علیه وسلم دازواج مطهراتو دپاره شوی وو، هره ښځه ددې مخاطب نه ده- لیکن داخبره دومره په بدیهی طورباندې غلط ده چه ددې دتردیددپاره دکوم طویل بحث ضرورت نشته- اول خوقرآن کریم دغه ځائ کښې ازواج مطهراتو ته خطاب فرمائیلو سره دډیرو خبروتاکید فرمائیلې دې ،مثلاً داچه هغه تقوی اختیارکړی، الله اودهغه درسول اطاعت وکړی ،دفحش خبرونه بچ شی، وغیره وغیره- ددې نه کومه یوه خبره هم داسې نه ده چه دهغې په باره کښې کوم د فکر خاوند دا اووائی چه داحکم صرف دازواج مطهراتودپاره دې،دکومې بلې ښځې دپاره نه دې، کله چه دا ټول احکام دټولوښځودپاره دی نوپه کورکښې په قرار د اوسیدودا یوحکم ازواج مطهراتوته ولی مخصوص دې؟

دویم، په دې خبره کښې کوم مسلمان شک کولې شی چه دآنخضرت صلی الله علیه وسلم ازواج مطهرات دخپلوعملی اوعلمی صلاحیتونوپه لحاظ باندې دأمت افضل ترینې ښځې وې اودپوره امت مورګانې وې، که چیرې په اسلام کښې سیاست اوحکومت اومعیشت اوداقتصاد ذمه داری کومې ښځې ته سپارل جائز وای نوددې مقدسو ښځونه زیاته بله کومه ښځه ددې ذمه دارئ دپاره مناسبه کیدې شی- کله چه قرآن کریم هغوئ ته داسې ذمه داریانونه دمنع کولوسره هغوئ ته صرف دکورترحده پورې دمحدود اوسیدوحکم ورکړو نوبیاکومه ښځه داسې کیدې شی چه دهغې په باره کښې دا اوئیلې شی چه دکومې وجې نه ازواج مطهراتوته په کورکښې دقرارکیناستوحکم ورکړې وو، هغه وجه په د ې کښې موجوده نه ده.

(۶) په سورة احزاب کښې قرآن کريم چه دښځو کومه دائره کاربيان فرمائيلې ده دهغې تشريح سرکار دوعالم صلی الله عليه وسلم په يوحديث کښې دارنګه فرمائيلې ده : والمرأة راعية على اهل بيت زوجها وولده وهى مسئولة عنهم (صحيح البخاري کتاب الاحکام باب، حديث نمبر ۸۹۳ ، ۲۴۰۹ ، ۲۵۵۴ ، ۲۵۵۸ ، ۲۷۵۱ ، ۵۱۸۸ ، ۵۲۰۰)

د دې نه علاوه وګورئ حديث نمبر ۵۴۰۰ ، ۵۱۸۸ ، ۲۷۵۱ ، ۲۵۵۸ ، ۲۴۵۴ ، ۲۴ ، ۹

«اوښځه دخپل خاوندپه کوروالاؤ اودهغه په اولادباندې نګرانه ده، اوهغه ددې ذمه داره ده»

په دې حديث کښې په واضح طورباندې وئيلې شوى دى چه دښځې ذمه دارى دکوردنظام منظم کول او سنبالو اود اولاد تربيت اودکور دنورو امورو انتظام دې - هغې ته دکورنه بهرڅه ذمه دارى نه شى سپارلې-

(۷) په اسلام کښې د «حکومت دسربراهئ» او «مونځ امامت» دواړه په دومره اندازه لازم وملزوم دى چه «دحکومت سربراهى» ته هم دشريعت په اصطلاح کښې «امامت» وئيلې شى، اود «امام» لفظ چه څه رنګه دمونځ کولو والادپاره استعماليږى، دارنګه د «حکومت سربراه» ته هم امام وئيلې شى- په قرآن اوحديث کښې په ډيرومقاماتو باندې دحکومت د سربراه نه په دې لفظ سره تعبيرکړې شوې دې، اوفقهاء کرام رحمهم الله تعالى دامامت په دواړومعنو کښې دارنګه فرق کوى چه دمونځ کونکى امامت ته «امامت صغرى» وړوکې امامت) اودحکومت سربراه ته «امامت کبرى» (غټ امامت) وائى-

دلته داخبره فيصله شوې ده اوددې نه کوم شخص انکارنشى کولې چه ښځه په مونځ کښې دسړو امامت نه شى کولې- کله چه الله تعالى دې ته دوړوکې درجې دامامت ذمه دارى نه سپارى، نو دغټې درجې امامت هغې ته څنګه سپارلې شى؟

په اسلام کښې دمونځ دحکومت له سربراهئ سره څومره اندازه ژور تعلق دې؟ ددې اندازه ديو څولاندينو اُمورونه لګولې شى:

(الف) دزمکې په کومه حصه باندې داقتدارحاصلولونه بعد دحکمرانانو دټولونه اوله فريضه «اقامت الصلوة» ګرځولې شوې ده، ارشاددې چه : ﴿ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ أَقَامُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُوا۟ بِٱلْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا۟ عَنِ ٱلْمُنكَرِ ﴾ .

«هغه خلق که چرې مونږهغوئ ته په زمکه کښې اقتدارعطاء کړو نوهغوئ مونځ قائموى، اوزکوة اداکوى، او د نيکئ حکم کوى اودبدئ نه منع کوى»

(ب) د آنحضرت صلى الله عليه وسلم نه واخله ترخلفاء راشدينو رضى الله عنه پورې، بلکه دهغې نه بعد هم تر ډيرو پيړيو پورې دا متواترعمل جارى دې چه په کومه مجمع کښې دحکومت سربراه موجودوى، په هغې کښې دمونځ امامت هغه په خپله کوى- چنانچه دټولومکاتب فکر

فقهاء په دې باندې متفق دی، اوکله چه آنحضرت صلی الله علیه وسلم دمرض وفات دوجې نه مسجد ته دراتلونه معذورشو نورسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت صدیق اکبر رضی الله تعالی عنه په خپل ځائ باندې دمونځ دامامت دپاره مقرر کړو، اودې نه صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم دا خبره اوپیژندله چه ده ته «امامت صغری»حواله کولونه اشاره ددې خبرې طرف ته ده چه ددوئ صلی الله علیه وسلم نه بعد د«امامت کبری»یعنی دحکومت د سربراهئ دپاره هم دټولونه زیات اهل حضرت صدیق اکبررضی الله تعالی عنه دې، حضرت علی رضی الله تعالی عنه فرمائی:

**ما غضبنا الالا ناقد اخرنا عن المشاورة وانا نری ابابکر احق الناس بها بعد رسول الله صلی الله علیه وسلم وانه لصاحب الغار، وثانی اثنین، وانا نعلم بشرفه و کبره، ولقد امره رسول الله صلی الله علیه وسلم بالصلوة بالناس وهو حی(مستدرک الحاکم ص۶۷ ج۳وقال: صحیح علی شرط الشیخین واقره الذهبی)**

«زمونږ د خفګان وجه صرف داوه چه مونږئې په مشوره کښې شریک نه کړو، اوکه نه نو ابوبکر رضی الله عنه درسول الله صلی الله علیه وسلم نه بعد د سربراهئ دټولونه زیات مستحق ګڼو، دا ددوئ صلی الله علیه وسلم دغارملګرې دې،ددوؤنه دویم دې، مونږ دده شرف اوعظمت نه واقف یو،اورسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله په خپلې زندګئ کښې ده ته دمونځ دامامت حکم ورکړې وو.

(ج) دحکومت دسربراه دپاره دمونځ دامامت استحقاق په شریعت کښې په دومره اندازه اهمیت لری چه دجنازې په امامت کښې یې دحکومت سربراه ته دمړی په وارثانو باندې هم فوقیت ورکړې دې، اودا خبره فیصله شوې ده چه که چیرې دجنازې په مونځ کښې دحکومت سربراه موجودوی نو دمونځ دامامت اول حق دده دې، دده نه بعدد وارثانو دې.

ددې ټولواحکامونه داخبره واضحه ده چه په اسلام کښې دحکومت دسربراهئ سره دمونځ دامامت دومره لنډ او نزدې تعلق دې چه په اسلام کښې دکوم داسې سربراه تصورنه شی کولې چه په یو حالت کښې هم دمونځ دامامت اهل نه وی، اوښځه که دتقوی اوطهارت څومره په بلندمقام باندې فائزه وی، چونکه په مونځ کښې دسړوامامت نه شی کولې ، دې وجې نه هغې ته دامامت کبری یاحکومت دسربراهئ ذمه داری هم نه شی سپارلې-

(۸) داسلام په ټولواحکاموکښې داخبره دقدرمشترک په طورباندې په واضح طورسره په نظرراځی چه ښځه ئې یوداسې «متاع پوشیده» ګڼلې ده چه دهغې بلاضرورته په مجمع عام کښې راتلل په کوم حالت کښې هم خوښ نه کړل- دسرکاردوعالم صلی الله علیه وسلم ارشاددې: **المرأة عورة فاذا خرجت استشرفها الشیطان(جامع الترمذی ابواب النکاح حدیث نمبر ۱۱۸۳)**

«ښځه پټ څیزدې، چنانچه کله هغه بهر ووځی نوشیطان دهغې په تعاقب کښې وی»

له همدې وجې نه ئې ښځې ته دپردې حکم کړې دې. اوعامومسلمانانوته ئې د اتاکید کړې دې چه: ﴿وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَسْـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍ﴾ «سورة احزاب»

«اوکله چه تاسو دهغوئ نه څه څیزطلب کوئ نودپردې شاته ئې ترینه طلب کوئ»

داسلام هغه ډیراحکام اوشعائر چه دهغې په ځائ دکورنه په بهروتلوباندې موقوف دی، ددې نه ئې ښځې مستثنی کړی دی- مثلاً دجمع مونځ څومره دفضیلت څیزدې ،اوسړوته په دې کښې دشاملیدو څومره تاکید په قرآن اوحدیث کښې راغلې دې، لیکن د دې سره سره رسول الله صلی الله علیه وسلم دااوفرمائیل چه : **الجمعة حق واجب علی کل مسلم فی جماعة الا اربعة عبد مملوك اوامراة اوصبی اومریض (سنن ابوداؤد باب الجمعة للمملوك والمراة حدیث نمبر ۱۰۶۷)**

«جمعه یوداسې فریضه ده کومه چه دجماعت سره اداکول په هرمسلمان باندې واجب دی، سوا دڅلورو کسانونه : یوغلام چه دچا مملوك وی، دویمه ښځه ،دریم ماشوم، څلورم بیمار»

په دې حدیث کښې دجمعې په شان داسلامی شعارنه ئې ښځه مستثنی کړې ده.

دارنګه په عاموحالاتوکښې دهرمسلمان ئې داحق ګڼلې دې چه دده دانتقال په موقع باندې بل مسلمان دده دجنازې سره قبرستان پورې لاړشی- لیکن ښځې ددې حکم نه هم مستثنی کړې شوې دی- حضرت ام عطیه رضی الله تعالی عنهما فر مائی : **نهینا عن اتباع الجنائز (صحیح بخاری ص۱۷۰ ج۱ باب اتباع النساء الجنازة)** «یعنی مونږ ئې دجنازو د شاته تلونه منع کړی یو»

دارنګه ئې ښځه دتنهاء سفر نه منع کړې ده، اوتاکیدئې کړې دې چه هغه باید دکوم محرم نه بغیر سفر ونه کړی، دآنحضرت صلی الله علیه وسلم ارشاددې : **لایحل لامراة تؤمن بالله والیوم الاخران تسافر سفرایکون ثلاثة ایام فصاعداً الاومعها ابوها اواخوها اوزوجها او ابنها اوذومحرم منها (جامع الترمذی کتاب النکاح باب کراهیة ان تسافر المراة وحدها، حدیث نمبر ۱۱۶۹)**

«کومه ښځه چه په الله باندې اوپه ورځ د آخرت باندې ایمان لری، د هغې لپاره حلال نه دی چه هغه د درې ورځو «دمسافت» یا د دې نه زیات کوم سفر وکړی، مګر دا چه دهغې پلار یا ورور یا خویند یاخوئ یاکوم بل محرم له هغې سره وی»

تردې پورې چه دحج په شان فریضه چه داسلام دڅلوروارکانونه یوه لویه فریضه ده، دهغې د ادا کولو دپاره هم دمحرم سره کیدل شرط دی، اودښځې تنهاسفر او د حج لپاره تلل دچاپه نزدجائزنه دې، په دې صورت کښې له هغې نه دحج ادا کیدل ساقط کیږی، دمړکیدوتروخته پورې که داسې محرم پیدا نشی نو حج به نه کوی، البته دحج بدل وصیت کولې شی-

جهاد داسلام دارکانونه څومره اهم رکن دې؟ اوددې دفضائلونه قرآن اوسنت ډک دی، لیکن

چونکه دا دکورنه دبهرکاردې، دې وجې نه دجهاد فريضه هم دښځونه ساقطه کړې شوې ده-
دحضرت صلی الله عليه وسلم دا ارشاد په بعضې احاديثوکښې روايت شوې دې: ليس على النساء غزو ولاجمعة ولاتشيع جنازة (مجمع الزوائدص ۱۰۰ج ۲بحواله طبرانی وفيه مجاهيل والفتح الكبير للنبهانی ص ۲ج)

«يعنی په ښځوباندې نه جهادفرض دې، نه جمعه، نه دجنازې شاته تلل»

دې پورې چه يوځل حضرت ام سلمه رضی الله تعالی عنها دجهاد دشوق په وجه باندې دحضرت صلی الله عليه وسلم نه دا سوال اوفرمائيلو چه: يغزوالرجال والاتغزوالنساء،

«يعنی سړی جهادکوی او ښځې جهادنه کوی»؟

په دې باندې دقرآن کريم دا آيت نازل شوچه: ﴿وَلَا تَتَمَنَّوۡاْ مَا فَضَّلَ ٱللَّهُ بِهِۦ بَعۡضَكُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٍ ﴾

(جامع الترمذی كتاب التفسير سورة النساء حديث نمبر ۳۰۱۱ومسنداحمد ۳۲۲ج ۲)

«اوددې څيزونوتمنامه کوئ چه په هغې کښې الله تعالی ستاسونه بعضوته په بعضوباندې فضيلت ورکړې دې»

واضحه دې وی چه د آنحضرت صلی الله عليه و سلم په زمانه کښې بعضې ښځې باقاعده په جهاد کښې دزخميانودمرهم پټئ وغيره دپاره ورسره تللې دی، ليکن حقيقت دادې چه اول خوپه دوئ باندې جهاد مستقل فرض کړې شوې نه وو، دويم دوئ به باقاعده په جنګ کښې شاملولې نشوې ـچنانچه حضرت عبدالله بن عباس رضی الله تعالی عنهما فرمائی: وقدكان يغزو بهن فيداوين الجرحى ويحذين من الغنيمة واما بسهم فلم يضرب لهن (صحيح مسلم كتاب الجهاد باب النساء الغازيات حديث نمبر ۴۶۲۸)

«آنحضرت صلی الله عليه وسلم ښځې جهاد ته بوتلې، اوهغوئ به دزخميانوعلاج کولو، اوهغوئ ته به دمال غنيمت نه څه بطوردانعام ورکولې شول، ليکن دوئ صلی الله عليه وسلم ددې ښځو دپاره دمال غنيمت مسُتقله حصه نه ده معلومه کړې»

آنحضرت صلی الله عليه وسلم په خپله زمانه کښې اګرچه ښځوته به دشپې په وخت مسجد نبوی ته راغې اودجماعت سره به ئې دمونځ کولو اجازت ورکولو، ليکن ددې اجازت سره ئې دا هم فرمائيل چه: وبيوتهن خيرلهن (سنن ابوداؤد كتاب الصلاة باب خروج النساء الى المساجد حديث نمبر ۵۶۸،۵۶۷)

چه دهغې واضح مطلب دادې چه دښځودپاره په کورکښې يواځې مونځ کول په مسجد کښې دمونځ کولونه افضل دی، ليکن دسړودپاره دسخت عذرنه بغير دمسجد جماعت پرېښودل جائزنه

دی، بلکه دښځوپه باره کښې ئې دې پورې اوفرمائیل چه: **صلاة المراة في بيتها افضل من صلاتها في حجرتها، وصلاتها في مخدعها افضل من صلاتها في بيتها (سنن ابوداؤد، حديث نمبر ٥٧٠)**
((دښځې په کمرې کښې مونځ کول د برنډې نه په مونځ کولوباندې بهتره دی، اوپه دننه کمره کښې مونځ کول په بهرکمرې کښې دمونځ کولونه بهتری دی))
ددې احادیثونه واضح کیږی چه:
(الف) په ښځه باندې جمعه واجب نه ده.
(ب) دښځې دپاره بغیردمحرم نه سفرجائزنه دې.
(ج) په ښځې باندې د تنهاکیدوپه صورت کښې دحج اداکول فرض نه دی، ترمرګ پورې که محرم پیدا نشی نو د حج بدل وصیت دې وکړی.
(د) په ښځې باندې جهاد فرض نه دې.
(ه) دښځې په ذمه دجمعې مونځ کول واجب نه دی.
(و) دښځې په کورکښې تنهامونځ کول له بیرون جماعت سره مونځ کولونه افضل دی.
اوس د سوچ اوفکر کولوخبره ده چه کوم دین دښځې په تقدس اودهغې دحرمت دحفاظت دپاره ځائ په ځائ دومره اهتمام کړې دې چه ددین اهم ترین ارکان اوشعائریی هم دهغې په حق کښې ساقط کړی دی، دهغې په باره کښې داځنګه تصورکولې شی چه هغه دملک اوقوم اهم ترینه ذمه داری ښځې ته سپاری هغه نه صرف پوره ملک بلکه هغه دپوره دنیا مخې ته ودروی، اوهغې ته هغه ټول کارپه اجتماعی طورباندې ورسپاری چه دهغې ذمه داری په هغې باندې په انفرادی طور باندې هم نه عائدکیږی.
(۹)دسروردوعالم صلی الله علیه وسلم دعهدمبارک نه واخله تر خلافت راشده بلکه دخلافت راشده نه بعد هم تر پیړیو ، پیړیوپورې خلیفه اودحکومت سربراه انتخاب کول دامت اهم ترینه سیاسی مسئله وه، د یو خلیفه نه بعد د بل خلیفه نه وروسته د بل خلیفه د انتخاب په وقت په هرې موقعې باندې ډیرتجویزونه مخې ته راغلل - په هغې دورکښې بیشماره داسې ښځې موجودې وې چه هره یوه دخپل علم اوفضل، تقدس اوتقوی اوعقل او پوهې په لحاظ سره دممتازمقام حاملې وې لیکن نه صرف داچه کله کومه ښځه دحکومت سربراه جوړه نه شوه، بلکه کوم د ادنی درجې تجویز هم داسې مخې ته رانغې چه فلانۍ ښځه دې سربراه جوړه کړې شی، دا ددې خبرې واضح دلیل دې چه په دې سلسله کې د قرآن اوسنت احکام په دومره درجه واضح ووچه کله دکوم مسلمان په زړه کښې دښځې دسربراه کیدو تصورتدرې هم نه شو پیدا کیدې چه:
په یو حالت کښې هم د یو مونځ امامت نه شی کولې.

چه دهغې له جمع سره مونځ کول شریعت ته خوښ نه وی.
که چرې کله په جماعت کښې شامله وی نو هغه دټولو سړونه شاته ودریږی۔
په چاباندې چه هره میاشت یوځوورځې داسې تیریږی چه ددې لپاره مسجدته داخلیدل هم جائزنه وی۔
په چاباندې چه جمعه هم فرض نه وی۔
دچادپاره چه دکومې جنازې سره تلل هم جائزنه وی۔
چه بغیر دمحرم نه سفر نه شی کولې
چه تنهاحج نه شی کولې۔
په چاباندې چه جهادفرض نه وی۔
چه دچاګواهی نیمه ګواهی ګڼلې شی۔
دچادپاره چه بلاضرورته دکورنه وتل جائزنه وی
دچاچه نان اونفقه چه اول په پلارباندې اودواده نه بعدپه خاوندباندې واجب وی۔
او آن تر دې چه چاته په خپل کورکښې دسربراهئ او مشرئ منصب حاصل نه وی۔
دقرآن کریم له طرفه خوداواضحه ده، لیکن د ښځو د آزادئ آواز اوچتونکو خلکو هم په دې دور کښې کومه داسې معاشره د زمکې په مخ باندې زمونږ په علم کښې نشته چرته یی د یو خاوند ښځه «سربراه خاندان» ګڼلې وی۔

## د امت اجماع

دقرآن اوسنت د ذکر شوودلائلو له وجې نه تراوسه پورې د څوارلسو پیړیو په هردورکښې دامت مسلمه په دې خبره باندې اجماع ده چه په اسلام کښې د سربراهِ حکومت ذمه داری یوې ښځې ته نه شی سپارلې ، او اجماعِ امت د شریعت یو مستقل دلیل دې ، د اجماع د ثبوت دپاره ددې تحریرپه شروع کښې مونږه د علامه ابن حزم رحمه الله تعالی اقتباس پیش کړې دې ، هغوئ چه کوم کتاب صرف د اجماعی مسائلو د تحقیق دپاره لیکلې دې ، په هغې کښې فرمائی چه :

**(واتفقوا علی ان الامامة لا تجوز لامرأة)**

« ټول علماء په دې باندې متفق دی چه د حکومت سربراهی دیوې ښځې دپاره جائز نه ده» د شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله تعالی په شان باخبره عالم د « نقد مراتب الاجماع » په نوم سره د علامه ابن حزم رحمه الله تعالی په مذکوره کتاب باندې یو تنقید لیکلې دې ، اود بعضې مسائلو ذکر ئې کړې دې چه هغې لره علامه ابن حزم رحمه الله تعالی اجماعی ګرځولی دی ،لیکن د علامه ابن تیمیه رحمه الله تعالی د تحقیق مطابق هغه اجماعی نه دی ، بلکه په هغې کښې د بعضی

علماؤ اختلاف موجود دې ، په هغه کتاب کښې هم هغوی د ښځې د سربراهئ په مسئله کښې علامه ابن حزم رحمه الله تعالی باندې څه اعتراض نه دې کړې (نقد مراتب الاجماع لابن تیمیه ص ۱۲۶).

ددې حضراتو نه علاوه چه کومو علماؤ او فقهاؤ او د اسلامی سیاست ماهرینو د اسلام په سیاسی نظام باندې کتابونه لیکلی دی ، په هغوئ کښې هر یوه دا مسئلې دیوې متفقې مسئلې په طور باندې ذکر کړې ده.

د علامه ماوردی رحمه الله تعالی کتاب د اسلامی سیاست اهم ترین ماخذ ګڼلې کیږی په هغې کښې هغوی د حکومت سربراهی خو څه کوې ، ښځې ته د وزارت ذمه داری سپارل هم ناجائز ګرځولی دی ، بلکه هغوی وزارت په دوه قسمه کړې دې ، یو وزارتِ تفویض چه په هغې کښې د پالیسئ تعین هم د وزیرکار وی ، او دویم وزارتِ تنفیذ چه وزارتِ تنفیذ کښې د اهلیت شرائط د وزارتِ تفویض په مقابله کښې کم دی ، ددې باوجود ښځې ته د وزارتِ تنفیذ ذمه داری سپارل هم جائز نه ګرځوی ، هغه لیکی :

**واما وزارة التنفيذ فحكمها اضعف وشروطها اقل...... ولا يجوز ان تقوم بذلك امراة وان كان خبرها مقبولا لما تضمنه معنى الولايات المصروفة عن النساء لقول النبى صلى الله عليه وسلم ما افلح قوم اسندوا امرهم الى امرأة ولان فيها من طلب الراى وثبات العزم ما تضعف عنه النساء ومن الظهور فى مباشرة الامور ما هو عليهن محظور (الاحكام السلطانية للماوردى ص ۲۰تا۲۷ والاحكام السلطانية لابى يعلى ص۳۱)**

(( ترکومه حده پورې چه د وزارتِ تنفیذ تعلق دې ، هغه نسبةً کمزورې دې ، اودهغې شرائط کم دی ، لیکن دا جائز نه دی چه یوه ښځه دهغې ذمه داره جوړه شی اګرچه د ښځې خبر مقبول دې ځکه چه دا وزارت په داسې ولایتونو باندې مشتمل دې چه هغې لره (شریعت) د ښځو نه جدا ساتلې دې ، د حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه (( کوم قوم خپل معاملات یوې ښځې ته حواله کړی هغوئ به کامیابی ونه مومی )) همدارنګه ددې وجه نه هم چه د وزارت دپاره اولوالعزمی او عقل پکار دې او هغه په ښځو کښې کمزورې دې ، همدارنګه دهغه وزارت فرائض پوره کولو دپاره په داسې انداز سره خلقو ته راښکاره کیدل اومخامخ کیدل پیښیږی چه د ښځو دپاره شرعاً ممنوع دی )).

د اسلام په سیاسی نظام باندې دویم اهم ماخذ د امام ابویعلی حنبلی رحمه الله تعالی دې ، هغوی هم پخپل کتاب کښې لفظ په لفظ هم دا عبارت لیکلې دې.

امام الحرمین علامه جوینی رحمه الله تعالی د اسلام په سیاسی نظام باندې ډیر خوندور کتابونه لیکلی دی ، هغه د نظام الملک طوسی رحمه الله تعالی په شان نیک نام حاکم په زمانه کښې وو ، اوهم دهغه په درخواست باندې هغوی د اسلام په سیاسی احکامو باندې خپل

مجتهدانه کتاب ((غیاث الامم)) ولیکلو ، په هغې کښې هغه د سربراهِ حکومت شرائط بیان کړی دی او لیکی بی دی چه : **ومن الصفات اللازمة المعتبرة الذكورة والحرية ونحيزة العقل والبلوغ ولا حاجة الى الاطناب فى نصب الدلالات على اثبات هذه الصفات (غياث الامم للجوينى ص ۳ مطبوعه قطر)**

((وکوم چه لازمی صفات د سربراه دپاره شرعاً معتبر دی ، په هغې کښې دهغه مذکر کیدل ، آزاد کیدل او عاقل او بالغ کیدل هم دی ، او هغه شرائطو لره د ثابتولو دپاره تفصیلی دلائل پیش کولوسره د طول ورکولو ضرورت نشته))

همدا امام الحرمین رحمه الله تعالی په خپل یو بل کتاب ((الارشاد)) کښې لیکی : **واجمعوا ان المرأة لا يجوز ان تكون اماما وان اختلفوا فى جواز كونها قاضية فيما يجوز شهادتها فيه (الارشاد فى اصول الاعتقاد لامام الحرمين الجوينى ص ۳۰۰ و ص ۳۷۰ طبع مصر)**

((او په دې باندې د ټولو اتفاق دې چه د ښځې دپاره سربراهِ حکومت جوړیدل جائز نه دی ، اګرچه په دې کښې اختلاف دې چه په کومو امورو کښې دهغې ګواهی جائزه ده نو آیا په هغې کښې هغه قاضی جوړیدلې شی اوکه نه ؟))

علامه قلقشندی رحمه الله تعالی د ادب اوانشاء اود تاریخ اوسیاست امام ګڼلې کیږی ، هغوی د اسلام په اصولِ سیاست باندې چه کوم کتاب لیکلې دې ، په هغې کښې هغوی د سربراهِ حکومت د اهلیت څوارلس صفات بیان کړی دی ، دهغه شرائطو په شروع کښې هغه فرمائی : **الاول : الذكورة ...... والمعنى فى ذلك ان الامام لا يستغنى عن الاختلاط بالرجال والمشاورة معهم فى الامور والمرأة ممنوعة من ذلك ولان المرأة ناقصة فى امر نفسها حتى لا تملك النكاح فلا تجعل اليها الولاية على غيرها.**

((ومبنئ شرط مذکر کیدل دی ، اود دې حکم حکمت دادې چه د سربراهِ حکومت د سړو سره د اختلاط اود هغوئ سره د مشورې وغیره ضرورت پیښیږی اود ښځو دپاره دا خبرې ممنوع دی ، ددې نه علاوه ښځه دخپل ذات په ولایت کښې هم کمزورې ده ، تردې پورې چه هغه د نکاح ولی نه شی جوړیدلې))

امام بغوی رحمه الله تعالی د پنځمې صدئ هجری مشهور مفسر ، محدث او فقیه دې ، هغه لیکی او فرمائی : **اتفقوا على ان المرأة لا تصلح ان تكون اماما ..... لان الامام يحتاج الى الخروج لاقامة امر الجهاد والقيام بامور المسلمين ...... والمرأة عورة لا تصلح للبروز (شرح السنة للبغوى ص ۷۷ ج ۱۰ باب كراهية تولية النساء طبع بيروت ۱۴۰۳ هجرى)**

((په دې خبره باندې د امت اتفاق دې چه ښځه سربراهِ حکومت نه شی جوړیدلې ، ځکه چه امام

نه د جهاد د معاملاتو پوره کولو اود مسلمانانو دامور پوره کولو پاره د بهر وتلو ضرورت پېښېږي ، او ښځه پټه او سیدل پکار دی ، دهغې په مجمع عام کښې ښکاره کیدل صحیح نه دی »

قاضی ابوبکر ابن العربی رحمه الله تعالی د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله تعالی عنه د حدیث ذکر کولوسره فرمائی : **وهذا نص فی ان المراة لا تکون خلیفة ولا خلاف فیه (احکام القرآن لابن العربی ص ۱۴۴۵ ج۳ سورة النمل)**

«او داحدیث په دې خبره باندې نص دې چه ښځه خلیفه نه شی جوړیدلې ، او په دې کښې هیڅ اختلاف نشته دې »

علامه قرطبی رحمه الله تعالی هم پخپل تفسیر کښې د ابن عربی رحمه الله تعالی دا اقتباس نقل کړې دې او د هغې تائید یې کړې دې او وئیلی ئې دی چه په دې مسئله کښې د علماؤ په مینځ کښې هیڅ اختلاف نشته ، (تفسیر القرطبی ص ۱۸۳ ج ۱۳ سورة النمل)

او امام غزالی رحمه الله تعالی فرمائی : **الرابع الذکورية فلا تنعقد الامامة لامراة وان اتصفت بجميع خلال الکمال وصفات الاستقلال (فضائل الباطنية للغزالی ص ۱۸۰ ماخوذ از عبدالله الدميجی ،الامامة العظمی ص ۲۴۵)**

« د سربراهۍ څلورم شرط مذکر کیدل دی ، لهذا دیوې ښځې امامت نه منقعد کیږی، اګر که هغه د کمال په ټولو اوصافو باندې متصفه وی ، او په هغې کښې د استقلال ټول صفات موندلې کیږی »

د عقائدو اود کلام تقریباً ټول کتابونه دامامت اودسیاست د احکامو نه بحث کوی ، او ټولو د مذکر کیدلو شرط لره د یو اجماعی شرط په طور باندې ذکر کړې دې ، علامه تفتازانی رحمه الله تعالی لیکی : **يشترط فی الامام ان يکون مکلفا حراذکرا عدلا ، (شرح المقاصد ص ۲۷۱ ج۲)**

«د سربراهِ حکومت دپاره شرط دادې چه هغه عاقل بالغ وی، آزاده وی، مذکر وی او عادل وی»

دفقهاو، محدثینو او د اسلامی سیاست د علماؤ دا یو څو اقتباسات محض د مثال په طور باندې پیش کړې شوی دی ، اوکه نه نو په کوم کتاب کښې چه هم په اسلام کښې د سربراهۍ شرائط بیان کړې شوی دی ، هغلته مذکر کیدلو لره د یو اهم شرط په طور باندې ذکر کړې شوې دې ، که چیرته چا دا شرط نه دې ذکر کړې نوپه دې وجه چه دا د عاقل اود بالغ کیدلو شرط په شان دومره مشهور او معروف شرط وو چه هغې لره د باقاعده ذکرکولو ضرورت ونه ګڼلې شو ، ورنه په دې مسئله کښې هیڅ اختلاف نشته .

د عهدِ حاضر بعضې محققین چه هغوی د اسلامی سیاست په موضوع باندې کتابونه لیکلی

دی ، هغوی ټول په دې خبره باندې متفق دی چه د ښځې سربراه جوړيدلو عدم جواز باندې د امت اجماع ده، یوڅو اقتباسات مونږ لاندې پیش کوو :

ډاکټر محمد منیر عجلانی لیکی : لا نعرف بین المسلمین من اجاز خلافة المراة فالاجماع فی هذه القضية تام لم يشذ عنه احد (عبقرية الاسلام فی اصول الحکم ص ۷۰ مطبوعة دار النفائس بیروت ۱۴۰۵ هجری)

«مونږ ته په مسلمانانو کښې یو داسې عالم معلوم نه دې چه هغه د ښځې خلافت ته جائز وئیلې وی ، لهذا په دې مسئله کښې مکمل اجماع ده چه دهغې خلاف یوشاذ قول هم موجود نه دې»

ډاکټر محمد ضیاء الدین الرئیس د اسلام په سیاسی احکامو باندې لوئ تحقیق سره مبسوط کتاب لیکلې دې ، په هغې کښې هغه لیکی : اذا کان قد وقع بينهم خلاف فيما يتعلق بالقضاء فلم يرو عنهم خلاف فيما يتعلق بالامامة ، بل الكل متفق على انه لا يجوز ان يليها امراة (النظريات السياسية الاسلامية ص ۳۳۳ مطبوعه دار التراث القاهرة ۱۹۷۶)

« اګرچه د فقهاؤ په مینځ کښې د قضاء په باره کښې څو اختلاف شوې دې (چه آیا ښځه قاضی جوړیدلې شی اوکه نه ؟) لیکن د حکومت د سربراهئ په باره کښې هیڅ اختلاف نشته بلکه ټول په دې خبره باندې متفق دی چه د یوې ښځې د سربراهئ په منصب باندې کیناستل جائز نه دی»

مما اجمعت عليه الامة على ان المراة لا يجوز لها ان تلى رياسة الدولة (تعلیق تهذيب الرياسة وترتيب السياسة للقلعى ص ۹۴)

«په دې خبره باندې د امت اجماع ده چه د ښځې دپاره د ریاست سربراهی کول جائز نه دی »

عبدالله بن عمر بن سلیمان الدمیجی لیکی : من شروط الامام ان يكون ذكرا ولا خلاف فی ذلك بين العلماء (الامامة العظمى عند اهل السنة ص ۲۴۲)

«د سربراهِ حکومت په شرائطو کښې دا خبره داخله ده چه هغه به مذکر وی او په دې کښې د علماؤ په مینځ کښې هیڅ اختلاف نشته دې »

د عصر حاضر مشهور مفسرِ قرآن علامه محمد امین شنقیطی رحمه الله تعالی لیکی چه :

من شروط الامام الاعظم كونه ذكرا ولا خلاف فی ذلك بين العلماء (اضواء البيان فی تفسير القرآن بالقرآن ص ۵۵ ج ۱)

«امام اعظم (دسربراهِ حکومت ) په شرائطو کښې دهغه مذکر کیدل هم داخل دی اوپه دې کښې دعلمائ په مینځ کښې هیڅ اختلاف نشته دې »

که چرته دې موضوع باندې د تاریخ اسلام د ائمه مفسرینو ، فقهاؤ ، محدثینو متکلمینو اود

اهل فکر تول عبارتونه جمع کړي شي نو يقيناً دهغې نه يو ضخيم کتاب تياريدلې شي ، ليکن دا يو څو مثالونه د دې ثابتولو دپاره کافي دی چه په دې مسئلې باندې د علماء اسلام په مينځ کښې تراوسه پورې څوارلسو پيړيو کښې هيڅ اختلاف نه دې شوې.

## د حافظ ابن جرير طبری مسلک

زمونږ په زمانه کښې بعضې خلقو مشهورمفسرِ قرآن حافظ ابن جريرطبری رحمه الله تعالی طرف ته غلطې طريقې سره دا خبره منسوب کړې ده چه هغه دښځې د سربراهئ د جواز قائل دې ، ليکن يو سړې هم د امام ابن جرير رحمه الله تعالی يو خپل اقتباس نه پيش کوی ، دهغه په تصانيفو کښې تفسير جامع البيان ديرشو (۳۰) جلدونوکښې چهاپ شوې موجود دې ، په هغې کښې چرته يو فقره هم چا تراوسه پورې ونه ښودلې شوه چه په هغې سره دهغه دا موقف معلوم شی ، پخپله مونږه هم دهغه د تفسير ممکنه مقامات وکتل ، ليکن په هغې کښې چرته يوه داسې خبره تر اوسه پورې زمونږ مخې ته رانغله.

ددې نه علاوه دهغه يو کتاب «تهذيب الآثار» هم په يو څو جلدونو کښې شائع شوې دې په هغې کښې هم زمونږ مخې ته داسې کومه خبره رانغله.

واقعه داده چه بعضې علماؤ دهغه دامسلک نقل کړې دې چه هغه ښځې لره دقاضی جوړولو د جواز قائل دې ، بعضې خلقو دا خبره غلط طور باندې د سربراهئ د جواز په عنوان سره نقل کړې ده ، چنانچه قاضی ابوبکر ابن العربی رحمه الله تعالی فرمائی :

وهذا نص فی ان المراة لا تکون خليفة ولا خلاف فيه ونقل عن محمد بن جرير الطبری امام الدين انه يجوز ان تکون المراة قاضية ولم يصح ذلك عنه ولعله کما نقل عن ابی حنيفة رحمه الله تعالی انها انما تقضی فيما تشهد فيه وليس بان تکون قاضية علی الاطلاق ولا بان يکتب لها منشور بان فلانة مقدمة علی الحکم الا فی الدماء والنکاح وانما ذلك کسبيل التحکيم او الاستبانة فی القضية الواحدة (احکام القران لابن العربی ص ۱۳۳ ج ۳)

«او دا د حضرت ابوبکر رضی الله عنه حديث په دې خبره باندې نص دې چه ښځه خليفه نشی جوړيدلې او په دې مسئله کښې هيڅ اختلاف نشته ، البته د امام محمدبن جريرطبری رحمه الله تعالی نه منقول دی چه دهغه په نزد د ښځې قاضی جوړيدل جائز دی ، ليکن ددې مذهب نسبت هغه طرف ته صحيح نه دې ، داسې معلوميږی چه دهغه مذهب به هم هغه شان وی څنګه چه د امام ابوحنيفة رحمه الله تعالی نه منقول دی چه ښځه په هغه معاملاتوکښې فيصله کولې شی چه په هغې کښې هغه شهادتورکولې شی ، او ددې مطلب دا نه دې چه هغه دې علی الاطلاق قاضی جوړه شی ، اونه دا مطلب دې چه هغې ته د قاضی په منصب باندې د مقررولو سند دې ورکړې

شی. او دا وه وئیلې شی چه فلانکۍ ښځه د قصاص اود نکاح معاملاتو نه سوا په نورو امورو کښې قاضی جوړولې کیږی بلکه ددې مطلب دادې چه هغې لره په یو مسئله کښې ثالثه جوړه شی ، یا کومه یو مقدمه جزوی طور باندې هغې ته حواله کړې شی »

دامام ابن عربی رحمه الله تعالی په دې وضاحت سره لاندې امور مخې ته راځی :

(۱) د سربراهئ مسئله جدا ده ، اود قاضی جوړیدلو مسئله جدا ده .

(۲) د سربراهئ په مسئله کښې د امام ابن جریر رحمه الله تعالی سره د ټولو علماؤ اتفاق دې چه ښځه سربراه نه شی جوړیدلې .

(۳) د امام ابن جریر طبری رحمه الله تعالی نه د قاضی جوړیدلو جواز منقول دې ، لیکن هغه طرف ته ددې قول نسبت هم صحیح نه دې .

(۴) د امام ابوحنیفه یا ابن جریر رحمهماالله تعالی نه د ښځې دمقدماتو فیصلې کولو چه کوم جواز منقول دې ، هغه هغې لره باقاعده قاضی جوړیدلوسره متعلق نه دې بلکه جزوی طور سره بطورثالث یو انفرادی قضیه پوره کولوسره متعلق دې .

بهر حال ! که چرته د فقهاؤ په مینځ کښې چه لږ شانتې اختلاف دې نوهغه د ښځې د قاضی جوړیدلو په باره کښې دې ، د سربراهِ حکومت جوړیدلو په باره کښې هیڅ اختلاف نشته ، چنانچه امام الحرمین جوینی رحمه الله تعالی لیکی :

**والذکورة لاشك فی اعتبارها ومن جوز من العلماء تولی المراة للقضاء فیما یجوز ان تکون شاهدة فیه احال انتصاب المراة للامامة فان القضاء قدیثبت مختصا والامامة یستحیل فی وضع الشرع ثبوتها علی الاختصاص(غیاث الامم للجوینی ص۲،و ۸۳)**

«د سربراهئ دپاره د مذکر کیدلو شرط کښې څه شک نشته دې ، اوکومو علماؤ چه په هغه معاملاتوکښې د ښځې قاضی جوړیدلوته جائز وئیلی دی په کوموکښې چه ښځه گواه جوړیدلې شی هغه هم د سربراهئ دپاره د ښځې کیناستلو لره ناممکن گرځوی ، ددې وجه نه چه د قضا په باره کښې خو دا ممکنه ده چه دهغې د اختیار حدود له یو څه معاملاتو سره خاص کړې شی لیکن دحکومت سربراهئ لره د شرعی اصولو مطابق څه محدود معاملاتو سره خاص کول ممکن نه دی »

## د ملکهٔ بلقیس واقعه

زمونږ په دور کښې بعضې خلق د ښځې د سربراهئ جواز د بلقیس دهغې واقعې نه د را ویستلو کوشش کوی چه قرآن کریم په سورهٔ نمل کښې بیان فرمائیلې ده ، لیکن دا خبره بالکل ناقابلِ قبول ده چه د قرآن کریم بیان شوې هغه واقعې نه د ښځې د سربراهِ حکومت جوړیدلو جواز دې ثابت شی؟ قرآن کریم واضحه طور باندې ارشاد فرمائیلې دې چه دا ملکه دهغه غیرمسلمو سربراه وه چه

نمر ته ئې سجدې کولې . هدهد حضرت سليمان عليه السلام ته دهغې په باره کښې چه کوم خبر ورکړو هغه د قرآن کريم د بيان مطابق دا وو چه : ﴿وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ ((ما هغې لره او دهغې قوم لره موندلى دى په داسې حال کښې چه هغوئ د الله په ځاى نمر ته سجدې کوى))

په دې سره واضحه شوه چه هغه د يو نمرپرست قوم ملکه وه او پخپله ئې هم د نمر عبادت کولو ، او ظاهره ده چه کله چرته يو کافر قوم يوې ښځې لره خپله سربراه جوړه کړې وى نو هغه د قرآن اود سنتو د واضح ارشاداتو په مقابله کښې د مسلمانانو دپاره هيڅ دليل جوړيدلې نشى ؟ که چيرته سليمان عليه السلام هغې لره ملکه تسليم کړې چاى او خپل حکومت ئې هغې ته حواله کړې واى نو بيا خو دا خبره ثابتيدله چه کم ازکم د حضرت سليمان عليه السلام په شريعت کښې ښځه سربراه جوړيدلې شوه ، ليکن قرآن کريم په واضحه الفاظو کښې وئيلى دى چه معامله دهغې بالکل برعکس وشوه ، حضرت سليمان عليه السلام دهغې حکومت لره تسليم نه کړو ، بلکه دهغې په نوم يى چه کوم خط وليږلو هغه د قرآن کريم په مبارکو الفاظو کښې دا وو چه :﴿أَلَّا تَعْلُوا۟ عَلَىَّ وَأْتُونِى مُسْلِمِينَ﴾ ((چه ته ځما په مقابله کښې سر مه اوچتوه ، او ماته فرمانبرداره جوړيدلوسره راشه))

دا الفاظ صفا وائى چه حضرت سليمان عليه السلام دهغې حکومت لره نه صرف دا چه تسليم ئې نکړو ، بلکه هغې لره ئې دخپلې تابعدارئ حکم ورکړو ،او بيا يى هم په هغې باندې اکتفاء ونکړه، دوى دهغې راليږلې شوې تحفه هم قبوله نه کړه ، بلکه هغه ئې واپس کړه ،حالانکه د دوو سربراهانو په مينځ کښې د تحائفوتبادله د يو معمول خبره وى ، قرآن کريم دا هم بيان کړه چه حضرت سليمان عليه السلام دهغې تخت هم اوچتولوسره رااوغوښتلو ، اودهغې هيئت ئې هم بدل کړو . تردې پورې چه کله ملکه بلقيس د حضرت سليمان عليه السلام محل ته راغله نود قرآن کريم د بيان مطابق هغې اووئيل چه : ﴿رَبِّ إِنِّى ظَلَمْتُ نَفْسِى وَأَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمَـٰنَ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَـٰلَمِينَ﴾ (سورة النمل : ۴۴)

((پروردګارا ! ما پخپل ځان باندې ظلم کړې دې ، او زه د سليمان (عليه السلام ) سره د الله رب العالمين په وړاندې په سجده شوم))

نو دا ده هغه واقعه چه قرآن کريم بيان کړې ده ، اود بلقيس په همدې جملې باندې د قصې اختتام شوې دې ، ځوک چه هم دا واقعه په قرآن کريم کښې وګورى هغه دې نتيجې باندې د رسيدلونه بغير نه شى پاتې کيدلې چه حضرت سليمان عليه السلام دملکه بلقيس حکومت لره تسليم نه کړو ، هغې ته ئې دخپل ځان فرمانبرداره جوړولوسره د حاضريدلو حکم ورکړو ، اوبالآخر

د هغې د سلطنت خاتمه ئې وکړه ، او پخپله ملکه بلقیس هم د حضرت سلیمان علیه السلام په خدمت کښې د رسیدلو نه پس دخپلې فرمانبردارئ اعلان وکړو.

په دې واقعې کښې چرته څه داسې بعیده شائبه هم نشته چه حضرت سلیمان علیه السلام دهغې حکومت لره جائز ګرځولې وی یا ئې هغه تسلیم کړې وی.

بعضې خلق څه اسرائیلی روایات پیش کوی چه حضرت سلیمان علیه السلام دهغې سره نکاح وکړه اوهغه ئې واپس یمن ته لیږلې وه ، لیکن دا قطعی طور باندې غیرمستند روایت دې ، یو صحیح روایت سره هم دا ثابته نه ده ، په دې معامله کښې تاریخی روایتونه ډیر متضاد دی ، بعضې کښې دی چه حضرت سلیمان علیه السلام دهغې سره نکاح وکړه او هغه ئې دخپل خان سره وساتله ، بعضې کښې دی چه هغه ئې شام ته ولیږله ، بعضې کښې دی چه یمن ته ئې واپس ولیږله ، بعضې کښې دی چه دهغې نکاح ئې د همدان د بادشاه سره وکړه ، علامه قرطبی رحمه الله تعالی دا ټول غیرمستند روایات نقل کولو نه وروسته لیکی چه : **لم یرد فیه خبر صحیح لا فی انه تزوجها ولا فی انه زوجها (تفسیر قرطبی ص۲۱۰و۲۱۱ ج۱۳)**

((دهغې په باره کښې صحیح روایت موجود نه دې ، نه په دې باره کښې چه هغوی علیه السلام د بلقیس سره نکاح وکړه ، او نه په دې باره کښې چه بل چا سره ئې دهغې نکاح وکړه))

چه کله د ملکه بلقیس د اسلام نه پس واقعات د یو صحیح تاریخی روایت نه هم ثابت نه دی نو صفا او نیغه لاره ددې نه سوا بله کومه یوه ده چه قرآن کریم څومره واقعه بیان فرمائیلې ده صرف هغومره واقعې باندې باید ایمان وساتلې شی ، او ظاهره ده چه په هغه واقعه کښې دملکه بلقیس د سلطنت د بقاء نه بلکه د فرمانبردارئ کیدلو ذکر دې ، دهغې د اسلام نه پس د سربراه جوړیدلو ذکر نشته ، لهذا ددې واقعې نه د ښځې په سربراهئ باندې د استدلال څه لږ غوندې جواز هم نه ثابتیږی. والله تعالی اعلم.

## حضرت عائشه رضی الله عنها او د جمل جنګ

بعضې خلق د ښځې په سربراهئ باندې د جنګ جمل د واقعې نه استدلال کوی او وائی چه ام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله عنها دهغه جنګ قیادت کړې وو ، لیکن واقعه داده چه حضرت عائشې رضی الله عنها کله هم د خلافت یاد حکومت د سربراهئ دعویٰ نه ده کړې ، اونه دهغوئ په ملګرو کښې د چا په خوا خاطر کښې دا خبره تیره شوې وه چه دې لره خلیفه جوړه کړې شی ، ددې مطالبه صرف دا وه چه د حضرت عثمان رضی الله عنه د قاتلانو نه قصاص اخستل د قرآن کریم د احکامو مطابق ضروری دی ، دحضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت په وخت ټولې ازواج مطهرات د حج دپاره مکې مکرمې ته راغلې وې ، حضرت عائشې او نورو ازواج مطهراتو رضی

الله تعالى عنهن په شروع کښې دا غوښتل چه هغوی واپس مدينې طيبې ته رسيدلوسره حضرت علی رضی الله عنه لره په قصاص اخستلوباندې آماده کړی . ليکن ډيرو کسانودا رائې ورکړې چه ړومبې بصرې ته لاړې شئ اودهغه ځائ دخلقو حمايت حاصل کړئ . نورو ټولو ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن خو بصرې ته د تللو نه انکار وکړو ،اووې فرمائيل چه مونږ دمدينې منورې نه سوا بل چرته نه ځو . ليکن حضرت عائشه رضی الله عنها دهغه حضراتو د رايو نه متاثره شوه او بصرې ته روانه شوه (البداية والنهاية ص ۲۳۰ج۷)

د حضرت عائشې رضی الله عنها مقصد جنگ کول هم نه وو ، بلکه چه کله دوی بصرې ته تلل نو په لاره کښې يوځائ کښې پړاؤ واچولې شو ، د شپې په وخت دهغه ځائ سپو غپار (چغې) شروع کړو ، حضرت عائشې رضی الله عنها د خلقو نه پوښتنه وکړه چه دا کوم ځائ دې ؟ خلقو اووئيل چه دا مقام ((حوأب )) دې د ((حوأب )) نوم اوريدلوسره حضرت عائشه رضی الله عنها يودم ودريدله ، دوئ ته د حضورصلی الله عليه وسلم يو ارشاد مبارک په ياد راغلو ، حضورصلی الله عليه وسلم ازواجِ مطهراتو ته خطاب کولوسره يو ورځ فرمائيلی وو : **کيف بإحداکن تنبح عليها کلاب الحواب(مسند احمد ج۶ص۵۲،۹۷،ومستدرک حاکم ص۱۲۰ج۳،وصححه الحاکم ووافقه الذهبی،وقال الحافظ فی الفتح ۱۳: ۵۵:سنده علی شرط الصحيح،وصححه ابن کثير فی البداية ص۲۱۲ج۶)**

((په تاسو کښې به ديوې هغه وخت څه حال وی چه کله په هغې باندې د حوأب سپی و غپيږی ))

حضرت عائشې رضی الله عنها د حوأب نوم اوريدلوسره د وړاندې مزل نه انکار وکړو ، او خپلو ملگرو ته ئې اصرار وکړو چه ما واپس بوځئ او يوه شپه او يو ورځ هم هغلته حصاره وه ، ليکن بعضې حضراتو اووئيل چه تاسو لاړه شئ ، ستاسو د وجه نه به د مسلمانانو په دوه ډلو کښې صلح اوشی ، او په بعضې رواياتو کښې دی چه چا د دوی په وړاندې ترديد هم اوکړو چه دا ځائ حوأب نه دې (البداية والنهاية ص ۲۳۱ج۷)

همدارنگه چه څه په مقدر کښې وو هغه مخې ته راغلل ، اوحضرت عائشه رضی الله عنها سفر دوباره شروع کړو ، بصرې ته رسيدلو سره چه کله د دوی نه د راتگ د وجه پوښتنه وشوه نو دوی اوفرمائيل : ((ای بنیّ ! الاصلاح بين الناس)) يعنی اې بچو! زه دخلقو په مينځ کښې د صلحې کولو دپاره راغلې يم))

ددې ټولو خبرونه واضحه شوه چه دحضرت عائشه رضی الله عنها مقصد نه څه سياست وو اونه حکومت ، نه هغې جنگ کول غوښتل ، بلکه د حضرت عثمان رضی الله عنه د قصاص اخستلو مطالبې تقويت او په هغه سلسله کښې د مسلمانانو په مينځ کښې د مصالحت خالص دينی مقصد دوی په نظر کښې وو .

ددې باوجود چونکه حضرت عائشه رضی الله عنها دزنانو د مسلمه دائرې نه لرې غوندې
وتلو سره اجتماعی معاملاتو کښې کار ودرلودلو ، نو له همدې وجه نه صحابه کرامو او پخپله
نورو امهات المؤمنین رضی الله تعالی عنهن ته د دوئ دا اقدام خوښ نشو او متعددو صحابو
رضی الله تعالی عنهم دوئ ته خطونه ولیږل ،ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها په دې
موقع باندې دوئ ته یو لوئ مؤثر خط لیکلې دې چه دهغې الفاظ دادی:

**عن ام سلمة زوج النبی صلی الله علیه وسلم الی عائشة ام المؤمنین فانی احمد الیك الله الذی لا اله الاهو، امابعد، انك سُدَّة بین رسول الله صلی الله علیه وسلم وامته وحجاب مضروب علی حرمته قد جمع القرآن ذیلك فلا تندحیه وسکر خفارتك فلا تبتذلیها فالله من وراء هذه الامة، ولو علم رسول الله صلی الله علیه وسلم ان النساء یحتملن الجهاد عهد الیك، اما علمت انه قد نهاك عن الفراطة فی البلاد فان عمود الدین لا یثبت بالنساء ان مال، ولا یراب بهن ان انصدع، جهاد النساء غض الاطراف وضم الذیول وقصد الوهازة ما کنت قائلة لرسول الله صلی الله علیه وسلم لو عارضك ببعض هذه الفلوات ناصة قعودا من منهل الی منهل؟ وغدا تردین علی رسول الله صلی الله علیه وسلم واقسم لو قیل لی یا ام سلمة ادخلی الجنة لاستحییت ان القی رسول الله صلی الله علیه وسلم هاتكةً حجابا ضربه علی فاجعلیه سترك، ووقاعة البیت حصنك، فانك انصح ما تکونین لهذه الامة ما قعدت عن نصرتهم (العقد الفرید ص۶۶ ج۵ مطبوع دار الباز مکة المکرمه)**

«د نبی صلی الله علیه وسلم د زوجې ام سلمه رضی الله عنها د طرف نه ام المؤمنین حضرت
عائشه رضی الله عنها په نوم: تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلم اود رسول الله صلی الله علیه
وسلم د امت په مینځ کښې یو دروازه یئ ، تاسو هغه پرده یئ چه دحضورصلی الله علیه وسلم په
حرمت باندې اچولې شوې یئ، قرآن ستاسو لمنې لره راغونډه کړې ده ، تاسو هغه مه خوروئ، او
ستاسو د حرمت حفاظت ئې کړې دې تاسو دهغې بې قدری مه کوئ ، که چرته رسول الله صلی الله
علیه وسلم ته معلومه وای چه په زنانو باندې د جهاد ذمه داری اچول کیږی نو هغوی به تاسو ته
دهغې وصیت کړې وو ، آیا تاسو ته معلومه نه ده چه حضورصلی الله علیه وسلم تاسو لره په
ښارونو کښې د ګرځیدلونه منع کړې وئ ددې وجه نه که چرته د دین ستنه متزلزل کیدل شروع شی
نو هغه په ښځوسره نه شی ودریدلې اوکه چرته په هغې کښې سوری کیدل شروع شی نو په ښځو
سره د هغې بندیدل ممکن نه دی ، د ښځو جهاد دادې چه هغوی نظرونه ټیټ وساتی ، لمنې
راغونډې کړی ، او په ورو قدمونو سره ځی ، تاسو چه په کومو صحراګانو کښې د یو ډنډ نه بل
ډنډه پورې خپله اوښه شړئ ، که چرته هغلته رسول الله صلی الله علیه وسلم ستاسو مخې ته راشی
نو تاسو سره به دهغوی په وړاندې د وئیلو څه وی ؟ سبا ستاسو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته

ورتګ دي . او زه قسم خورم چه که چرته ځما نه پوښتنه وشی چه ام سلمه ! جنت ته لاړه شه ، نو بیا به هم ماته دهغې خبرې نه حیا راځی چه زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په هغه حالت کښې ملاؤ شوم چه کومه پرده دوی صلی الله علیه وسلم په ماباندې اچولې ده هغه ما شلولې وی ، لهذا تاسو هغې لره خپله پرده جوړه کړئ ،دخپل کور چاردیوارئ لره خپله قلعه وګڼئ . ځکه چه ترڅوپورې تاسو پخپل کورکښې اوسیږئ ،ددې امت به د ټولو نه لویه خیرخواه یئ »

د ام المؤمنین حضرت ام سلمه رضی الله عنها ددې مکتوب د یویو لفظ نه ددین هغه پاکیزه مزاج راڅخیږی چه هغه ښځې لره د حرمت اوتقدیس اعلی ترین مقام ورکړو . او چه دهغې په وړاندې ټول سیاسی منصبونه او دنیوی شان اوشوکت ټیټ دی .

حضرت عائشه رضی الله عنها د حضرت ام سلمه رضی الله عنها د یوې خبرې نه هم انکار ونه کړو ، بلکه دهغې نصیحت ئې اصولی طور باندې قبول کړو ، اودهغې ئې په دې وینا سره قدردانی اوفرمائیله چه : **(ما اقبلنی لوعظك واعرفنی لحق نصیحتك)**

« زه ستاسو نصیحت لره په سرسترګو قبلوم ، او ستاسو د نصیحت له حق نه ښه خبره یم »

التبه دخپل موقف وضاحت کولو سره ئې اوفرمائیل چه : **ولنعم المطلع مطلع فرقت فیه بین فئتین متشاجرتین من المسلمین**

« هغه موقف ډیر ښه موقف دې چه دهغې په ذریعې زه د مسلمانانو د دوو ډلو په مینځ کښې حائله شم »

ددې نه ښه صفا واضحه شوه چه نه هغې د حکومت سربراهی غوښتله ، نه جهاد دهغې پیشِ نظر وؤ ، نه یې څه سیاسی قیادت مقصود وؤ ، بلکه پیشِ نظر یې د دوو فریقینو په مینځ کښې صلح کول وؤ ، او په دې کښې هم هغه فرمائی : **فان اقعد ففی غیر حرج وان امض فالی مالا غنی لی عن الازدیاد منه (العقد الفرید ص۱۰۲ ج۲)**

«اوس که چرته زه کیناستلم نو بیا هم څه حرج نشته، او که زه وړاندې شوم نود یو داسې کار دپاره به وړاندې شم چه دهغې له سرته رسولو نه سوا ځما دپاره بل څه چاره نشته»

د دومره احتیاط باوجود هغه زمانه د فتنې وه ، د دښمنانانو سازشونه ډیر په تیزئ سره روان وو ، چه دهغوئ واحد مقصد دا وو چه مسلمانان پخپل مینځ کښې په جنګ کړی ، چنانچه څه په مقدر کښې وو هغه راغلل ، جنګ جمل وشو ، او حضرت عائشه رضی الله عنها هغه مقام ته رسیدلې وه دکوم ځائ نه چه واپس نه شوه راتللې

دحضرت ام سلمه رضی الله عنها نه سوا نور هم زیات صحابه کرام رضی الله عنهم هغوی لره د کور نه د بهر هغه محدودې ذمه دارئ اخستلو نه بنده کړه . چانچه حضرت زید بن صوحان رضی

الله عنه حضرت عائشې رضی الله عنها ته یو خط کښې ولیکل : **سلام علیك. اما بعد: فانك امرت بامر وامرنا بغیره امرت ان تقری فی بیتك وامرنا ان نقاتل الناس حتی لا تکون فتنة فترکت ما امرت به وکتبت تهیننا عما امرنا به والسلام (العقد الفرید ص ۲۷ ج ۵)**

«د سلام نه پس ، تاسو ته د یو کار حکم درکړې شوې دې ، او مونږ ته د بل کار ، تاسو ته حکم دې چه په کور کښې په قلاره اوسږئ ، او مونږ ته حکم دې چه مونږ د خلقو سره ترهغه وخته پورې وجنګېږو ترڅوپورې چه فتنه ختمه شوې نه وی ، تاسوخپل کار پرېښودلو او مونږ دهغه کارنه حصاروئ چه دهغې مونږ ته حکم راکړې شوې دې »

بیا خبره په دې ځائ باندې نه ختمیږی ، په خپله حضرت عائشه رضی الله عنها به وروسته پخپل دې کار باندې انتهائی د پېښمانتیا اظهار کولو ، چنانچه حافظ شمس الدین ذهبی رحمه الله تعالی فرمائی : **ولاریب ان عائشة ندمت ندامة کلیة علی مسیرها الی البصرة وحضورها یوم الجمل وما ظنت ان الامر یبلغ ما بلغ (سیر اعلام النبلاء للذهبی ص ۱۷۷ ج ۲)**

« او په دې کښې هیڅ شک نشته چه حضرت عائشې رضی الله عنها د بصرې په سفر او جنګِ جمل کښې حاضرئ باندې ښه ښکاره پېښمانه شوه ، دهغې دا ګمان نه وو چه خبره به هغه ځائ پورې ورسیږی کومه پورې چه رارسیدلې ده»

امام ابن عبدالبر رحمه الله تعالی پخپل سند سره دا روایت نقل کړې دې چه یو ځلې حضرت عائشې رضی الله عنها حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته اوفرمائیل چه « تاسو زه په هغه سفر کښې د تللو نه ولې منع نه کړم ؟» حضرت ابن عمررضی الله عنهما اوفرمائیل : «ما وکتل چه یو صاحب (یعنې حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما ) ستاسو په رایه باندې غالب شوې دې حضرت عائشې رضی الله عنها جواب ورکړو : « په الله قسم که چیرته تاسو زه حصاره کړې وای نو زه به نه ووم وتلې » (نصب الرایه للزیلعی ص ۷۰ ج ۴)

بیا جنګِ جمل اودهغې په سفر باندې د حضرت عائشې رضی الله عنها د پېښمانتیا دا حال دا وو چه کله به د قرآن کریم د تلاوت په دوران هغه د سورهٔ احزاب هغه آیت ته ورسیدله چه په هغې کښې الله تعالی ښځو ته دا حکم ورکړې دې چه : «**وقرن فی بیوتکن** » «اوتاسو په خپلو کورونو کښې اوسیږئ» ، نو دومره به ژړیدله چه د دوئ لوپټه به د اوښکو نه لمده کیدله .

**اذا قرات هذه الایة وقرن فی بیوتکن بکت حتی تبل خمارها (طبقات ابن سعد ص ۸۰ ج ۸) وسیر اعلام النبلاء ص ۱۷۷ ج ۲)**

او د پېښمانتیا انتهادا تر دې ځایه پورې وه چه په شروع کښې د دوی خواهش دا وو چه دوی

لره پخپل کور کښې د حضورصلی الله علیه وسلم سره دفن کړې شی . لیکن د جنګِ جمل نه پس دوئ دا اراده ترک کړه ، قیس بن ابی حازم راوی دې چه **قالت عائشة رضی الله تعالی عنها وکان تحدث نفسها ان تدفن فی بیتها مع رسول الله صلی الله علیه وسلم وابی بکر فقالت انی احدثت بعد رسول الله صلی الله علیه وسلم حدثا ادفنونی مع ازواجه فدفنت بالبقیع (مستدرك الحاکم ص ، ج ، قال الحاکم : هذا حدیث صحیح علی شرط الشیخین ووافقه الذهبی)**

«حضرت عائشې رضی الله عنها په زړه کښې دا سوچ کولو چه هغه دې دهغې په کور کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم اود حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه سره یوځائ دفن کړې شی ، لیکن وروستو هغوی اوفرمائیل چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پس دیو بدعت ارتکاب کړې دې ، اوس ماله دحضورصلی الله علیه وسلم دنورو بیبیانو سره دفن کړئ ، چنانچه هغوی په جنت البقیع کښې دفن کړې شول»

حافظ ذهبی رحمه الله تعالی دهغې ددې قول تشریح کولوسره فرمائی : **تعنی بالحدیث مسیرها یوم الجمل فانها ندمت ندامة کلیة وتابت من ذلك علی انها ما فعلت ذلك الا متاولة قاصدة للخیر (سیر اعلام النبلاء ص۱۹۳ ج۲)**

«د بدعت نه د حضرت عائشې رضی الله عنها مراد جنګ جمل ته دهغې تلل وو ، ځکه چه هغه خپل هغه عمل باندې پوره پوره پیښمانه وه ، او د هغې نه ئې توبه ویستلې وه ، باوجود ددې نه دهغې دا اقدام اجتهاد باندې مبنی وو اودهغې مقصد نیک وو»

دې ټولو واقعاتو نه واضحه ده چه حضرت عائشې رضی الله عنها نه کله د حکومت د سربراهئ خواهش یا دعوی کړې وه، او نه چا دا تجویز پیش کړو چه هغې لره دې سربراه جوړه کړئ شی ، نه دهغې مقصد دیو باقاعده جنګ د قیادت وو هغه صرف دیو قرآنی حکم د نفاذ اود مسلمانانو په مینځ کښې دمصالحت دپاره راوتلې وه ، لیکن د دښمنانو سازش دهغې هغه سفر ته بالآخر دیو جنګ شکل ورکړو ، لیکن چونکه دهغې دغه طریقه کار فی الجمله دیو محدود سیاسی حیثیت حامل وو ، ددې وجه نه صحابه کرامو رضی الله عنهم هم هغه خوښ نه کړو ، او هغه پخپله هم په هغې باندې بې انتهاء پیښمانه شوه ، تردې پورې چه د هغه پیښمانتیا په وجه روضهٔ رسول الله صلی الله علیه وسلم کښې تدفین لره هم خوښ ونه فرمائیلو .

اوس پخپله په انصاف سره فیصله وکړئ چه : ام المؤمنین حضرت عائشې رضی الله عنهاچه خپل کوم اقدام لره بالاخر پخپله غلط وګڼلو ، په هغې باندې ئې ژړا کوله او په هغې باندې د پیښمانه کیدلو د وجه نه تدفین کښې حضورصلی الله علیه وسلم ته د نزدې کیدلو نه هم شرمیدله

د هغې په هغه عمل باندې څنګه استدلال کیدلې شی ؟ او استدلال هم د سربراهئ په جواز کښې ، چه دهغې تصور هم د حضرت عائشې رضی الله عنها په خیال کښې نه وو تیرشوې

## د حضرت تهانوی رحمه الله تعالی یو لیک

زمونږ په زمانه کښې بعضې حضراتو د حکیم الامت حضرت مولانا اشرف علی صاحب تهانوی قدس سره . یو تحریرهم د ښځې د سربراهئ په جواز کښې د پیش کولو کوشش کړې دې چه په امداد الفتاوی کښې شائع شوې دې چه په هغې کښې حضرت تهانوی رحمه الله د حدیث « لن یفلح قوم ولوا امرهم امراة » په باره کښې د یو سوال جواب ورکولوسره دا فرمائیلی دی چه جمهوری حکومت ددې وعید لاندې داخل نه دې .

لیکن د حضرت تهانوی رحمه الله تعالی ددې تحریر په حقیقت د پوهیدلو نه وړاندې دا پیژندل ضروری دی چه حکیم الامت حضرت تهانوی رحمه الله تعالی هم د پوره امت د علماؤ په شان ددې خبرې قائل دې چه ښځې لره د اسلامی حکومت سربراه جوړول جائز نه دی . چنانچه امداد الفتاوی کښې هم په دې تحریرکښې حضرت رحمه الله تعالی پخپله فرمائیلی دی چه : «فقهاؤ حضراتو امامت کبریٰ (د حکومت په سربراهئ) کښې ذکورة (نارینه کیدل) د صحت شرط ګرځولی دی ، اوقضاکښې د صحت شرط ندی ګرځولی، مګر شرط دصون عن الاثم ګرځولی دی» (امداد الفتاوی ص ۹۲ج۵)

همدارنګه حضرت مولانا تهانوی رحمه الله پخپل تفسیرکښې دا مسئله نور وضاحت سره په دې الفاظو کښې بیان کړې ده : « اوزمونږ په شریعت کښې ښځې لره د بادشاه جوړولو ممانعت دې ، پس د بلقیس په قصې سره دې څوک شبهه ونه کړی ، اول خو دا کار د مشرکانو وو ، دویم که چرته شریعتِ سلیمانیه دهغې تقرری هم کړې وی نو شرعِ محمدی کښې خلاف کیدلوسره هغه حجت نه دې » (بیان القرآن ص ۸۵ج۸ سورة النمل)

همدارنګه حضرت تهانوی رحمه الله تعالی د «احکام القرآن» کومه حصه چه په حضرت مولانا مفتی شفیع صاحب قدس سره باندې لیکلې ده ، په هغې کښې یی هم د ملکهٔ بلقیس د واقعې لاندې دا مسئله په وضاحت سره بیان کړې ده ، او په خپله حضرت تهانوی رحمه الله په حوالې سره دې استدلال لره رد کړې دې چه قرآن کریم د بلقیس واقعه بیانولوسره په هغې باندې څه نکیر نه دې کړې (احکام القرآن للمفتی محمد شفیع صاحب ص ۲۹ج۳)

د حضرت تهانوی رحمه الله تعالی ددې عبارتونو نه واضحه ده چه هغه د علماء امت په شان هم ددې خبرې قائل دې چه ښځې لره سربراهِ حکومت جوړول شرعاً جائز نه دی . البته سوال دا پیدا کیږی چه که چیرته یو ځائ کښې ددې شرعی حکم خلاف ورزی کولوسره یوې ښځې لره سربراه

جوړه کړې شوې وی . نو آیا د داسې ځائ په خلقو باندې به هغه وعید صادق راځی چه په حدیث کښې بیان کړې شوې دې چه داسې قوم فلاح نه شی موندلې ؟ددې په جواب کښې حضرت تهانوی رحمه الله تعالی اوفرمائیل چه که چرته حکومت عام وی اومکمل وی ، ځنګه چه په شخصی سلطنتونو کښې کیږی (یا ځنګه چه په خلافت اسلامی کښې کیږی ) اودهغې سربراه ښځه جوړه کړې شی ، نو بې شکه په هغې کښې د حدیث دا وعید صادق راځی ، لیکن که چرته حکومت د جمهوریت په انداز وی نو عدم فلاح ضروری نه ده چه دهغې د وجه نه حضرت تهانوی رحمه الله تعالی دا بیان وکړو چه « راز په دې کښې دادې چه حقیقت دهغه حکومت محض مشوره ده ، او ښځه اهل ده د مشورې » (امدادالفتاوی ص ۹۲ ج ۵)

په دې سره صفا واضحه شوه چه د ښځې «حقیقی حکومت » لره حضرت تهانوی رحمه الله تعالی نه صرف دا چه ناجائز بلکه موجبِ عدمِ فلاح هم ګرځوی لهذا داصل مسئلې تربیخه پورې دهغه موقف هم دادې چه ښځه سربراهِ حکومت نه شی کیدلې ، البته د جمهوری حکومت په باره کښې هغوی داخیال ښکاره کړې دې چه هغه حقیقةً له سره حکومت نه دې، بلکه محض مشوره ده.

لهذا د حضرت تهانوی رحمه الله تعالی د تحریر ټول دارومدارپه دې خبره باندې ودریدلو چه آیا جمهوری حکومت واقعةً حکومت دې اوکه محض مشوره ده ؟ او دا سوال د شرعی حکم نه دې ، بلکه د واقعې دې ، حضرت تهانوی رحمه الله تعالی د جمهوری حکومت د سربراه په باره کښې دا وګنړل چه حقیقةً هغه سربراه نه وی ، بلکه د پارلمان دیو رکن کیدلو په حیثیت سره دهغې خبره محض د یو مشورې حیثیت لری ، چنانچه په همدې تحریرکښې هغه فرمائی :

«دیوې ښځې سلطنت جمهوری وی چه په هغې کښې والی صوری په حقیقت کښې والی نه وی بلکه د مشورې یورکن وی .او والی حقیقی د مشیرانو مجموعه ده (امدادالفتاوی ص ۹۱ج۵)

په دې فقرې سره یو ځل بیا واضحه شوه چه هغه د ښځې سربراهی ناجائز اوموجبِ عدمِ فلاح کیدلو باندې قائل دې . او دې مسئلې سره دهغه هیڅ اختلاف نشته ، لیکن د جمهوری حکومت سربراه لره هغه دخپلو معلوماتو مطابق حقیقی سربراه نه ګنی دا اختلافِ په اصل مسئله کښې نه دې ،بلکه د جمهوری حکومت په حقیقت کښې دې.

واقعه داده چه پارلمانی نظام کښې وزیراعظم اګرچه د پارلمان دیورکن کیدلو حیثیت کښې محض یورکنِ مشوره دې ، لیکن دهغه دوه حیثیتونه نور دی چه دهغې په موجودګئ کښې هغه لره محض یو «رکنِ مشوره » ګرځول ممکن نه دی . رومبنئ حیثیت خو دادې چه هغه دملک د انتظامیې سربراه وی ، اوپخپل هغه حیثیت کښې هغه د قانون په دائرې کښې مکمل طورسره خود مختاره وی ، تردې پورې چه هغه ته دا اختیارحاصل وی چه هغه د ټولې کابینې مشورې لره رد کولوسره هغه کار وکړی چه دده د رائې مطابق وی.

واقعه داده چه جمهوری نظام کښې د ریاست درې کاره جدا جدا کړې شوی دی ، یو کار قانون سازی ده چه مقننه یعنې د پارلمان په حواله دې ، دویم کار د ملک انتظام چلول دی چه د انتظامیې په حواله دې ، او دریم کار د تنازعاتو فیصله ده چه د عدلیه په حواله دې ، اوس د ریاست په دې درېو ادارو مقننه ، انتظامیه ، اوعدلیه کښې د لفظ «حکومت» اطلاق هم انتظامیه باندې کیږی ، مقننه او عدلیه د ریاست (state) لاندې اداری ضرور دی ، لیکنه د (حکومت) (government) حصې نه دی ، حکومت صرف انتظامیه ته وئیلې کیږی ، او وزیراعظم دهغه انتظامیه سربراه وی ، هغه ته د قانون په دائرې کښې د کاروبارِ حکومت چلولو مکمل اختیار حاصل وی ، نه هغه هرڅیز لره د مقننه مشورې دپار پیش کوی او نه کولې شی ، نه ئې پابند دې ، بلکه د کابینې په اجلاس کښې دهغه فیصله حتمی حیثیت لری ، ښکاره ده چه داسې با اختیاره سړی ته محض «رکنِ مشوره» نه شی وئیلې کیدلې .

د مقننې تر حده پورې بې شک هغه یو «رکنِ مشوره» دې ، لیکن د پارلمانی پارټیانو مروجه نظام کښې دهغې یو بل حیثیت دې چه هغه پارلمان کښې د برسراقتدار اکثریتی پارټئ لیډر او قائدِ ایوان وی ، لهذا پارلمان کښې دهغه رایه محض یوه شخصی رایه نه وی ، بلکه بعضې وختونو کښې د ایوان د اکثریت نمائندگی کوی ، بالخصوص که چرته هغه دخپل جماعت ارکانِ پارلمان دپاره د جماعت د طرف نه یو هدایت جاری کړی نو دهغې د جماعت ټول ارکان دهغه هدایت مطابق اسمبلئ کښې د ووټ اچولو پابند دی ، پارلمانی اصطلاح کښې هغه هدایت ته جماعتی کوړا (party whip) وئیلې کیږی ، یعنې هغه کوړې لره په حرکت کښې راوستلونه پس تمام ارکانِ جماعت پارلمان کښې هم هغه رایه ورکولو باندې مجبوره دی چه دهغې دپاره هغوی کوړا په حرکت کښې راوستلې ده .

اوس ظاهره ده چه کوم سړې دا کوړا په حرکت کښې راولی ، هغه ته محض یو «رکنِ مشوره» نه شی وئیلې کیدلې ، په دې لحاظ سره مقننه کښې هم د وزیراعظم حیثیت محض د یو «رکنِ مشوره» نه دې ، بلکه د قائدِ جماعت اود قائدِ ایوان وی ، او عملاً هغه د نورو په مشورو باندې کم او نور دهغه په مشورې باندې زیات چلیږی .

اگرچه نظریاتی اعتبارسره صدرمملکت د ریاست سربراه وی ، او وزیراعظم د انتظامیه ، لیکن پارلمانی نظام کښې د صدرِ مملکت حیثیت زیات ترنمائشی وی او اصل اختیارات هم وزیراعظم سره وی ، ددې وجه نه د ټولې دنیا په نزد فقط وزیراعظم لره اصل سربراه گڼلې کیږی .

په دې تشریح سره دا خبره واضحه کیږی چه حضرت تهانوی رحمه الله تعالی د ښځې سربراهئ لره هیچرې جائز نه گڼي ، چه دهغې دپاره دهغه صریح تحریرونه موجود دی ، البته سوال دا وو چه د جمهوری حکومت سربراهی حقیقی سربراهی ده اوکه نه ؟ ددې سوال تعلق د شریعت د تحقیق

سره نه دي بلکه د مروجه جمهوري نظام د تحقیق سره دي ، او ظاهره ده چه د حضرت تهانوي رحمه الله تعالی اصل موضوع د شریعت موضوع وه ، د عهد حاضر د سیاسي نظامونو تحقیق د حضرت تهانوي رحمه الله تعالی موضوع نه وه ، ظاهره ده چه د پارلماني نظام د وزیراعظم په سلسله کښې چه کوم حقائق پورته بیان کړې شوي دي ، که چیرته هغه د حضرت تهانوي رحمه الله تعالی مخې ته راوړلې شوې وې نو هغه به پخپلې رائې باندې ضرور نظرثانی کړې وې چه هغه محض یورکن مشوره دي.

## د تاریخ بعضې مثالونه

بعضې خلق د ښځې د سربراهئ په جواز کښې د تاریخ بعضې مثالونه پیش کوی چه فلانکی فلانکی موقعو باندې ښځه برسراقتدار پاتې شوې ده ، لیکن ظاهره ده چه په تاریخ کښې جائز اوناجائز هرقسمه واقعات شوی دی ، دا واقعات په دین کښې سندونه ، نه دی ، سند قرآن او سنت دی ، لهذا که چرته یو ي دوه واقعات د ښځې د سربراهئ راغلې وی نودهغې په بنیاد باندې د قرآن اوسنتو واضحه احکامو او دلائلو لره نه شی پریښودلې ، بیا د هغه یو یا دوه واقعاتو اکثریت داسې دې چه هغلته مسلمانانو داسې حکومت لره برداشت هم نه کړو ، تردې پورې چه هغه حکومت ختم شو ، اودهغه حکومتونو په دور او زمانه کښې هم چرته دا خبره نه معلومیږی چه یوفقیه یا عالم د ښځې د سربراهئ په جواز کښې فتوی ورکړې وی.

په دې ضمن کښې بعضې خلق د مس فاطمه علی جناح صدارتی امیدوار جوړیدلو لره په سند کښې پیش کوی ، لیکن یو عالم هم زمونږ په علم کښې نشته چه هغه ددې اقدام حمایت کولوسره دا وئیلی وی چه ښځه د حکومت سربراه کیدلې شی ، لهذا دې واقعې لره په دلیل کښې پیش کول د خلط مبحث نه سوا نور هیڅ نه دی.

(په دې وخت کښې هم علماؤ د ښځې د سربراهئ د عدم جواز فتوی شائع کړې وه ، رشید احمد)

## د پاکستان د هر مکتبۀ فکر دعلماؤ فیصله

بهرحال ! د ښځې د سربراهئ ناجائز کیدل یو داسې مسلمه مسئله ده چه د قرآن او سنت واضح ارشاداتو او اجماع امت باندې مبنی ده ، دامت یو فقیه یا یو عالم هم ددې نه اختلاف نه دې کړې ،

له همدې وجه نه په ۱۹۵۱ء کښې چه کله د پاکستان د تمام مکاتب فکر علماء کراچئ کښې آئینی مسائلو باندې اجتماع منعقد کړه چه په هغې کښې دیوبندیان ، بریلوی ، اهل حدیث ، جماعت اسلامی او شیعه ګان ټول موجود وو او هغه مشهور متفقه دوه ویشت نکات ئې و ټاکل چه دهغوئ په نزد د پاکستان د آئین دپاره یې بنیادی اهمیت لرلو ، نو په هغې کښې دولسمه نکته دا وه : (( د رئیس مملکت مسلمان سړې کیدل ضروری دی چه دهغې په تدین ، صلاحیت او اصابت

رائي باندې د جمهورو يا د هغه منتخب نمائندګانو اعتماد وي»
هغه دوه ويشتو نکاتو باندې د پاکستان هرمکتبِ فکر تمام علماء متفق دي ، او ترننه پورې په هغې کښې څه اختلاف پيدا نه شو .

لهذا په يو اسلامي حکومت کښې ښځې لره سربراه جوړول هرګز جائز نه دی ، او که چيرته داسې وشی نو د مسلمانانو دپاره ضروری ده چه هغوئ زر ترزره د سربراهئ د تبديلئ دپاره ممکنه کوششونه په کار راولی ، والله سبحانه الموفق

**محمدرفيع عثمانی ، سليم الله ، ولی حسن**
**رشيداحمد ۲۵ جمادی الاولی ۱۴۰۹هج**

## المزيد من العبد الرشيد

**«دمنعې دلائل»** : ..................

(۱) ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾ (الاية ۲، ۲۲۸)

(۲) ﴿وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ﴾ (الاية ۲، ۲۴۷)

(۳) ﴿أَوَمَن يُنَشَّؤُا فِي الْحِلْيَةِ وَهُوَ فِي الْخِصَامِ غَيْرُ مُبِينٍ ﴿۱۸﴾﴾ (الاية ۴۳، ۱۸)

(۴) قال رسول الله صلی الله عليه وسلم ما رايت من ناقصات عقل ودين اذهب للب الرجل الحازم من احداكن (بخاری ص ۴۴ج۱)

## دجواز دلائل :

(۱) قال الامام الکاسانی رحمه الله تعالی: اما المراة والصبی العاقل فلا يصح منهما اقامة الجمعة لانهما لا يصلحان للامامة فی سائر الصلوات ففی الجمعة اولی الا ان المراة اذا کانت سلطانا فامرت رجلا صالحا للامامة حتی صلی بهم الجمعة جاز لا المراة تصلح سلطانا او قاضيا فی الجملة فتصح امامتها . (بدائع الصنائع ص ۲۶۲ ج ۱)

(۲) وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالی : اما سلطنتها فصحيحة وقد ولی مصر امراة تسمی شجرة الدر جارية الملک الصالح بن ايوب (البحر الرائق ص ۵ج۷)

### جواب :

په دې عباراتونو کښې د صلاح او صحت نه مراد نفاذ دې ، جواز مراد نه دې ، مطلب دادې چه ښځې لره سلطانه جوړول ناجائز دی ، سره ددې نه که چيرې هغې ناجائزو ذرائعو سره تسلط حاصل

کړو نو د هغې سلطنت به نافذ کيږي فقط.

## الامثلة:

(۱) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اسمعوا واطيعوا وان استعمل عبد حبشي كانه راسه زبيبة (بخاري ص ج). قال الامام الكرماني رحمه الله تعالى: فان قلت كيف يكون العبد واليا وشرط الولاية الحرية قلت: بان يوليه بعض الائمة او يغلب على البلاد بشوكته. (شرح الكرماني لصحيح البخاري ص ج)

(۲) وقال الامام ولي الله رحمه الله تعالى: طريق چهارم استيلاء ست ..... واين دو نوع ست يكى آنكه مستولى مستجمع شروط باشد .... ديگر آنكه مستجمع شروط نباشد وصرف منازعين كند بقتال وارتكاب محرم وآں جائز نيست وفاعل آں عاصى ست ليكن واجب ست قبول احكام او چوں موافق شرع باشد، واگر عمال او اخذ زكاة كنند از ارباب اموال ساقط شود، وچوں قاضى او حكم نمايد نافذ گردد حكم او، همراه او جهاد مى تواں كرد، وايں انعقاد بنا بر ضرورت ست زيرا كه در عزل او فنائى نفوس مسلمين وظهور حرج ومرج شديد لازم مى آيد، ويقيں معلوم نيست كه شدايد مفضى شود بصلاح يا نه، محتمل كه ديگرى بد تراز اول غالب شود، پس ارتكاب فتن كه قبح او متيقن به ست چرا بايد كرد، براى مصلحتى كه موهوم ست و محتمل، وانعقاد خلافت عبد الملك بن مروان واول خلفائى بنى عباس بهمين نوع بود (ازالة الخفاء ص ۵ مقصد اول)

(۳) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والمراة تقضي في غير حد وقود وان اثم المولى لها لخبر البخاري رحمه الله تعالى لن يفلح قوم ولو امرهم امراة (رد المحتار ص ج) ، وكذا قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى (البحر الرائق ص ج)

(۴) فاسق لره امام جوړول جائز نه دی سره ددې نه دهغه پسې اقتداء کښې کړې شوې مونځ صحيح دې.

## النظائر:

ولهذه المسالة نظائر كثيرة مثلا:

(۱) البيع الفاسد موجب للملك.

(۲) حرمة المصاهرة تثبت بالزنا.

(۳) السفر يترتب عليه الاحكام ولو كان للمعصية.

(٤) يقع الطلاق على الحائض مع كونه منهياعنه،

(٥) يقع الطلقات الثلاث دفعة مع كونه بدعيا،

(٦) لعق النجاسة مع حرمته مطهر،

دلائل الجواز د لاندې وجوهو له وجه نه په نفاذ مع عدم الجواز باندې محمول کول ضروری دی

(١) عدم الجواز نصوص الشرع ، قرآن ، حديث ، فقه او اجماع سره ثابت دی ۔

(٢) دليل ثانی کښې په سلطنت دشجرة الدر باندې استدلال کړې شوې دې چه دهغې تسلط لره ناجائز گرځولو سره هغه معزول کړې شوې وه ۔ کماسياتی ،

(٣) البحر الرائق کښې هم ددې دليل ثانی نه درې کربښې وړاندې دا حکم مذ کور دې ۔ **فكانت اهلا للقضاء (فى غير حدو قود ) لكن يأثم المولى لها للحديث لن يفلح قوم ولوا امرهم امراة رواه البخارى (البحر الرائق ص ج)**

(٤) **قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى فى شرائط صحة الجمعة والثانى السلطان ولو متغلبا او امراة فيجوز امرها باقامتها لا اقامتها . قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى اعلم ان المراة لا تكون سلطانا الا تغلبا لما تقدم فى باب الامامة من اشتراط الذكورة فى الامام . فكان على الشارح ان يقول ولو امراة اى ولو كان ذلك المتغلب امراة ح. والمراد بالمتغلب من فقد فيه شروط الامامة وان رضيه القوم (ردالمحتار ص ج ١)**

(٥) بدائع کښې د دليلِ اول نه څه وړاندې د سلطنت عبد ذکر دې ونصه: **واما العبد اذا كان سلطانا فجمع بالناس اوامر غيره جاز (بدائع الصنائع ص ج)** په دې باندې اجماع ده چه عبد سلطان نه شی کيدلې ۔ لهذا دلته بالاتفاق عبد متغلب مراد دې چه دهغه سلطنت د ناجائز کيدلو باوجود نافذ دې ۔ په دې سره ثابته شوه چه وړاندې هم دې موقع باندې «ان المراة تصلح سلطانا» کښې هم صلاحيت نه نفاذ بلاجواز مراد دې ۔

(٦) په اول دليل کښې «فامرت رجلاً صالحاً للامامة» کښې بالاتفاق داسې سړې مراد دې چه دهغه په اقتداء کښې کړې شوې مونځ صحيح شی ، دا ضروری نه ده چه هغه امام جوړول هم صحيح وی ۔ په دې سره ثابته شوه چه وړاندې « ان المراة تصلح سلطانا» کښې هم نفاذ مراد دې جواز مراد نه دې ۔

(٧) امام ابن همام رحمه الله تعالى دخپل شان تحقيق مطابق دې حقيقت لره په دلائلو سره ثابت کړې دې چه د ښځې د قضاء نفاذ مع عدم الجواز دې ونصه : **والجواب ان ماذكر غاية ما يفيد منع ان تستقضى وعدم حله والكلام فيما لو وليت واثم المقلد بذلك اوحكمها خصمان فقضت قضاء موافقا للدين**

الله اکان ینفذ ام لا؟ لم ینتهض الدلیل علی نفیه بعد موافقته ما انزل الله الا ان یثبت شرعا سلب اهلیتها ولیس فی الشرع سوا نقصان عقلها ومعلوم انه لم یصل الی حد سلب ولایتها بالکلیة الا تری انها تصلح شاهدة وناظرة فی الاوقاف ووصیة علی الیتامی وذلك النقصان بالنسبة والاضافة ثم هو منسوب الی الجنس لجاز فی الفرد خلافه الا تری الی تصریحهم بصدق قولنا الرجل خیر من المراة مع جواز کون بعض افراد النساء خیرا من بعض افراد الرجال ولذلك النقص الغریزی نسب صلی الله علیه وسلم لمن یولیهن عدم الفلاح فکان الحدیث متعرضا للمولین ولهن بنقص الحال وهذا حق لکن الکلام فیما لو ولیت فقضت بالحق لماذا یبطل ذلك الحق؟ (فتح القدیر ص۴۸۶ ج۵)

(۸) اعلاء السنن کښې هم هغه حقیقت لره داسې محقق بیان فرمائیلې دې چه دهغې دلائیل تقریباً په دوه صفحو باندې مشتمل دی (اعلاء السنن ص ۲۶، ۲۷ ج ۱۵).

د اعلاء السنن په هغه بحث کښې متعددو دلائیلوسره دې ثابتولو نه پس چه فقه حنفی کښې هغه موقع باندې د ((جواز)) نه ((نفاذ مع الاثم)) مراد دې، آخر کښې خپلې دې دعوې ((جوازبمعنی نفاذ)) یا بالفاظِ دیگر ((نفاذبلاجواز)) باندې واقعه جمل سره استدلال کړې دې چه صحیح نه دې، ځکه چه دلته د امارتِ عائشې رضی الله عنها قطعاً تصور قدرې هم نه وو، اونه د جنګ وغیره څه خیال وو، صرف د قصاص مطالبې ته تقویت ورکولو دپاره ددوی لخوا نه تائید حاصلول مقصود وو چه دهغې تفصیل په ((متفقه فیصله)) کښې تیرشو.

د حضرت عائشې رضی الله عنها هغه اقدام لره هم صحابه کرامو رضی الله عنهم خوښ نه کړو او هغه ئې د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په وعید ((لن یفلح قوم ـ الخ)) کښې داخل ګڼلو سره ناجائز وګرځولو، چه کله د قصاص په مطالبه کښې د حضرت عائشې رضی الله عنها په شمولیت کښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم په نزد څه جواز نه وو نو د دوی د تصور څه جواز کیدلې شو؟

علاوه ددې نه نفاذ مع عدم الجواز تسلیمولو او هغه دلائیلو سره د ثابتولو نه پس دهغه استدلال حاصل دا راوځی چه حضرت عائشه رضی الله عنها او د دوی همخیال صحابه رضی الله عنهم معاذالله! ناجائز کار کولوسره د معصیت ارتکاب کړې دې، حاشاوکلا. والله یعلم انهم برئیون من ذلک رضی الله عنهم ورضوا عنه.

بعضې ملحدینو د حضرت عائشې رضی الله عنها امارت ثابتولو دپاره د امام ابن تیمیه رحمه الله تعالی ددې عبارت نه استدلال کړې دې: **انما جعلها بمنزلة الملکة التی یأتمر بامرها ویطیعها (منهاج السنة ص۱۸۵ ج۲)**

په دې استدلال سره د حضرت عائشې رضی الله عنها امارت په ځائ د مستدل ملحد د انتهائی

جهالت او ښکاره خیانت ثبوت ملاویږی ، د منهاج السنة پوره عبارت لاندې ذکر کیږی:

فان طلحة والزبیر کانا معظمین عائشه رضی الله عنها موافقین لها مؤتمرین بأمرها وهما وهی من ابعد الناس عن الفواحش والمعاونة علیها ، فان جاز للرافضی ان یقدح فیهما بقوله بأی وجه یلقون رسول الله صلی الله علیه وسلم مع ان الواحد منا لو تحدث مع امراة غیرة حتی اخرجها من منزلها وسافربها الی اخرة ، مع ان ذلك انما جعلها بمنزلة الملكة التی یأتمر بأمرها ویطیعها ولم یکن اخراجها لمظان الفاحشة الخ (حواله بالا)

امام ابن تیمیه رحمه الله تعالی په ړومبی ځلې د بې حیا رافضی دا بې حیا دروغ نقل کړی دی چه حضرت طلحة او حضرت زبیر رضی الله عنهما په ناجائزې طریقې سره حضرت عائشې رضی الله عنها له خپل ځان سره بوتلې وه ، بیا هغه بې حیا رافضی ته جواب ورکړې دې چه هغه دواړو حضراتو زړونه د حضرت عائشې رضی الله عنها د عظمت نه معمور وو او د ملکې په شان ئې د دوی عظمت او اطاعت کولو .

په دې کښې اثبات د امارت مقصود نه دې بلکه مقصود دادې چه د ام المؤمنین کیدلو د وجه نه دهغوی په زړونو کښې د دوی د عظمت او اطاعت جذبه وه ، که چرته مقصود د امارت اثبات وې نو امام ابن تیمیه رحمه الله به د ښځې د امارت د جواز قائل وې ، حالانکه هغه هغې لره ناجائز ګرځوی ، اوپه هغه مسائلو کښې یې شمیری په کومو باندې چه د ټول امت اجماع ده چه دهغې تفصیل «متفقه فیصله» کښې د عنوان «اجماع امت» لاندې تیرشوې دې .

د دوی نیکه امام عبدالسلام رحمه الله تعالی هم منتقی الاخبار «باب المنع من ولایة المراة والصبی ـ الخ» کښې مستقل باب ایښې دې او هغه ئې په احادیثو سره ثابت کړې دې «نیل الاوطار ص ۲۷۳ج۸».

## شجرة الدر

په دې سره د ښځې د سلطنت په جواز باندې استدلال په دوه وجوهو سره باطل دې :

(۱) دنیا کښې هرهغه قول اوعمل چه د شرعې د نصوصو خلاف وی مردود دې .

(۲) دا ډیره مکاره ښځه وه ، د ملک صالح د وفات نه پس ئې دهغه ځوئ لره د مکر اوفریب په ذریعې په دردناکې طریقې سره وه وژلو اوپه ۲صفر سنة ۲۴۸هجری کښې یی په حکومت باندې تسلط قائم کړو ، امراء او عوامو لره ئې د خوشحالولو دپاره په هغوی باندې د دولت باران وکړو ، غټ غټ وظائف او زمکو ورکولوسره ئې دهغوی خولې بندې کړې .

بغداد کښې خلیفهٔ وقت ابو جعفرمستنصربالله ته علم وشو نوهغه د مصر امراؤ ته ډیرې بدې ردې او وئیلې ، دهغه مکارې ښځې د معزولولو حکم ئې ورکړو او وې لیکل :

« که چیرته تاسو سره د سلطنت اهل ځوک سړې پاتې نه وی نومونږ به ځوک سړې در ولیږو ؟

آیا تاسو د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد نه دې اوریدلې:

((کوم قوم چه خپل معاملات د ښځې په حواله کړی هغه قوم هیچرې کامیابیدلې نه شی))

د خلیفه د دې اختار په رسیدلو باندې دا خبیثه ښځه پخپله د سلطنت نه دستبرداره شوه ، په دې طریقه دهغې د حکومت ټوله موده د دوه میاشتو نه هم کمه وه (فوات الوفیات لابن شاکر الکتبی ص ۲۶۴ج۱ ، اعلام النساء ص ۲۸۲ج، مرآة الجنان للیافعی ص ۱۲۷ج ۴) فقط والله تعالی اعلم

رشیداحمد ۴ شعبان سنه ۱۴۰۹ هجری

## الحاق:

ددې تحریرنه پس د علامه قسطلانی رحمه الله تعالی د لاندینی عبارت په باره کښې استفسار مونږ ته راورسیدلو:

**ومذهب الجمهوران المراة لا تلی الامارة ولا القضاء واجازه الطبری وهی روایة عن مالك رحمه الله تعالی، وعن ابی حنیفة رحمه الله تعالی تلی الحکم فیما تجوز فیه شهادة النساء (ارشاد الساری ص ۳۰ ج ۲)**

د طبری او دامام رحمهما الله تعالی د اقوالو تشریح په ((متفقه فیصله)) کښې د قاضی ابوبکر ابن العربی رحمه الله تعالی نه څه په داسې ډول نقل کړې شوې ده: **((وهذا نص فی ان المراة لا تکون خلیفة ولا خلاف فیه ونقل عن محمد بن جریر الطبری امام الدین انه یجوز ان تکون المراة قاضیة ولم یصح ذلك عنه ولعله کما نقل عن ابی حنیفة رحمه الله تعالی انها انما تقضی فیما تشهد فیه ولیس بأن تکون قاضیة علی الطلاق ولا بأن یکتب لها منشور بأن فلانة مقدمة علی الحکم الا فی الدماء والنکاح وانما ذلك کسبیل التحکیم اوالاستبانة فی القضیة الواحدة)) (احکام القران لابن العربی ص ۱۳۳۵ ج ۳)**

پاتې شو د امام مالک رحمه الله تعالی روایت ، نودهغې د لټون دپاره د مالکیانو په کتابونو کښې لاندې څوارلسو مشهورو اومستندو کتابونو ته مراجعه وکړې شوه:

**(۱) المدونة الکبری للامام مالك رحمه الله تعالی،**

**(۲) المنتقی شرح موطا الامام مالك رحمه الله تعالی**

**(۳) بدایة المجتهد للامام ابن رشد رحمه الله تعالی**

**(٤) اقرب المسالك الی مذهب الامام مالك رحمه الله تعالی،**

**(٥) الشرح الصغیر علی اقرب المسالك،**

**(٦) حاشیة العلامة الصاوی رحمه الله تعالی علی الشرح الصغیر،**

(۷) مختصر العلامة الخليل رحمه الله تعالى،

(۸) الشرح الكبير لمختصر العلامة الخليل رحمه الله تعالى،

(۹) حاشية العلامة الدسوقی رحمه الله تعالى على الشرح الكبير،

(۱۰) شرح منح الجليل على مختصر العلامة خليل رحمه الله تعالى

(۱۱) تسهيل منح الجليل على مختصر العلامة خليل رحمه الله تعالى،

(۱۲) جواهر الاكليل شرح مختصر العلامة الشيخ خليل رحمه الله تعالى،

(۱۳) التاج والاكليل لمختصر خليل رحمه الله تعالى،

(۱٤) مواهب الجليل لشرح مختصر خليل رحمه الله تعالى،

په ذکر شوو کتابونو کښې په یو کښې هم د امام مالک رحمه الله تعالی نه د جواز قضاء المراة کوم روایت نشته . مدونه کتاب القضاء کښې خو بیخی د قضاء المراة بحث نشته باقی دیارلسو کتابونو کښې عدمِ جواز بلکه ددې نه هم ځه زیات د عدمِ نفاذ اود وجوبِ فسخ تصریح ده . البته مؤخرالذکر کتاب «مواهب الجلیل» کښې د امام مالک رحمه الله تعالی شاګرد امام ابن القاسم رحمه الله تعالی نه د جواز روایت نقل کولو سره دهغې محمل یې هم هغه ګرځولې دې کوم چه قاضی ابوبکرابن العربی رحمه الله تعالی طبری او امام رحمهما الله تعالی طرف ته منسوب کړې شوې دې ، اوس هغه کتابونو سره متعلقه عبارات پیش کولې کیږی :

(۱) قال الامام الباجی رحمه الله تعالى: ((فاما صفاته (القضاء) فی نفسه فاحداها ان يكون ذكرا بالغا (الى قوله) فاما اعتبار الذكورة فحكى القاضی ابو محمد وغيره انه مذهب مالك، ودليلنا ما روى عن النبى صلى الله عليه وسلم انه قال لن يفلح قوم اسندوا امرهم الى امراة، ودليلنا من جهة المعنى انه امر يتضمن فصل القضاء فوجب ان تنافيه الانوثة كالامامة، قال القاضى ابو الوليد ويكفى فى ذلك عندى عمل المسلمين من عهد النبى صلى الله عليه وسلم لا نعلم انه قدم لذلك فى عصر من الاعصار ولا بلد من البلاد امراة كما لم يقدم للامامة امراة والله اعلم واحكم)) (المنتقى ص۱۸۲ ج۵)

(۲) وقال الامام ابن رشد رحمه الله تعالى: ((فاما الصفات المشترطة فى الجواز فان يكون حرا مسلما بالغا ذكرا عاقلا عدلا)) (بداية المجتهد ص۴۶۰ ج۲)

(۳) وقال العلامة احمد الدردير رحمه الله تعالى: ((شرط القضاء عدالة وذكورة)) (اقرب المسالك)

(٤) وقال فى الشرح: ((اى شرط صحته، فلا يصح من انثى ولا خنثى)) (الشرح الصغير)

(۵) وقال العلامة احمد الصاوی رحمه الله تعالی: ((ای ولا ینفذ حکمها)) (الشرح الصغیر ص۱۸۷ ج۴)

(۶) وقال العلامة خلیل رحمه الله تعالی: ((اهل القضاء عدل ذکر)) (مختصر العلامة خلیل)

(۷) وقال العلامة احمد الدردیر رحمه الله تعالی: (((ذکر) محقق لا انثی ولا خنثی)) (الشرح الکبیر)

(۸) وقال العلامة الدسوقی رحمه الله تعالی: ((قوله لا انثی ولا خنثی) ای فلا یصح تولیتهما للقضاء ولا ینفذ حکمهما)) (الشرح الکبیر ص۱۲۹ ج۴)

(۹) وقال الشیخ محمد علیش رحمه الله تعالی فی شرح قول العلامة خلیل رحمه الله تعالی (اهل القضاء عدل ذکر فطن مجتهد ان وجد والا فامثل مقلد):

(((الثامن) صفات القاضی المطلوبة فیه ثلاثة اقسام شروط فی صحة تولیته وشروط فی دوامها وشروط فی کمالها، اشار المصنف الی الاول بقوله عدل الی قوله فامثل مقلد،

(ذکر) فلا تصح تولیته امراة لحدیث البخاری لن یفلح قوم ولوا امرهم امراة)) (منح الجلیل ص۲۳۸ ج۴)

(۱۰) والشیخ المذکور لم یتعرض لهذا فی حاشیته علی شرحه المذکور فکانه قرره مرة ثانیة.

(۱۱) وقال الشیخ صالح عبد السمیع: (((ذکر) فلا تصح تولیته امراة لحدیث البخاری لن یفلح قوم ولوا امرهم امراة)) (جواهر الاکلیل ص۲۲۱ ج۲)

(۱۲) وقال العلامة المواق رحمه الله تعالی: (((اهل القضاء عدل ذکر) ابن رشد القضاء خصال مشترطة فی صحة الولایة وهی ان یکون ذکرا حرا مسلما بالغا عاقلا واحدا فهذه ستة خصال لا یصلح ان یولی القضاء الامن اجتمعت فیه فاولی من لم تجتمع فیه لم تنعقد له الولایة وان انخرم شیء منها بعد انعقاد الولایة سقطت الولایة)) (التاج والاکلیل علی هامش مواهب الجلیل ص۸۷ ج۶)

(۱۳) وقال الامام الحطاب رحمه الله تعالی فی شرح قول العلامة خلیل رحمه الله تعالی اهل القضاء عدل ذکر فطن مجتهد ان وجد والا فامثل مقلد:

((واعلم ان صفات القاضی المطلوبة فیه علی ثلاثة اقسام (الاول) شرط فی صحة التولیة وعدمه یوجب الفسخ (والثانی) ما یقتضی عدمه الفسخ وان لم یکن شرطا فی صحة التولیة (الثالث) مستحب ولیس بشرط فاشار المؤلف الی الاول بقوله اهل القضاء عدل الی قوله والا فامثل مقلد،

(ذکر) ش قال فی التوضیح وروی ابن ابی مریم عن ابی القاسم جواز ولایة المراة قال ابن عرفة قال ابن زرقون

الانه فیما تجوز فیه شهادة. قال ابن عبد السلام لا حاجة لهذا التاویل لاحتمال ان یکون ابن القاسم قال کقول الحسن والطبری باجازة ولایتها القضاء مطلقا (قلت) الاظهر قول ابن زرقون لان ابن عبد السلام قال فی الرد علی من شذ من المتکلمین وقال الفسق لا ینافی القضاء مانصه وهذا ضعیف جدا لان العدالة شرط فی قبول الشهادة والقضاء اعظم حرمة منها (قلت) فجعل ما هو مناف للشهادة مناف للقضاء فکما ان النکاح والطلاق والعتق والحدود لا تقبل فیها شهادتها فکذالك لا یصح فیها قضاؤها انتهی)) (مواهب الجلیل ص۸۷ ج۶)

دا روایتِ مؤوله صرف د قضاء په باره کښې دې ، د ښځې ولایت بالاجماع جائز نه دې ، خلیفه ابوجعفرمستنصربالله شجرة الدر ته سلطنتِ صغری یعنې د لاندې درجې حکومت هم اجازت ورنه کړو او هغه ئې تیښتې ته مجبوره کړه ، چه دهغې تفصیل په عنوان «الشجرة الدر» کښې تیرشو ، چه هرکله ښځه د لاندې حکومت هم اهل نه ده نود امارتِ عظمیٰ اهل څنګه کیدلې شی ؟

(۱٤) قال الامام ابن رشد رحمه الله تعالی:

((قال عبدالوهاب ولا اعلم بینهم اختلافا فی اشتراط الحریة. فمن رد قضاء المراة شبهة بقضاء الامامة الکبری وقاسها ایضا علی العبد لنقصان حرمتها ومن اجاز حکمها فی الاموال فتشبیها بجواز شهادتها فی الاموال، ومن رای حکمها فافذا فی کل شیء قال ان الاصل هو ان کل من یاتی منه الفصل بین الناس فحکمه جائز الا ماخصه الاجماع من الامامة الکبری)) (بدایة المجتهد ص۳۵۵ ج۲) فقط والله تعالی اعلم

**عبرت** : کومه ښځه چه ددې تحریرباعثه جوړه شوه دهغې حکومت صرف شلو میاشتوپورې په مشکله وچلیدلو چه په ډیر بد انجام او انتهائی ذلت باندې ختم شو

**رشید احمد : ۱۶ رمضان ۱۴۰۹ هجری**

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَأَغۡلِبَنَّ أَنَا وَرُسُلِيۡ إِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيۡزٌ﴾

# غلبۂ اسلام

## آیا اسلام د تورې په زور سره خور شو؟

### افاضات

حضرت فقیه العصردامت برکاتهم

### تحریر

حضرت مفتی محمدابراهیم صاحب صادق آبادی مدظله

# غلبۂ اسلام

## آیا اسلام د تورې په زور سره خور شو ؟

د اسلام د دښمنانو له طرفه د اسلام په خلاف مسلسل دا پروپاګند کولې کیږی چه
«اسلام په دنیا کښې د تورې اود جبر او اکراه په ذریعې سره خور شوې دې»
په دې تحریر کښې
ددې تلبیس ابلیس مختصر مګر نهایتِ جامع جواب دې

## آیا اسلام د تورې په زور سره خور شو ؟

**سوال**:- د اسلام دښمنان بالخصوص د مستشرقینو د طرف نه دا عام پروپاګند دې چه په دنیا کښې اسلام د تورې په زور خورشوې دې ، آیا په دې کښې څه د حقیقت عنصر هم شته یامحض د مخالفینو پروپاګند دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د اسلام دښمنۍ هغه خلقو لره راندہ کانړه کړی دي اوکه نه نو له دغه پروپاګند نه به ئي وړاندې دومره فکر کړې وو چه د مسلمان کیدلو مطلب دې په زړه سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم راوړلې شوی دین قبلول ، که چرته څوک سرې په زړه سره د مسلمان کیدلو په ځای صرف په ژبې سره د اسلام دعوی کوی نوهغه د شریعت په اصطلاح کښې منافق دې ، د منافقانو ډله د عامو کافرانو په نسبت بدترینه او خطرناکه ډله ده ، هغوی ته قرآن د «**ان المنافقین فی الدرک الاسفل من النار**» وعید اوروللې دې ، تاریخ ګواه دې چه دوی اسلام ته د عامو کافرانو په نسبت څه زیات نقصان رسوللې دې ، اوس دې فکر وکړې شی چه جبر کولوسره یو کافر باندې زبانی کلمه وئیلې کیدلې شی ، دهغه د زړه نه خو کفر نه شی ویستلې کیدلې ، دهغه معترضینو په قول ګویا رسول الله صلی الله علیه وسلم د تورې په زور کافرانو لره منافق جوړولو سره نوره هم دهغوی سره دښمنی پیدا کړه ، دهغې نه څه فائده ؟ غرض د تورې په زور چالره مسلمان جوړول د عقل اود نقل د نګاه نه ممکن نه دی او دا پروپاګند د ځنګلی خر نه زیات حیثیت نه لری . مګر ددې پروپاګند په شاه د چالاکو اروپایان دا ابلیسی اصول دی چه :

« دروغ وائې او دومره وائې چه دنیا هغه رښتیاګڼل شروع کړی »

ددې وجه نه مونږ ددې پروپاګند سطحیت او ددې دروغژن توب یو څه اندازه تفصیل سره بیانول غواړو .

دا دروغ مستشرقینو را اوچت کړی دی ، هم هغوی دې لره بار بار هوا ورکوی ، که چرته په دې کښې د یوې ذرې برابر هم وزن وای نو دهغوی اسلاف (کفارِ مکه) نه به نه وې پاتې شوی ، حالانکه هغوی داسلام په خلاف هره حربه استعمال کړه ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ئې شاعر ، ساحر ، کاهن ، کذاب ، مفتری ، غرض هرڅه اووئیل مګر دا دروغ دهغوی په خواخاطر کښې هم رانغلل ، یا که راغلی هم وی نو دوئ دخپل تردید مترادف ګڼلوسره دهغې د اشاعت همت ونه کړئ شو .

که چیرته په جبراو اکراه سره خلق مسلمانان جوړکړې شول نو اشاعتِ اسلام کښې دومره اوږده موده ولې صرف شوه ؟ د تورې په زورخو د کلنو کار په ورځو بلکه په ساعتونو کښې پوره کیدلې شول ، آخرڅه وجه ده چه د دیارلسو کالو په اوږده موده کښې صرف په شمیریوڅوکسان مسلمانان کیدلې شی چه مکه مکرمه کښې د تورې اوچتولو اجازت نه وو نو پوښتنه کیدلې شی چه مدینه منوره کښې له جبری کار روائې نه څه څیز مانع وو؟ دلته خو اسلامی ریاست قائم شو ، د خان قربانولو فوج هم میسر شو ، حالانکه ټوله دنیا خبره ده چه آخر وخته پورې دمدینې منورې هم پوره آبادی مسلمانه نه شوه ، په هغه مرکزِ اسلام کښې یهودی ، مشرک ، منافق ټول اوسیدل .

معترض دې اووائی چه جبر په کومې ذریعې سره وکړې شو ؟ مال ، دولت جاه اقتدار یا د نورو

دنیوی مفادو په دهوکې ورکولو؟ دیارلسو کالوپورې خو مسلمانان پخپله انتهائی درجه مظلوم د بد حالئ په عالم کښې وو ، هغوی سره هیڅ څیز نه وو ، د هجرت نه پس ابتدائی دور هم د ابتلاء دور وو ، البته د ۸ هجرئ نه پس د فتوحاتو دور شروع شو ، مګر هغه هم په دې شان سره چه د لرې لرې نه به قبائل عرب راتلل او په اسلام به مشرف کیدل ، دهغه دور په مسلمانانو کښې نامور د عربو امراء ، حکام اوسلاطین او رؤساء اواغنیاء شامل دی ، دا خلق دچا په تورې سره مسلمانان شول ؟ د اسلام راوړلو نه پس دې حضراتو دخپلو علاقو نه زکوٰة اوصدقات جمع کولوسره بارګاهِ نبوت کښې پیش کولو ،د اخستلو په ځائ په نورو باندې مال خرچ کوی ، دا څنګه جبر دې ؟

په هر حال: که چیرته دنیا په اسلام کښې په داخلیدلو باندې مجبوره کیدلې نود جزئې مقررولو بیا څه مقصد وو ؟ حالانکه عین په هغه حالاتو کښې چه هرکله د اسلام ترقی په عروج کښې وه په لاکهونو کسانو اسلامی ملکونو کښې لږه شانتې سالانه جزیه ورکولوسره د امن او د عیش عشرت ژوند تیرولو ، په هغې باندې د بوډئ ګانو زنانو ، ماشومانو ، غلامانو ، معذورو اود تنګدست خلقو نه علاوه راهبانو لره هم د جزئې ادا کولو نه مستثنیٰ اوساتلې شول ، داسې مخلوق لره جبراً مسلمانان جوړول څه مشکل وو ؟

که د اسلام راوړونکو خلقو هم یو سرسری نظر سره جائزه واخستلې شی نو ددې دروغو حقیقت ښکاره کیږی ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حیٰوة طیبه کښې اسلام راوړلو والا ځینې خو د متوسط طبقې خلق وو مګر اکثرو صحابو د اوچتې طبقې سره تعلق لرلو ، یا بیا مملوک او ماتحت کسان وو ، په ړومبنی قسم کښې حضرت ابوبکر ، عمر ، عثمان ، عبدالرحمٰن بن عوف ، خالدبن ولید ، عمروبن عاص رضی الله عنهم سرِ فهرست دی

ددې طبقې ډیرکسان خو جابر او زورور وو ، دمسلمانیدلو نه وړاندې د اسلام په دښمنئ کښې مخکښې وو ، که چرته فرض کړې شی چه دې حضراتو اسلام کښې د داخلیدلو نه پس په خلقو باندې جبر اوکړو نو ودې ښودلې شی چه په دې جابرینو باندې چا جبر کړې وو ؟

او دویمه طبقه خو د مسلمانیدلو نه پس مسلسل دیارلسو کالو پورې مظلومه وو ، په دوی کښې حضرت بلال ، صهیب ، یاسر ، عمار ، سمیه ، زنیره رضی الله عنهم سرفهرست دی .

په دوئ باندې ډیر ظلمونه وکړې شول ، بعضو لره شهیدان کړې شول ، مګر په ژبه د ټولو هم یو نعره وه : «دلته زیاتیږی ذوقِ جرم د هرې سزا نه پس»

آخر دوئ د اسلام نه ولې منحرف نه شو؟

حقیقت دادې چه په اسلام کښې داخلولو دپاره یو فردِ بشر باندې هم کله جبر نه دې کړې شوې ، البته د اسلام نه د اړولو دپاره جبر کړې شوې دې او هره ممکنه حربه آزمایل شوې ده .

د اسلام د مساوات نظریه او نظام عدل کتلوسره هرذی شعور فیصله کولې شی چه په دې

مقدس مذهب کښې د جبر هیڅ گنجائش نشته ، بلکه په اسلام کښې له داخلیدلو نه وړاندې یو غیر مسلم ته باربار فکر پیښیږی چه زه به په اسلام کښې قدم اېښودلو سره څه اومومم ؟ دنیا خبره ده چه اسلامی قوانین د مالداره ، فقیر ، شریف او وضیع بلکه د بادشاه دپاره یوشان نافذالعمل دی ، په هغې کښې دچا سره هم څه رعایت نشته ، دهغې پرقیدونکی او روښانه مثالونه تاریخ اسلام کښې ثبت دی.

د جبلة بن ایهم واقعه خو د تاریخ اسلام مبتدی هم پیژنی ، هغه نومسلم بادشاه یو فقیربې نوا ته په غصه کښې راتللو سره یو سپیړه ورکړه نو امیرالمؤمنین حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د قصاص فیصله صادره کړه ، ده د یوې شپې مهلت اخستلو سره هم هغه شپه تښتیدلوسره مرتد شو اود اسلام بدترین دښمن جوړ شو اوټول عمر یی اهلِ اسلام تنگول ، په هر میدان کښې ئې دهغوی سره مقابله کوله ، که چیرته ئې دهغه څه لږ شانتې رعایت کړې وې نو دا واقعه به نه پیښیدله ، مگر د اسلام په لازوال قوانینوکښې داسې څه گنجائش نشته.

هم دغه شان د عربو بعضې مخورو او با اثره خلقو د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راتللو سره درخواست وکړو چه مونږ په دې شرط مسلمانیږو چه مونږه په اسلامی حکومت کښې حصه دار جوړکړې شی ، مگر حضورصلی الله علیه وسلم دا درخواست قبول نه کړو.

بعضې نوو قبائلی مسلمانانو څه رعایت طلب کړو چه مونږ دې د زکوٰة یا مونځ نه مستثنٰی وساتلې کړې شومگرحضورصلی الله علیه وسلم داسې درخواست هم رد کړو په کمالِ استغناء سره.

داسې قسم واقعات په لوئ تعداد سره ملاویږی ، څوک هوش اوحواس لرلو والا انسان دې اووائی چه په داسې مذهب کښې چالره مجبورول او په اسلام کښې دداخلولو څه فائده ده ؟

د حضورصلی الله علیه وسلم په حیوٰة طیبه کښې اسلام په پوره جزیرهٔ عرب کښې خور شو د خلفاءِ راشدینو په دور کښې خو د اسلام نغاره په څلورکونجه دنیا کښې وغږیدله ، په لاکهونو انسانان په اسلام مشرف شول ، آیا دا مستشرقین یوځائ کیدلوسره په هغه پوره دور کښې دیو متعین فرد نشاندهی کولې شی چه هغه لره په جبر اواکراه سره مسلمان جوړ کړې شو؟

ددې برعکس هنود یهود نصاریٰ چه په کومو ذرائعو سره دنیا لره پخپل مذهب کښې د راوستلو کوشش کوی هغه د دنیا په وړاندې دی ، د مال دولت ، زرو ، زمکې غرض د دنیا هر لالچ ورکولو سره خلق د دوئ لخوا ښکار کیږی.

دا ضرور ده چه د مرتد سزا په اسلام کښې قتل ده ، دا د اسلام قاطعه فیصله ده ، په دې کښې چاته که شبه وی نو باب المرتدوالبغاة کښې د رساله « الفتل المشتد لقتل المرتد» مطالعه دې وکړی. **محمدابراهیم نائب مفتی دارالافتاء والارشاد ، ۱۷شعبان ۱۴۱۳هجری**

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَلَوْكَانَ رَفْضًا حُبُّ اٰلِ مُحَمَّدٍ فَلْيَشْهَدِ الثَّقَلَانِ اَنِّيْ رَافِضِيٌّ

# ذبُ الجهول عن سبطِ الرسول

## صلی الله علیه وسلم

*د حضرت حسین رضی الله عنه په باره کښې روافض اوخوارج دافراط اوتفریط شکار او غلو کښې مبتلا دی.

*په دې رساله کښې د صراطِ مستقیم اود راهِ اعتدال وضاحت کړې شوې دې چه دا مذهب د اهل السنت والجماعة دې.

*******

******

## حضرت حسین رضی الله عنه د یزید بغاوت ولې وکړو ؟

**سوال** :- یو سړې وائی چه څنګه حضرت ابوبکررضی الله عنه حضرت عمر رضی الله عنه لره دخلافت دپاره منتخب کړو ، همدغه شان حضرت امیرمعاویه رضی الله عنه خپل ځوئ یزید لره دخلافت دپاره منتخب کړو ، اوځنګه چه د حضرت ابوبکر، عمر ، عثمان ، علی او حسن رضی الله تعالی عنهم بیعت وشو هم هغه شان د یزید هم بیعت وشو ، لهذا امام حسین باغی شو اود باغی حکم په قرآن کښې مذکور دې ، ﴿فَإِنْۢ بَغَتْ إِحْدَىٰهُمَا عَلَى ٱلْأُخْرَىٰ فَقَٰتِلُواْ ٱلَّتِى تَبْغِى﴾ لهذا د بغاوت د وجه نه امام حسین واجب القتل شو ، جناب ګزارش دې چه ددې پوره حقیقت واضحه کولوسره زمونږ شک اوشبهه رفع کړئ ، بینوابیانا شافیا ، توجروا اجراوافیاً.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دهغه سړی دا باطل خیال په اسلام کښې د انتخابِ خلیفه د اصولو نه جهالت او اسلامی تاریخ نه ناواقفیت باندې مبنی دې ، اسلام کښې د انتخابِ خلیفه دپاره د ولی العهدی د جاهلانه رسم هیڅ ګنجائش نشته چه خلیفهٔ وخت چه څنګه غواړی خپل ولی العهد مقررکړی ، اسلام کښې د انعقادِ خلافت څلور صورتونه دی ، بیعت ، استخلاف ، شوری ، استیلاء ، ددې څلورو واړو د ضرورت مطابق تفصیل لیکلې کیږی :

(۱) بیعت : اهلِ حل والعقد بالاتفاق چالره خلیفه منتخب کړی ، څنګه چه د حضرت ابوبکررضی الله عنه انتخاب وشو .

(۲) استخلاف: خلیفهٔ وخت یو څو ذی صلاح خلقو سره مشوره وکړی او دچا په باره کښې وصیت وکړی چه څما نه پس به دا سړې خلیفه وی څنګه چه حضرت ابوبکررضی الله عنه د حضرت عثمان عبدالرحمن بن عوف ، سعید بن زید ، اسیدبن حضیر او مهاجرینو اوانصارو رضی الله عنهم اجمعین او د نورو اهلِ حل والعقد سره مشوره وکړه او حضرت عمررضی الله عنه یی منتخب کړو (اسد الغابه ص ۱۲۸ ج ۴).

بذریعه استخلاف انعقادِ خلافت دپاره درې شرطونه دی:

(۱) خلیفهٔ اول کښې به د خلافت ټول شروط موجود وی.

(۲) خلیفهٔ ثانی به هم د ټولو شروطو د خلافت مستجمع وی.

(۳) خلیفهٔ اول به د خلیفهٔ ثانی په انتخاب کښې اهل حل وعقد سره مشور کړې وی

(۳) شوریٰ: خلیفهٔ وخت دیوڅو اهلِ حل والعقد خلقو شوریٰ متعین کولوسره دا وصیت وکړی چه څما نه پس دې دا خلق په اتفاق سره پخپلو کښې یو تن لره خلیفه منتخب کړی څنګه چه حضرت عمررضی الله عنه شپږ رکنی شوریٰ متعین کړه دهغې په ذریعې سره دحضرت عثمان رضی الله عنه انتخاب وشو (صحیح البخاری).

(۴) استیلاء اوتغلب: یوسړې د خلیفهٔ وخت د انتقال نه پس جبرا وقهراً مسلط شی.

## د خروج د جواز وجه

پورته بیان شوی دی چه بذریعه استخلاف انعقادِ خلافت دپاره خلیفه ثانی کښې د ټولو شرائطِ خلافت وجودشرط دې ، بل چا کښې دخلافت د شرائطو وجود اوعدم سره متعلق د دوو کسانو په رایه کښې اختلاف کیدلې شی چنانچه یزید کښې دخلافت د شرائطو د وجود په باره کښې دحضرت معاویه اود حضرت حسین رضی الله عنهما رائې مختلفې وې ، د حضرت معاویه رضی الله عنه په نزد ټول شرائط موجود وو اود حضرت حسین رضی الله عنه په نزد ټول یا بعضې مفقود وو ، دحضرت معاویه رضی الله عنه د رائې مطابق یزید لره خلیفه جوړول جائز وو او د حضرت حسین رضی الله عنه د رائې مطابق د شروطو د نشتوالی د وجه نه د هغه استخلاف سره د یزید خلافت منعقد شوې نه وو.

بذریعه بیعت انعقادِ خلافت دپاره د ټولو اهل حل والعقد اتفاق ضروری دې ، د یزید په باره کښې داهل حل والعقد اتفاق نه وو شوې ، ددې وجه نه بذریعه بیعت هم خلافت منعقد نه شو بالاخر بذریعه استیلاء وتغلب دیزید خلافت منعقد شوې وو مګر حضرت حسین رضی الله عنه چه کوم وخت د یزید په مقابله کښې وتلې وو هغه وخته پورې د یزید په پوره طورباندې استیلاء وتغلب نه وؤ شوې ، دجمله مؤرخینو په اتفاق سره دا امر ثابت دې چه حضرت حسین رضی الله

عنه کله د اهلِ کوفې په دعوت باندې وتلې وو هغه وخته پورې د یزید حکومت منعقد شوې نه وو . هغه وخته پورې نه د حجاز مرکزی ښارونو دهغه حکومت لره تسلیم کړې وو او نه د عراق خلقو بیعت کړې وو، صرف د شام خلقو د یزید خلافت لره تسلیم کړې وو مګر مکه ، مدینه ، کوفه وغیره د مرکزی اسلامی ښارونو د استصواب رائې نه سوا صرف د اهلِ شام دا مرتبه نه وه چه د خلافتِ اسلامیه مسئله په کورکښې په ناسته باندې وکړی ، هغه وخته پورې عام مسلمانان خو لرې خبره ده پخپله د حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه مقرر شوی امراء د آئنده خلیفه په باره کښې مذبذب وو ، اهلِ کوفه حضرت حسین رضی الله عنه طرفه ته ډیر په وضاحت سره لیکلی وو چه په دې وخت کښې مونږ باندې هیڅوک امیرنشته دې تاسو تشریف راوړئ ، شاید ستاسو په وجه الله تعالی مونږ په هدایت باندې جمع کړی ، قصرِامارت کښې نعمان بن بشیرضرور موجود دې مګر مونږ هغه پسې نه د جمعې لمونځ کوو اونه د اخترونو ، که چیرته مونږ ته ستاسو د راتګ یقین وشی نومونږ به هغه لره د کوفې نه اوباسو (الامامة والسیاسة لابن قتیبه ج۲ صفحه ۳)

پخپله د کوفې امیر نعمان بن بشیرته چه کله د حضرت حسین رضی الله تعالی عنه د راتګ خبر ورسیدلو نو هغه صفا صفا اووئیل : (**لابن بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم احب الینا من ابن بجدل**) له همدې وجه نه یزید نعمان بن بشیر لره معطل کولوسره دهغه په ځائ عبیدالله بن زیاد لره دکوفې امیر جوړولو سره ولیږلو مګر دهغه د رسیدلو نه وړاندې دمسلم بن عقیل په لاس باندې د دیرش زرو نه زیاتو کسانو بیعت کړې وو ، د حجاز د مرکزی آبادیانو هم تقریباً دا حال وو ، دې وخته پورې د یزید د حکومت منعقد کیدل خو څه کوې هرځائ باندې پټ او ښکاره هررنګې دهغه مخالفت عام وو ، هغه حالت کښې حضرت حسین رضی الله تعالی عنه باندې شرعاً فرض وو چه دهغه په نظر کښې چه کوم سړې د خلافت اهل نه وو هغه لره برسرِاقتدار راتللو نه د بندولو دپاره دجهاد په میدان کښې را وه وځی خصوصاً په هغه وخت کښې چه د هر طرف نه د مسلمانانو نظرونه د دوئ د رهنمائې منتظروو او هغه ذمه دارئ لره د قبلولو درخواستونه جاری وو .

غرض داچه د حضرت حسین رضی الله تعالی عنه دا اقدام دیو قائمَ شوی حکومت په مخالفت کښې نه وو چه دهغې نه تعبیر په بغاوت سره وکړې شی بلکه د دوئ علم او فضل اود دینی مرتبې دوجه نه دا ذمه داری دوئ باندې لازمه کیدله چه د دوی په نظر کښې چه کوم خلق نا اهل دی هغوی لره برسرِاقتدار راتللو نه بند کړی ، مګر دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه کوفې ته رسیدلو نه وړاندې وړاندې په حالاتوکښې دومره په تیزئ سره تغیر راغې چه دهغه اقدام شرعی حیثیت بالکل بدل شو ، یعنې اهلِ کوفه دمسلم بن عقیل سره غداری کولوسره عبیدالله بن زیاد سره متفق شول اومسلم بن عقیل لره ئې قتل کړو او حجاز کښې هم د یزید دپاره ډیر په تیزئ سره حالات سازګار شو اودخلقو نه طوعاً وکرهاً دیزید دپاره بیعت واخستلې شو .

حضرت حسین رضی الله تعالی عنه نه چه کله معلومه شوه چه د یزید حکومت منعقد شوې دې نو دوئ د خلافت نه دست بردارکیدلو سره واپس مدینې ته د راتللو فیصله کړې وه ، مګر د دوئ د دولې نه د دښمن فوج ګیره واچوله او واپس مدینې ته ئې پرئ نه ښودل ، د عبید الله بن زیاد د طرف نه د فوجی افسرعمروبن سعد په وړاندې حضرت حسین رضی الله عنه درې تجویزونه پیش کړل

(۱) ما مدینې ته واپس پریږدئ

(۲) ما د ترکو سرحد ته پرېږدئ دې دپاره چه باقی ژوند په جهاد کښې تیرکړم

(۳) ما یزید سره ملاؤ کړئ ، زه به پخپله دهغه سره فیصله وکړم ، بلکه بعضې روایاتوکښې د یزید په لاس باندې د بیعت کولو قصد هم ذکر دې : **اما ان اضع یدی فی ید یزید (طبری ص۲۳ ج۲) البدایة والنهایة ص۱۷۰ ج۸)** پخپله د شیعه ګانو ممتازعالم هم پخپل کتاب الشافی مطبوع ایران ص ۴۷۱ کښې دې روایت لره نقل کړې دې ، البدایة والنهایة کښې دیو راوی قول دې چه هغه دا الفاظ د حضرت حسین رضی الله عنه نه اوریدلی نه دی ، مګر د اثبات روایات زیات دی ، علاوه ددې نه اصولاً هم اثبات لره په نفی باندې ترجیح ده ، دا روایت په دې باندې نص دې چه حضرت حسین رضی الله تعالی عنه د یزید خلافت لره تسلیم کړې وو ، بالفرض که دا روایت هم نه وې نود یزید د حکومت لاندې د جهاد دپاره د تللو درخواست کول د یزید خلافت لره تسلیمولو باندې واضحه دلیل دې

عمروبن سعد دا تجویزونه ابن زیاد طرف ته لیکلی واستول او ابن زیاد ته ئې مشوره ورکړه چه په دې کښې یو تجویز قبلولوسره دې هغه پریښودلې شی مګر د شمر په وینا باندې ابن زیاد دې تجویزونو لره رد کړل ، او حضرت حسین رضی الله عنه لره یې د اهل وعیال سره د قید کولو حکم لیکلو سره را ولیږلو ، هغه وخت د دوی دپاره صرف دوه لارې وې :

(۱) خپل خان سره د اهل وعیال ه ګرفتاره کړی او ذلت قبول کړی .

(۲) مردانه طریقې سره مقابله وکړی او شهید شی .

شریعت چالره هم نه مجبوره کوی چه خپل ځان او اهل وعیال د ظالمانو په قبضه کښې ورکړی او ذلت قبول کړی ، لهذا حضرت حسین رضی الله تعالی عنه د کمالِ عزیمت لاره اختیارولو سره شهادت قبول کړو

دا ذکر شوې تفصیل په ابن جریر، کامل ، یعقوبی ، شرح نهج البلاغة ، الامامة والسیاست امام سید مرتضی، مقتل ابن احنف ، تاریخ کبیرللذهبی وغیره تاریخی کتابونو کښې موجود دې ددې تفصیل نه معلومه شوه چه د حضرت حسین رضی الله تعالی عنه د خروج په وخت کښې یو حکومت هم موجود نه وو او یو خلافت هم قائم شوې نه وو ، چه کله د یزید خلافت قائم شو نو

حضرت حسین رضی الله تعالی عنه د خپلې ارادې نه رجوع کړې وه .

دا وئیل چه « دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه دا اقدام د یزید د حکومت په خلاف بغاوت دې» بالکل غلط دې او دې امر باندې دلیل دې چه قائل ته خونه د انتخاب خلیفه اسلامی قانون سره څه واقفیت شته اونه اسلامی تاریخ سره څه ممارست ، فقط والله تعالی اعلم

۲۳ربیع الاول سنه ۷۳هجری

## په « خلافتِ معاویه ویزید » کتاب باندې تبصره

**الحمد لله و کفی وسلام علی عباده الذین اصطفی، اما بعد:** څوکاله وړاندې چه کله د کتاب «خلافتِ معاویه ویزید » سلسله په عنوان د « الحسین پرتبصره » بعضې ماهانه رسالوکښې شروع شوه نو احبابو دې طرف ته توجه مبذول کړه او څومره څومره چه دا سلسله زیاتیدله په دې باندې د اظهارِ خیال اود تبصرې دپاره اصرارِ شدت اختیاریدلو ، مگر راقم الحروف په دې باندې د قلم اوچتیدلو نه په لاندې وجوهو سره همیشه اعراض کولو .

(۱) دا مسئله او داسې قسم په سلگونو مسائل څما په نظر کښې هیڅ اهمیت نه لري دډې وجه نه دې طرف ته توجه کول د قیمتی وخت ضایع کول دی . دا مسئله خو نه د دین په اصولو کښې ده اونه په فروعو کښې ، آخرت کښې څه حساب کتاب دې سره متعلق نه دې ، انتهائی د افسوس مقام دې چه د دین اهم مسائل چه په هغې باندې أُخروی نجات موقوف دې د نن سبا مسلمانانو ته دهغې نه قطعی طور باندې د بې خبره کیدلو باوجود دهغې د علم حاصلولو توفیق نه کیږی ، د اودس او مانځه دمسائلو ورته معلومات نشته ، حالانکه د دین په احکامو کښې مونځ اودمونځ احکام مشهور او آسان دی ، چه هرکله پنځگانه مونځونو سره متعلق د علم دا کیفیت دې نونورو عباداتو ، معاملاتو ، بیوع اواجاراتو ، آداب واخلاقو سره متعلق دهغې د احکامو حال به څه وی ؟

غرض داچه د کومو امورو مکلف دی اوپه آخرت کښې دهغې تپوس به کیږی او هغه مدارِ نجات دی دهغې نه خو داسې غفلت چه گویا دخپلې کامیابئ سره ئې هیڅ کار نشته ، نه دجنت خواهش اونه د جهنم نه ویره ، نه د الله رضا مطلوب اونه د هغه دغضب او انتقام نه د بچ کولو فکر شته ، دخپل نفس سره خو دومره بې وفائی چه د هلاک مترادف دې اود نورو د تزکیې فکر ، شپه او ورځ هم دا مشغله ، شعر :

تجھ کو پرائی کیا پڑی اپنی نبیڑ تو

﴿ کُلُّ امْرِیٍٔ بِمَا کَسَبَ رَهِینٌ ﴾ ، ﴿ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ﴾ ، ﴿ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ (۱۳۴) ﴾ ، په شان نصوصِ صریحه نه قطع نظر

ادنی فکر لرلو والا سړی هم دا فیصله کولې شی چه د یو عیبونو نه د ډکې مجسمې حکم او منصف جوړیدلو سره اغیار خصوصاً د صحابه کرامو رضی الله عنهم او د نورو اکابرِ امت د حسناتو او سیئاتو جائزه اخستل اودهغوی دعیوبو دتنقیداو تنقیح په در کنبې کیدل څومره لوئ حماقت دې . شعر

نہ تھی حال کی جب ہمیں اپنی خبر رہے دیکھتے لوگوں کے عیوب وہنر
پڑی اپنے گناہوں پہ جو ایک مسلم کے لئے بہت تو نگاہ میں کوئی برا نہ رہا

(۲) د خبرو موضوع تفسیق اوتعدیل دې چه د یو مسلمان دپاره ډیره مشکله لاره ده ، یوطرف ته ((قوله تعالی: ﴿فَلَا تُزَكُّوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ۖ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ ٱتَّقَىٰٓ﴾ ،وقول النبی صلی الله علیه وسلم لا تزکوا علی الله احدا، وقول عائشة رضی الله عنها عصفور من عصافیر الجنة، وقول ام العلاء رضی الله تعالی عنها رحمة الله علیك ابا السائب فشهادتی علیك لقد اکرمك الله))، باندې انکار کول ، اود حضرت سعد رضی الله تعالی عنه د قول ((والله انی لاراه مؤمناً)) په جواب کنبې ((اومسلماً)) ارشاد فرمائیل ، او بل طرف ته :قوله تعالی ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱجْتَنِبُوا۟ كَثِيرًا مِّنَ ٱلظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ ٱلظَّنِّ إِثْمٌ ۖ وَلَا تَجَسَّسُوا۟ وَلَا يَغْتَب بَّعْضُكُم بَعْضًا﴾ ، وقول النبی صلی الله علیه وسلم سباب المسلم فسوق وقتاله کفر، لایرمی رجل رجلا بالفسوق ولا یرمیه بالکفر الا ارتدت علیه ان لم یکن صاحبه کذلك، هلا شققت قلبه، ظنوا بالمؤمنین خیراً، ان الظن اکذب الحدیث واذکروا موتاکم بخیر، لا تسبوا الاموات فانهم قد افضوا الی ما قدموا، په شان ارشادات په هغه مسئله کنبې د ژبې خوزولو مجال ختموی .

(۳) د ژبو خوزولو دپاره بدقسمتئ سره د صحابه کرامو رضی الله عنهم اود تابعینو رحمهم الله مقدس جماعت لره هدف منتخب کولې کیږی چه دهغوی د مدحو او مناقبو نه د قرآن اوحدیث ذخائر او دفاتر ډک دی چه دهغوی په عبادت باندې فرښتې پسخیدلې ، چه د هغوی ژوند د امت دپاره أسوۀ حسنه ده ، اودهغوی افعال او اقوال ترقیامته پورې د راتلونکی امت د ایمان مدار او معیار دې . ﴿لِيَغِيظَ بِهِمُ ٱلْكُفَّارَ﴾ ، الله الله فی اصحابی لا تتخذوهم من بعدی غرضا من احبهم فبحبی احبهم ومن ابغضهم فببغضی ابغضهم، خیر القرون قرنی ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم، النجوم امنة للسماء واصحابی امنة لامتی، ان من الایمان حب الانصار وان من النفاق بغض الانصار (لحب المهاجرین وبغضهم بالاولی) په شان نصوصو سره دهغه مقدسې ډلې محبت لره مؤکد بلکه عینِ ایمان اودهغوی سره بغض لره معصیت بلکه عین کفر وگرځولې شو

دصحابه کرامو رضی الله عنهم په اختلاف باندې د ژبو خوزولو واضح مثال دا کیدې شی چه د دوو شهزادګانو اختلاف کتلوسره چپراسی حکم جوړشی او دهغوی فیصله شروع کړی اوهغوی ته بدې ردې او وائی ، غور وکړئ چه داسې حکم باندې به د بادشاه غیظ اوغضب څومره وی ؟

(۴) د زیرِ بحث عنوان حقیقته پورې رسیدل ګران بلکه متعذر دی ، دهغه مسئلې تاریخ دومره ګډوډ دې چه داصلِ واقعې تنقید اوتنقیح ناممکن دې ، د سبائی ډلې په سازشونو سره چه کله حدیث هم محفوظ‌نه‌پاتې نه شو ، حالانکه په هغې کښې د تنقیدِ رجال پوره اهتمام وی نو د تاریخ ملوث نه کیدل به څنګه ممکن نه وی؟ ، په غور کولو سره به معلومه شی چه تاریخ باندې کامل طور باندې د سبائی ډلې تصرف پاتې شوې دې ، او دروغ ، بهتان تړل ، وضع روایات ، دهوکه ددې ډلې امتیازی نښه بلکه دهغوئ عینِ ایمان دې.

چه کله یو وزیراعظم چه د قوم محبوب ترین مشر هم وو دهغه علی الاعلان د قتل د واقعې د تحقیق نه تر ننه پورې حکومت عاجز دې ، حالانکه د تحقیق جدید ذرائع داسې ایجاد شوی دی چه په هغې باندې فخر کیږی او بیا تحقیق کولو والا پخپله حکومت دې ، نود وړاندې پیړیو د واقعې د تحقیق تصور څنګه صحیح کیدلې شی ، خصوصاً چه هرکله دیارلس پیړئ تاریخ د دښمنانو په لاسونو کښې وو او هغوی د خپلې منشاء مطابق د تاریخ رُخ اړولو را اړولو ، **قال الامام الغزالی رحمه الله تعالی ومن زعم ان یزید امر بقتل الحسین رضی الله تعالی عنه او رضی به فینبغی ان یعلم به غایة الحماقة فان من حقیقة من الذی امر بقتله ومن الذی رضی به ومن الذی کرهه لم یقدر علی ذلك وان كان الذی قد قتل فی جواره وزمانه وهو یشاهد فكیف لو كان فی بلد بعید وزمن قدیم قد انقضی فكیف یعلم ذلك انقضی علیه قریب من اربع مائة سنة فی مكان بعید وقد تطرق التعصب فی الواقعة فكثرت فیها الاحادیث من الجوانب فهذا الامر لایعلم حقیقة.(وفیات الاعیان ج۱ص۳۲۸)س**

(۵) د سبائیانو د طرف نه شپه او ورځ خرافاتو او اسلافو باندې الزاماتو اود هغوی په شان کښې د ګستاخیو سلسله مونږه د اسلافو نه د دفاع دپاره په دې بحث کښې په پریوتلو باندې مجبوره کوی ، په دې حالاتو کښې د سبائیانو د سازشونو صحیح او معقول علاج خو دادې چه د اسلافو د تفسیق اوتعدیل اود هغوی د ایمان اود کفر په ځائ په خپله د سبائیانو د ایمان د تحقیق مسئله پیش کړې شی اود هغوی نه دهغوی د ایمان د اثبات مطالبه وکړئ شی حالانکه دهغوی په نزد د قرآن کریم د تحریف مسئله په متواتراتوکښې ده او په دې قرآن کښې یو حرف هم صحیح نه دې (العیاذبالله)

په اصل کښې سبائی ډله دخپل ایمان حقیقت لره د پټولو په غرض سره خبره بدلوی او د

اسلافو د ایمان اوکفر موضوع بیانوی ، په همدې صورت کښې د دفاع په غرض زمونږه په دې بحث کښې مشغول کیدل دهغوی کامیابی ده ، همدارنګه د بحث موضوع همیشه داسې امر کیدل پکار دی چه په هغې کښې کامیابی فائده منده وی او کله د عوارضو د وجه نه سطحی او عارضی ناکامۍ کښې د ضرر څه خطره نه وی یعنې فائده مظنون او عدم ضرر متیقن وی ، ددې وجه نه په هرلحاظ سره د اسلافو د کردار په ځائ هم د سبائیه ایمان او کردار لره موضوع بحث جوړول موزون او معقول دی، پس د سلفو د کردار په موضوع باندې بحث دپاره زمونږه تیاریدل زمونږ کم نظری او کوتاهی ده .

په اول کښې د ذکر شوو وجوه په بناء باندې ځما په نزد په دې مسئله کښې د بحث هیڅ ګنجائش نه وو ، نو له همدې وجه نه په دې باره کښې مې هر استفسار لره ټال ورکولو تردې پورې چه «الحسین پرتبصره» کتابی شکل کښې د «خلافت معاویه ویزید» په نوم سره شائع شو ، هغې باندې استفساراتوکښې نوره اضافه شروع شوه تردې پورې چه په خپله د مؤلفِ کتاب د طرف نه هم د تبصرې دعوت ورکړې شو ، په هغه حالاتوکښې زما یوڅه تذبذب وو چه د یو داسې مهروبانه استاذ حکم صادر شو چه دهغې د تعمیل نه چا هم انکار نشو کولې ، چنانچه مجبوراً په رپیدلی لاس سره یو څو حوالې لیکم ، والله العاصم من الوقوع فی عرض اولیائه .

نوموړی کتاب کښې دا امور قابل د تعریف دی او ددې په اثبات کښې د مصنف محنت قابل د تحسین دې :

(۱) بنوامیه او بنوهاشم کښې نه د جاهلیت په زمانه کښې څه اختلاف وو اونه د اسلام په زمانه کښې څه رقابت وؤ، د کربلا د واقعې نه پس هم په دواړو قبیلو کښې مضبوطه رابطه وه ، پخپل مینځ کښې رشتې وې ، دیوبل سره د حسنِ سلوک ، دهمدردۍ ،اود محبت جذبه وه او ولې به نه وی چه هرکله هغوی هغې لره د حقِ قرابت نه علاوه شرعی فرض هم ګڼلو ،د «**اشداء علی الکفار رحماء بینهم**» ، «**انما المؤمنون اخوة**» په شان د نصوصو ئې شپه او ورځ تلاوت کولو ، اود ((**المؤمن للمؤمن کالبنیان یشد بعضه بعضاً**))،((**ولن تومنوا حتی تحابوا**)) په شان د ارشاداتو روایت دا حضرات پخپل مینځ کښې بلا شبه محبت والا جوړ کړی وؤ ، په دوی کښې د دښمنۍ اود نفرت تصور د سبائی کروندې ثمره ده ، په دوی کښې که چرته اختلاف شوې دې نو هغه هم د دین د حفاظت په خاطر شوې دې، نه د نفسانیت په بناء باندې ، ((**التحابب فی الله والتباغض فی الله**)) دهغوی ایمان وو .

(۲) د یزید د مناقبو بیان اودهغه په خلاف د دروغو پروپاګند ابطال . دهغه امر په محمود او مستحسن کیدلو کښې هیڅ شبهه نشته .

(۳) د کربلا ظلمونو سره متعلق د سبائیانو د خانه جوړکړې شوو قصو استیصال .

مګر دهغه ټولو خوبیانو سره سره د دې خبرې مخې ته راتلو سره مونږ ته انتهائی صدمه وشوه چه بعضې امورو کښې د مصنف قلم د شرعې د حدودو نه متجاوز شوې دې ، یوطرف ته خو دا چه د یزید مغفور له کیدلو قطعی حکم یې ورکړې دې ، حالانکه دیو نابالغه ماشوم په وفات باندې د حضرت عائشې رضی الله عنها قول «عصفور من عصافیر الجنة» باندې حضورصلی الله علیه وسلم انکار وکړو او د ادب د طریقې تعلیم یې اوفرمائیلو ، سره ددې نه چه د ماشوم د معذب کیدلو څه احتمال نشته ، د حضرت عثمان بن مظعون رضی الله عنه په شان د جلیل القدر صحابی په وفات باندې د حضرت ام العلاء رضی الله عنها قول «شهادتی علیک لقد اکرمک» باندې انکار یې وکړو ، او هم په دې باندې یې اکتفاء ونکړه بلکه وې فرمائیل : «وما ادری والله وانا رسول الله ما یفعل به» ، حالانکه وروستو د حضرت اُم العلاء رضی الله تعالی عنها د خوب په تعبیر کښې یې اوفرمائیل: «ذلک عمله» ، د حضرت سعد رضی الله عنه د قول « والله انی لا راه مؤمناً» په جواب کښې یې (اومسلماً) اوفرمائیل ، حالانکه وروستو ئې پخپله د معهود سړی د مخلص مؤمن او صالح کیدلو تصدیق اوفرمائیلو ، نتیجه دا را وه وتله چه که یو سړې معین اومشخص طور باندې مبشر بالجنة وی نو بیا هم قطعی حکم لګول د شرع په نظر کښې محمود نه دی بلکه خلافِ ادب دی .

یزید سره متعلق مشخص طور باندې څه بشارت نشته ، بلکه د بشارت د کلی قاعدې لاندې په دخول کښې هم کلام شوې دې ، چنانچه د علامه قسطلانی رحمه الله تعالی مهلب قول : **فی هذا الحدیث منقبة لمعاویة رضی الله تعالی عنه لانه اول من غزا البحر ومنقبة لولده لانه اول من غزا مدینة قیصر** نقل فرمائیلو سره لیکی چه : **وتعقبه ابن التین وابن المنیر بما حاصله انه لایلزم من دخوله فی ذلک العموم ان لا یخرج بدلیل خاص اذلا یختلف اهل العلم فی ان قوله علیه السلام مغفورلهم مشروط بأن یکونوا من اهل المغفرة حتی لو ارتد واحد ممن غزاها بعد ذلک لم یدخل فی ذلک العموم اتفاقا فدل علی ان المراد مغفور لمن وجد شرط المغفرة فیه منهم (حاشیة صحیح البخاری جلد۱ص۴۱۰)** دهغه پیش کولو سره دا مقصد نه دې چه یقیناً یزید دهغه بشارت نه خارج دې ، مقصد صرف دادې چه د یزید فسق اوفجور اوشرب الخمر سره متعلق په داسې سختئ سره پروپاګند وکړې شو چه یو څو صحابه کرامو رضی الله عنهم هم هغه لره دهغه ګناهونو مرتکب وګڼلو او وروستو هم د امت په اکابرو کښې دیو څو جلیل القدر هستیانو هم دا نظریه وه ، د یزید مناقب او هغه باندې وارد شوی الزاماتو باندې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اود نورو اکابرِامت یو څو نظریات پیش کیږی :

(۱) د ابن المتین اود ابن المنیر نظریه پورته د قسطلانی په حوالې سره تیره شوې ده .

(۲) فتح الباری او قسطلانی کښې د طبری نه منقول دی: ان یزید بن معاویة کان امر علی المدینة ابن عمه عثمان بن محمد بن ابی سفیان فاوفد الی یزید من اهل المدینة منهم عبدالله بن غسیل الملائکة وعبدالله بن ابی عمرو المخزومی فی اخرین فاکرمهم واجازهم فرجعوا فاظهروا عیبه ونسبوه الی شرب الخمر وغیر ذلك (حاشیة صحیح البخاری ج۲ص۱۰۵۳) د مدینې د خلعې سبب هم دې وو چه هغې لره پخپله مؤلف هم ذکر کړی دی.

(۳) فتح الباری کښې دی: کقوله (ابی هریرة رضی الله تعالی عنه) اعوذ بالله من راس الستین وامارة الصبیان یشیر الی خلافة یزید بن معاویة فانها کانت سنة ستین واستجاب الله دعاء ابی هریرة رضی الله تعالی عنه فمات قبلها بسنة (حاشیة صحیح البخاری ج۱ص۲۳) مګر داسې قسم ډېر روایاتو د ذکر کولو نه پس ابن کثیر رحمه الله فرمائی وقد اورد ابن عساکر احادیث فی ذم یزید بن معاویة کلها موضوعة لا یصح شیء منها واجود ما ورد ما ذکرناه علی ضعف اسانیده وانقطاع بعضه والله اعلم (البدایة والنهایة ج۸ص۲۳۱)

(۴) حافظ ابن کثیر رحمه الله تعالی د یزید د طعن سره متعلق یو څو روایاتو د ردکولو نه با وجود فرمائی: وکان فیه ایضا اقبال علی الشهوات وترك بعض الصلوات فی بعض الاوقات واماتتها فی غالب الاوقات (البدایة والنهایة ج۸ص۲۳۰)

(۵) قال یحیی بن عبدالملك بن ابی غنیة احد الثقات ثنا نوفل بن ابی عقرب ثقة قال کنت عند عمر بن عبدالعزیز فذکر رجل یزید بن معاویة فقال قال امیر المؤمنین یزید فقال عمر تقول امیر المؤمنین یزید فامر به فضرب عشرین سوطاً. (تهذیب التهذیب ج۱۱ص۳۶۱)

(۶) واستفتی (علی بن محمد بن علی بن عماد الدین ابو الحسن الطبری ویعرف بالکیا الهراسی احد الفقهاء الکبار من رؤس الشافعیة ولد سنة خمس واربعمائة واشتغل علی امام الحرمین وکان هو والغزالی اکبر التلامذة وقد ولی کل منهما تدریس النظامیة ببغداد) فی یزید بن معاویة فذکر عنه تلاعبا وفسقا وجوز شتمه (البدایة والنهایة ج۱۲ص۱۷۳)

(۷) وقد رد علیه (علی الشیخ عبدالمغیث بن زهیر مصنف کتاب فضل یزید) ابو الفرج ابن الجوزی (وهو من شیوخ الحنابلة) فاجاد واصاب (البدایة والنهایة ج۱۲ص۳۲۸)

(۸) انه (یزید) کان فیه من الظلم ما کان ثم انه اقتتل هو وهم وفعل باهل الحرة امورا منکرة (منهاج السنة لابن تیمیة ج۲ص۲۰)

(۹) تفسیر مظهری کښې د ابن الجوزی نه دا روایت منقول دې: روی القاضی ابو یعلی فی کتابه

معتمد الاصول بسنده عن صالح بن احمد بن حنبل انه قال قلت لابي يا ابت يزعم بعض الناس انا نحب يزيد بن معاوية فقال احمد رحمه الله تعالى يا بني هل يسوغ لمن يومن بالله ان يحب يزيد ولم لا يلعن رجل لعنه الله في كتابه قلت يا ابت اين لعن الله يزيد في كتاب قال حيث قال فهل عسيتم ان توليتم ان تفسدوا في الارض وتقطعوا ارحامكم اولئك الذين لعنهم الله فاصمهم واعمى ابصارهم.

ابن تيميه رحمه الله تعالى په منهاج السنة كښې د نورو اكاذيبو رد او ابطال سره ددې روايت جواب هم وركړې دې ، ونصه واما ما نقله عن احمد رحمه الله تعالى فالمنصوص الثابت عنه من رواية صالح انه قال ومتى رايت اباك يلعن احدا لما قيل له الا تلعن يزيد وثبت عنه ان الرجل اذا ذكر الحجاج ونحوه من الظلمة واراد ان لعنة يزيد فهي رواية منقطعة ليست ثابتة عنه (منهاج السنة ج ص)

وايضاً فيه تنازع الناس في لعن الفاسق فقيل انه جائز كما قال ذلك طائفة من اصحاب احمد رحمه الله تعالى وغيرهم كابي فرج بن الجوزي وغيره وقيل انه لا يجوز كما قال ذلك طائفة اخرى من اصحاب احمد رحمه الله تعالى وغيرهم كابي بكر عبد العزيز وغيره والمعروف عن احمد رحمه الله تعالى كرهية لعن المعين كالحجاج بن يوسف وامثاله وان يقول كما قال الله الا لعنة الله على الظالمين، ددې نه پس حافظ ابن تيميه رحمه الله تعالى د د معن لعنت په عدمِ جواز باندې د بخارى ددې روايت نه استدلال كړې دې چه د حضور اكرم صلى الله عليه وسلم په خدمت كښې يو شراب خور راوستلې شو ، چا په هغه باندې لعنت وكړو نو حضورصلى الله عليه وسلم منع اوفرمائيله او علت د نهى يى «انه يحب الله ورسوله» بيان اوفرمائيلو ، دا علت په هرمومن كښې موجود دې او مطلقاً شاربِ خمر باندې لعنت په خپله د حضوراكرم صلى الله عليه وسلم نه ثابت دې ، وړاندې بيا فرمائى : ونحن نعلم ان اكثر المسلمين لا بدلهم من ظلم فان فتح هذا الباب ساغ ان يلعن اكثر موتى المسلمين والله تعالى امر بالصلوة على موتى المسلمين ولم يامر بلعنتهم ثم الكلام في لعنة الاموات اعظم من لعنة الحي فانه ثبت في الصحيح عن النبي صلى الله عليه وسلم انه قال لا تسبوا الاموات فانهم قد افضوا الى ما قدموا حتى انه قال لا تسبوا امواتنا فتؤذوا احيائنا لما كان قوم يسبون ابا جهل ونحوه من الكفار الذين اسلم اقاربهم فاذا سبوا ذلك اذوا قرابته (منهاج السنة ج ص)

غرض داچه امام احمد رحمه الله تعالى طرف ته د روايتِ مذكوره نسبت صحيح نه دې ، قاضى ابوبكر ابن العربى په «العواصم من القواصم» ص ۲۳۲ كښې فرمائى چه امام احمد رحمه الله تعالى د يزيد ذكر كتاب الزهد كښې د صحابه كرامو رضى الله عنهم نه پس اود تابعينو رحمهم الله

تعالی نه ورانديې د امت د زاهدانو په زمره کښې کړې دي ، دهغې نه پس فرمائی ، وهذا يدل على عظيم منزلته (يزيد) عنده (احمد) حتى يدخله في جملة الزهاد من الصحابة والتابعين يقتدى بقولهم ويرعوى من وعظهم ونعم وما ادخله الا في جملة الصحابة قبل ان يخرج الى ذكر التابعين فاين هذا من ذكر المؤرخين في الخمر وانواع الفجور الا يستحيون.

(۱۰) حافظ ابن حجر رحمه الله تعالی فرمائی : ثم خرج اهل المدينة على يزيد وخلعوه في سنة ثلاث وستين فارسل اليهم مسلم بن عقبة المرى وامر ان يستبيح المدينة ثلاثة ايام وان يبايعهم على انهم خول وعبيد ليزيد فاذا فرغ منها نهض الى مكة لحرب ابن الزبير رضى الله عنهما ففعل بها مسلم الافاعيل القبيحة وقتل بها خلقا من الصحابة وابنائهم وخيار التابعين وافحش القضية الى الغاية ثم توجه الى مكة فاخذه الله تعالى قبل وصوله واستخلف على الجيش حصين بن نمير السكونى فحاصروا ابن الزبير رضى الله تعالى عنهما ونصبوا على الكعبة المنجنيق فادى ذلك الى وهى اركانها ووهى بنائها ثم احرقت واثناء افعالهم القبيحة فجئهم الخبر بهلاك يزيد بن معاوية فرجعوا و كفى الله المؤمنين القتال وكان هلاكه في نصف ربيع الاول سنة اربع وستين ولم يكمل الاربعين واخباره مستوفاة في تاريخ دمشق لابن عساكر وليست له رواية تعمد (الى قوله) ذكرته للتمييز بينه وبين النخعى ثم وجدت له رواية في مراسيل ابي داؤد وقد نبهت عليها في الاستدراك على الاطراف (تهذيب التهذيب ج۱۱ص۳۶۱)

دې روايت سره متعلق حافظ ابن تيميه رحمه الله تعالی فرمائی ، لكن لم يقتل من اهل المدينة جميع الاطراف ولا بلغ عدد القتل عشرة الاف ولا وصلت الدماء الى قبر النبى صلى الله عليه وسلم ولا الى الروضة ولا كان القتل في المسجد، او د هدم کعبه په باره کښې فرمائی چه يو مسلمان هم ددې قصد نه شی کولې اونه دا ممکن دی په دې باندې د اصحابِ فيل په واقعې او آيتِ كريمه ﴿وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ سره استدلال نه پس فرمائی : ومعلوم ان اعظم الناس كفرا القرامطة الباطنية الذين قتلوا الحجاج والقوهم في بئر زمزم واخذوا الحجر الاسود وبقى عندهم مدة ثم اعادوه وجرى فيه عبرة حتى اعيدوا مع هذا فلم يسلطوا على الكعبة باهانة بل كانت معظمة مشرفة وهم كانوا باكفر خلق الله تعالى.

وقال ايضا كان مقصودهم حصار ابن الزبير والضرب بالمنجنيق كان له لا للكعبة ويزيد لم يهدم الكعبة

ولم يقصد احراقها لاهو ولا نوابه باتفاق المسلمين.

بيا فرمائي چه کله کفار د کعبې اهانت نه کوي نو مسلمان يې څنګه کولې شي . د حضرت ابن زبير رضي الله تعالى عنه د قتل نه پس هغه خلقو د کعبې طواف وکړو . که چرته د دوئ اهانت کول مقصود واى نو بيا د طواف څه معنى وه ؟

حضرت ابن زبير رضي الله عنهما د بيت د بناء سره متعلق فرمائي : روى مسلم فى صحيحه عن عطاء بن ابى رباح قال لما احترق البيت زمن يزيد بن معاوية حين غزاه اهل الشام فكان من امره ما كان تركه ابن الزبير حتى قدم الناس الموسم يريد ان يجرئهم على اهل الشام فلما صدر الناس قال يايها الناس اشيروا على فى الكعبة انقضها ثم ابنى بناءها ام اصلح ما وهى منها قال ابن عباس رضى الله تعالى عنهما ارى ان تصلح منها ما وهى وتدع بناء اسلم الناس عليه واحجارا اسلم الناس عليها وبعث عليها النبى صلى الله عليه وسلم فقال ابن الزبير رضى الله تعالى عنهما لو كان احد كم احترق بيته ما رضى حتى يجدده فكيف ببيت ربكم انى مستخير ربى ثلاثا ثم عازم على امرى فلما مضت الثلاث جمع امره ان ينقضها افتحاماه الناس ان ينزل باول الناس يصعد فيه امر من السماء حتى صعده رجل فالقى منه حجارة فلما لم يره الناس اصابه شئ تتابعوا فنقضوه حتى بلغوا الارض، وړاندې فرمائي چه د ادخالِ حطيم نه پس طولِ کعبه کښې کمئ محسوسيدل شروع شو نو حضرت ابن زبيررضى الله عنهما په طول کښې د لسو ذراعو اضافه وکړه . عبدالملک چه کله د ابن زبيررضى الله عنهما بناء لره منهدم کړه نو د طول اضافې لره ئې باقى وساتله . ددې نه پس فرمائي : عن عبدالله بن عبيد قال وفد الحارث بن عبدالله على عبدالملك ابن مروان فى خلافته فقال عبدالملك ما اظن ابا خبيب يعنى ابن الزبير رضى الله تعالى عنهما سمع من عائشة رضى الله تعالى عنها ما كان زعم انه سمعه منها قال الحارث بلى انا سمعته منها (الى قوله) قال عبدالملك للحارث انت سمعتها تقول هذا قال نعم فنكت ساعة بعصاه ثم قال وددت انى تركته وما تحمل (وبعد سطرين) قلت وابن عباس وطائفة اخرى راوا اقرارها على الصفة التى كانت عليها زمن النبى صلى الله عليه وسلم فان النبى صلى الله عليه وسلم اقرها كذلك ثم انه لما قتل ابن الزبير راى عبدالملك ان تعاد كما كانت لاعتقاده ان ما فعله ابن الزبر رضى الله تعالى عنهما لا مستند له ولما بلغه الحديث دانه وتركه فلما كانت خلافة الرشيد رحمه الله تعالى شاور مالك بن انس رحمه الله تعالى فى ان يفعل كما فعل ابن الزبير رضى الله عنهما فاشار عليه ان لا تفعل ذلك وقيل عن الشافعى انه رجح فعل ابن الزبير وكل من الامراء والعلماء الذين راوا هذا وهذا معظمون للكعبة مشرفون لها انما

يقصدون مايرونه احب الى الله ورسوله وافضل عند الله ورسوله ليس فيهم من يقصد اهانة الكعبة الخ (منهاج السنة ج۱ص۱۰تا ص۲۶)

د حافظ ابن تيميه رحمه الله تعالى ددې تحقيق حاصل دادې چه د کعبې د بناء مسئله مجتهد فيها ده ، د عبدالملک نظريه د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما مطابق وه ، د حديث د تصديق نه پس دهغې نه ئې رجوع وکړه او امام شافعى رحمه الله تعالى د ابن زبير رضى الله عنهما بناء لره خوښوله او دا دواړه خيالونه د کعبې په احترام باندې بناء دى نه د کعبې په اهانت باندې

غرض داچه مذکوره مطاعنو کښې اګرچه د ډيرو جواب هم ورکړې شوې دې مګر سره ددې نه په دې اختلاف اود صحابه کرامو رضى الله عنهم اود نورو اکابرو په خيالاتو سره د يزيد وزن ضرور کميږى ، اګرچه دا خيالات په غلط پروپاګند سره هم د تاثر د وجه نه وى ، بيا هغه پروپاګند لره په يقينى طور باندې غلط هم نه شى وئيلې کيدلې بلکه ديوتابعى جلالتِ شان اودهغه د مناقبو پيش نظر د حسنِ ظن په درجه کښې دهغه پروپاګند بطلان ثابتيږى ، دکوم امر بطلان لره چه د فهم او فراست بتان اود تقوىٰ مجسمې نزدې نه حالاتو لره کتلو والا ډير صحابه کرام رضى الله عنهم پوهه نه شو ، زمونږ دپاره دهغې د بطلان يقينى حکم لګولو هيڅ ګنجائش نشته ، د يزيد دطرفه دفاع کولو والا جماعت هم محض د حسنِ ظن په درجه کښې ټول هرڅه وائى ، چنانچه حافظ ابن کثير رحمه الله تعالى فرمائى : اما الغزالى رحمه الله تعالى فانه خالف فى ذلك ومنع من شتمه ولعنه لانه مسلم ولم يثبت بانه رضى بقتل الحسين رضى الله تعالى عنه ولو ثبت لم يكن ذلك مسوغا للعنه لان القاتل لا يلعن لا سيما وباب التوبة مفتوح والذى يقبل التوبة عن عباده غفور رحيم (البداية والنهاية ج۸ص۲۰۳) حافظ ابن تيميه رحمه الله تعالى منهاج السنة کښې تقريباً هم دا الفاظ ليکلى دى : ((لا يلعن من هوا ظلم منه کالمختار الثقفى والحجاج)) ، او وې فرمائيل : ((غايته ان يكون فاسقا ولعن الفاسق المعين ليس بجائز)) ، بيا ئې اوفرمائيل چه د لعنت د کلياتو ارتفاع په توبې او حسناتِ ماحيه او مصائب مکفره سره کيدلې شى ، همدارنګه د لعن له کلياتو سره معارض د مغفرت کلياتِ هم دى ، ((اولُ أُمتىٰ ــ الخ)) وغيره (منهاج السنة ج۲ص ۲۵۲)

د يزيد نه په دفاع کښې شايد د ابن تيميه رحمه الله تعالى برابر چا حصه نه وى اخستلې ، ددې باوجود په يو موقع باندې فرمائى : مع انه كان فيه من الظلم ما كان ثم انه اقتتل هو وهم وفعل باهل الحرة امورا منكرة (منهاج السنة ج۲ص۲۰)

وايضاً قال فى فتاواه ومنهم من يجعله من ائمة الهدى والعدل حتى جعله بعضهم نبيا وبعضهم صحابيا وهذا كله من ابين الجهل والضلال بل الحق فيه انه كان ملكا من ملوك المسلمين له حسنات وله سيئات

والقول فيه كالقول فی امثاله من الملوك لانحبه ولا نسبه وهو اول من غزا قسطنطنية وقال رسول الله صلی الله عليه وسلم اول جيش يغزوها يغفرلهم وفعل فی اهل المدينة ما فعل وقد توعد رسول الله صلی الله عليه وسلم من قتل فيها قتيلا ولعنه (فتاوی ابن تيميه ص ۲۱۰)

حافظ ابن کثير رحمه الله تعالی مطاعنِ يزيد سره متعلق د رواياتو د تضعيف کولو باوجود فرمائی : **وكان فيه ايضاً اقبال علی الشهوات وترك بعض الصلوات فی بعض الاوقات واماتتها فی غالب الاوقات (البداية والنهاية ج۸ ص ۲۳۰)**

حاصل داچه يزيد سره متعلق د حسنِ ظن په درجه کښې له طعن نه خپله ژبه بندول او توقف اسلم او احسن دې ، مگر مصنف څنګه چه د يزيد په حق کښې د افراط نه کار اخستلې دې هم دغه شان ئې بل جانب حضرت حسين رضی الله تعالی عنه لره باغی ، نفس پرست ، د حبِ جاه ښکار اود اقتدارد تګی ثابتولو کوشش کړې دې ، دا د رسول الله صلی الله عليه وسلم په نوسی او جليل القدر صحابی باندې داسې جرأت دې چه دهغې په تصور سره د يو مسلمان په بدن باندې ويښتان ودريږی ، لکه څنګه چه دنقل کولو وخت کښې قلم د لاسه ختاکيږی :

**ان كان رفضاً حب آل محمد        فليشهد الثقلان انی رافضی**

مصنف په ډيرو ځايونو کښې ددې خطرناک ضلالت مظاهره کړې ده ، بلکه که چرته دحسنِ ظن نه کار وانه خستلې شی نو معلوميږی چه د ټول کتاب په تاليف سره مقصد هم دادې ، يو څو عبارات ستاسو په خدمت کښې پيش کيږی :

(۱) ص ۷۲ کښې د مؤرخ دوزی په حوالې سره يی ليکلی دی : ((حسين لره يی په ځائ ديو معمولی قسمت آزموينې چه يوه حيرانونکې خطاء او لږ ترلږه غيرمعقول د اقتدار د مينې په وجه هلاکت طرف ته په تيزئ سره روان دې د ولی الله په روپ کښې يی پيش کړې دې))

دا عبارت اګرچه د دوزی دې مګر دې لره په کتاب کښې بغير له انکار نه په راوړلو سره دلالةً او آئنده عباراتو سره صراحةً ثابتيږی چه مصنف پخپله هم ددې نظرئې حامل دې .

(۲) ښکاره ده چه د حضرت حسين دې ورور هم دهغوی خروج لره د طلبِ حکومت او خلافت داسې اقدام ګڼلو چه په يوې طريقه هم جائز اومناسب نه وو (ص ۸۰)

(۳) حضرت حسن هميشته د ډلې بازئ نه يو خواته وو او د صلح او مصالحت دپاره ئې کوششونه کول ، په خلاف دهغه د وړوکی ورور (ص ۹۰)

ددې نه پس يو څوواقعاتو ليکلوسره ددې ثابتولو کوشش ئې کړې دې چه حضرت حسين رضی الله تعالی عنه د ماشومتوب نه طبعاً شرير(وران) وو .

(۴) ص ۱۲۹ باندې د مؤرخ دوزی نه نقل کړی دی : «حسین د اقتدار په هلاکوونکو ترغیباتو باندې غوړنیولو لره ترجیح ورکړه او د هغه بې شمیره خطونو په فخرسر نمائش کولو کوم چه هغه نه رسیدلی وو اودهغې شمیر څنګه چه شیخی نه وئیلې کیدل دیو اوښ د بوجه برابر وو »

(۵) دعوت محض دا وو چه د نبی صلی الله علیه وسلم د نوسی او د حضرت علی رضی الله عنه د خوئ کیدلو په حیثیت سره خلیفه هغه لره جوړ کړې شی (ص ۱۸۰)

آیا دا نظریات محض افتراء او بهتان تړل نه دی ؟ آیا ټولو صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم سره متعلق د مناقبو او فضائلو منصوصه نه علاوه د حضرت حسین رضی الله تعالی عنه په باره کښې خصوصیت سره د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاداتِ گرامی روایاتِ صحیحه سره ثابت نه دی ؟

که چیرته دیزید متعلق حسنِ ظن نه کار اخستلوسره دهغه خلاف د پروپاګند تغلیظ ضروری وی نود حضرت حسین رضی الله تعالی عنه متعلق د حسن ظن نه کار اخستلوسره دهغه د اقدام یو صحیح محمل ګرځول ولې ضروری نه دی ؟

دا خو یو بدیهی امر دې چه د یزید د فسق اوفجور اوشرب الخمور شهرت دې حده پورې کړې شوې وو چه ډیرو صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم هم دیزید متعلق دا خیال لرلو ، اهلِ مدینه چه په هغې کښې اصحابِ رسول الله صلی الله علیه وسلم هم موجود وو د اطاعتِ امیرتاکید او اهمیت پیژندلوسره بغاوت شروع کړو ، په دې سره هغه وخت د یزید متعلق عام رجحان او پروپاګند سره د تاثر اندازه ښه لګیدلې شی .

هغه حالاتو کښې د حضرت حسین رضی الله تعالی عنه د اقدام د جواز معقول او قرینِ قیاس دا وجه ده چه د عام پروپاګند نه متاثره کیدلوسره د نورو ډیرو حضراتو په شان د دوی په نزد هم دیزید فسق اوفجور متیقن شوې وو او دا امر هم بدیهی دې چه نه خو دحضرت معاویه رضی الله تعالی عنه په زمانه کښې د یزید په استخلاف باندې د اهلِ حل والعقد اتفاق شوې وؤ اونه د حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه د وفات نه پس متصل دیزید دخلافت مسئله بالاتفاق شوې وه غرض داچه هرکله خلافت په پوره طور باندې قائم نه شو اوکوم سړې چه په خلافت باندې قابضه کیدل غواړی دهغه فسق اوفجور هم یقین دې نو آیا هغه حالاتو کښې داسې سړی لره برسرِ اقتدار راتللونه د بندولو حتی المقدور کوشش کول فرض نه دی ؟ بلکه د فسق اوفجور یقین یا ګمان هم د داسې اقدام دپاره ضروری نه دی ، جوازِ اقدام بلکه بعضې اوقات د وجوبِ اقدام دپاره مدعیِ خلافت کښې د عدمِ اهلیت یا د ملت د نقصان ویره کافی کیږی ، اګرچه مدعیِ خلافت صالح او متدین هم وی

د یزید په شان د حضرت علی رضی الله تعالی عنه په خلاف نه خو د فسق اوفجور کوم

پروپاګند وؤ اونه د دوی په خلافت کښې دومره اختلاف وو څومره چه د یزید په خلافت کښې وؤ. ددې باوجود محض مسئله دقصاص کښې د تساهل د غلط پروپاګند نه متاثره کیدلوسره د حضرت معاویه اودحضرت عائشې رضی الله تعالی عنهما په شان هستیانو تورې که چرته د نیام نه وتلې شی نود یزید په خلاف د پروپاګند شدت اودخلافت کامل طور باندې د نه قائمیدلو د وجه نه د حضرت حسین رضی الله تعالی عنه دپاره میدان کښې د راتللو ولې ګنجائش نشته ؟

چه هرکله جمِ غفیرتقریباً جمیعِ اهلِ مدینه سره د ډیرو صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم هغه پروپاګند نه متاثره کیدلې شی نود حضرت حسین رضی الله تعالی عنه هغې باندې اعتماد کول څه لرې دی؟ د پروپاګند د وجه نه دلوئ نه لوئ شخصیت په دهوکه کښې راتلل څه مستبعد نه دی ، چنانچه د اهلِ تشیع په پروپاګند سره دهوکه خوړلوسره د صاحبِ هدایه علامه برهان الدین مرغینانی رحمه الله تعالی په شان محقق امام مالک رحمه الله تعالی طرف ته دجوازِ متعه قول منسوب کړو ، حالانکه د حرمتِ متعې روایات چه په کوم کثرت سره په موطا امام مالک کښې مروی دی شاید په بل کتاب کښې نه وی، فقه مالکیه کښې هم د متعه حرمت صریح ذکر دې ، ددې نه هم زیاته عجیبه داده چه ټول امت لره په دې مغالطه کښې اچولو کښې اعداءِ دین کامیاب شول چه د مدنی ژوند په ابتداء کښې د متعې اجازت وو ، حالانکه د «**الا علی ازواجهم اوماملکت ایمانهم**» په شان نصوصِ قرانیه چه په حرمتِ متعه باندې واضح دلالت کوی مکه کښې نازل شوی وو ، چه دهغې نه پس د حلتِ متعه هیڅ وهم نه شی کیدلې ، بیا د خندا نه ډکه خبره داده چه که چرته دهغه آیتونو خلاف حضوراکرم صلی الله علیه وسلم مدینې ته په رسیدلوسره د متعې اجازت ورکړې وو نودا آیتونه منسوخ وګرځیدل ، مګر ددې برعکس هم دې آیتونو لره د حلتِ متعې دپاره ناسخ بیانولې کیږی ، غرض داچه متعه مروجه تاریخِ اسلامی کښې دیوې دقیقې دپاره هم حلاله شوې نه ده ، مګر پوره امت لره د هجرت په ابتداء کښې د حلتِ متعې یقین ورکړې شوې دې چه دا صرف د پروپاګند نتیجه .

حضرت حسین رضی الله تعالی پدې اقدام باندې دې خبرې هم مجبوره کولو چه هغه ته د یزید نه په بیعت نه کولو کښې د قتل ویره بلکه یقین وو ، حالانکه خلافت قائمیدلو نه پس هم هرفرد باندې دخلیفه بیعت فرض نه دې ، صرف دومره فرض دی چه بغاوت ونه کړی ، ممکنه ړه چه په نفس الامر کښې د قتل او زورنې وغیره یو صورت د حکومت د جانبه صادره شوې نه وې ، مګر حضرت حسین رضی الله تعالی عنه ته ددې یقین ضرور وو ، چنانچه حافظ ابن کثیر رحمه الله تعالی دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه خیال نقل کړې دې چه هغوی د حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما جواب په دې الفاظو سره ښکاره کړې وو : **لان اقتل بمکان کذا او کذا احب الی من ان**

اقتل بمكة وتستحل بي(البداية والنهاية ج۸ص۱۶۵)او د غالب بن الفروق د قول «ما أعجلك عن الحج ؟» په جواب کښې فرمائی : «لولم اعجل لاخذت» (البداية والنهاية ج۸ص ۱۲۷)

خلاصه داچه حضرت حسین رضی الله تعالی عنه په داسې وخت کښې چه خلافت کماحقه قائم شوې نه وو داسې سړی لره برسراقتدار راتللو نه د بندولو کوشش کولو چه دهغه په خیال کښې د فسق اوفجور یا بعضې نورو وجوه په وجه مستحق د خلافت نه وو ، ښکاره ده چه دا اقدام حضرت حسین رضی الله تعالی عنه باندې فرض وو . خصوصاً چه کله شرعی فرض سره سره اقدام نه کولو کښې د جبری بیعت ویره او خوفِ قتل هم وو نو دا اقدام نور هم زیات مؤکد کیږی.

د حضرت ابن زبیر رضی الله تعالی عنهما نظریه هم دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه موافق وه ، چنانچه ابن اثير فرمائی : فقال له ابن الزبير رضى الله تعالى عنهما اما لو كان لى بها مثل شيعتك لما عدلت عنها ثم خشى ان يتهمه فقال له اما انك لو اقمت بالحجاز ثم اردت هذا الامر ههنا لما خالفنا عليك وساعدناك وبايعناك ونصحتك الخ (كامل لابن الاثير ج۳ص۱۶) د حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنه په خیال کښې اهلِ کوفه ظالمان او حضرت حسین رضی الله تعالی عنه مظلوم وو ، چنانچه د صحیح بخاری لاندینی روایاتوسره د حضرت ابن عمررضی الله عنهما د تاثراتو اندازه وکړئ : عن ابن ابى نعم قال كنت شاهدا لابن عمر رضى الله تعالى عنهما وساله رجل عن دم البعوض فقال ممن انت قال من العراق قال انظروا الى هذا يسئلنى عن دم البعوض وقد قتلوا ابن النبى صلى الله عليه وسلم سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول هما ريحانتاى من الدنيا (صحيح بخارى ج۱ص۸۸۲)

غرض داچه حضرت حسین رضی الله تعالی عنهما هغه اقدام لره شرعی فرض ګنلوسره وتلې وو مګر وروسته په لاره کښې چه کله د یزید د خلافت کامل طور باندې قیام او استحکام ورته معلوم شو نو فوراً دخپل موقف نه واوړیدلو . ځکه چه د قیامِ خلافت نه پس دجوازِ خروج هیڅ ګنجائش نه وو .

پس څنګه چه د یزید په باره کښې توقف مسلم دې ، هم دغه شان بلکه دهغه نه په ډیرو درجو سره زیات مؤکد دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه متعلق کفِ لسان دې اودهغه اعزازاو احترام اودهغه سره محبت اوعقیدت او حسنِ ظن ضروری دې چه همدا صراط مستقیم بین الافراط والتفریط دې. او هم دا د اهل السنة والجماعة متفقه فیصله او مذهب اوشعار دې ، ترننه پورې په اهل السنة والجماعة کښې یوفردهم دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه په شان کښې ګستاخی او دوی طرف ته د سوءِ نیت نسبت لره روا کړې نه دې ، بلکه د دوی محبت لره عینِ ایمان ګڼي حضرت امام شافعی رحمه الله تعالی فرمائی :

ان کان رفضا حب آل محمد            فلیشهد الثقلان انی رافضی

حضرت حسین رضی الله تعالی عنه سره متعلق د بدظنئ نظریه داهلِ السنة والجماعة په مسلکِ معتدل کښې هیچرې نه شی ځائ کیدلې ، بلکه دا د روافضو د افراط په مقابله کښې د خوارجو تفریط دې ، اعاذنا الله تعالی منهما .

آخره کښې دعاء ده چه الله تعالی دې ټولو مسلمانانو لره عموماً او مؤلف «خلافتِ معاویه ویزید» لره خصوصاً د روافضواو خوارجو د افراط اوتفریط اود یلعن اخرهذه الامة اولها د وعید نه محفوظه وساتی او اسلافو خصوصاً صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم سره عقیدت اومینه او دهغوی د اتباع جذبه دې مونږ ته عنایت اوفرمائې ، د اسلافو د عیب لټولو په ځائ دخپل باطن داصلاح اود فکرِ اخرت په نعمت سره دې مونږ ټول منور کړی (آمین) ، شعر

کہاں تک روئے گا او جینے والے مرنے والے کو

کچھ اپنی فکر کر تجھ کو پرائے غم سے کیا مطلب

ربنا اغفرلنا ولاخواننا الذین سبقونا بالایمان ولا تجعل فی قلوبنا غلا للذین امنوا ربنا انک رءوف رحیم .

فقط والله الهادی الی سبیل الرشاد .            رشید احمد ۱۹ محرم سنه ۷۹ هجری

## تتمه

بنده په تحقیقِ مذکور کښې د مصنف د کتاب «خلافت معاویه ویزید» تلبیساتو لره قطع نظر کولو سره نفسِ مسئلې سره متعلق اظهارِ خیال باندې اکتفا مناسب وګڼله ، چه دهغې بعضې دوستانو ته سخت شکایت وو ، په همدې دوران کښې ماهنامه دارالعلوم دیوبند کښې لاندې مضمون زمونږ د نظر نه تیرشو چه په هغې کښې د ذکر شوی کتاب تلبیساتو باندې بقدرِ ضرورت په ساده انداز کښې رڼا اچولې شوې وه ، لهذا مونږ ته دهغه مضمون د پاسنی تحقیق تتمه جوړول مناسب معلوم شو ، دې دپاره چه د ذکر شوی کتاب صحیح حقیقت اوهغې سره متعلق د علماءِ حق نظریات هم دنفسِ مسئلې د تحقیق سره منظرِعام ته راشی نو مونږ هغه را نقل کړو .

## په «خلافتِ معاویه ویزید» کتاب باندې یو روان او سریع نظر

مولانا عزیز احمد صاحب بی ، اے قاسمی ناظم شعبه دستاربندی دارالعلوم دیوبند

**محترموا کتونکو !**

د کتاب «خلافتِ معاویه ویزید» مصنف جناب محمود احمد عباسی حوالجاتو کښې بې ځایه تصرف کړې دې او تلبیس کولو سره یې صحافتی دیانت مجروح کړې دې ، د کتاب له مطالعې نه

معلومیږی چه مصنف وړاندې یو نظریه قائمه کړه چه نعوذبالله حضرت حسین رضی الله تعالی عنه خروج وکړو او یزید نهایتِ متقی او پرهیزګارو، بیانې ددې نظریې لاندې د کتابونو مطالعه شروع کړه او په کتابونوکښې چه چرته دیزید په تعریف کښې یې یوه جمله په نظر راغله هغه ئې راواخستله ، او په کوم ځائ کښې چه د یزید یا عمربن سعد په نقصان کښې کومې جملې وې هغه یې حذف کړې، حالانکه یو تحقیقی مضمون کښې چه د ډیرو کلونو د تحقیق نتیجه وی ، داسی کول پکار دی چه مناقب او معاییب دواړه ښکاره کړې شی او پیش کړې شی ، نه دا چه صرف مناقب ښکاره کړې شی یا بغیر د نقل نه دهغې غلطه توجیه وکړې شی او معاییبو باندې پرده واچولې شی ، په لاندې مضمون کښې جناب محمود احمد عباسی چرته چه قصداً حوالجاتو اودهغې په تراجمو کښې تصرف کړې دې په هغې کښې یو څو ځایونه د نمونې په طور باندې پیش کولې شی ، په هغې سره به د موصوف د تحقیق اندازه تاسو ته معلومه شی.

(۱) منجمله دهغه شیخ عبدالمغیث بن زهیراالحربی وو ، چه دهغه متعلق علامه ابن کثیررحمه الله تعالی فرمائی (( کان من صلحاء الحنابلة وکان یزار)) (البدایة والنهایة ج ۱۲ص ۳۲۸) یعنې هغه حنبلی صالحینوکښې وؤ او عوامو به د ده زیارت کولو ، هغه د امیرِ یزید حسنِ سیرت او اوصافو باندې مستقل تصنیف وکړو ((وله مصنف فی فضل یزیدبن معاویة اتی فیه بالغرائب والعجائب)) (البدایة والنهایة ج ۱۲ص ۳۲۸)

ترجمه : او دهغه (شیخ عبدالمغیث ) په تصنیفاتو کښې په فضلیت د یزیدبن معاویه باندې یو کتاب دې چه په هغې کښې یی څه ډیر غریب اوعجیب حالات بیان کړی دی.

د قوسونو په مینځ کښې چه کوم عبارت دې هغه د کتاب (خلافتِ معاویه ویزید)) د ۵۵، ۵۲ صفحې دې ، اوس د اصل کتاب عبارت پیش کیږی : **الشیخ عبدالمغیث بن زهیر الحربی کان من صلحاء الحنابلة وکان یزار وله مصنف فی فضل یزیدبن معاویة اتی فیه بالغرائب والعجائب وقد رد علیه ابوالفرج ابن الجوزی فاجادواصاب(البدایة والنهایة ج۱۲ص۳۲۸)**

ترجمه : شیخ عبدالمغیث بن زهیرالحربی د حنابله په صلحاؤ کښې وو خلق به دهغه زیارت ته راتلل ، اودهغه (شیخ عبدالمغیث ) د یزیدبن معاویه د خوبیانو په باره کښې یو تصنیف دې چه په هغې کښې هغه عجیب اوغریب قسمه خبرې بیان کړی دی ، دهغه تصنیف رد علامه ابوالفرج ابن الجوزی کړې دې ، پس هغوی صحیح او ښه رد وکړو.

د ابوالفرج ابن الجوزی د کتاب نوم دې ، (( الرد علی المتعصب العنید المانع عن ذم یزید))

اولاً خو د جناب محمود احمد صاحب عباسی ترجمه وګورئ چه د (اتی فیه بالغرائب والعجائب) ترجمه موصوف دا کړې ده چه (( ډیر عجیب او غریب حالات ئې بیان کړی دی )) چه په هغې سره

ذهن دې طرف ته منتقل کیږي چه د یزید حالات داسې عمده وو چه هغې لره اوریدلوسره تعجب کیږي ، حالانکه اهل علم پوهیږي چه داسې مواقعو باندې د «غرائب او عجائب» استعمال په ښه معنیٰ کښې نه کیږي ، بلکه دغیرمستند کیدلو په معنی کښې کیږي ، چنانچه ددې جملې معنیٰ دا شوه چه علامه ابن کثیررحمه الله تعالی فرمائی چه شیخ عبدالمغیث چه کوم کتاب د یزیدبن معاویه دفضیلت په باره کښې لیکلې دې په هغې کښې ئې غیرمستند خبرې لیکلی دی ، اوس غور وکړئ چه علامه ابن کثیررحمه الله تعالی دهغه کتاب مدح کوی اوکه دهغه ضعیف کیدل ثابتوی.

بلکه دا چه مصنف صاحب د «اتی فیه بالغرائب والعجائب» نه فوراً وروسته چه کوم عبارت وو هغه ئې قصداً پریښودلو ، حالانکه هغه عبارت دهغه کتاب په باره کښې وو کوم چه شیخ عبدالمغیث د یزید د فضیلت په باره کښې لیکلې وو او هغه عبارت کښې د شیخ عبدالمغیث د کتاب په باره کښې په خپله دعلامه ابن کثیر رحمه الله تعالی رایه ښکاره کیږي ، چنانچه کوم عبارت چه مکمل درج کړې شوې دې په هغې کښې علامه ابن کثیررحمه الله تعالی فرمائی چه «ابو الفرج ابن الجوزی د شیخ عبدالمغیث دهغه کتاب رد لیکلې دې کوم چه د یزید د فضیلت په باره کښې وو» دهغې نه پس علامه ابن کثیررحمه الله تعالی د ابوالفرج ابن الجوزی دکتاب په باره کښې خپله رایه لیکی چه هغه ډیر عمده او ډیر ښه رد کړې دې ، اوس غور وکړئ چه خبره دکوم ځائ نه کوم ځائ ته ورسیدله ، په دې سره د یزید منقبت ښکاره کیږی اوکه تنقیص ؟

جناب محموداحمدصاحب عباسی د علامه ابن کثیر رحمه الله تعالی عبارتونو لره ګډ وډ کولوسره په هغه باندې څنګه بهتان تړلې دې ، حافظ حدیث محدث ابن الجوزی پخپل کتاب مذکور کښې فرمائی : «وقد اجاز العلماء الورعون لعنه» «حاشیه نبراس ص ۵۵۳»

ترجمه : او پرهیزګارو عالمانو هغه «یزید» باندې لعنت لره جائز ګرځولې دې.

شیخ عبدالمغیث اوعلامه ابن الجوزی دواړه حنبلیان دی.

«۲» یوبل عبارت د «خلافت معاویه ویزید» ستاسو په خدمت کښې پیش کیږی ، خلیفه ناصر د امیرِ یزید په باره کښې دشیخ نه چه کوم سوال وکړو اوکوم جواب چه هغوی ورکړو ، دعلامه موصوف په الفاظو کښې یی واورئ : **فساله الخلیفة ایلعن ام لا ؟ فقال لا اسوغ لعنه لانی لو فتحت هذا الباب لافضی الناس الی لعن خلیفتنا فقال الخلیفة ولم ؟ قال لانه یفعل اشیاء منکرة کثیرة منها کذا وکذا ثم شرع یعدد علی الخلیفة افعاله القبیحة مما یقع منه المنکر «البدایة والنهایة ج۱۲ص۳۲۸»**

ترجمه : خلیفه له شیخ «عبدالمغیث» نه سوال وکړو چه آیا په یزید باندې لعنت کولې شی اوکه نه ؟ هغوی جواب ورکړو چه لعن کول پرې هیچرې جائز نه دی ، اوکه د لعن دروازه کهولاؤ کړئ شی نو خلق به زمونږ موجوده خلیفه باندې لعن کول شروع کړی ، خلیفه پوښتنه وکړه هغه ولې ؟

شیخ اووئیل چه هغه په ډیرو منکراتو باندې عمل شروع کړې دې چه په هغې کښې فلانې او فلانې کار شامل دې ، هغوی دخلیفه د بدو اعمالو شمیرشروع کړو کوم کوم منکرات چه دهغه نه صادره شوی وو «خلافت معاویه ویزید ص ۵۲»

پورته ذکر شوې ترجمه جناب محمود احمدصاحب عباسی کړې ده ، اوس د علامه ابن کثیر رحمه الله تعالی د عربی عبارت صحیح ترجمه وګورئ ، « خلیفه د «شیخ عبدالمغیث نه » سوال وکړو چه یزید باندې لعن وکړئ شی اوکه نه ؟ هغوی جواب ورکړو چه زه هغه «یزید» باندې د لعن کولو اجازت نه ورکوم ځکه چه که چرته زه اجازت ورکړم او دا د لعنت دروازه کهولاؤ کړم نو خلق به زمونږ خلیفه باندې لعنت کول شروع کړی ، خلیفه پوښتنه وکړه هغه ولې ؟ شیخ اووئیل ځکه چه هغه «خلیفه» په ډیرو منکراتو باندې عمل کوی مثلاً فلانې او فلانی امر ، بیا شیخ د خلیفه په مخامخ هغه منکراتو لره شمیرکول شروع کړل کوم چه د خلیفه نه صادر شوی وو»

که د جناب محمود احمد صاحب عباسی ترجمې او ددې ترجمې مقابله وکړې شی نو دا لاندې خبرې به مخې ته راشی»

د «لا اسوغ لعنه» ترجمه محمود احمدصاحب عباسی دا کړې ده چه «لعن کول هیچری جائز نه دی » حالانکه دیو معمولی درجې عربی شخص هم پوهیږی چه دا ترجمه بالکل غلطه ده ، اصل ترجمه داده چه «زه هغه باندې د لعن کولو اجازت نه ورکوم » اودهغه اجازت نه ورکولو وجه شیخ دا بیان کړه چه «که چرته زه په یزید باندې د لعنت دروازه خلاصه کړم نو خلق به زمونږ په خلیفه «ناصر» باندې لعنت شروع کړی او په هغې سره به د بغاوت چینه را اوخوټکیږی » بیا خلیفه سوال وکړو چه هغه ولې ؟ نو شیخ اوفرمائیل « ددې وجه نه چه خلیفه فلانکی فلانکی منکراتو باندې عمل کوی » ددې صفا معنیٰ دا شوه چه یزید په کومو منکراتو باندې عمل کولو خلیفه ناصر هم په هغه منکراتو باندې عمل کولو ځکه چه که چرته دهغه منکراتو د وجه نه په کومو باندې چه یزید عمل کولو زه یزید باندې د لعنت کولو اجازت ورکړم نو خلق به خلیفه ناصر باندې هم لعنت شروع کړی ، اوس دا امر دفکر قابل دې چه آیا په دې سره دهغه تعریف راځی اوکه دهغه تنقیص ؟ په دې سره خو زیات نه زیات دا ثابتیږی چه یزید باندې لعنت نه دې پکار مګر په دې سره داخبره څنګه ثابته شوه چه یزید په منکراتو باندې عمل نه کولو یا مستحق لعنت نه وو او ډیر پاکباز وو ، بلکه ددې خلاف دا ثابتیږی چه هغه منکراتو باندې یقیناً عمل کولو ، ځکه چه دکومو امورو د وجه نه چه خلیفه ناصر یزیدلره پخپل ذهن کښې مستحق لعنت ګڼلو «څنګه چه دهغه د سوال نه معلومیږی» هغه په خپله خلیفه ناصر کښې موجود وو نو د هغې وجه نه شیخ عبدالمغیث رحمه الله تعالی منع اوفرمائیله .

«۳» جناب محمود احمد عباسی کتاب « خلافت معاویه ویزید » کښې یزید لره ثقه راوی

ثابتولو د پاره لاندې حواله نقل فرمائیلې ده .

تهذیب التهذیب کښې امام ابن حجر عسقلانی د امیرِ موصوف ذکر رواة حدیث کښې کولوسره د محدث یحيٰ بن عبدالملک بن عتبة الکوفی المتوفی سنه ۱۸۸هجری دا قول نقل کړې دې چه هغه امیرِ یزید لره احد الثقات یعنې ثقه راویانِ حدیث کښې شمیرلو ، مراسیل ابوداؤد کښې دهغه مرویات دی (خلافت معاویه ویزید ص ۴۵)

د تهذیب التهذیب دا حواله نقل کولوسره محمود احمد عباسی یزید لره د ثقه راوی ثابتولو چه کوم کوشش کړې دې په هغې کښې خلقو لره ئې ډیره زبردسته دوکه ورکړې ده ، لاندې د تهذیب التهذیب پوره عبارت نقل کیږی چه په دهغې نه دا ټکره اخستلې شوې ده .

(یزید) بن معاویة بن ابی سفیان صخر بن حرب بن امیة بن عبد الشمس ابوخالد ولد فی خلافة عثمان رضی الله تعالی عنه وعهد الیه ابوه بالخلافة فبویع سنة ستین وابی البیعة عبدالله بن الزبیر رضی الله تعالی عنهما ولاذ بمکة والحسین ابن علی رضی الله تعالی عنهما ونهض الی الکوفة وارسل ابن عمه مسلم بن عقیل بن ابی طالب لیبایع له بها فقتله عبیدالله بن زیاد وارسل الجیوش الی الحسین رضی الله تعالی عنه فقتل کما تقدم فی ترجمته سنة احدی وستین ثم خرج اهل المدینة علی یزید وخلعوه فی سنة ثلاث وستین فارسل الیهم مسلم بن عقبة المری وامره ان یستبیح المدینة ثلاثة ایام وان یبایعهم علی انهم خول وعبید لیزید فاذا فرغ منها نهض الی مکة لحرب ابن الزبیر رضی الله تعالی عنهما ففعل بها مسلم الافاعیل القبیحة وقتل بها خلقا من الصحابة رضی الله تعالی عنهم وابنائهم وخیار التابیعن رحمهم الله تعالی واوحش القضیة الی الغایة، ثم توجه الی مکة فاخذه الله تعالی قبل وصوله واستخلف علی الجیش حصین بن نمیر السکونی فحاصروا ابن الزبیر رضی الله تعالی عنهما ونصبوا علی الکعبة المنجنیق فادی ذلک الی وهی ارکانها ووهی بنائها ثم احرقت وفی اثناء افعالهم القبیحة فجاهم الخبر بهلاک یزید بن معاویة فرجعوا و کفی الله المؤمنین القتال، وکان هلاکه فی منصف ربیع الاول سنة اربع وستین ولم یکمل الاربعین واخباره مستوفاة فی تاریخ دمشق لابن عساکر ولیست له روایة تعتمد وقال یحیی بن عبدالملک بن ابی غنیة احد الثقات حدثنا نوفل بن ابی عقرب ثقة قال کنت عند عمر بن عبدالعزیز رحمه الله تعالی فذکر رجل یزید بن معاویة فقال قال امیرالمؤمنین یزی فقال عمر رحمه الله تعالی تقول امیرالمؤمنین یزید وامر به فضرب عشرین سوطا، ذکرته للتمییز بینه وبین النخعی، ثم وجدت له روایة فی مراسیل ابی داؤد وقد نبهت علیها فی الاستدراک علی الاطراف (تهذیب التهذیب للحافظ بن حجر عسقلانی ص صفحه ۳۶۰، ۳۶۱ ج ۱۱) دا ټول عبارت د یزید په بیان کښې دې یولفظ هم کم او زیات ندې .

**ترجمه** : یزید بن معاویة بن ابی سفیان صخربن حرب بن امیة بن عبدالشمس د یزید کنیت ابوخالد دې ،د حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه د خلافت په زمانه کښې پیدا شو او حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه هغه لره د خلافت ولی عهد جوړ کړو ، سنه ۶۰ هجری کښې له یزید

سره بیعت وکړې شو ، حضرت عبدالله بن زبیر او حضرت حسین بن علی رضی الله تعالی عنهم د
بیعت نه انکار وکړو حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنهما په مکه کښې پناه واخستله او
حضرت حسین رضی الله تعالی عنه کوفې طرف ته روان شو او خپل د تره خوئ مسلم بن عقیل بن
ابی طالب لره ئې د وړاندې نه واستولو دې دپاره چه په کوفه کښې دخلقو نه دحضرت حسین رضی
الله تعالی عنه دپاره بیعت واخلی ، هغه لره عبیدالله بن زیاد اووژلو ، اودحضرت حسین رضی الله
تعالی عنه دمقابلې دپاره ئې فوځونه روان کړل ، حضرت حسین رضی الله تعالی عنه په سنه ۲۱
هجری کښې شهید کړئ شو لکه چه دهغه په حالاتو کښې ذکر کړې شوی دی ، بیا سنه ۲۳هجری
کښې اهلِ مدینه دیزید په ضد باندې خروج وکړو اودهغه بیعت لره ئې مات کړو نو یزید د مسلم بن
عقبة المری په مشرئ کښې اهلِ مدینه باندې فوځی حمله وکړه او حکم ئې ورکړو چه دریو ورځو
پورې مدینه لښکری خلقو (هرقسمه) مباح ده، او حکم ئې ورکړو چه اهلِ مدینې نه د یزید دپاره
دخادم اوغلام جوړیدلو دپاره بیعت واخلئ ، اوچه کله دهغې نه فارغه شئ نو عبدالله بن زبیر رضی
الله تعالی عنهما سره دجنگ دپاره مکې معظمی طرف ته روان شئ چنانچه حسب الحکم مسلم بن
عقبة المری مدینه کښې ډیر افعالِ قبیحه وکړل اود صحابو رضی الله تعالی عنهم اودهغوی اولاد
او دخیارتابعین رحمهم الله تعالی یو لوئ جماعت لره ئې بیخ کنده ختم کړو او هغه واقعې لره ئې
انتهائی لاندې حد پورې اورسوله (چنانچه مسند دارمی کښې دی چه وژل او عزت اخستل وغیره
ټول هرڅه په مدینه منوره کښې وشو ، دریو ورځو پورې په مسجد نبوی کښې مونځ هم ونه شو ،
تنها سعیدبن مسیب په مسجدنبوی کښې لیونې پروت وو ، په هغه ورځو کښې د مزار مبارک نه د
اذان او تکبیر آوازونه راتلل په هماغه آواز باندې هغه ځانله مونځ ادا کولو اوکه نه نو په مسجد
نبوی کښې نه څوک د آذان کولو والا وو او نه بل څوک د مونځ کولو والا) بیا مکې طرف ته روان
شو مګر مکې ته د رسیدلو نه وړاندې وړاندې د الله تعالی په ګرفت کښې راتللو سره هلاک شو او
حصین بن نمیر لره قائم مقام جوړکړې شو ، هغه لښکر په مکه کښې د ابن زبیر رضی الله تعالی
عنهما محاصره وکړه او خانه کعبه باندې ئې (دکاڼړو ویشتلو دپاره منجنیق نصب کړو او ډیر
کاڼړی ئې اوویشتل چه دهغې د وجه نه د بیت الله ستنې او عمارت کمزورې شو ، بیا (خانه کعبه)
اوسوزولې شوه هم ددې کارونو په دوران کښې ناګهانه د یزید بن معاویه دهلاک کیدلو اطلاع
راورسیدله (خبراوریدلوسره) لښکر واپس شو او الله تعالی د مکې مؤمنانو لره د قتل نه بچ کړل
اود یزید هلاکت په سنه ۲۴ هجری کښې د ربیع الاول دمیاشتې په نیمایی حصه کښې وشو ، هغه
دخپل ژوندون څلویښت کاله هم پوره نه کړې شو ، د ابن عساکر په تاریخ دمشق کښې دهغه ټول
واقعات مذکور دی ، دیزید یو روایتِ حدیث هم قابلِ اعتماد نه دې ، یحیی بن عبدالملک بن ابی
غنیه چه په ثقه راویانو کښې یو دې هغه بیان وکړو چه مونږ ته نوفل بن ابی عقرب بیان وکړو چه

ثقه دي چه زه اميرالمؤمنين عمربن عبدالعزيز رحمه الله تعالى سره حاضر وم ، يو سړي د يزيد بن معاويه ذکر وکړو او وې وئيل چه « اميرالمؤمنين يزيد دا اووئيل » خليفه عمربن عبدالعزيز رحمه الله تعالى اوفرمائيل چه « ته يزيد ته اميرالمؤمنين وائې » اودهغه سړي دپاره يې د شلو کوړو وهلو حکم وکړو چنانچه هغه شل کوړې او وهلې شو ، (حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله تعالى فرمائى چه ) ما دهغه (يزيد) ذکر يزيدبن معاويه النخعى سره د امتياز پيدا کولو دپاره دلته کړې دې (اوکه نه نو دې د صحاح سته په راويانو کښې د نه کيدلو په وجه سره په دې کتاب کښې دذکر کولو قابل نه دې ) مراسيل ابى داؤد کښې صرف يو مرسل د روايتِ يزيد ملاؤ شوې دې او ما په اطرافو باندې استدراک کښې هغه مرسل روايت باندې تنبيه کړې ده .

ددې عبارت مقابله دهغه عبارت سره وکړئ کوم چه جناب محمود احمد صاحب عباسى پيش کړې دې هم هغه کتاب دې اوهم هغه صفحه ده مگر وگورئ چه په کومه طريقه ئې کټ کولوسره يزيد لره په ثقه راويانو کښې د شميرکولو کوشش کړې دې ، د دواړو عبارتونو مقابله کولو نه پس دجناب عباسى صاحب لاندې غلطيانې ښکاره په نظر راځى .

(الف) تهذيب التهذيب د حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله تعالى تصنيف دې چه په هغې کښې حافظ صاحب موصوف دهغه رجالو (راويانو) تذکره کړې ده ،چه د صحاحِ سته راويان دى ، ليکن چرته چه هم په دوو نومونوکښې اشتباه کيږى هغلته د اشتباه لرې کولو دپاره د بل سړى ذکر هم کوى ، اگرچه هغه د صحاح په راويانو کښې نه وى ، چنانچه تهذيب التهذيب کښې د يزيد چه کوم ذکر دې هغه دې دپاره نه دې چه يزيد د صحاحِ سته په راويانو کښې دې بلکه په خپله د حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله تعالى په ژبه باندې واورئ چه د يزيد ذکر هغوئ په تهذيب التهذيب کښې ولې وکړو ؟ هغه فرمائى (ذکرته للتمييز بينه وبين النخعى ) يعنې ما د يزيد بن معاويه اموى ذکر پخپل کتاب تهذيب التهذيب کښې له يزيد بن معاويه النخعى سره د امتياز پيدا کولو دپاره کړې دې

اوس غوروکړئ چه جناب محموداحمد عباسى صاحب حقيقت لره څنگه پټ کړو او تهذيب التهذيب کښې د يزيد نوم راتللو د وجه نه يې هغه په رواةِ حديث کښې شمارکړو او خلق يې په دهوکه کښې مبتلاکړل ، دلته نسيان نه دې بلکه قصداً داسې وکړې شو .

(ب) جناب محمود احمد عباسى صاحب هم په هغه حواله کښې دمحدث يحيٰ بن عبدالملک بن عتبة الکوفى يو قول نقل کړې دې او دعوىٰ ئې دا کړې ده چه امام ابن حجر عسقلانى رحمه الله تعالى دا قول تهذيب التهذيب کښې نقل کړې دې .

دا دعوىٰ بالکل دروغ ده د يحيىٰ بن عبدالملک بن عتبة الکوفى نوم له سره په تهذيب التهذيب کښې نشته ، البته د يحيىٰ بن عبدالملک بن ابى غنية الخزاعى ابوزکريا الکوفى ذکر

بې شکه په تهذیب التهذیب کښې راغلې دې ، او د دې عذر کیدلې شی چه دا د کتابت او طباعت غلطی ده .

(ج) جناب عباسی صاحب تحریرفرمائی چه تهذیب التهذیب کښې امام ابن حجر عسقلانی رحمه الله تعالی د امیرِ موصوف ذکر رواةِ حدیث کښې کولوسره د محدث یحيٰ بن عبدالملک بن عتبة الکوفی متوفی سنه ۱۸۸هجری دا قول نقل کړې دې چه هغه امیریزید لره احدالثقات یعنې ثقه راویانِ حدیث کښې شمیرلو .

دا په حافظ ابن حجرعسقلانی او محدث یحيٰ بن عبدالملک بن ابی غنیة رحمهما الله تعالی دواړو باندې خالصه افتراء ده چه هغوی یزید ته ثقه وئیلې دې بلکه چه کومه صحیح ترجمه پیش کړې شوې ده په هغې کښې غور وکړئ نوصفا به معلومه شی چه حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله تعالی د یحيٰ بن عبدالملک بن ابی غنیة په سند سره یوه واقعه نقل کولوسره په خپله یحيٰ بن عبدالملک لره احدالثقات (ثقه راویانوکښې یو ) وئیلې دې اودهغه شیخ نوفل بن ابی عقرب ته ئې هم ثقه وئیلې دې ، دپاره ددې چه د سندپه صحت کښې شبهه پاتې نه شی اودهغه په سند سره ئې د خلیفه عمربن عبدالعزیز رحمه الله تعالی واقعه نقل کړې ده چه دهغه وړاندې یو سړی یزید ته امیرالمؤمنین وئیلی وو نو هغوی هغه سړې ه شل کوړې اووهلو حالانکه امیرالمؤمنین عمربن عبدالعزیز رحمه الله تعالی هم د بنی اُمیه په خاندان کښې دې ، چه دهغه نسب نامه داده ، عمربن عبدالعزیزبن مروان بن الحکم بن ابی العاص ابن امیه بن عبدالشمس القریشی الاموی ، دې د صحاحِ سته راوی دې دده نسب اودیزید نسب امیه باندې یوځائ کیږی ، حافظ ابن حجرعسقلانی رحمه الله تعالی احدالثقات د یحيٰ صفت بیان کړې وو مگر عباسی صاحب هغه په یزید باندې چسپان کړې دې څنګه چه اهلِ علم د دغه عبارت په لیدلوسره پخپله پوهیږی .

(د) جناب عباسی صاحب تحریرفرمائی چه : « مراسیل ابوداؤد کښې دهغه (یزید) مرویات دی » مرویات دجمع صیغه ده ، چه له دې نه معلومیږی چه متعدد روایتونه دی ، دا هم دهوکه ده ، مراسیل ابوداؤد کښې صرف یو مرسل روایت د یزید دې ، چه هغې لره امام ابن حجرعسقلانی رحمه الله تعالی ذکرکړې دې ، هغې لره د مرویات په لفظ سره تعبیرکول امام ابن حجرعسقلانی رحمه الله تعالی باندې افتراء ده ، کومه چه صحیح ترجمه پیش کړې شوې ده هغه وګورئ ، په هغې کښې صفا ذکر دی چه « مراسیل ابو داؤد کښې صرف یو مرسل روایت دیزید ماته ملاؤ شو » دا په خپله د حافظ ابن حجرعسقلانی رحمه الله تعالی قول دې ، غور وکړئ چه په کومه طریقه جناب عباسی صاحب د دهوکې ورکولو کوشش کړې دې ، د ناظرینو توجو یو بلې خبرې طرف ته اړول غواړی چه عباسی صاحب چه دکوم (تهذیب التهذیب » نه د ابن حجر عسقلانی رحمه الله تعالی اود یحيٰ بن عبدالملک بن ابی غنیة رحمه الله تعالی قول نقل کړې دې هم په هغه «تهذیب

التهذیب » کښې امام ابن حجرعسقلانی رحمه الله تعالی د یزید په پوره بیان کښې یو لفظ هم دیزید د مدحې ذکر نه کړو بلکه داسې الفاظ ئې استعمال کړه چه په هغې سره هم دهغه نقص ثابتیږی ، مثلاً دهغه د مرګ دپاره لفظ د «هلاک» استعمالول ، ورسره دا ذکرکول چه هغه د خپل لښکر سردار ته مدینې منورې باندې دحملې حکم ورکړو ، په حضرت حسین رضی الله تعالی عنه باندې ئې فوځی حمله وکړه ، مدینې منورې لره ئې دریوورځو پورې هرقسمه مباح کړه چه دهغې په دوران کښې د قتل اود عزت اخستلو بې شمیره واقعات مخې ته راغلل ، مکه معظمه باندې ئې د حملې حکم وکړو چه دهغې په نتیجه کښې د خانه کعبې بنیادونه کمزوری شو او بیا خانه کعبه وسوزولې شوه ، ددې امورو نه علاوه یی یو لفظ هم د یزید په منقبت کښې ذکرنه کړو د« تهذیب » عبارت لره دې اهلِ علم بیا په غور سره ولولی ، همدارنګه حافظ ذهبی د یزید په باره کښې چه کوم تحریرفرمائیلې دې هغه هم وګورئ . **(یزید بن معاویة) ابن ابی سفیان الاموی روی عن ابیه وعنه ابنه خالد وعبدالملک بن مروان، مقدوح فی عدالته لیس بأهل ان یروی عنه وقال احمد بن حنبل رحمه الله تعالی لا ینبغی ان یروی عنه (میزان الاعتدال نمبر ۹۷۰۳ص ۴۳۸ ج ۳)**

ترجمه : زیدبن معاویه بن ابی سفیان الاموئ دخپل پلار نه روایت کړې دې ، او پخپله دهغه نه دهغه ځامنو خالد او عبدالملک بن مروان روایت کړې دې ، اودهغه عادل کیدل مجروح دی ، هغه ددې اهل نه دې چه دهغه نه روایت وکړې شی ، او امام احمد بن حنبل رحمه الله تعالی فرمائی چه دهغه نه روایت کول جائز نه دی .

(۴) عباسی صاحب د یزید فضیلت بیانولوسره د « البدایة والنهایة » عبارت په لاندې ډول پیش کړې دې : **وکان (ابوایوب الانصاری رضی الله تعالی عنه) فی جیش یزید بن معاویة والیه اوصی وهو الذی صلی علیه (البدایة والنهایة ص ۵۸ ج ۸)**

ترجمه : ابوایوب انصاری رضی الله تعالی عنه د یزید بن معاویه په لښکر کښې شامل وو ، هغوی هم هغه (یزید ) ته وصیت وکړو او هم هغه (یزید) دهغه د جنازې مونځ ورکړو ، (خلافت معاویه ویزید ص ۲۷)

او بیا لیکلی چه « ښکاره ده چه ټولو مسلمانانو چه د امیرِ یزید په لښکرکښې شامل وو دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه په شمول د جنازې په مونځ کښې دامیریزیدپه امامت کښې شرکت وکړو (خلافت معاویه ویزید ص ۲۷)

د« البدایة والنهایة » د مذکوره پاسنی عبارت په آخر کښې دا لاندې عبارت هم دې ، چه هغې لره عباسی صاحب قصداً پریښودلو دې دپاره چه خلق په غلط فهمئ کښې مبتلا شی .

**قال احمد حدثنا اسحاق بن عیسی قال حدثنی محمد بن قیس قاضی عمر بن عبدالعزیز عن ابی حرمة عن ابی**

ایوب الانصاری رضی الله تعالی عنه انه قال حين حضرته الوفاة قد كنت كتمت عنكم شيئا سمعته من رسول الله صلی الله علیه وسلم سمعته يقول لولا انكم تذنبون لخلق الله قوما يذنبون فيغفر لهم ، وعندي ان هذا الحديث والذی قبله حمل يزيد بن معاوية على طرف من الارجاء وركب بسببه افعالا كثيرة انكرت عليه كما سنذكره في ترجمته والله اعلم (البداية والنهاية ص٢٠ ج٨)

ترجمه : حضرت امام احمد بن حنبل رحمه الله تعالی پخپل سند سره د حضرت ابو ایوب انصاری رضی الله تعالی عنه نه روایت کړې دې چه هغوی (ابو ایوب انصاری رضی الله تعالی عنه) دخپل وفات په وخت کښې اوفرمائیل چه ما تاسو نه یو حدیث پټ کړې وو چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې وو ، ماد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلی وو چه که چرته تاسو ګناه نه کولې نو الله تعالی به ضرور یو داسې قوم پیدا کولو چه ګناه به یې کولې نو الله تعالی به هغوی ته بښنه کوله او (حافظ ابن کثیر رحمه الله تعالی فرمائی چه ) ځما په نزد دې حدیث اود ددې نه وړاندې حدیث (من مات لا یشرک بالله شیئا جعله الله فی الجنة ، بسند امام احمد) یزید بن معاویه لره جرأت ناك كړې وو ، او هم ددې وجه نه هغه (یزید) د ډیرو افعالِ قبیحو ارتکاب وکړو لکه عنقریب به مونږ دهغې په ترجمه کښې ذکر کړو .

تاسو اووائې چه د علامه ابن کثیر رحمه الله تعالی په دې پوره عبارت سره د یزید فضیلت ښکاره کیږی اوکه دا ښکاره کیږی چه هغه د قبیحو افعالو ارتکاب کړې وو ، یزید چه د جنازې مونځ ورکړې وو هغه په حیثیت د امیرِ لښکر چه قانونِ اسلامی دې ، په هغه صورت کښې د فاضل او مفضول سوال نه پیدا کیږی ،چنانچه ددې نظائر په تاریخِ اسلامی کښې موجود دی ، حضور صلی الله علیه وسلم په غزوه موته کښې خپل غلام حضرت زید رضی الله تعالی عنه لره د لښکر امیر جوړ کړې وو اودهغه په ماتحتئ کښې د حضرت جعفرطیار رضی الله تعالی عنه په شان لوئ لوئ صحابه وو ، هم دغه شان رسول الله صلی الله علیه وسلم اسامة بن یزید رضی الله تعالی عنهما لره د لښکر سردار جوړولو سره د روانتیا حکم ورکړې وو اودهغه په ماتحتئ کښې د حضرت عمر رضی الله تعالی عنه په شان صحابه موجود وو .

(۵) عباسی صاحب موصوف د یزید محاسن ثابتولو دپاره د «البدایة والنهایة» لاندې عبارت هم پیش کړې دې : وقد كان يزيد فيه خصال محمودة من الكرامة والحلم والفصاحة والشعر والشجاعة وحسن الرای فی الملك وكان ذا جمال حسن المعاشرة (البداية والنهاية ص٢٣٠ ج٨)

ترجمه :- اود یزید په ذات کښې قابل د ستائینې صفات ، حلم ، کرم اوفصاحت د شعروئیلو اود بهادرئ وو ، همدارنګه د حکومت په معاملاتو کښې هغه ښائسته رایه لرله اود معاشرت ښه والې هم په هغه کښې وو (خلافتِ معاویه ویزید ص ۴۹)

مګر ددې عبارت نه سمدستی وروسته دا لاندې عبارت وو چه هغې لره عباسی صاحب د

تحقیق دپوره حق ادا کولو دپاره پرېښودلو : **وكان فيه ايضا اقبال على الشهوات وترك بعض الصلوات فى بعض الاوقات واماتتها فى غالب الاوقات (البداية والنهاية ص۲۳ ج۸)**

ترجمه :- او همدارنګه دهغه (یزید) په شهوات نفسانیه کښې پرېوتل او بعضې اوقات د بعضې مونځونو ترک کول مونډلې کېږی ، او مونځونو لره بې وخته کول خو اکثراوقات وو .

غوروکړئ چه عباسی صاحب عبارت کښې حذف کولوسره څنګه دهوکه ورکړې ده ، د البداية والنهاية دهغه عبارت په موجودتیاکښې هغه صفاتو کوم چه عباسی صاحب ذکر کړی دی مثلا حلم اوکرم ، فصاحت ، بهادری وغیره سره د یزید په پرهیزګارئ او ثقه کیدلو باندې څنګه رڼا پرېوتلې شی ؟ چه دهغې دپاره عباسی صاحب پوره کوشش وکړو او په رڼا ورځ کښې ئې دخلقو په سترګو کښې خاوره واچوله او ډهنډوره دا غړولې کیږی چه حقیقت باندې چه کومې پردې پرتې وې هغې لره هغه تحقیق ختمې کړې .

(۲) جناب عباسی صاحب د عمربن سعد په باره کښې د تهذيب التهذيب لاندې عبارت نقل کولوسره ددې ثابتَولو کوشش کړې دې چه د عمربن سعد کردار هم هغسې بې داغه ثابته شوې دې څنګه چه دهغه په شان د ثقه تابعی حالاتو سره توقع کیدلې شی ، (خلافت معاويه ويزيد ص ۲۱۴)

**عمربن سعد بن ابى وقاص الزهرى ابو حفص المدنى سكن الكوفة روى عن ابيه وابى سعيد الخدرى وعنه ابنه ابراهيم وابن ابنه ابو بكر بن حفص وابو اسحاق السبيعى والعيزار بن حريث ويزيد بن ابى مريم وقتادة والزهرى ويزيد بن ابى حبيب وغيرهم وقال العجلى كان يروى عن ابيه احاديث وروى عنه الناس وهو تابعى ثقة (تهذيب التهذيب ص۴۵۰ ج۷)**

ترجمه : عمربن سعدبن ابی وقاص الزهری ابوحفص المدنی په کوفه کښې وو ، هغوی دخپل پلار نه اود ابوسعید خدری نه دحدیث روایت کړې دې او دهغه فرزند ابراهیم اود هغه نوسی ابوبکربن حفص او ابواسحاق السبیعی او عیزاربن حریث اویزید بن ابی مریم اوقتادة زهری اویزید بن حبیب وغیره روایت کړې دې ، او محدث العجلی وائی چه عمربن سعد دخپل پلار نه د حدیثونو روایت کړې دې اودهغه نه ډیرو خلقو روایت کړې دې او پخپله ثقه تابعی وو (خلافت معاويه ويزيد ص ۲۱۴ص ۲۱۵)

په تهذیب کښې دپاسنی مذکوره عبارت نه متصل وروسته دا عبارت دې چه هغه جناب عباسی صاحب انتهائی بهادرئ سره نظر انداز کړو ، ((وهو الذى قتل الحسين)) یعنې دا هم هغه سړې دې چاچه حضرت حسین رضی الله تعالی عنه لره قتل کړو ، ظاهرعبارت نه صفا ثابت دی چه دا قول ((وهو الذى قتل الحسين)) د محدث العجلی دې چه هغې لره عباسی صاحب نظر انداز کړې دې ، نو دادې هغه زبردست تحقیق .

ددې نه وړاندې عبارت دې ، **وذكر ابن ابى خيثمة بسند له ان ابن زياد بعث عمر ابن سعد على جيش**

لقتال الحسین وبعث شمربن ذی الجوشن وقال له اذهب معه فان قتله والا فاقتله وانت علی الناس وقال ابن ابی خیثمة عن ابن معین کیف یکون من قتل الحسین ثقة قال عمروبن علی سمعت یحیی بن سعید یقول ثنا اسماعیل ثنا العیزار عن عمربن سعد فقال له موسی رجل من بنی ضبیعة یا ابا سعید هذا قاتل الحسین فسکت فقال له عن قاتل الحسین تحدثنا فسکت وروی ابن خراش عن عمروبن علی نحو ذلك. فقال له رجل اما تخاف الله تروی عن عمربن سعد فبکی وقال لا اعود. (تهذیب التهذیب ص۱۰۱ ج۷)

ترجمه :- ابن ابی خیثمة پخپل سند سره بیان کړې دي چه ابن زیاد عمربن زیاد لره دیو لښکر قیادت سپارلو سره دحضرت حسین رضی الله تعالی عنه سره د قتال دپاره ولیږلو او شمربن ذی الجوشن ته ئې اووئیل ته هم دده سره لاړ شه که چرته ده حضرت حسین رضی الله تعالی عنه لره قتل کړو نو (فبها) اوکه نه نو تاسو ده لره قتل کړئ اوته به په خلقو باندې امیرشې ، اوابن ابی خیثمة د ابن معین نه روایت کړې دي چه ابن معین اوفرمائیل چه هغه سړې څنګه ثقه کیدلې شی چا چه حضرت حسین رضی الله تعالی عنه لره قتل کړې دې ، عمروبن علی اووئیل چه ما د یحییٰ بن سعید نه اوریدلی دی چه مونږ ته اسماعیل بیان وکړو ، هغوی اووئیل چه عیزار له عمربن سعد نه روایت وکړو (هم دومره ئې وئیلی ووچه ) هغه ته د ضبعیه قبیلې یوسړی موسیٰ اووئیل چه ای ابوسعید دې خو د حسین قاتل دې ، پس هغه خاموشه شو ، بیا ئې هغه ته اووئیل چه ته مونږ ته د حسین د قاتل نه روایت کوې بیا هم هغه خاموشه وو ، او ابن خراش هم د عمروبن علی نه ددې په شان روایت کړې دې او دا ئې هم بیان کړه چه هغه سړی اووئیل چه ته د الله نه ، نه ویریږې ؟ چه دعمر ابن سعد نه روایت کوی » په هغې باندې هغه اوژړل ، او وې فرمائیل چه زه به دوباره دهغه (عمرابن سعد) نه روایت ونه کړم ، په دې سره معلومه شوه چه یحيٰ بن معین او سعید بن القطان ، ابن ابی خیثمة او د بنی ضبیعة قبیلې موسیٰ وغیره چه ائمه رجالِ حدیث دی عمربن سعد لره ثقه نه ګنړلو ، د دوی په مقابله کښې د تنها العجلی قول لره نقل کول د تحقیق پردې لره ختموی ، د یحيٰ بن معین په شان امام الجرح والتعدیل په مقابله کښې د محدث عجلی قول څه زیات وزن نه لری ، عیزاربن حریث هم هغه سړې دې چه هغه لره په «تهذیب » کښې د عمربن سعد شاګردانو کښې ذکرکړې شوې دې ، چه دهغې تصریح په خپله عباسی صاحب کړې ده ، هم دهغه عیزار نه د «تهذیب » په هماغه صفحه کښې محدث موسیٰ وائی چه د قاتلِ حسین رضی الله تعالی عنه نه زمونږه په وړاندې روایت بیانوې چه په هغې باندې عیزاربن حریث معذرت وکړو چه آئنده به داسې نه کیږی او هم دا روایت په واسطه د شعبه عن ابی اسحاق عن العیزار په سندسره میزان الاعتدال ص ۲۵۸ جلد ۲ کښې موجود دې ، فقط (ماهنامه دارالعلوم دیوبند جنوری سنه ۱۹۶۰ء)

## د دارالعلوم ماهنامې په همدې شمیره کښې

د جناب ابو المنظور شیخ احمد استاذ احیاء العلوم بانسواړه دکن مضمون هم دې ، دهغې نه یو څو ضروری اقتباسات پیش کولې شی :

ما کتاب ( خلافت معاویه ویزید ) له اول نه ترآخر پورې کتلې دې او هغې باندې مې د تبصرې په شکل کښې یو کتاب لیکلې دې چه زیرِ طبع دې ، په هغې کښې ما په پوره صراحت او وضاحت سره وئیلی دی چه کتاب د کوم تحریک زیرِ اثر لیکلې شوې دې ، د کوم غرض او مقصد دپاره لیکلې شوې دې ، په کوم ذهنیت او کومه نقطهٔ نظر سره لیکلې شوې دې اودهغې اصل موضوع څه ده ، په اصل کښې دهغې موضوع مذهبی عقائد دی نه تاریخی واقعات ، په هغې کښې تاریخی واقعاتو باندې چه په کوم انداز سره بحث کړې شوې دې دهغې براهِ راست اثر په مذهبی عقائدو باندې پریوځی او هغه نه صرف معکوس کیږی بلکه د امت نه هغه ټوله سرمایه د علومو اخستلې کیږی چه په هغې باندې دهغوی د مذهب دارومدار دې ، مؤلف دمخکښینودولسو کالو ټولو مؤرخینو، محدثینو، مفسرینو اودنورو علومو اوفنونو ماهرینو لره مجروح اوناقابلِ اعتبار گرځولی دی او له ماضی سره یی د امت د رشتې بالکل قعطی ختمولو کوشش کړې دې ، مؤلف ابن جریرطبری ، ابن کثیر دمشقی او جلال الدین سیوطی وغیرهم یی چه په کومو کومو الفاظو سره یاد کړی دی هغه په کتاب کښې ځائ په ځائ خواره دی ، خصوصاً د کتاب په دویمه طبعه کښې مؤلف چه کومه مقدمه لیکلې ده هغه خو په پوره طریقې دهغې د ذهنیت او نقطهٔ نظرآئینه دار دې ، دلته تعصب په دومره اندازه درجهٔ کمال ته رسیدلې دې چه د حضرت حسین رضی الله تعالی عنه مسلک او موقف لره په پوره سختئ سره مسخ کړې شوې دې ، دوی باندې سخت نه سخت الزامات لگولې شوی دی ، دوی لره بد نه بدتر الفاظو کښې مطعون کړې شوی دی ، د دوی د سیرت حلیه بالکل ورانه کړې شوې ده ، تردې پورې چه « مات میتة الجاهلیة » او ( فمن اراد ان یفرق امرهذه الامة وهی جمیع فاضربوه بالسیف » وغیره احادیثو لره نقل کولوسره هغه په یو معمولی مقام باندې چسپان کړې شوی دی ، اوس به دهغه احادیثو څه حشر وی چه په هغې سره د امام په مسلک او مؤقف باندې ښه رڼا پریوځی ، او هغه حدیثونه چرته چه په هغې کښې حضورانورصلی الله علیه وسلم د حضرت حسن او حسین نوم اخستلوسره دوی لره «سیداشباب اهل الجنة » فرمائیلی دی ، آیا جاهلیت کښې او حرامو کښې مړه کیدلو والا هم جنت ته تللې شی؟ په ځائ د دې چه هغوی د اهلِ جنت د ځوانانو سرداران وی ، بیا هغه ټول احادیث چرته لاړه چه په هغې کښې حضورصلی الله علیه وسلم دوی ته خپل محبوبان هم وئیلی دی ، د الله تعالی سره د دوی د محبوبیت دپاره یی دعاگانې هم کړی دی او دا ئې هم فرمائیلی دی چه «حسین د اهلِ آسمان په نزد په ټوله زمکه کښې محبوب دی » آیا د الله د رسول اود ټول مخلوق د محبوب هم هغه سیرت

دې کوم چه دلته پیش کړې شوې دې ؟ دلته خو تعصب دومره زیات دې چه یزید لره یې په حضرت علی رضی الله تعالی عنه باندې فوقیت ورکړې دې اودهغه په مقابله کښې یزید لره ړومبنې متفق علیه خلیفه تسلیم کړې شوې دې ، بیا د تعصب د ړندو حال دادې چه شاهانِ بنی اُمیه لره د حدیثِ نبوی «لایزال الاسلام عزیزالی اثنی عشرة خلیفة» مصداق جوړولوسره حضرت ابوبکر ، عمر ، عثمان ، حسنین رضی الله تعالی عنهم لره بالکل ختم کړې شوی دی ؛ او حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه لره ړومبنې خلیفه ګرځولې شوې دې ،دهغې نه پس مروان بن محمد لره خو ځکه خارج کړې شوې دې چه هغوی باندې د بنی اُمیه حکومت ختم شو ، لیکن دهغې باوجود چه کله دا دقت مخې ته راغلو چه د دولسو دیارلس بادشاهان پاتې کیږی نو د مینځ نه د امتِ محمدیه مجدداول عمرِ ثانی دحضرت عمربن عبدالعزیزرحمه الله تعالی په شان خلیفهٔ راشد لره په ډیرې بې دردئ سره اخوا کړې شو اود باقی بادشاهانو د بنی امیه متعلق وئیلې شوی دی چه دا هغه دولس خلفاءِ اسلام دی چه دهغوئ متعلق حضورصلی الله علیه وسلم پیشین ګوئی فرمائیلې وه چه د دوی په زمانه کښې به اسلام زبردست او طاقتور وی ، احادیثِ نبویه سره دا سلوک په نورو ځایونو کښې هم کړې شوې دې ، مثلاً یو ځائ د صحیحینو یو حدیث لره «محلِ نظر» ګرځولې شوې دې ، ځکه چه دهغه حدیث له مخې ابن سعد د عهدِ نبوی مولود نه دې او مؤلف لره دا ثابتول وو چه هغه د عهدِ نبوی مولود وو ، یو بل ځائ باندې د ابوداؤد وغیره صحیح حدیث «الخلافة فی امتی ثلاثون سنة ثم ملک بعدذلک» لره وضعی ګرځولې شوې دې ، ځکه چه هغه د مؤلف د نقطهٔ نظر نه بالکل خلاف دې.

که چرته د چا په نزد حضرت حسین رضی الله تعالی عنه بالکل دینی پیشوا نه وؤ او له همدې وجه نه د هغه په شان د ګستاخئ اود بې ادبئ سوال نه پیدا کیږی ، نوبیا خو خیر دې ، لیکن کوم خلق چه هغه دینی پیشوامنی هغوی دې د کتاب د لاندینی مقاماتو په کتلوسره فیصله وکړی چه هغه تحریرونه کم از کم په کومو الفاظو سره یادولې شی.

صفحات ۲۷ ، ۷۴تا ۹۵ ، ۹۷ ، ۹۸تا ۱۰۲ ، ۱۳۳ ، ۱۲۸ ، ۱۲۹ ، ۱۷۷ ، ۱۷۹ ، ۱۸۰

په دې دواړو مضامینو کښې چه دکومو تلبیساتو نشاندهی کړې شوې ده بنده په کتاب «خلافتِ معاویه ویزید» کښې هغې سره متعلقه مقاماتو طرف ته مراجعه نده کړې ، د کتاب د اسلوبِ تحریر په نظر کښې نیولو سره په هغې کښې د مذکوره تلبیساتو وجود بعید نه دې بلکه دهغې د ارتکاب ظن غالب دې ، بنده د اهلِ تنقید د سهولت دپاره دا مضامین نقل کړی دی . فقط والله العاصم من سائر الفتن.

رشید احمد ، ۱۰ رجب سنه ۷۹ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

# مُسلحه پیره (څوکیداری)

# او

# توکل

## لیکوال

حضرت مفتی عبدالرحیم صاحب
نائبِ رئیس دارالافتاء والارشاد ناظم آباد کراچئ

## د حفاظتی تدابیرو اهمیت

* حفاظتی تدابیر او مسلحه پیره د توکل خلاف نه ده.
* حفاظتی تدابیرو او مسلحه پیره باندې د وارد شوؤ اعتراضاتو مفصل او مدلل جوابات
  - نصوصِ قرآنیه
  - احادیثِ رسول الله صلی الله علیه وسلم
  - تعامل صحابه رضی الله تعالی عنهم
  - تصریحات حضرات فقهاء کرام رحمهم الله تعالی
  - فطرت مستقیم وعقل سلیم
  - بشمول حمقاء د ټولې دنیا اجماع او تعامل

# زمانه بهترین اُستاذ دي

چه کله حضرتِ اقدس دامت برکاتهم د الله تعالی په عطا کړې شوی او بې مثاله بصیرت سره صحیح وخت باندې د حالاتو ادراک کولو سره د مسلحې پیرې اجازت ورکړو نود څلورو طرفونو نه د اعتراضاتو انبار شروع شو ، تردې پورې چه دعقل او شرع دواړو په لحاظ سره دا بالکل بدیهی مسئله وګڼلې شو او د دې لپاره د یوې رسالې د لیکلو ضرورت پیدا شو ، فهم سلیم لرلو والا بعضو حضراتو د حضرت اقدس د علم او بصیرت تعریف وکړو لیکن ډیر افسوس دې چه بیا هم اکثریت د داسې خلقو پاتې شو چه هغوی ته د قرآن او احادیثو په واضحو ارشاداتو دحضورصلی الله علیه وسلم ، د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم اود اسلافو تعامل مخې ته راتللو نه پس هم عقل سرته رانغې.

مګر چه کله ځائ په ځائ جماتونو او دینی ادارو باندې اندرونی او بیرونی دهشت ګردو حملې شروع کړې نود بې شمیره جماتونو بې حرمتئ ، په زرګونو مسلمانانو لره د شهید کولو او په زرګونو زخمی کولو نه پس عام جماتونو او دینی ادارو کښې د مسلحې پیرې د انتظاماتو سلسلې شروع کړې شوې.

کاش ! چه د الله تعالی د حکم «خذوا حذرکم» اهمیت یی پیژندلې وې اوپه وخت باندې ئې هغه اختیارکړې وې نو دومره نقصان به نه کیدلو.

د کومو خلقو په دماغو کښې چه د الله تعالی اود رسول صلی الله علیه وسلم اود بداهتِ عقل د واضحې فیصلې پیژندلو صلاحیت نه وو الله تعالی هغوی لره د دښمنانو په واسطه په مړه کولو او وهلو سره دهغوی دماغ صحیح کړل اود زمانې په ګردش سره یی ورته د عبرت سبق وښودلو.

الله تعالی دې هغوی ته د شریعت دحکم نه دانحراف بلکه په هغې باندې د اعتراض سنګین جرم نه د توبې توفیق ورکړی کړی ، شعر :

ظالم ابھی ہے فرصتِ توبہ نہ دیر کر　　وہ بھی گرا نہیں جو گرا پھر سنبھل گیا



## د مضامینو فهرست

رياض الجنت کښې اسطوانه حارس
مدينه طيبه کښې په نمبر نمبر د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم پيره داری کول
د رسول الله صلی الله عليه وسلم د خوب په وخت د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم ګيرچاپيره پيره کول
د دوی صلی الله عليه وسلم تره حضرت عباس رضی الله تعالی عنه هم په محافظينو کښې وؤ
خليفه راشد د حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله تعالی محافظ
حضوراکرم صلی الله عليه وسلم باندې ترآخرعمره پورې پيره کيدله
اسلحه او دهشت ګردی
د اسلحې نه نفرت په حقيقت کښې د قرآن او حديث او سنتِ نبويه نه نفرت دې
د دفاع اوجهاد د آلاتو او د اسلحې ساتلو فضائل
د جهاد د آس خاشنړه او متيازې د قيامت په ميزان کښې له مونځونو سره
اسلام نه دفاع دپاره اسلحه ساتل عبادت دې او رياء او ښودنې دپاره وبال دې
اسلحې سره محبت
صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم هروخت د اسلحې نه ډک وؤ
نبوت او اسلحه لازم او ملزوم دی
د حضوراکرم صلی الله عليه وسلم زغره (بلټ پروف جيکټ) استعمالول
په خپله د (بلټ پروف جنګی ټوپئ) استعمال
د نبوت په نګاه کښې دمال په مصارفو کښې د ټولو نه مقدم او اهم مصرف
د خاتم الانبياء صلی الله عليه وسلم مدينې طيبې ته تشريف راوړلو باندې د اهلِ مدينې له اسلحې سره استقبال.
اسلحه د مسلمانانو عزت دې چه هغې لره هغوی دخپله تنه جدا کولې نه شی
کوم زيور چه مونږ ته د الله تعالی رسول صلی الله عليه وسلم اغوستلی دی هغې لره نه شی ويستلې کيدلې
مونږه په تورو سره د سرکشو او اهلِ شرک علاج وکړو
د خاتم الانبياء صلی الله عليه وسلم ترکه (ميراث)
حضوراکرم صلی الله عليه وسلم او انټيلی جنس (جاسوس)
د ميراثِ نبوی د حيرانتيانه ډک تفصيلات
آياجمات ته اسلحه راوړل د جمات بې ادبی ده ؟
اسلحه د جمات او د نورو شعائرِ اسلام زينت او عزت دې

جمات کښې اسلحه
مسجدنبوی کښې اسلحې سره د جهاد مشق
د اختراود جمعې خطبه د اسلحې سره ۵۱خطيبان دې په لاس کښې اسلحه ساتی
آيا په جماتونوکښې خلفاءِ راشدينو رضی الله تعالی عنهم حفاظتی انتظامات کړی وو؟
په جماتونوکښې د خلفاءِ راشدينو رضی الله تعالی عنهم حفاظتی تدابير
خيرالقرون کښې جمات کښې دننه حفاظتی کوټې
اميرالمؤمنين حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه او مسجد نبوی کښې حفاظتی مقصوره
اميرالمؤمنين حضرت معاويه رضی الله تعالی عنه اوجمات کښې مسلحه پيره او حفاظتی کمره
جماتونوکښې حفاظتی کوټې په ټولو اسلامی حکومتونوکښې جوړې شوې وې
حفاظتی کمرو کښې خلفاءِ راشدينو ، صحابه کرامو ، تابعينو او فقهاء کرامو مونځونه کړی وو
حفاظتی کمرې جوړيدلو نه پس د فقهاؤ د صفِ اول په تعيين کښې اختلاف
حضرت عمررضی الله تعالی عنه محافظ ولې ونه ساتلو ؟
د حضرت عمرفاروق رضی الله تعالی عنه په شان مدبر شخصيت حفاظتی تدابيرو نه ولې غافله پاتې کيدلې شی ؟
د سرکاری فرمان وجه
حکيم الامة حضرت تهانوی رحمه الله تعالی حفاظتی تدابير ولې ونه کړه ؟
که خصومت دينی وی او خصم کافر وی نو دفاع واجب ده ، بيان القرآن کښې ددې تصريح
د مونځ کوونکو تلاشی آيا د الله د کور نه د بندولو مترادف دې ؟
محراب کښې مسلح محافظ ولې د تشويش باعث دې ؟
د تلاشئ باوجود محراب کښې مسلح محافظ ولې اودريږی ؟
آيا دومره حفاظتی انتظامات بلاضرورته او اسراف نه دې ؟
دارالافتاء والارشاد کښې د حفاظتی انتظاماتو دمختلفو مراحلو مفصله واقعه
د اهلِ بصيرت دپاره د احتياط درس
اعتراضات څه د تعجب اوحيرانتيا څيز نه دې
د تلاشئ مسئله
ائرپورټ باندې تلاشی
حرمينو شريفينو کښې تلاشی
که خطره وی نو کورکښې مونځ ولې نه ادا کوې ؟
د خطرې وجه نه بنديدل خلاف معقول هم دی او منقول هم

جمات د عالم دپاره پارلمان دي
محاسبه وکړئ
د فکر او سوچ وقت
د توکل تهمت لګولو والو ذي يو نظر خپل طرف ته هم وکړي
د عبرت سبق
مشهور کهاوت هم وشرميدلو
آيا اسلحه مونځ کوونکو ته د دهشت اچولو دپاره ده ؟
اسلحه مونځ کوونکو باندې نه د الله په دښمنانو باندې د دهشت اچولو دپاره ده
صحابه کرامو ته د اسلحې نه ولې ويره نه کيدله ؟
د اسلحې نه د خوف علاج
د لنګ وينځل
يوائې او يوائې جهاد د بزدلئ علاج دي
آيا محافظين او دربان استفاده کښې رکاوټ دی ؟
دا خيال سراسر باطل دي
دهغه اعتراض داصل سبب صحيح نشاندهی
د حضرت نانوتوی عجيبه واقعه
د علماءِ حق خلاف پروپاګند کولو والا شرعی حکم
د علماء حق خلاف د پروپاګند کولو بله وجه
وختونو کښې نظم اوضبط او قرآن اوسنت
حضرت والا نه د استفادې پنځلس صورتونه
د حضوراکرم صلی الله عليه وسلم د ضرورت په وخت دربان متعين کول
دارالافتاء والارشاد کښې مسلحه پيره قابلِ تعريف يا هدف تنقيد ؟
(په قلم د مولانامحمد مسعود اظهر صاحب ناظم عمومی حرکة الانصار ومدير اعلی صدائ مجاهد)

بسم الله الرحمن الرحیم

## یو وړاندیز

څنګه چه خپل او پردی ښه پوهیږی چه حضرت اقدس دامت برکاتهم لره الله تعالی په کومو اخلاق عالیه او صفاتِ فاضله سره سرفراز کړې دې په هغه کښې بهادری ، حقه وینا او حبِ الهی زیات ممتاز دی ، د اللهَ تعالی په محبت کښې حضرت اقدس دومره ډوب وی چه د غیرالله خوف او محبت یی زره سره نژدې هم نه تیریږی ، د دوی فتویٰ وی یا د دوی بیان د دوی د جرآت او بهادرئ ښکاره ثبوت وی ، د وخت د جابرو حکمرانانو اود دین خلاف د راپورته کیدلو د هرې فتنې خلاف د دوی آواز همیشه مصلحت اود بزدلئ د شائبې نه پاک وی ، دوی بفضله تعالی دملاحده ، زنادقه ، دښمنانِ صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم او د اعداءِ اسلام خلاف توره ، د « اناالنذیرالعریان» مصداق اود « لایخافون فی الله لومة لائم » تصویر دې.

په داسې حالت کښې د اسلام دښمنان، موافق اومخالف ، تنګی اوفراخی ، صحت اوبیماری په هرحال کښې د اسلام د باغ د خدمت دپاره خپل عمرونه صرف کولو والا علماؤ ربانیینو لره د زمکې د مخ نه د ختمولو خواهش درلودلو والا د یهودو ایجنټانو د جانبه د قتل سازشونه او منصوبې څه د حیرانتیا خبره نه ده ، احیاء اسلام او امتِ مسلمه لره د مغربیانو د تقلیذ ، عقائدو کښې تزلزل ، ناسته پاسته ، وضع قطع ، ګرځیدلو راګرځیدلو ، معاشرت اومعاملات غرض هرڅیز کښې د انګریزانو د غلامئ د ذلت نه راویستلوسره دهغوی عظمت لره په حال کولو دپاره څوک چه هم لږ جرآت او بهادرئ سره میدان ته راځی هغوی دهغه یهودو ایجنټانو اود دهشت ګردئ د فتنو واګې نیولو والو په زړه کښې د اغزی په شان ننوځی ، هغه لره اود هغه تحریک لره د سر اوچتولو نه وړاندې وړاندې ختمولو دپاره دهغوی خفیه ایجنسیانې په حرکت کښې راځی ، په داسې حالاتو کښې خپله دفاع کول شرعاً اوعقلاً نه صرف جائز یا مستحب ده بلکه واجب او فرض ده ، اوکه نه نو د اسلام د دښمنانو جرات به ورځ په ورځ زیاتیږی او هغوی به یو یو کولوسره زمونږه علماؤ لره بغیر د څه ویرې نه شهیدان کوی ، د داسې خطرې په صورت کښې په کلاره کیناستل اود واقعې نه پس افسوس کول او په اخبارکښې بیان ورکولو باندې اکتفاء کول څه هوښیارتوب نه دې.

چنانچه چه هرکله په حضرت اقدس دامت برکاتهم او دارالافتاء والارشاد باندې د دښمنانِ اسلام اود ملکی اوغیرملکی د دښمنانِ صحابه د ایجنټانو یلغار شروع شو او حفاظتی انتظامات وکړې شو نو ورسره د مفسرینو ، محدثینو اود فقهاؤ د تصریحاتو مطابق د وجوبِ دفاع د

ثابتیدلو باوجود د مختلفو قسمو د اعتراضاتو او سوالاتو یلغار هم شروع شو مثلاً:

(۱) مسلح پیره د توکل خلاف ده.

(۲) د مونځ کوونکو تلاشی اخستل د مونځ کوونکو توهین دي.

(۳) جمات کښې اسلحه راوړل د جمات د احترام خلاف دي.

(۴) د تلاشۍ نه پس بیا منبر باندې باډی ګارډ ودرول د مونځ کوونکو د مرعوب کیدلو مترادف دي.

(۵) دا اسراف دي

(۶) دا ریاکاری ده

(۷) که چیرته مفتی صاحب ته خطره وی نو هغه دې مونځ کوونکو لره د پریشانه کولو په ځائ مونځ په کور کښې ولې نه ادا کوی؟

(۸) حضرت مفتی صاحب پخپله خو محافظو او دربانیانو کښې داسې ځان بند کړې دې چه عام مسلمانان خو دهغوئ د ملاقات تصور هم نه شی کولې، د وخت د پابندئ اود تلاشئ په شان خلاف انسانیت عمل نه باوجود هم د مفتی صاحب کمرې او مجلسه پورې رسیدل بدون له واسطې نه ممکن نه دی.

(۹) دا د روم اود فارس د بادشاهانو سره یوشان بلکه دهغې نه هم څه زیات حالت دې

(۱۰) حضوراکرم صلی الله علیه وسلم او خلفاء راشدینو دربار متعین کولو سره د عوام الناس دپاره داسې دروازې بندې کړې نه وې، بلکه حدیث کښې ددې ممانعت دې.

**((من تولی شیئاً من امر المسلمین فاحتجب عن حاجتهم وفقرهم احتجب الله دون حاجته)) (ترمذی)**

(۱۱) اسلحه، پیره دار، تلاشی د کبر علامت دې.

(۱۲) دا بزدلی ده.

داسې قسم په شل ګونو سوالونه او اعتراضونه په غوږونو کښې پریوځی اود نظر نه تیریږی، چه دهغې جواب تحریری، تقریری او باقاعده د فتوې په صورت کښې مختصراً ورکولې کیږی.

چونکه دلته د حفاظتی تدابیرو په بنا څه جماعتی، ذاتی، سیاسی یا دنیوی جنګ نشته بلکه خالص دینی خصومت وو او دا انتظام او اهتمام نقلی اوعقلی هراعتبارسره نه صرف جائز بلکه ضروری وو، همدارنګه زیات تر سوالونه د دینداري طبقې د طرف نه راپورته کیدل ددې وجه نه مختصرجواب باندې اکتفاء کولې کیدله، لیکن قرائنو او شواهدوسره برابر احساس کیدلو چه دا جوابات فی نفسها مسکت هم دی او شافی هم مګر بعضې خارجی عوامل مثلاً د جهاد نه لرې والې، دقتال فی سبیل الله سره اجنبیت، او بزدلی، اسلحې نه نفرت او ویره، د سیرت نبویه یو اهم باب اودجزء لا ینفک عدم استحضار دامت مسلمه زړه او دماغو لره بې حسه او اعضاؤ او اعصابو

لره شل کړی دی چه دهغې د وجه نه اختصارفی نفسه کافی کیدلو باوجود ناکافی روان دی.

په همدې دوران کښې د فیصل آباد نه لیکلې شوی حفاظتی تدابیرو سره متعلق یوه استفتاء د جواب دپاره مخې ته راغله (چه دهغې «تمهید» ددې «تقدیم» په آخر کښې نقل کړې شوې دې، نو داسې فکر وشو چه یو ځل دهغې حکم شرعی یوه اندازه تفصیل سره ولیکلې شی اوپه هغې کښې دهغه سوالونو هم اضافه وکړې شی چه تراوسه پورې بصورتِ اعتراض یا استفسار راتلل، دې دپاره چه په مضمون کښې ممکن حده پورې جامعیت پیدا شی.

دالله تعالی په توفیق سره هغه استفتاء کښې کړې شوی سوالونه سره له اضافاتو نه اودهغې مفصل جوابات ستاسو وړاندې دی، امید دې چه طالبِ حق اومنصف دپاره به دا تحریرکافی او شافی شی، پاتې شول متعنتین خلق نو دهغوئ دپاره دفترونه هم بې فائدې بلکه مضر دی ددې وجه نه هغه ددې تحریرمخاطب نه دې.؟

د داسې ناعاقبت اندیش خلقو اعتراضات په څومره لوئ جلیل القدر علامه اوپه څنګه عالی مقام ولی الله، اوڅنګه بطل جلیل مجاهد باندې دی چه دهغوی د لاندینی کمالاتو په ټوله دنیا کښې آوازه ده او موافق اومخالف ټولو کښې مسلم بلکه بدیهی او په ژبو باندې عام دی.

(۱) د علومو په تعمق او وسعت کښې سمندر.

(۲) عمل کښې داسې مضبوطوالې او تصلب چه جبلِ استقامت دې.

(۳) ولایتِ عظمیٰ، تعلق مع الله، تقوی اوتوکل کښې په ټوله دنیا کښې مشهور او عوام او خواصو کښې ضرب المثل دې.

(۴) د دوی شجاعت، بې پرواهئ، حقې وینا، د دین خلاف دهرې لوئې نه لوئې فتنې ختمولو او په ټوله دنیا کښې دکافرانو سره د جنګیدونکو مجاهدینو سرپرستی دالله تعالی په فضل سره په ټوله دنیا کښې د کفر، شرک، الحاد، زندیقت اود فسق اوفجور په اډو کښې زلزله پیدا کړې ده اودهغې بنیادونه ئې ختم کړی دی.

(۵) د دورِ حاضر اکثر علماء او مفتیانِ کرام د دوی شاګردان یاد شاګردانو شاګردان دی یا د شاګردانو په شان دی.

بیا اعتراضات هم څنګه اعتراضات دی؟ چه نقلاً د قرآن اود حدیثو د ذخائرو اود اجماعِ امت خلاف او عقلاً بدیهیات، د ټولې دنیا د مسلماتو اودخپل روزمره د عامو حالاتو، دخپل ژوند په هره شعبه کښې د شپې او ورځې د معمولاتو خلاف.

ددې حالاتو په رڼا کښې د اعتراضاتو وجه څه مشکله نه ده، حقیقت کښې وجه هم هغه ده چه دحضرت امام اعظم اود دوی د اصحابو رحمهم الله تعالی شدید مخالفت کړې شوې وو، ددې ائمه عظامو رحمه الله تعالی مخالفین د دوی د کمالاتو او دنیا کښې مقبولیت باندې د حسد په اور

سره سوزيدل ، چا څه ډير ښه وئيلي دي شعر

محسودون و شـرالناس كلهم　　　من عاش في الناس يوما غير محسود

« هغوی باندې حسد کولې کيږی اود ټولو خلقو نه بدترين هغه سړې دې چه هغه باندې کله يوورځ هم داسې نه وی تيرشوې چه په هغې کښې هغه باندې حسد نه وی کړې شوې »

که چيرته د « درس عبرت » بحث لوستلو سره هم په سترګو باندې د تعنت د پردې همدا حال وی نود نور عذابِ عظيم انتظار وکړئ ، « فتربصوا انا معكم متربصون » ، شعر :

ستبدی لك الايام ما كنت جاهلا　　　ويأتيك بالاخبار من لم تزود

و يأتيك بالاخبار من لم تبع له　　　بتاتاولم تضرب له وقت موعد

عبدالرحيم

۲۷ ربيع الاول ۱۴۱۴ هجری

## استفتاء

څه فرمائی علماء دين اومفتيان دشرع متين په دې مسئله کښې چه :

دلته د پنجاب نه بعضې ملګری کراچئ ته لاړل اوهغوی د جمعې مونځ دحضرت مولانا مفتی رشيد احمد صاحب مدظله په جمات کښې ادا کړو ، هلته هغوی يو څو نوی څيزونه وکتل هغوی ځما نه په هغه باره کښې تپوسونه وکړل چه ستاسو په خدمت کښې پيش کيږی تاسو براهِ کرم د شريعت په رڼا کښې دهغه سوالونو په تفصيل سره جواب ورکړئ .

(.......................فيصل آباد )

پورته ذکرشوی دی چه په هغه استفتاء کښې راغلی سوالونه هم د دولسو سوالونو سره تيرشوی فهرست کښې داخل دی .

په مقدمه کښې ذکر شوی وجوه اود رسالو د خواهش په بناء باندې جواب څه قدرې تفصيل سره ليکلې کيږی :

## آيا مسلحه پيره د توکل خلاف ده ؟

### اول نمبر اعتراض :

مفتی صاحب يومتقی او ولی الله انسان دې د الله والو الله پخپله حفاظت کوی اود الله په ذات باندې ښکلې توکل هم وی ، ليکن حضرت مفتی صاحب دخپل حفاظت دپاره دومره مسلح بادی ګارډان ساتلی دی ، آيا هغوی ته پخپل الله باندې اعتماد او بهروسه نشته ؟

## دفاعی انتظامات د توکل خلاف ګڼل الحاد دي

**جواب** : د اسلام دښمنان ، زنادقه او ملاحده نه د بچ کولو دپاره حفاظتی تدابیر اختیارولو لره خلاف توکل ګڼل بې دینی او الحاد دي یو صحیح العقل والدماغ مسلمان د دې تصور هم نه شی کولې .

جهاد اوقتال فی سبیل الله په فرائضِ قطعیه بدیهیه متواتره کښې داخل دې چه د اسبابو او حفاظتی تدابیرو اوِ د اسلحې نه بغیر نه شی کیدلې ، د دې وجه نه حفاظتی تدابیرو لره خلاف توکل ګڼل حقیقت کښې د جهاد د فرضیت بلکه دهغې د وجود نه انکار دې ، جهاد اوقتال کښې د اقدام نه ددفاع اهمیت زیات دې څوک چه دفاع نه کوی هغوی جهاد نه شی کولې .

د ټولې دنیا په مسلماتو کښې دا خبره ده چه هرملک هرځائ او په هره شعبه کښې اجتماعی او انفرادی ټولو محکمو کښې حفاظتی تدابیرو ته اهمیت ورکولې کیږی .

د اهمیت په لحاظ سره د ټولو نه مقدم ایمان دې بیا ځان بیا عزت بیا مال ، تاسو وګورئ چه د ټولو نه مؤخر او بیکاره څیز د مال حفاظت دپاره څه څه اسباب اختیارولې کیږی ، مګر د دنیا یو ذی شعور انسان هم هغه خو نه خلاف توکل ګڼي نه خلافِ مروت ، شرعاً هم دمال حفاظت مامور به دې ، حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو : **من قتل دون ماله فهو شهید (رواه احمد فی المسند ص۱۳۱ ج۲)** « یعنی څوک چه دخپل مال په دفاع کښې اووژلې شی هغه شهید دې »

همدارنګه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو : **قاتل دون مالك حتی تحوز مالك او تقتل فتکون من شهداء الاخرة (حدیث صحیح رواه احمد اتحاف العباد ص۱۲۲)**

« که دخپل مال په دفاع کښې (قتال کول پیښ شی نو قتال هم وکړه تردې پورې چه دخپل مال حفاظت وکړې یا بیا قتل کړې شې نو ته به آخرت کښې د شهداء په فهرست کښې شمیرلې کیږې »

صحیح مسلم کښې د حضرت ابوهریره رضی الله تعالی عنه نه روایت دې :

**جاء رجل الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال یا رسول الله ارایت ان جاء رجل یرید اخذ مالی قال فلا تعطه مالك قال ارایت ان قاتلنی قال قاتله قال ارایت ان قتلنی قال فانت شهید قال ارایت ان قتلته قال هو فی النار (صحیح مسلم ص۸۱ ج۱)**

« یو صحابی د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راتللو سره عرض وکړو : « که چرته څوک ځما نه ځما د مال تښتولو کوشش وکړی نو زه څه وکړم ؟

دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : « هغه ته یی مه ورکوه » .

هغه عرض اوکړو : « که چرته هغه ځماسره قتال شروع کړی نو بیا ؟ »

وې فرمائيل : «ته هم هغه قتل کړه»
هغه عرض وکړو : «که چرته هغه ما قتل کړی ؟»
وې فرمائيل : «بيابه ته شهيد شې»
عرض ئې وکړو : «که چيرته زه هغه قتل کړم ؟»
وې فرمائيل : «هغه جهنم ته لاړو»

کوم اسلام چه د ټولو نه کمتره څيز يعنې د مال د حفاظت حکم ورکړې دې هغه اسلام کښې د عزت، نفس اود ايمان حفاظت اودهغې دپاره د اسبابو اختيارول څنګه خلاف توکل کيدلې شی :

شعر : اين خيال است ومحال است وجنوں

## د دفاع اهميت اود ترکِ دفاع خطرناک نتائج

د احنافو فقهاؤ يو لوئ عالم امام جصاص رازی رحمه الله تعالی متوفی ۳۷۰ هجری فرمائی :

والذی يدل علی ان هذا الحکم (ترک الدفع) غير ثابت فی شريعة النبی صلی الله عليه وسلم وان الواجب علی من قصده انسان بالقتل ان عليه قتله اذا امکنه وانه لا يسعه ترک قتله مع الامکان قوله تعالی : (وان طائفتان من المؤمنين اقتتلوا فاصلحوا بينهما فان بغت احداهما علی الاخری فقاتلوا التی تبغی حتی تفیء الی امر الله) فامر الله بقتال الفئة الباغية ولا بغی اشد من قصد انسان بالقتل بغير استحقاق فاقتضت الاية قتل من قصد قتل غيره بغير حق،

وقال تعالی : (ولکم فی القصاص حياة) فاخبر ان فی ايجابه القصاص حياة لنا لان القاصد لغيره بالقتل متی علم انه يقتص منه کف عن قتله وهذا المعنی موجود فی حال قصده لقتل غيره لان فی قتله احياء لمن لا يستحق القتل،

وقال تعالی : (وقاتلوهم حتی لا تکون فتنة ) فامر بالقتال لنفی الفتنة ومن الفتنة قصده قتل الناس بغير حق (الی ان قال)

وقد روی عن النبی صلی الله عليه وسلم فی اخبار مستفيضة ((من قتل دون نفسه فهو شهيد ومن قتل دون اهله فهو شهيد ومن قتل دون ماله فهو شهيد (الی) فاخبر صلی الله عليه وسلم ان الدافع عن نفسه واهله وماله شهيد ولا يکون مقتولا دون ماله الا وقد قاتل دونه ويدل عليه قول النبی صلی الله عليه وسلم فی حديث ابی سعيد الخدری رضی الله عنه : ((من رای منکم منکرا فليغيره بيده فان لم يستطع فبلسانه فان لم يستطع

فبقلبه وذاك اضعف الايمان )) فامر بتغيير المنكر باليد واذا لم يمكن تغييره الا بقتله فعليه ان يقتله بمقتضى ظاهر قول النبى صلى الله عليه وسلم ولا نعلم خلافا ان رجلا لو شهر سيفه على رجل ليقتله بغير حق ان على المسلمين قتله فكذالك جائز للمقصود بالقتل قتله وقد قتل على ابن ابى طالب رضى الله عنه الخوارج حين قصدوا قتل الناس واصحاب النبى صلى الله عليه وسلم معه موافقون له عليه وقد روى عن النبى صلى الله عليه وسلم اثار فى وجوب قتلهم (الى) وقد تلقتها السلف بالقبول واستعملتها فى وجوب قتلهم وقتالهم وروى ابوبكر بن عياش قال: حدثنا ابو الاحوص عن سماك عن قابوس بن ابى المخارق عن ابيه قال: ((قال رجل يارسول الله: الرجل ياتينى يريد مالى قال ذكره الله تعالى قال فان لم يذكر قال استعن عليه من حولك من المسلمين قال فان لم يكن حولى منهم قال فاستعن عليه السلطان قال فان نأى عنى السلطان قال قاتل دون مالك حتى تمنع مالك او تكون مالك او تكون شهيدا فى الاخرة،

وذهب قوم من الحشوية الى ان على من قصده انسان بالقتل ان لا يقاتله ولا يدفعه عن نفسه حتى يقتله (الى) ولو كان الامر فى ذلك على ما ذهبت اليه هذه الطائفة من حظر قتل من قصد قتل غيره ظلما والامساك وعنه حتى يقتل من يريد قتله لوجب مثله فى سائر المحظورات اذا اراد الفاجر ارتكابها من الزنا واخذ المال ان نمسك عنه حتى يفعلها فيكون فى ذلك ترك الامر بالمعروف والنهى عن المنكر واستيلاء الفجار وغلبة الفساق والظلمة ومحو اثار الشريعة وما اعلم مقالة اعظم ضررا على الاسلام والمسلمين من هذه المقالة ولعمرى انها ادت الى غلبة الفساق على امور المسلمين واستيلائهم على بلدانهم حتى تحكموا الحكموا فيها بغير حكم الله وقد جر ذلك ذهاب الثغور وغلبة العدو حين ركن الناس الى هذه المقالة فى ترك قتال الفئة الباغية والامر بالمعروف والنهى عن المنكر والانكار على الولاة والجوار والله المستعان (الى) قال ابوبكر: ذكر ابن رستم عن محمد عن ابى حنيفة رحمهما الله تعالى انه قال فى اللص ينقب البيوت يسعك قتله لقوله صلى الله عليه وسلم: (( من قتل دونه ماله فهو شهيد)) ولا يكون شهيدا الا هو ماموربالقتال ان امكنه فقد تضمن ذلك ايجاب قتله اذا قدر عليه وقال ايضا فى رجل يريد قلع سنك قال: فلك ان تقتله اذا كنت فى موضع لا يعينك الناس عليه (احكام القران للجصاص الرازى ص۲۰۰ تا ۲۰۲ ج۲)

وقال الجصاص رحمه الله تعالى: وازالته (اى المنكر) باليد تكون على وجوه منها ان لا يمكنه ازالته الا بالسيف وان ياتى على نفس فاعل المنكر فعليه ان يفعل ذلك كمن راى رجلا قصده او قصد غيره بقتله او باخذ

ماله او قصد الزنی بامرأة او نحو ذلك وعلم انه لا ینتهی ان انکره بالقول او قاتله بما دون السلاح فعلیه ان یقتله لقوله صلی الله علیه وسلم : ((من رای منکم منکرا فلیغیره بیده)) فاذا لم یمکنه تغییره بیده الا بقتل المقیم علی هذا المنکر فعلیه ان یقتله فرضا علیه (احکام القرآن للجصاص ص۳۱ ج۲)

وقال الجصاص الرازی رحمه الله تعالی ایضا : ولم یدفع احد من علماء الامة وفقهائها سلفهم وخلفهم وجوب ذلك (ای الدفاع) الا قوم من الحشو وجهال اصحاب الحدیث فانهم انکروا قتال الفئة الباغیة والامر بالمعروف والنهی عن المنکر بالسلاح وسموا الامر بالمعروف والنهی عن المنکر فتنة اذا احتیج فیه الی حمل السلاح وقتال الفئة الباغیة مع ما قد سمعوا فیه من قول الله تعالی: (فقاتلوا التی تبغی حتی تفیء الی امر الله) وما یقتضیه اللفظ من وجوب قتالها بالسیف وغیره الی) وانما ینکر علی غیر السلطان بالقول او بالید بغیر سلاح فصاروا اشر علی الامة من اعداءها المخالفین لها لانهم اقعدوا الناس عن قتال الفئة الباغیة وعن الانکار علی السلطان الظلم والجور حتی ادی ذلك الی تغلب الفجار بل المجوس واعداء الاسلام حتی ذهبت الثغور وشاع الظلم وخربت البلاد وذهب الدین والدنیا وظهرت الزندقة والغلو ومذاهب الثنویة والخرمیة والمزدکیة والذی جلب ذلك کله علیهم ترك الامر بالمعروف والنهی عن المنکر والانکار علی السلطان الجائر والله المستعان (احکام القرآن ص۳۳ ج۲)

## په پورته عباراتو کښې بیان کړې شوی امور ختصراً په نمبر سره ذکر کیږی

(۱) دین ، نفس ، عزت او مال باندې د حملې په وخت کښې دفاع فرض ده ، او دهغې په فرضیت کښې د هیچا اختلاف نشته .

**اعتراض** : که چیرته دفاع فرض وی نو حضرت هابیل قابیل ته دا ولې وئیلی وو چه : ﴿ لَئِنۢ بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَآ أَنَا۠ بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ ﴾ (۵، ۲۸)

**جواب** : د هابیل دهغه قول مطلب سید المفسرین حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما داسې بیان کړې دې : معناه لئن بدأتنی بقتل لم ابدأك به ولم یرد انی لا ادفعك عن نفسی اذا قصدت قتلی،

فروی انه قتله غیلة بان القی علیه صخرة وهو نائم فشدخه بها وروی عن الحسن ومجاهد انه کتب علیهم اذا اراد رجل قتله ان یترکه ولا یدفعه عن نفسه، قال ابوبکر : وجائز فی العقل ورود العبادة بمثله فان کان التاویل هو الاول فلا دلالة فیه علی جواز ترك الدفع عن نفسه یقتل من اراد قتله وانما فیه انه لا یبدا بقتل غیره وان کان التاویل هو الثانی فهو منسوخ لامحالة وجائز ان یکون نسخه بشریعة بعض الانبیاء المتقدمة وجائز ان

یکون نسخه بشریعة نبینا صلی الله علیه وسلم. (احکام القرآن للجصاص ص۴۰۰ ج۲)
په دې تفسیر کښې حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنهما دوه جوابه ورکړی دی:
(۱) د حضرت هابیل دا کلام اقدام سره متعلق دې نه له دفاع سره، یعنې که چیرته ستا په زړه کښې د اقدام اراده وی نو وی دې، زه اقدام نه کوم، دا مطلب نه وو چه دفاع به هم نه کوم، چنانچه روایاتو کښې دی چه هابیل لره په ویدو ناګهانه قتل کړې شو.
(۲) او که چیرته د هابیل مقصد ترک دفاع واخستلې شی نو دا زمونږ په شریعت کښې منسوخ شوې دې.

## (۲) د دفاع د وجوب دلائل

(۱) قوله تعالی: ﴿فَقَٰتِلُوا۟ ٱلَّتِى تَبْغِى﴾ (۴۹، ۹)
او ددې نه لوئ کوم بغاوت او سرکشی کیدلې شی چه یو انسان لره په ناحقه قتل کړې شی.
(۲) قوله تعالی: ﴿وَلَكُمْ فِى ٱلْقِصَاصِ حَيَوٰةٌ﴾ (۲، ۱۷۹)
قصاص خو هم دفاع ده، چه کله قاتل ته معلومه شی چه زه به هم قصاصاً قتل کیږم نو هغه به د قتل د اقدام نه بند پاتې شی، بالکل همدا صورتِ حال د قتل د قصد په وخت کښې هم دې چه د دفاع اود مزاحمت د وجوب د وجه نه هغه لره قتل کیدلې شی.
(۳) قوله تعالی: ﴿وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ (۲، ۱۹۳)
خلقو لره په ناحقه وژل ډیره لویه فتنه ده او دفاع د فتنې علاج دې.
(۴) **حدیث**: **من قتل دون نفسه فهو شهید، الخ**
یعنې څوک چه د نفس، اهل او مال د وجه نه اووژلې شی هغه شهید دې.
او دا ظاهره ده چه دا وژل هم د دفاع د وجه نه کیږی.
(۵) **حدیث**: **من رای منکم منکرا فلیغیره بیده**
«چه کله تاسو یو منکر اووینئ نو هغه پخپل لاس سره بدل کړئ»
دین، نفس، عزت او مال باندې حمله کول ډیر لوئ منکر دې، لهذا که چرته دا تغییر بغیر له قتل نه نشی کیدلې نو بیا قتل کول متعین او فرض دې، بلکه زمونږ د علم مطابق په دې کښې هیڅ اختلاف نه موندلې کیږی چه که چیرته یوسړې په چا باندې اسلحې سره حمله وکړی نو په نورو مسلمانانو باندې د حمله کوونکی قتل فرض دې.
(۶) **حدیث**: یو سړی عرض وکړو: «یارسول الله! که څوک زما مال لره قبضه کول غواړی نوزه څه اوکړم؟»

دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : «هغه ته نصیحت وکړه»
صحابی عرض وکړو : «که چرته هغه نصیحت قبول نه کړی نو بیا ؟»
دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : «دهغه په خلاف د گیرچاپیره مسلمانانو نه مدد طلب کړه»
صحابی عرض وکړو : «که چرته هغلته مسلمانان نه وی نوبیا ؟»
دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : «د وخت بادشاه نه مدد طلب کړه»
صحابی عرض وکړو چه : «که دا هم ونه شی نوبیا ؟»
دوی اوفرمائیل چه : «دخپل مال د دفاع دپاره قتال وکړه تردې پورې چه خپل مال لره بچ کړې یا شهید شې»

(۲) خوارجو چه کله د خلقو د قتل اراده وکړه نو حضرت علی رضی الله تعالی عنه هغوی لره قتل کړل او هغه عمل سره ټول صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم متفق وو.

(۳) د پوره امت علماء او فقهاء سلف اوخلف ټول په ټوله د وجوبِ دفاع قائل دی او د حشویه یو ډله اوپه ظاهریه کښې (څه ډیر) جاهله قسمه خلق د وجوبِ دفاع قائل نه دی ، هغوی د امر بالمعروف اود نهی عن المنکر بالسلاح منکر دی او دیته فتنه وائی ، حالانکه د الله تعالی اود هغه د رسول صلی الله علیه وسلم ارشادات ښه واضحه دی چه فتنې لره د ختمولو دپاره د اسلحې استعمال ضروری دې ، په دې کښې غفلت د دین اودنیا د دواړو د تباهئ باعث دې.

(۴) کوم خلق چه د وجوبِ دفاع بالسلاح قائل نه دی هغوی د ټول امت مجرمان دی اود اسلام دښمنانو دهغوی ددې یوې جملې «دفاع واجب نه ده» امتِ مسلمه لره یی په لویه تباهئ کښې اچولی دی.

(۵) صلحاؤ باندې د فساقو وفجارو تسلط د مجوسیانو اود نورو د اسلام د دښمنانو تغلب ، د سرحدونو خالی کیدل ، د ظلم عام کیدل ، د مملکت اسلامیه وران کیدل د دین او دنیا د حیثیت ختمیدل ، د زندقه اودالحاد اود مختلفو قسمو گمراهیانو ظهور ټول د دفاع بالسلاح پریښودلو د وجه نه وشو.

(۶) څما (دامام ابوبکرجصاص رازی رحمه الله تعالی) په نزد اسلام او مسلمانانو ته چه د نقصان رسولو دپاره څه وکړې شو په هغې کښې د ټولو نه زیات نقصان هغه دا کلمه ده ، یعنې ترک دفاع بالسلاح.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله تعالی فرمائی : فالعدو الصائل الذی یفسد الدین والدنیا لاشیء اوجب بعد الایمان من دفعه. (اتحاف العباد ص۱۰)

(( هغه دښمن چه په دین او دنیا (یعنې د دین د وجه نه نفس ) باندې حمله کونکې وی نو د ایمان نه پس (د اسلام په فرائضو کښې ) ړومبنۍ فرض دهغه نه دفاع ده ))

د اسلام د دښمنانو نه د دین اود اهلِ دین ، بالخصوص د علماء حق د حفاظت دپاره احتیاطی تدابیر اختیارول فرض او بلا شبهه نهایتِ اهم فرض دې ، ددې فرضیت او د اسبابو اختیارول د توکل څخه خلاف نه کیدل عقل او نقل ، قرآن اوحدیثو ، اجماع اود امت د تعامل اود خلفاءِ راشدینو د تعامل نه دومره واضحه او بدیهی دې چه هغې باندې دلائل قائمول د غرمې په وخت پړکیدونکی نمر باندې دلائل پیش کول دی مگر ((تقدیم )) کښې د مذکوره وجوه پیشِ نظر لاندې د قرآن ، حدیث ، آثارِ صحابه اوتابعین ، د فقهاؤ اقوال اود مجتهدینو اود خلفاءِ راشدینو رضی الله تعالی عنهم د تعامل نصوص پیش کولې کیږی ،

هسې خو قرآن کښې د دوه سوو نه زیات د جهاد او قتال آیتونه دی ، او جهاد او قتال بغیر د اسبابو اختیارولو نه شی کیدلې خو بیا هم دلته په هغې کښې یو څو آیتونه نقل کیږی چه په هغې کښې صراحةً د اسبابو اختیارولو حکم دې.

## د اسلام د دښمناو دپاره تر ټولو ښه اسلحه تیاره ساتئ

(۱) ﴿وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ﴾ (۸، ۶۰)

((اود هغه کافرانو دپاره څومره چه تاسو نه کیدلې شی اسلحه او اسونه او نور سامان صحیح ساتئ (څکه چه)دهغې په ذریعې سره به ستاسو زوروی په هغوی باندې کوم چه دالله دښمنان دی او ستاسودښمنان دی او ددوی نه علاوه په نورو باندې به هم کوم چه تاسو نه پیژنئ او الله یی پیژنی))

(( د (( اخرین من دونهم )) یو تفسیر په جناتو او شیاطینو سره کړې شوې دې ، ددې تفسیر تایید په هغه حدیث سره کیږی چه په هغې.کښې راغلی دی چه په کوم کور کښې د دین د دفاع دپاره اسلحه وی هغه کور ته شیطان نه شی راتللې.

## د حفاظتی تدابیرو حکم

(۲) ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ فَانفِرُوا ثُبَاتٍ أَوِ انفِرُوا جَمِيعًا﴾ (۴، ۷۱)

(( ای مؤمنانو (ړومبۍ ) دخپل ځان د بچ کولو تدبیر وکړئ بیا (هغوی سره د مقابلې دپاره ) متفرق طور باندې وځئ یا یو ځائ کیدلو سره ))

## د حفاظت دپاره د اسلحې او د نورو تدابیرو حکم

(۳) ﴿وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ﴾ (۴، ۱۰۲)

«او هغه (مسلمانان دې د جهاد په میدان کښې د صلاة الخوف په وخت کښې) خپله دفاع او اسلحه دې مضبوطه ساتی»

## د اسلحې نه غفلت تباهی او بربادی ده

(۴) ﴿لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً﴾ (مخکنئ حواله)

«دا کفار غواړی چه تاسو دخپلې اسلحې او اسبابو نه غفلت اختیار کړئ بیا یوځائ په تاسو باندې سخته حمله وکړی»

## د پیرې حکم

(۵) ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا﴾ (۳، ۲۰۰)

«ای مؤمنانو ! پخپله صبر کوئ او په مقابله کښې کلك اوسئ اود اسلام او اهلِ اسلام د دفاع دپاره پیره وکړئ»

د حضورصلی الله علیه وسلم د سیرتِ طیبه د ټولو نه ممتاز باب جهاد او قتال فی سبیل الله دې که چرته د سیرت نه جهاد وه ویستلې شی نودسیرت یو څو پاڼې باقی پاتې کیږی ، دآتو کالو په لړه موده کښې دوی صلی الله علیه وسلم د اوه ویشتو جنګونو بنفس نفیس قومانده وکړه اود اویا نه د زیاتو جنګونو ترتیب یی جوړ کړو او د مجاهدینو لښکرې یی مختلفوعلاقوته ولیږلې ، په دې سره اندازه ولګوئ چه په اسلام کښې دفاع څومره اهمه ده .

لاندې یو څو احادیث او د فقه نصوص لیکل کیږی چه په هغې کښې د کفر دلاندې کولو دپاره د اسبابو اختیارولو حکم په لوئ وضاحت سره موجود دې .

## د رائفل او د نورو فیر کولو (تیر اندازی) د آلاتو دساتلو حکم

(٦) عن عقبة بن عامر رضی الله تعالی عنه یقول: سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم وهو علی المنبر یقول: واعدوا لهم ما استطعتم من قوة الا ان القوة الرمی الا ان القوة الرمی الا ان القوة الرمی (صحیح مسلم ص۱۴۳ ج۲)

«حضرت عقبه بن عامر رضی الله تعالی عنه وائی چه ما د حضورصلی الله علیه وسلم نه په منبر باندې دا واوریدل چه : «اود هغه کافرانو دپاره دخپل استطاعت موافق قوت تیار او آماده وساتئ ، خبردار تیراندازی (غشی ویشتل ) (اصل ) قوت دې ، خبردار ! تیراندازی قوت دې ، خبردار هم تیراندازی (اصل ) قوت دې »

## د فائرنګ (تیر اندازی) زده کولو حکم

(۷) عن سلمة بن الا كوع رضی الله تعالی عنه قال: مرالنبی صلی الله علیه وسلم علی نفر من اسلم ینتضلون فقال ارموا بنی اسماعیل فان اباکم کان رامیا وانا مع اسلم بنی فلان الخ (صحیح بخاری ص۴۰۶ ج۲)

«د حضرت سلمة بن اکوع رضی الله تعالی عنه نه روایت دې چه دحضورصلی الله علیه وسلم تیریدل د صحابه کرامو په جماعت باندې وشول چه د تیراندازئ مشق ئې کولو، دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: ای بنی اسماعیل! تیراندازی کوئ، ستاسو پلار (حضرت اسماعیل علیه السلام هم) غټ (ماهر) تیرانداز وو»

## د تیراندازئ (فائرنګ) هنر د فائدې څیز دې

(۸) عن سعد بن ابی وقاص رضی الله تعالی عنه رفعه قال: علیکم بالرمی فانه خیرا ومن خیر لهو کم رواه البزار والطبرانی فی الاوسط وسند هما جید قوی. (الترغیب للمنذری ص۲۸۸ ج۲)

«حضرت سعد (د تیراندازئ د فن سردار ماهر) رضی الله تعالی عنه د حضورصلی الله علیه و سلم دا ارشادنقل کوی چه: خپل ځان باندې تیراندازی لازمه کړئ ځکه چه تیراندازی دنفع څیز دې»

## تیراندازی (فائرنګ) وروسته له زده کولونه بیا هیرول یا پریښودل نافرمانی ده

(۹) عن عقبة بن عامر رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: من علم الرمی ثم ترکه فلیس منا او قد عصی (صحیح مسلم ص۱۴۳ ج۲)

«حضرت عقبه رضی الله تعالی عنه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد نقل کوی: «چاچه تیراندازی زده کړه اوبیا ئې هغه هیره کړه نو هغه زمونږ نه، نه دې، یا دوئ صلی الله علیه وسلم دا اوفرمائیل چه هغه نافرمانی وکړه»

## فائده

د تیراندازئ فضائل بیشمیره دی، دحضرت والا په «سفرنامه جهاد افغانستان» کښې په دې باندې مستقل باب ایښودلې شوې دې چه په هغې کښې شل احادیث سره د ترجمې نه نقل دی، دا سفرنامه (مفصله) د کتابت په آخری مراحلو کښې ده.

## د پیرې فضائل

(۱۰) عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قال: سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول: عینان لا

تمسهما النار عين بكت من خشية الله وعين باتت تحرس فی سبيل الله. (رواه الترمذی وقال: حديث حسن غريب ص ۲۸۳)

«دوه سترګې داسې دی چه هغه به د جهنم اور نه شی سوزولې یوه هغه سترګه چه د الله د ویرې نه ژاړی، او بله هغه سترګه چه ټوله شپه په جهاد کښې پیره کوی او ویښه وی»

## د شب قدر نه افضله شپه

(۱۱) عن ابن عمر رضی الله تعالی عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم قال: الا انبئکم لیلة افضل من لیلة القدر حارس حرس فی ارض خوف لعله ان لا یرجع الی اهله. (رواه الحاکم وقال: صحیح علی شرط الشیخین ووافقه الذهبی)

«د حضرت لبن عمر رضی الله تعالی عنهما نه روایت دې چه حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو: «آیا تاسو ته داسې شپه ونه ښائم چه د (ثواب په اعتبارسره) د لیلة القدر نه (هم) افضله وی (یعنې هغه شپه چه په هغې کښې) پیره دار داسې خوفناکه علاقه کښې پیره وکړی چه هغلته دهغه ژوند په خطره کښې وی»

## فائده

په جهاد کښې د پیرې ډیر فضائل دی، د حضرت اقدس په «سفرنامه جهاد افغانستان» کښې په دې باندې مستقله رساله شته چه د شلو نه په زیاتو صحیح احادیثو باندې مشتمله ده.

## په خپله حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په حیثیت د یو مُسلح مُحافظ

داسې منظر چه دهغې دنظیر له پیش کولونه آسمان او زمکه عاجز دی:

(۱۲) عن انس رضی الله تعالی عنه قال: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم احسن الناس واجود الناس واشجع الناس قال وقد فزع اهل المدینة لیلة سمعوا صوتا قال فتلقاهم النبی صلی الله علیه وسلم علی فرس لابی طلحة عری وهو متقلد سیفه فقال لم تراعوا لم تراعوا ثم قال رسول الله صلی الله علیه وسلم وجدته بحرا یعنی الفرس. (صحیح بخاری ص ۴۳۶ ج ۱)

«حضرت انس رضی الله تعالی عنه فرمائی چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د ټولې دنیا په ښائسته خلقو کښې د ټولو نه زیات ښائسته اود ټولې دنیا په سخیانو کښې زیات سخی او د ټولې دنیا په بهادرو کښې زیات بهادر وو (ددې مشاهده د جنګونونه علاوه په بې شمیره مواقع کښې کیدله من جمله دهغې نه دادې چه) یوه شپه اهلِ مدینه په یو خوفناکه آواز باندې وه ویریدل. د

مقابلې دپاره خطرې طرف ته وه وتل نو (گوری چه) حضورصلی الله علیه وسلم د حضرت ابوطلحه رضی الله تعالی عنه په آس باندې سور دې په غاړه کښې یې خپله توره اچولې ده او د خطرې د معلومات دپاره یې هغه ځائ ته تشریف راوړی دې او فرمائی چه مه ویریږئ ، مه ویریږئ (یعنې ما وکتل د ویرې خبره نه ده) بیا دوئ اوفرمائیل چه ما دې آس لره په مزل کښې د سمندر (په شان) وموندلو»

د صحیح بخاری په یو بل روایت کښې دی چه دوی صلی الله علیه وسلم هغه آس باندې د زین (کتې) نه بغیر سور وو ، محدثین وائی چه په دې سره دا هم ثابته شوه چه خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم نهایتِ ماهر آس چلونکې وو ، همدارنگه له دې نه داهم ثابته شوه چه د لښکر امیر دې په خپله هم د حالاتو جائزه واخلی.

## آیا مسلحه پیره د سنت نه خلاف ده؟

**دویم نمبر اعتراض** : مسلح پیره د سنت نه خلاف ده ، د حضورصلی الله علیه وسلم مسلح پیردارانو لره ساتل مې نه چرته وئیلی دی اونه مې آوریدلی دی ، فرمان الهی دې چه : ﴿ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾

«د الله رسول ستاسو دپاره (په ټولو حالاتو کښې) بهترینه نمونه ده»

او ارشاد نبوی دې چه : «**علیکم بسنتی**» « یعنی ځما سنت لره لازم ونیسئ»

نو آیا د علماؤ دپاره دا حکم نه دې ؟

## مسلحه پیره خلافِ سنت گڼل جهالت دې

**جواب** :

دا گڼل چه مسلح پیره خلافِ سنت ده او دا چه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په سیرت کښې مسلح پیره نشته د احادیثو انکار ، د حقائقو تکذیب یا بیا جهالت دې ، د دوی صلی الله علیه وسلم غزوات اوډ سیرت کتابونه اود جهاد احادیث د مسلح پیرې نه ډک دی ، اوس په هغې کښې یو څو احادیث پیش کیږی ، د احادیثو محترموا لوستونکو ! د «حراست» وئیلو سره یو ځلې د سوال عبارت بیا اووایئ دې دپاره چه د سوال د صورت په ښه طریقه احساس وشی ، شعر :

شاید که اتر جائے ترے دل میں مری بات

## نن به زمونږ پیره داری څوک کوی

(۱۳) عن ابی ریحانة رضی الله تعالی عنه قال: کنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم فی غزوة فاتینا ذات یوم علی شرف فبتنا علیه فاصابنا برد شدید حتی رایت من یحفر فی الارض حفرة یدخل فیها ویلقی علیه الحجفة یعنی الترس فلما رای ذلك رسول الله صلی الله علیه وسلم من الناس قال من یحرسنا اللیلة وادعوله بدعاء یکون فیه فضل فقال رجل من الانصار انا یارسول الله قال ادنه فدنا فقال من انت فتسمی له الانصاری ففتح رسول الله صلی الله علیه وسلم بالدعاء فاکثر منه قال ابوریحانة فلما سمعت ما دعا به رسول الله صلی الله علیه وسلم فقلت انا رجل اخر قال ادنه فدنوت فقال من انت فقلت ابوریحانة فدعا لی بدعاء وهو دون ما دعا للانصاری ثم قال حرمت النار علی عین دمعت اوبکت من خشیة الله وحرمت النار علی عین سهرت فی سبیل الله عزوجل الخ رواه احمد واللفظ له ورواته ثقات والنسائی ببعضه والطبرانی فی ((الکبیر)) و((الاوسط)) والحاکم، وقال: صحیح الاسناد (الترغیب للمنذری ص۱۵۱ ج۲)

«د حضرت ابوریحانه رضی الله تعالی عنه بیان دې چه مونږ په یو جنګ کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د شپې تیرولو دپاره په یو اوچت ځائ باندې حصار شو ډیره زیاته یخنی وه چه د یخنئ نه د بچ کولو دپاره مجاهدینو کندې وکنستلې او په سر باندې ئی ډهالونه کیښودل اوپه زمکه کښې ننوتل ، حضورِاکرم صلی الله علیه وسلم چه دخلقو دا حال وکتلو نو وې فرمائیل:

«نن به زمونږ پیره داری څوک کوی ؟ زه به دهغه دپاره د لوئ فضیلت دعا وکړم»

یو انصاری عرض وکړو یا رسول الله ! زه به پیره وکړم ، وې فرمائیل رانزدې شه ، هغه نزدې شو ، وې فرمائیل ته څوک ئې ؟ انصاری خپل تعارف وکړو بیا دوی صلی الله علیه وسلم د انصاری دپاره (دعا) شروع کړه او ډیره زیاته دعا ئې ورته وکړه ، ابوریحانه رضی الله تعالی عنه وائی دعاګانې اوریدلوسره (څما په خُله کښې هم اوبه راغلې) ما عرض وکړو چه زه هم پیره کوم ، دوی صلی الله علیه وسلم زما نزدې راغوښتلوسره تپوس وکړو چه ته څوک ئې ؟ ما عرض وکړو ابوریحانه ، بیا دوی صلی الله علیه وسلم څما دپاره هم دعاګانې وکړې مګر د انصاری په نسبت کمې وې ، بیا ئې اوفرمائیل د جهنم اور په هغه سترګه باندې حرام کړې شو چه د الله د ویرې نه ژړی او هغه سترګه باندې چه په جهاد کښې شوګیره تیره کړی (یعنې پیره وکړی)

## نن شپه به زمونږ محافظ څوک وی ؟

(۱٤) عن سهل بن الحنظلیة رضی الله تعالی عنه انهم ساروا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم یوم حنین

(الی) ثم قال: من یحرسنا اللیلة؛ قال انس بن ابی مرثد الغنوی انا یارسول الله (الی) فقال له رسول الله صلی الله علیه وسلم: استقبل هذا الشعب حتی تکون فی اعلاه ولا نغرن من قبلك اللیلة (الی) فقال له رسول الله صلی الله علیه وسلم: هل نزلت اللیلة قال لا الا مصلیا او قاضی حاجة فقال له رسول الله صلی الله علیه وسلم: قد اوجبت فلا علیك ان لا تعمل بعدها. رواه ابوداود والنسائی. الترغیب للمنذری ص ۲۰۰ ج ۲. واخرجه البیهقی وابونعیم کما فی المنتخب (حیاة الصحابة ص ۸۸ ج ۲)

«حضرت سهل بن حنظلیه رضی الله تعالی عنه فرمائی چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په «غزوه حنین» کښې یو شپه اوفرمائیل: «نن شپه به زمونږ محافظ څوک وی ؟»

انس بن مرثدغنوی عرض وکړو یا رسول الله! زه به پیره وکړم ، دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل د فلانکی ځائ په بره حصه باندې پیره وکړه وګوره چه ستا د جانبه مونږ چرته د دښمن نه دهوکه ونه خورو (د سحر په وخت) دوی صلی الله علیه وسلم د پیره دار نه پوښتنه وکړه: آیا ته په شپه کښې د آس نه لاندې هم راکوز شوئ ؟ عرض ئې وکړو نه ، مګر د مونځ او قضاءِ حاجت دپاره ، دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل «تا د ځان دپاره جنت واجب کړو ، د نن نه پس تاسو که یو نیک کار هم ونه کړې شو نو پروا نشته»

## نن شپه به زمونږ پیره دار څوک وی ؟

(۱۵) عن جابر رضی الله تعالی عنه (وفیه) فقال: من یکلؤنا لیلنا؛ فانتدب رجل من المهاجرین ورجل من الانصار قال فکونا بفم الشعب قال فلما خرج الرجلان الی فم الشعب اضطجع المهاجری وقام الانصاری یصلی واتی الرجل فلما رای شخصه عرف انه ربیئة للقوم فرماه بسهم فوضعه فیه فنزعه حتی رماه بثلاثة اسهم ثم رکع وسجد ثم انبه صاحبه فلما عرف انهم قد نذروا به هرب فلما رای المهاجری ما بالانصاری من الدم قال سبحان الله الا انبهتنی اول مارمی قال کنت فی سورة اقرؤها فلم احب ان اقطعها (سنن ابی داود ص ۰ ج ۲)

واخرج ابن اسحاق وغیره: وهما عمار بن یاسر وعباد بن بشر رضی الله تعالی عنهما (حیاة الصحابة ص ۰ ج ۲)

یو غزوه کښې حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو : «نن شپه به څوک زمونږ پیره داری کوی ؟» ، د دوی صلی الله علیه وسلم په دې آواز باندې یو مهاجر او یو انصاری لبیک اووئیل، دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : دواړه ددې وادی په خله کښې پیره وکړئ»

چه کله دواړه د وادی خُلې ته ور ورسیدل نو مهاجر څملاستلو او انصاری په مونځ کښې مشغول شو ، دښمن هغه په غشی وه ویشتلو چه دهغه په بدن کښې ننوتلو ، هغه دغه غشې را وه ویستلو تردې پورې چه هغه درې غشی ولګیدلو ، دهغې سره سره هغه خپل مونځ پوره کړو او با

یې خپل ملګری ویخ کړو نو دښمن وتښتیدلو ، مهاجر چه په انصاری باندې وینه وکتله نو وې وئیل : « سبحان الله ! تاسو زه په ړومبنی غشی لګیدلوسره ولې ویښ نه کړم ؟ » هغه اووئیل : « ما یو سورت لوستلو او هغه مې په مینځ کښې پریښودل خوښ ونه ګڼل »

دا دواړه خوش نصیبه حضرات عمار بن یاسر او حضرت عبادبن بشر رضی الله عنهما وو»

## صدیق اکبر رضی الله تعالی عنه د نبوت محافظ ، اوچت شان

(۱۶) عن علی رضی الله تعالی عنه انه قال: ایها الناس اخبرونی من اشجع الناس؟ قالوا انت یا امیر المؤمنین قال اما انی ما بارزت احدا الا انتصفت منه ولکن اخبرونی باشجع الناس قالوا لا نعلم فمن؟ قال ابوبکر، انه لما کان یوم بدر جعلنا لرسول الله صلی الله علیه وسلم عریشا فقلنا من یکون مع رسول الله صلی الله علیه وسلم لئلا یهوی الیه احد من المشرکین فوالله ما دنا منه احد الا ابوبکر شاهرا بالسیف علی راس رسول الله صلی الله علیه وسلم لا یهوی الیه احد الا اهوی الیه فهذا اشجع الناس. اخرجه البزار. المجمع ص۴۶ ج۹ (حیاة الصحابة ص۲۳۳ ج۱)

« یو ځلې حضرت علی رضی الله تعالی عنه اوفرمائیل خلقو ! اووایئ د ټولو نه زیات بهادر څوک دې ؟ خلقو اووئیل امیرالمؤمنین هم تاسو یئ ، وې فرمائیل نه ، او وایئ د ټولو نه زیات بهادر څوک دې ؟ خلقو اووئیل مونږ ته معلوم نه دې تاسو او وایئ ، وې فرمائیل : **ابوبکر** (ددې دلیل دادې چه) د غزوه بدر په ورځ مونږ د حضور صلی الله علیه وسلم دپاره چهپر جوړکړې وو بیا مونږ اعلان وکړو چه د حضورصلی الله علیه وسلم سره به د محافظ په طور څوک وی ؟ په الله تعالی قسم چاهم دهغه خطرناک کاردپاره غاړه کینه ښودله سوا د ابوبکر نه ، ابوبکر توره په لاس په دوی صلی الله علیه وسلم باندې پیره کوله، کله به چه هم یو مشرک دوی طرف ته راتلل غوښتل نو حضرت ابوبکررضی الله تعالی عنه به په هغه باندې د (بازپه شان) شوغه ووهله او هغه به ئې شړلو»

## عمر فاروق رضی الله تعالی عنه د نبوت مسلح محافظ

(۱۷) قال الامام المحدث الحافظ الثقة الثبت عمر بن شبة النمیری البصری ۲۶۱،۱۷۳هجری حدثنا حرمی بن عمارة (قال ابن معین صدوق کما فی الخلاصة للخزرجی ص۶۵) عن محمد بن ابراهیم الهاشمی، عن ادریس الاودی عن ابیه قال: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا صلی فی الحجر قام عمر بن الخطاب علی راسه بالسیف (تاریخ المدینة (ابن شبة ج ص۳۰۰)

«حضوراکرم صلی الله علیه وسلم به په حطیم کښې مونځ ادا کولو نو حضرت عمر رضی الله تعالی عنه به توره په لاس په دوی صلی الله علیه وسلم باندې پیره کوله »

## دمكې په فتح كښې د نبوت محافظ

(۱۸) عن هشام عن ابيه : لما سار رسول الله صلى الله عليه وسلم عام الفتح فبلغ ذلك قريشا خرج ابوسفيان بن حرب وحكيم بن حزام وبديل ابن ورقاء يلتمسون الخبر (الى) فراهم ناس من حرس رسول الله صلى الله عليه وسلم فادركوهم فاخذوهم فاتوا بهم رسول الله صلى الله عليه وسلم فاسلم ابوسفيان الخ (صحيح بخاری ص۶۱۳ ج۲)

«حضوراکرم صلى الله عليه وسلم فتح مکه کښې لا مکې ته رسيدلي نه وو چه اهل مکې ته د دوی د حملې او د لښکر پته ولګيدله ، د قريشو سردار ابوسفيان ، حکيم بن حزام او بديل بن ورقاء درې واړه د اسلامی لښکر د معلوماتو اخستلو دپاره اووتل ، د حضوراکرم صلى الله عليه وسلم محافظانو هغوی وليدل ، محافظينو هغوی ونيول او دوی صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې ئی حاضرکړل ، ابوسفيان فوراً په اسلام مشرف شو » الخ

علامه قسطلانی فرمائی : « په بعضو رواياتو کښې دی چه په هغه محافظينو کښې امير المؤمنين حضرت عمر رضی الله تعالی عنه هم وو»

## مدينه طيبه كښې رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې مسلحه پيره

(۱۹) بوب الامام البخاری رحمه الله تعالى بباب الحراسة فى الغزو فى سبيل الله ثم روى عن عائشة رضى الله تعالى عنها تقول : كان النبى صلى الله عليه وسلم سهر فلما قدم المدينة قال ليت رجلا من اصحابنا صالحا يحرسنى الليلة اذ سمعنا صوت سلاح فقال من هذا فقال انا سعد بن ابى وقاص جئت لاحرسك فنام النبى صلى الله عليه وسلم (وفى رواية) حتى سمعنا غطيطه (صحيح البخاری باب الحراسة ص۴۰۳ ج۱ وباب التمنى ص۱۰۷۳ ج۲، وزاد ابن شبة : سهر فقلت مالك يارسول الخ، تاريخ المدينة ص۳۰۰ ج۱، صحيح مسلم ص۲۸۰ ج۲)

قال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالى : وفى الحديث الاخذ بالحذر والاحتراس من العدو وان على الناس ان يحرسوا سلطانهم خشية القتل وفيه الثناء على من تبرع بالخير وتسميته صالحا وانما عانى النبى صلى الله عليه وسلم ذلك مع قوة توكله للاستنان به فى ذلك وقد ظاهر بين درعين مع انهم كانوا اذا اشتد الباس كان امام الكل وايضا فالتوكل لا ينافى تعاطى الاسباب لان التوكل عمل القلب وهى عمل البدن وقد قال عليه الصلاة والسلام اعقلها وتوكل الخ (فتح البارى ص۶۱ ج۶)

«حضرت عائشه رضى الله تعالى عنها فرمائی چه يوه شپه حضوراکرم صلى الله عليه وسلم ويخ وو ما عرض وکړو يا رسول الله ! تاسې ولې فکرمند يئ ؟ وې فرمائيل کاش څما په صحابو کښې

یو نیك سړي په ما باندې پیره وکړی، په دې دوران کښې مونږ د اسلحې آواز واوریدلو نو دوی صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه : څوک یی؟ عرض ئې وکړو : سعد ابن ابی وقاص یم (په یو روایت کښې دی چه ما په خپل زړه کښې په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې خطره محسوسه کړه ) د پیرې دپاره حاضر شوې یم ، دهغې نه پس حضوراکرم صلی الله علیه وسلم داسې اطمینان سره ویده شو چه مونږ د دوی صلی الله علیه وسلم د خوب هغه آواز واوریدلو»

حافظ ابن حجر رحمه الله تعالی فرمائی : ددې حدیث نه دا مسائل ثابت شو :

(۱) حفاظتی تدابیر اختیارکړئ .

(۲) د دښمن نه د دفاع دپاره پیره وکړئ .

(۳) خلقو باندې دخپلو مشرانو حفاظت لازم کیدل .

(۴) د پیرې کولو والا د ثناء لائق کیدل .

(۵) پیره دار ته د لسانِ نبوت نه د «صالح» لقب عطاء کیدل .

(۶) دنورو په هغه سنتِ نبویه باندې عمل کول .

(۷) د اسبابو اختیارول د توکل خلاف نه کیدل .

## په مدینه کښې د قیس بن سعد د پیره دارئ معمول

(۲۰) عن انس رضی الله تعالی عنه قال: ان قیس بن سعد کان یکون بین یدی النبی صلی الله علیه وسلم بمنزلة صاحب الشرطة من الامیر (صحیح البخاری ص ۱۰۵۹ ج ۲، جامع الترمذی ص ۵۲۸ ج ۲، ورواه ابن حبان فی ((صحیحه))، فتح الباری ص ۱۱۹ ج ۱۳، نیل الاوطار ص ۲۸۱ ج ۸)

«حضرت انس رضی الله تعالی عنه فرمائی چه حضرت قیس بن سعد رضی الله تعالی عنه به د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم نه مخکې د محافظ په طور تللو .

امام ابن حبان رحمه الله په دې حدیث باندې دا باب قائم کړو : (باب احتراز المصطفى من المشركين فی مجلسه اذا دخلوا)

یعنې د مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم د مشرکینو نه د حفاظت بندوبست کول . (فتح الباری . نیل الاوطار تیر شوې جلد او صفحه)

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مخکې نیزو والا

(۲۱) باب حمل العنزة والحربة بین یدی الامام یوم العید

«د اختر په ورځ د امام نه مخکې نیزه اوچتولو سره د تللو بیان»

عن ابن عمر رضی الله تعالی عنهما قال: کان النبی صلی الله علیه وسلم یغدوالی المصلی والعنزة بین یدیه تحمل وتنصب بالمصلی بین یدیه فیصلی الیها (صحیح بخاری ص۱۳۳ ج۱)

وعنه رضی الله تعالی عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان اذا خرج یوم العید امر بالحربة فتوضع بین یدیه فیصلی الیها والناس وراءه وکان یفعل ذلک فی السفر فمن ثم اتخذها الامراء (صحیح البخاری ص۱۱ ج۱)

« حضرت ابنِ عمررضی الله تعالی عنهما فرمائی چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د اختر په ورځ د مونځ دپاره تشریف وړلو نو د نیزو اوچتولو حکم به ئې ورکولو ، نیزې اوچتونکی به د دوی وړاندې وو بیا به یې دهماغه نیزې نه د سترې کار اخستلو ، د حاکمانو مروجه طریقه هم ددې سنت نه ماخوذه ده »

قال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالی: وفی الحدیث الاحتیاط للصلاة واخذ الة دفع الاعداء لاسیما فی السفر (فتح الباری ص۳۶۲ ج۱)

د احادیثو غر حافظ ابن حجر د صحیح بخاری شارح فرمائی چه : « ددې حدیث نه دا مسئله ثابته شوه چه بهر ته د تګ په وخت د دښمنانو نه د دفاع دپاره اسلحه وړل له ځان سره پکار دی اوپه سفر کښې خصوصًا ددې اهتمام کول پکار دی »

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مخکې ډنډو (لرګیو) والا

(۲۲) قال ابن شبة حدثنا عبدالله بن رجاء قال: حدثنا المسعودی عن القاسم قال: کان عبدالله رضی الله تعالی عنه یلبس النبی صلی الله علیه وسلم نعلیه ثم یاخذ العصا فیمشی امامه الخ (تاریخ المدینة ص۳۰۳ ج۱)

«حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ته نعلین شریف (پنړې) اچولې بیا به یې د دوی عصامبارکه اخستله او وړاندې وړاندې به تللو ـ الخ»

## د رسول صلی الله علیه وسلم په منبر باندې د بلالِ حبشی رضی الله تعالی عنه د پیره دارئ خوندوره نظاره

عن الحارث بن حسان قال: قدمت المدینة فرایت النبی صلی الله علیه وسلم قائما علی المنبر وبلال قائم بین یدیه متقلد سیفه واذا رایة سوداء فقلت: من هذا فقال: هذا عمرو بن عاص قدم من غزاة (سنن ابن ماجة ص۲۰۷)

(۲۳) قال ابن شبة عن الحارث بن حسان البکری قال: قدمت المدینة فاذا النبی صلی الله علیه وسلم علی المنبر واذا بلال متقلد بالسیف واذا رایات سود فقلت: ماهذه الرایات قالوا: هذا عمرو بن العاص قدم من غزوة ذات السلاسل (تاریخ المدینة ص۳۰۱ ج۱)

« حضرت حارث رضی الله تعالی عنه وائی چه زه مدینې طیبې ته حاضر شوم نو ما دا منظر وکتلو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم منبر باندې تشریف فرما دې او (ورسره) بلال په غاړه کښې توره اچولې ولاړ دې، یو څو تورې جهنډې دی، ما د خلقو نه پوښتنه وکړه دا جهنډې د څه شی دی؟ خلقو اووئیل: دا عمروبن العاص دې چه د «غزوه ذات السلاسل» نه واپس شوې دې «دا جهنډې د هغه د مجاهدینو دی»

## رياض الجنه کښې اسطوانهٔ حارس

(۲٤) قال العلامة السمهودی رحمه الله تعالی: ومنها اسطوان المحرس ويسمى اسطوان امیر المؤمنين علی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنه قال یحی:.....

قال جعفر بن عبدالله بن الحسين: ان هذه المحرس كان علی بن ابی طالب يجلس فی صفحتها التی تلی القبر مما يلی باب رسول الله صلی الله عليه وسلم يحرس النبی صلی الله عليه وسلم (وفاء الوفاء ص۴۴۸ ج۱)

« مسجدِنبوی کښې » د « رياض الجنه » په ستنوکښې یوه ستنه د «اسطوان المحرس» یا د «اسطوان امیر المؤمنين علی رضی الله تعالی عنه» په نوم سره مشهوره ده ددې وجه نه چه دغلته به حضرت علی رضی الله تعالی عنه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم پیره ورکوله»

## د ام المؤمنين حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها بیان

(۲۵) عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت: كان النبی صلی الله عليه وسلم يحرس حتی نزلت هذه الاية (والله يعصمك من الناس) رواه الترمذی قال الحافظ: واسناده حسن (فتح الباری ص۶۰ ج۲)

« حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمائی چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم باندې د پیرې معمول د آیت « **والله یعصمک من الناس** » تر نزول پورې برقرار وو»

## په مدینه طیبه کښې په نمبر نمبر د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم پیره کول

(۲٦) عن محمد بن كعب القرظی قال: كان النبی صلی الله عليه وسلم يتحارسه اصحابه فانزل الله تعالی ( يايها الرسول...الخ)

(۲۷) عن عبدالله بن شقيق: ان رسول الله صلی الله عليه وسلم كان يعتقبه ناس من اصحابه فلما نزلت (والله يعصمك من الناس) خرج فقال يايها الناس الحقوا بملاحقكم فان الله قد عصمنی. (تاريخ المدينة ص۳۰۲ ج۱

تفسیر الطبری ص۱۹۹ ج۲)

((حضرت محمد بن کعب او عبد الله بن شقیق رحمهما الله فرمائی چه صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم به په حضور اکرم صلی الله علیه وسلم باندې په نمبرنمبر باندې پیره کوله ، چه کله آیت (**والله یعصمک من الناس**) نازل شو نو دوی صلی الله علیه وسلم د (حجرې مبارکې ) نه راوتلو سره ارشاد اوفرمائیلو : خلقو ! خپلو کورونو ته واپس شئ بې شک الله تعالی ځما د حفاظت وعده کړې ده))

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم د خوب په وخت کښې د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم ګیرچاپیره پیره کول

(۲۸) **واخرج ابو نعیم فی الدلائل عن ابی ذر رضی الله تعالی عنه قال: کان رسول الله صلی الله علیه وسلم لاینام الا ونحن حوله من مخافة الغوائل حتی نزلت اية العصمة (الدر المنثور ص۲۹۸ ج۲)**

(( حضرت ابوذر رضی الله تعالی عنه فرمائی چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د خطرې په وخت کښې هغه وخته پورې نه ویده کیدلو ترڅو پورې چه به مونږ ګیرچاپیره نه وو ودریدلی ، دا معمول د (عصمت ) د آیت ترنزوله پورې وو))

## د حضور صلی الله علیه وسلم تره حضرت عباس رضی الله تعالی عنه هم په محافظینو کښې وو

(۲۹) **واخرج الطبرانی عن ابی سعید الخدری رضی الله تعالی عنه قال: کان العباس عم رسول الله صلی الله علیه وسلم فیمن یحرسه فلما نزلت (والله یعصمک من الناس) ترک الحرس. (تفسیر المظهری ص۱۳۰ ج۲)**

(( د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم تره حضرت عباس رضی الله عنه هم د دوی صلی الله علیه وسلم په محافظینو کښې وو د آیت (عصمت ) له نزول نه وروسته یې پیره پرېښودله))

(۳۰) **واخرج ایضا عن عصمة بن مالك الخطمی رضی الله عنه قال : کنا نحرس رسول الله صلی الله علیه وسلم باللیل حتی نزلت (والله یعصمک من الناس) فترک الحرس (تفسیر المظهری ص۱۳۰ ج۲)**

((حضرت عصمة بن مالک خطمی رضی الله تعالی عنه فرمائی چه مونږ په شپه کښې حضور اکرم صلی الله علیه وسلم باندې پیره کوله بیا چه کله آیت (**والله یعصمک من الناس**) نازل شو نو پیره ترک کړې شوه))

(۳۱) **عن الادرع السلمی رضی الله تعالی عنه قال: جئت لیلة احرس النبی صلی الله علیه وسلم فاذا رجل قراءته عالیة الخ (سنن ابن ماجة ص۱۱۲)**

«حضرت ادرع سلمی رضی الله تعالی عنه فرمائی چه زه یوه شپه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم پیرې کولو دپاره حاضرشوم نو هغلته مې یو داسې سړې وموندلو چه د هغه قراءت (آواز) اوچت وو ، بیا دهغه انتقال وشو ، جنازه اوچته کړې شوه نو دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل د ده سره د نرمئ اود (اکرام) معامله وکړئ ، الله هم د ده سره نرمی کړې ده ځکه چه ده د الله اود الله رسول سره زیات محبت لرلو ، بیا چه کله دهغه دپاره قبر وکنستلې شو نو دوی اوفرمائیل چه دده قبر لږ فراخه کړئ الله په ده باندې وسعت کړې دې ... ده د الله اود الله رسول صلی الله علیه وسلم سره زیات محبت لرلو .

## د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله تعالی عنه بیا ن

(۳۲) عن ابی موسی رضی الله عنه قال: ان النبی صلی الله علیه وسلم کان یحرسه اصحابه فقمت ذات لیلة فلم اره فی منامه فاخذنی ما قدم وما حدث فذهبت انظر فاذا انا بمعاذ قد لقی الذی لقیت..الخ (مسند احمد ص ۴۰۰ ج ۴ الفتح الربانی ص ۱۳۱ ج ۲۳)

«حضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله تعالی عنه فرمائی چه صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم به د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم پیره کوله ، یوه شپه زه د پیرې په غرض سره د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوم نو دوی صلی الله علیه وسلم مې د آرام ګاه په ځائ کښې ونه موندل نو ډیر پریشانه شوم او نوؤ او زړو خطراتو زه ګیرګړم زه د دوی صلی الله علیه وسلم د لټون دپاره اووتلم نو ځما ملاقات د حضرت معاذبن جبل سره وشو ، معلومه شوه چه هغه هم د پیرې دپاره راغلې وو او د دوی صلی الله علیه وسلم په لټون کښې سرګردان او پریشان وو .

## د خلیفه راشد حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله محافظ

(۳۳) ان عمربن عبدالعزیز رحمه الله غدا یوم عرفة من منی فسمع التکبیر عالیا فبعث الحرس یصیحون فی الناس ایها الناس انها التلبیة. (موطا مالک ص ۳۳۹)

« خلیفه عادل اوراشد امیرالمؤمنین حضرت عمر بن عبدالعزیز رحمه الله د ذی الحجې په نهمه په منیٰ کښې د سحر په وخت د خلقو نه په اوچت آواز سره تکبیر واوریدلو دوی خپل محافظین ولیږل او دا اعلان یې اوفرمائیلو چه : اې خلقو ! دا د تلبیه وئیلو وخت دې (نه د خالی تکبیر»

## رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې پیره تر آخر عمر پورې وه

قال بیهقی الوقت القاضی ثناء الله الفانی فتی رحمه الله تعالی: قیل: نزلت هذه الایة بعد ما شج راسه. لان سورة المائدة من اخر القران نزولا

وقال المحدث الشهير والمفسر الكبير الحافظ ابن كثير رحمه الله تعالى: والصحيح ان هذه الاية مدنية بل هي من اواخر ما نزل الله بها والله اعلم (تفسير ابن كثير ص۸۱ ج۲)

وقال العلامة القسطلاني رحمه الله تعالى: وهو (اى قوله يحرس حتى نزلت) يقتضى انه لم يحرس بعد ذلك بناء على سبق نزول الاية لكن ورد فى عدة اخبار انه فى بدر واحد والخندق ورجوعه من خيبر وفى وادى القرى وعمرة القضية وفى حنين فكان الاية نزلت متراخية عن وقعة حنين الخ (ارشاد السارى ص۸۲ ج۵)

«د حافظ ابن کثیر او د قاضی صاحب رحمهما الله تعالی په پاسنیو تصریحاتو سره ثابته شوه چه آیت «**والله یعصمک من الناس**» په هغه آیتونو کښې دې چه دهغې نزول بالکل په آخر کښې شوې وؤ چه د دې خبرې واضح مطلب دادې چه دوی صلی الله علیه وسلم باندې د پیرې معمول ترآخر عمره پورې وو.

د علامه قسطلانی رحمه الله تعالی د بیان مطابق هم پیره تر «غزوهٔ حنین» پورې ثابته ده او دا ددې دلیل دې چه دا آیت د «غزوهٔ حنین» نه پس نازل شوې دې.

ددې ټول تفصیل حاصل داشو چه د دې آیت نزول د پیرې د معمول دپاره ناسخ دې مگر مشهور مفسر اومحدث علامه قرطبی رحمه الله ددې رائې سره متفق نه دې ، هغه فرمائی:

«ليس فى الاية ما ينافى الحراسة كما ان اعلام الله بنصر دينه واظهاره ما يمنع الامر بالقتال واعداد العدو على هذا فالمراد العصمة من الفتنة او الاضلال او ازهاق الروح» (فتح البارى ص۸۲ ج۶ عمدة القارى ص۱۳۰ ج۱۴)

یعنې څنگه چه د الله دا وعده چه مونږ به دینِ اسلام غالب کوو د فی سبیل الله معارض نه دې ، همدغه شان دا آیت هم د «حراست» (پیرې) منافی نه دې ، د آیت مطلب دادې چه الله تعالی به تاد فتنې وغیره نه بچ کوی.

## د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم محافظین

له ذکر شوی تفصیل نه ثابته شوه چه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم حفاظت او پیره داری په نمبر نمبر ټولو صحابو کرامو رضی الله تعالی عنهم حاصلوله لیکن بعضې حضراتو ته دا دولت خصوصی طورسره حاصل شوې وؤ او هغه خوش قسمته دادی:

(۱) امیرالمؤمنین حضرت ابوبکر رضی الله تعالی عنه (۲) امیرالمؤمنین حضرت عمرفاورق رضی الله تعالی عنه (۳) امیرالمؤمنین حضرت علی رضی الله تعالی عنه (۴) حضرت زبیر بن العوام رضی الله تعالی عنه (۵) حضرت عباس (۶) حضرت سعدبن ابی وقاص (۷) حضرت ابوطلحه (۸) حضرت عبدالله بن مسعود (۹) حضرت بلال (۱۰) حضرت ابوذرغفاری (۱۱) حضرت سعدبن معاذ (۱۲) حضرت حذیفه (۱۳) حضرت عمار (۱۴) حضرت ابوایوب (۱۵) حضرت محمدبن سلمه (۱۶)

حضرت قیس بن سعد (۱۷) حضرت عبادبن بشر (۱۸) حضرت انس بن مرثد (۱۹) حضرت ابوریحانه (۲۰) حضرت ذکوان بن عبدقیس (۲۱) حضرت عصمة بن مالک خطمی (۲۲) حضرت ادرع سلمی (۲۳) حضرت محجن بن ادرع رضی الله عنهم اجمعین وارضاهم

(ارشاد الساری، حاشیه صحیح البخاری کتاب التمنی، فتح الباری، عمدة القاری، تفسیر مظهری، درمنثور، طبری، تاریخ مدینه، حیاة الصحابة)

## اسلحه او د هشت گردی

**دریم نمبر اعتراض:**

دارالافتاء والارشاد کښې د اسلحې نمائش اودهغې ښه مظاهره کیږی علماؤ سره اسلحه د دین دپاره فتنه اود دین عظمت لره په خاورو کښې د گډولو مترادف دې، نن سبا اسلحه د غلو او د بدمعاشانو شعار جوړ شوې دې چه دهغې د وجه نه علماؤ سره اسلحه په حقیقت کښې مسلمانانو لره د دین نه نور هم متنفر کول دی.

## له اسلحې نه نفرت په حقیقت کښې د قرآن او حدیث او سنتِ نبوی نه نفرت دې

**جواب:**

مسلمانانو باندې داسې دور هم راتللو والا وو چه د اسلحې په شان عزت، نعمت او محبوب څیز لره

(۱) چه د الله اود هغه د رسول حکم قطعی دې.

(۲) چه د اسلام عزت اوعظمت هم دې او قوت او طاقت هم.

(۳) چه دهغې سره د نبی عقیدت او محبت وو.

(۴) چه د نبی میراث وو.

(۵) چه هغې لره صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم دخپل تن نه په شپه کښې هم نه جدا کوله.

(۶) چه دهغې مشق په مسجدِ نبوی کښې دننه کیدلو.

(۷) چه دهغې خیرات په مسجدِ نبوی کښې دننه کیدلو.

(۹) چه هغې لره مسجد ته د راوړلو آداب پخپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم بیانول قابل نفرت او هغې لره د دهشت گردئ علامه اونشانه گڼل به شروع کیږی عزت لره به ذلت او بلندئ لره به لاندې والې تصورکول شروع کیږی.

داسې خلق که چرته مخلص وی نو هغوی ته به په لږ غورسره ښه احساس وشی چه اسلحې لره د

دهشت گردۍ علامه ګڼلو او وئیلو کښې بیشکه ایمان په خطره کښې دې.

بیا دا ځومره د افسوس مقام دې چه غله او بدمعاشان خو دې دا عظیم څیز حاصل کړی او هغه دې د دین په خلاف استعمال کړی او ځوک چه ځان ته دنبی السیف (د تورې والا د نبی) امتی وایی هغه دې دا توره پریږدی او له هغې نه دې نفرت شروع کړی او هغه دې ذلت وګنی.

آیا که چېرته بدماش خلق مونځ روژه اداء کولو سره دهغې نه غلط مقاصد راویستل شروع کړی نو دا به عقلمندی وی چه نور مسلمانان مونځ او روژه پریږدی او په قلار کینی او مونځ روژې لره بدمعاشی وئیل شروع کړی؟

د اسحلې ساتلو په باره کښې خو څه آیتونه تیر شوی دی اوس یو څو حدیثونه ستاسو په خدمت کښې پیش کیږی.

## د دفاع او جهاد آلات اود اسحلې دساتلو فضائل

آس باندې خرج کول د صدقې کولو دپاره داسې لاس خورول دی چه کله هم بند نه شی.

(۳٤) عن ابی الدرداء رضی الله تعالی عنه قال قال لنا رسول الله صلی الله علیه وسلم: المنفق علی الخیل کالباسط یده بالصدقة لا یقبضها (سنن ابی داود ص ج)

« حضرت ابوالدرداء رضی الله تعالی عنه فرمائی رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته ارشاد اوفرمائیلو: آس باندې خرج کولو والا داسې دې لکه یو سړی د صدقې کولو دپاره لاس داسې خور کړې وی چه هغه به دا هیڅ کله بند نه کړی »

## د جهاد د آس خاشنړه او میتازې به د قیامت په میزان کښې د مونځ او روژې سره وی

(۳۵) عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من احتبس فرسا فی سبیل الله ایمانا بالله وتصدیقا بوعده فان شبعه وریه وروثه وبوله فی میزانه یوم القیامة یعنی الحسنات. (صحیح بخاری ص ج، سنن نسائی ص ج)

« حضرت ابوهریره رضی الله تعالی عنه وائی چه حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو: چاچه په الله اودهغه په وعدو باندې ایمان او یقین سره د جهاد (اود اسلام نه د دفاع) دپاره آس وساتلو نو دهغه خوراک، څکاک، خاشنړه او میتازې ټول به د قیامت په ورځ د نیکیانو سره تللې کیږی »

## د اسلام نه د دفاع دپاره اسلحه عبادت اود ریا دپاره وبال دي

(۳٦) عن اسماء بنت یزید رضی الله تعالی عنها ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال: الخیل فی نواصیها الخیر معقود ابدا الی یوم القیامة فمن ارتبطها عدة فی سبیل الله وانفق علیها احتسابا فی سبیل الله فان شبعها وجوعها وریها وظماها وارواثها وابوالها فلاح فی موازینه یوم القیامة ومن ارتبطها ریاء وسمعته ومرحا وفرحا فان شبعها وجوعها وریها وظماها وارواثها وابوالها خسران فی موازینه یوم القیامة. رواه احمد باسناد حسن (الترغیب للمنذری ص۲۱۱ ج۲)

« حضرت اسماء بنت یزید رضی الله تعالی عنها وائی چه حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو : د آسونو په تندو کښې همیشه دپاره خیر اینبودلې شوې دې «د هغوی نه به قیامته پورې د اسلام اود اهلِ اسلام دفاع اود الله کلمه بلنده او اوچته وی » پس چا چه هغوی لره د جهاد دپاره تیارولوسره وساتل او ثواب ګټلوسره یې هغوی باندې خرچ وکړو نودهغوی خوراک او څکاک ، لوږه او تنده ، خاشنړه او میتازې د قیامت په ورځ «دنیکیانو » په تله کښې به لوئې وزن دارې نیکیانې وی اوچا چه د ښودنې او شهرت ، او فخر دپاره آس وساتلو نودهغه خوراک او څکاک ، لوږه او تنده ، خاشنړه او میتازې «دا ټول څیزونه به د بدیانو» په تله کښې وبال ثابتیږی»

## اسلحې سره محبت

(۳۷) عن معقل بن یسار رضی الله تعالی عنه قال: لم یکن شیء احب الی رسول الله صلی الله علیه وسلم من الخیل ثم قال اللهم غفر الا بل النساء. رواه احمد ص۲۷ ج۵ ورواته ثقات (الترغیب للمنذری ص۲۱۳ ج۲)

حضرت معقل بن یسار رضی الله تعالی عنه فرمائی : « حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ته د آسونو نه زیات بل څیز محبوب نه وو ، بیا ئې اوفرمائیل د بیبیانو نه پس »

«ځکه چه بیبیانې هم اسلام او اهلِ اسلام نه د دفاع اود اعلاء کلمة الله اصل ذریعه ده او د جهاد ذرائع دی . حضرت سلیمان علیه السلام سل نکاحونه کړی وو دې دپاره چه مجاهدین په زیات تعداد کښې وی »

## مهمه فائده

تیر شوو روایاتو نه ثابته شوه چه د دین حفاظت او د اعلاء کلمة الله په خاطر صرف اسلحه ساتل عبادت نه دې بلکه د اسلحې ټول مصارف ، ساتنه او صفائی ، مرمت ټول د اعلیٰ درجې عبادت او د قیامت په تله کښې زیات وزن دار او درانده حسنات دی .

## صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم به هر وخت د اسلحې نه ډک وو

(۳۸) عن ابی بن کعب رضی الله تعالی عنه قال: لما قدم رسول الله صلی الله علیه وسلم واصحابه المدینة اوتهم الانصار رمتهم العرب عن قوس واحدة وکانوا لا یبیتون الا بالسلاح ولایصبحون الامعه (مسند الدارمی)

«حضرت ابی بن کعب رضی الله تعالی عنه نه روایت دي چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم او د دوی صحابو مدینې ته تشریف راوړو او انصارو هغوی ته ځائ ورکړو نو د عربو ټول قبائل د مسلمانانو په خلاف د جنګ دپاره ودریدل ، په هغه حالاتو کښې به صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم شپه او ورځ اسلحه خپل ځان سره ساتله»

## نبوت او اسلحه لازم او ملزوم دی

(۳۹) عن ابن عمر رضی الله تعالی عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم بعثت بین یدی الساعة بالسیف وجعل رزقی تحت ظل رمحی، (مسند احمد ص۵۰ ج۲، صحیح بخاری ص۴۰۸ ج۱)

«حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنهما د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد نقل کوی: «زه د قیامت نه وړاندې توره راکولوسره راستولې شوې یم او ځما (ذریعه) د معاش ځماد نیزې د سوری لاندې ایښودلې شوې دې»

## د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم زغره «بلټ پروف جیکټ» استعمالول

(۴۰) کان علی النبی صلی الله علیه وسلم درعان یوم احد (جامع ترمذی ص۲۰۰ ج۱) سنن ابی داؤد ص۳۵۲ ج، سنن ابن ماجة ص۲۰۱ ج) مسند احمد ص۴۲۴ ج۲)

(۴۱) کان علی النبی صلی الله علیه وسلم درعان یوم احد ذات الفضول وفضة وکان علیه یوم حنین درعان ذات الفضول والسعدیة، (شرح الزرقانی ص۳۸۰ ج۲)

«جنګ احد» کښې د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په وجودِ مسعود باندې دوه زغرې (ذات الفضول» او «فضه» او «غزوه حنین» کښې «ذات الفضول» او «سعدیه» وې»

## په خپله د(بلټ پروف) جنګی ټوپئ استعمال

(۴۲) باب لبس المیضة «د جنګی ټوپئ استعمالولو بیان»

عن سهل انه سئل عن جرح النبی صلی الله علیه وسلم یوم احد فقال جرح وجه النبی صلی الله علیه

وسلم وكسرت رباعيته وهشمت البيضة على راسه الخ (صحيح بخاری ص۴۰۸ ج۱)
«غزوه احد کښې د دوی صلی الله علیه وسلم مخ مبارک زخمی شو ، غاښونه مبارک یی شهیدان شول، جنګی توپۍ یی ماته شوه»

## د حضور صلی الله علیه وسلم په نظر کښې د مال په مصارفو کښې د ټولو نه مقدم او اهم مصرف

(۴۳) قال عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه: فكان رسول الله صلی الله علیه وسلم ينفق على اهله نفقة سنتهم من هذا المال ثم يأخذ ما بقى فيجعله مجعل مال الله (صحيح بخاری ص۴۳۶ ج۱، ص۱۰۵۵ ج۲)

(۴۴) عن عمر رضى الله تعالى عنه قال: كانت اموال بنى النضير مما افاء الله على رسوله صلى الله عليه وسلم مما لم يوجف المسلمون عليه بخيل ولا ركاب فكانت لرسول الله صلى الله عليه وسلم خاصة، وكان ينفق على اهله نفقة سنته ثم يجعل ما بقى فى السلاح والكراع عدة فى سبيل الله (صحيح بخاری ص۴۰۶ ج۱)

حضرت عمرفاروق رضی الله تعالی عنه فرمائی چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د بنی نضیر په مالونو کښې د امهات المؤمنین دپاره د کال نفقه وه ویستله اوباقی مال به یی په هغه ځائ کښې خرج کولو چرته چه د الله مال خرج کول کیږی»

بل روایت کښې صراحت دې چه باقی مال سره به دوی صلی الله علیه وسلم اسلحه ، آسونه او جنګی آلات اخستل.

په دې سره ثابته شوه چه د الله د مال اهم او اعظم مصرف (دفاعی بودیجه) جنګی آلات اخستل دی.

## د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم مدینې ته د راتللو په وقت کښې په اسلحې سره استقبال

(۴۵) عن انس رضى الله تعالى عنه قال: لما قدم رسول الله صلى الله عليه وسلم المدينة لعبت الحبشة لقدومه فرحا بذلك لعبوا بحرابهم. (سنن ابی داؤد ص۱۹۳ ج۲)

«حضرت انس رضی الله تعالی عنه فرمائی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې ته تشریف راوړو نود حبشې خلقو په خوشحالئ کښې د نیزه بازئ لوبه ښکاره کړه»

**فائده**: د افغانستان مجاهدین د علماؤ ، مشایخو اود کماندرانو په اسلحې سره استقبال کوی پورته ذکرشوی حدیث سره دهغوی د دې معمول اصل راؤخی.

## اسلحه د مسلمانانو دپاره عزت دې چه هغه د خپله تنه نه شي جدا کولې

سیف الله حضرت خالد رضی الله تعالی عنه «شاهِ روم» ته دخپلو یو څو قیدیانو په سلسله کښې د مذاکراتو دپاره تشریف یوړو ، چه کله د بادشاه دربار ته نزدې ورسیدلو نو «جبله» د لښکرو سردار اووئیل : «ای د عربو ډلې! تاسو اوس د بادشاه دربار ته رارسیدلی یئ ددې وجه نه د خپلو آسونو نه راکوز شئ او خپلې تورې دلته کیږدئ»

حضرت خالدرضی الله تعالی عنه جواب ورکړو : «د آسونو نه خو به راکوز شو لیکن تورې هیڅ کله مونږ نه ږدو ځکه چه تورې زمونږ عزت دې»

آیا مونږ هغه عزت له کوز کړو کوم سره چه زمونږ د نبی بعثت شوې دې ؟.

(فتوح الشام صفحه ۱۶۴ طبع کانپور)

## کوم زیور چه د الله رسول مونږ ته اچولی دی هغه نه شی ویستل کیدلې

د ارمنیستان د فتحې په موقع باندې حضرت خالد رضی الله تعالی عنه سره دخپلو یو څو مجاهدینو نه بحیثیت سفیر له بادشاه سره د خبرو کولو دپاره تشریف یوړو ، چه کله شاهی محل کښې داخل شو نو د بادشاه محافظانو د حضرت خالد اود دوی د ملګرو نه اسلحه اخستل وغوښتل ، حضرت خالد رضی الله تعالی عنه انکار کولوسره اوفرمائیل : «آیا تاسو نه پوهیږئ چه ) مونږ هغه خلق یو چه خپلې تورې غیرو ته نه ورکوُو او (تاسو ته دې دا هم ښه معلومه شی چه ) مونږ د نبی بعثت هم تورې سره شوې دې او دا توره مونږ ته خپل نبی په غاړه کړې ده ، پس کوم شرف چه مونږ ته زمونږ الله او د هغه رسول راکړې دې هغه مونږ دخپل تن څخه هیڅ کله جدا کولې نه شو» (فتوح الشام ص ۱۱۷ ج۲ طبع مصر)

## مونږ ه په تورو سره د سرکشانو اود اهلِ شرک علاج وکړو

چه کله حضرت عمروبن العاص رضی الله تعالی عنه تورې سره شاهی محل کښې داخل شو نو د بادشاه محافظانو د دوی د غاړې نه د تورې اخستلو کوشش وکړو ، دوی اوفرمائیل : «زه بغیر د تورې نه داخلیدلو والا نه یم ، واپس به لاړ شم مګر توره به د تن څخه جدا نه کړم ، آیا تاسو خبر نه یئ چه مونږ هغه خلق یو چه هغوی ته الله په اسلام سره عزت ورکړو ، د ایمان په ذریعې سره ئې نصرت ورته ورکړو ، او د تورې په برکت سره یې مونږه مضبوط کړو او هم دا هغه تورې دی چه د هغې په ذریعې سره مونږه د اهلِ شرک اود سرکشانو دماغ صحیح کړل» (فتوح مصر ص ۲۲ طبع مصر)

## د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم ترکه (میراث)

(٤٦) عن عمرو بن الحارث رضی الله تعالی عنه قال: ما ترك رسول الله صلی الله علیه وسلم الا سلاحه وبغلة بیضاء وارضا جعلها صدقة (صحیح بخاری ص۴۰۸ ج۱)

وفی روایة: ما ترك رسول الله صلی الله علیه وسلم عند موته درهما ولا دینارا ولا عبدا ولا امة (وفی روایة: ولا شاة ولا بعیرا) ولا شیئا الا بغلة البیضاء وسلاحه وارضا جعلها صدقة (صحیح بخاری ص۶۴۰ ج۲) مسند احمد ص۲۷۹ ج۴) سنن نسائی ص۱۰۱ ج۲)

«حضور صلی الله علیه وسلم د انتقال په وخت نه درهم پرېښودل او نه دینار ، نه غلام او نه وینځه ، نه چیلئ او نه اوښ او نه څه بل څیز مګر خپله جنګی اسلحه ، سپین قچر او یوه زمکه چه هغه دوی صلی الله علیه وسلم د وړاندې نه وقف کړې وه»

دا قچر هم په جهاد کښې د دوی په کار راتللو ، غزوه حنین کښې دوی صلی الله علیه وسلم هم په دې قچر باندې سواره وو .

حضرت امام ترمذی رحمه الله تعالی هم دې حدیث باندې دا عنوان قائم کړې دې : (باب ما جاء فی میراث رسول الله صلی الله علیه وسلم) «یعنی د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د میراث بیان» (شمائل ترمذی)

## حضور اکرم صلی الله علیه وسلم او انتیلی جنس (جاسوسان)

(۴۷) دا امر په ډېرو مشهورو او صحیح روایاتو سره ثابت دې چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د جنګونو نه وړاندې او د جنګونو په دوران کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم لره د کافرانو د حالاتو د لرې او نزدې نه او دننه ورننوتلو سره د جائزې اخستلو حکم کولو . هسې خو هم د جهاد په فریضه کښې دا شعبه عقلاً اونقلاً ضروری ده ، امام بخاری او نورو محدثینو داسې حدیثونو باندې باب فضل الطلیعة «د جاسوسئ د فضیلت بیان» په شان عنوان قائم کړې دې (صحیح بخاری صفحه ۳۹۹ جلد ۱)

د حدیثونو نه ثابتیږی چه حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د دښمنانو د جاسوسئ دپاره زیات تر عشره مبشره رضی الله عنهم لیږل.

نن سبا د اسلام دښمنانو د مسلمانانو په هره شعبه کښې د جاسوسئ دپاره په زرګونو ادارې قائمې کړې دی مګر مسلمانان دهغې نه غافله دی. کاش ! د سنتو او مستحباتو عاشقان او د تقوی مدعیانو دې فرائضو باندې هم عمل کړې وای ، وماذلک علی الله بعزیز.

# د نبوی صلی الله علیه وسلم میراث، د حیرانتیا نه ډک تفصیلات

## د رحمة للعالمین صلی الله علیه وسلم د پولسو تورو نومونه

(۴۸) رحمة للعالمین صلی الله علیه وسلم سره پولس توري وې چه په هغې کښې د بعضې عربو مشهورې توري هم وې.

۱: **مَأثُورٌ**: د دوی صلی الله علیه وسلم په تورو کښې د ټولو نه ړومبئ توره ده چه دوی صلی الله علیه وسلم ته د دوی د پلار صاحب نه په ترکه کښې پاتې شوې وه.

۲: **اَلْعَضْب**: چه کله دوی صلی الله علیه وسلم بدر ته روان شول نو حضرت سعد بن عباده رضی الله تعالی عنه د دوی په خدمت کښې هدیةً دا توره پیش کړه.

۳: **ذُوالْفِقَار**: دا توره د دوی صلی الله علیه وسلم په ټولو تورو کښې مشهوره ده.

دا هغه توره ده چه ددې په باره کښې دوی صلی الله علیه وسلم د «احد» په ورځ خوب لیدلې وو دا توره د عاص بن منبه کافر وه چه دوی ته د بدر په غنائمو کښې حاصله شوې وه.

دحضورصلی الله علیه وسلم ددې تورې سره زیات محبت وو، ددې په لاسکی باندې چاندې وه د دوی صلی الله علیه وسلم د دې تورې سره د بې انتهاء محبت اعلان وو، دا توره د دوی صلی الله علیه وسلم په ملکیت کښې د راتللو نه پس بیا کله هم د دوی صلی الله علیه وسلم نه جدا نه شوه.

۴: **اَلْقُلَعِیُّ**: دا دوی ته د «قلع» نومې ځائ نه راوړې شوې وه.

۵: **اَلْبَتَّار**: (ډیره ښه کټکونکې)

۶: **اَلْحَتْف**: (یعنی مرګ)

۷: **اَلْمِخْذَم**: (یعنی کټکوونکې).

۸: **اَلرَّسُوْب**: (په بدن کښې ننوتلو سره ډوبیدلو والا)

۹: **اَلْقَضِیْب**: (تیزې نوکې والا توره)

۱۰: **اَلصَّمْصَامَة**: (داسې مضبوطه کټکوونکې چه کله هم کږه نه شی)

۱۱: **اللحِیْف**: (زیاته کټکوونکې)

(زرقانی صفحه ۳۷۸، ۳۷۹ جلد ۳)

## د حضور صلی الله علیه وسلم د زغرو (بلټ پروف جيکټو) شمير او د هغې نومونه

(۴۹) - ۱: ذَاتُ الْفُضُوْل : (پلن والی والا) حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه بدر ته د تللو په وخت کښې په تحفه کښې دوئ صلی الله علیه وسلم ته پيش کړې وه ، د دوی د انتقال په وخت هم دا «زغره» يو يهودی سره د رهن په طور ايښودلې شوې وه.

۲: ذَاتُ الْوِشَاح

۳: ذَاتُ الْحَوَاشِيْ

۴: السَّعْدِيَة : وئيلې کيږی چه دا د حضرت داؤد علیه السلام زغره ده چه دې لره اچولو سره هغوی جالوت جهنم ته رسولې وو.

۵ : فِضة ۲: اَلْبَتْرَاء ، ۷: اَلْخِرْنِقُ

## د حضور صلی الله علیه وسلم د کمانونو (ليندو) شمير اود هغې نومونه

(۵۰) ۱: الزوراء ۲: الروحاء ۳: الصفراء ۴: شوحط ۵: الکتوم ۲: السداد

## د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د تيردانو (د غشو ايښولو تيلئ) شمير اود هغې نومونه

(۵۱) ۱: اَلْکَافُور په دې کښې د چاندئ درې حلقې (کړئ) وې ، ۲: اَلْجَمْع

## د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د ډالونو (سپر) شمير اود هغې نومونه

(۵۲) ۱: الزلوق (لرې ساتلو والا) ۲: اَلْفُتَق ۳: اَلْمُوْجَز ۴: الذَّقَنُ

(زرقانی ص ۳۸۰ ج ۳، البداية والنهاية ص ۹ ج ۶)

## د حضور صلی الله علیه وسلم د عصاگانو ، برچو اود نيزو نومونه اود هغې شمير

(۵۳) حضوراکرم صلی الله علیه وسلم سره آته مختلف قسمه برچې او نيزې وې چه په هغې کښې د پنځو نومونه معلوم او مشهور دی:

۱: اَلْمُثْوِیْ ۲: اَلْمُثْنِیْ ۳: اَلْبَيْضاء ، دا نسبةً لويه وه

۴: اَلْعَنَزَة ، دا نيزه د عصا په شان نسبةً وړوکې وه چه د حبشې بادشاه حضرت نجاشی رضی الله

تعالی عنه د دوی په خدمت کښې هديةً راليږلې وه ، دوی صلی الله عليه وسلم په سفر کښې هم دا ځان سره ساتله . همدې نه به يې د مونځ په دوران کښې د ((سترې)) کار اخستلو . د اختر په ورځ هم د دوی صلی الله عليه وسلم په وړاندې به د نيزه بازو په لاس کښې همدا نيزه وه او همدا به يې په عيدګاه کښې د سطرې په طور ښخوله .

٥: السغَاء　　　(زرقانی ص ٨١ ٣ج ٣)

## د دوی صلی الله عليه وسلم د اوسپنې د ټوپئ ګانو شمير او د هغې نومونه

(٥٤) ١: ذاالسبُوْغ　　٢: المُوَشح

(زرقانی ص ٨٢، ٨١ ٣ج ٣)

## آيا مسجد ته اسلحه راوړل د مسجد بې ادبی ده

**څلورم نمبر اعتراض** : جمات د الله کور او د اسلام په شعائرو کښې يو شعار دې چه د هغې حرمت په قرآن او حديثو کښې ځائ په ځائ ذکر دې ، داسې مقدس ځائ کښې اسلحه راوړل د جمات د تقدس خلاف او دهغې حرمت ښپولاندې کول دی او هغه اسلحه په مسجد کښې د علماؤ په لاس کښې کيدل د علم او علماؤ بې حرمتی هم ده .

## اسلحه د مسجد او د نورو شعائرِاسلام زينت او عزت دې

**جواب** : اسلام مسجد لره مقدس او محترم ګرځولې دې دغه شان اسلحې ته يی هم مکرم او معظم او دمحبت لائق څيز فرمائيلې دې .

د قرآن او حديثو ، د سيرت نبويه او د صحابه کرامو له سيرت نه معلوميږی چه اسلحه د مسجد او د مسجد نه علاوه د نورو ټولو اسلامی شعائرو محافظ او مقدس څيز دې .

اسلحه د مسجد او د علماؤ بې ادبی ګرځول په حقيقت کښې د انګريزانو لخوا لګولې شوی الزامات دی او دهغوئ د دشمنی دلګولو شوو بوټو تقويه ده، چه هغوی د مسلمانانو په عزت او مال باندې د ډاکې اچولو او د صحابه کرامو د فتوحاتو انتقام اخستلو دپاره لګولی وو او دهغې د کروندې دپاره يی ((مرزاقاديانی دجال)) مبعوث کړې وؤ ، افسوس نن ډير مسلمانان د همدې فصل کرونده کوونکی جوړ شوی دی او څوک چه ددې نعمت (لعنت) نه محرومه دی هغوی ددې ونې په څانګو باندې ناست دی او د مسلمانانو د خويندو او د لورګانو د بې عزتئ نظاره کوی او حضوراکرم صلی الله عليه وسلم چه د دين او د ايمان د عزت د حفاظت دپاره کوم څيز ورکړې وو نن مسلمانانو هغې ته شاه کړې ده العياذبالله ثم العياذبالله .

راشئ وګورئ چه آيا اسلحه واقعی د مسجد د تقدس خلاف ده ؟

د صحاح ستہ روايات ستاسو په خدمت کښې پيش کيږی :

## مسجد کښې اسلحه

### مسجد نبوی کښې په اسلحې سره د جهاد مشق

(۵۵) قال الامام البخاری: باب اصحاب الحراب فی المسجد ثم قال: حدثنا (الی) عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت: لقد رایت رسول الله صلی الله علیه وسلم یوما علی باب حجرتی والحبشة یلعبون فی المسجد، وفی روایة: یلعبون بحرابهم (صحیح بخاری ص۶۰ ج۱)

«حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمائی چه یوه ورځ د حبشې خلقو مسجد نبوی کښې د نیزه بازئ (مشق) کولو حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ځما د حجرې په دروازې باندې ولاړ وو او هغوی ته ئې کتل»

قال القسطلانی: بخلاف ما ترجم له فیما سبق من لعب الحبشة بالحراب والدرق یوم العید للتدریب والادمان لاجل الجهاد مع الامن والایذاء. (ارشاد الساری ص۳۰۳ ج۲) (ومثله فی فتح الباری ص۴۰۰ ج۱)

(علامه قسطلانی شارح دصحیح بخاری فرمائی: «دا د جهاد تمرین او مشق وو»

### جمات ته د اسلحې دراوړلو آداب

(۵۶) عن بردة رضی الله تعالی عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال: من مر فی شیء من مساجدنا او اسواقنا بنبل فلیاخذ علی نصالها لا یعقر بکفه مسلما. (صحیح بخاری ص۶۷ ج۱)

«حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو: کوم سړې چه د غشی سره په جمات کښې داخل شو نو هغه ته پکار دی چه په تیلئ کښې ئې بند ساتی هسی نه چه څوك پرې زخمی کړی»

ددې نه دا مسئله راوځی چه مسجد ته یا یوې ډلې ته ټوپک وړلو والا به ګولئ په (چیمبر) یعنی جاجر کښې نه ساتی.

### اسلحه کښې جمات او غیرِجمات برابر دي

(۵۷) عن ابی موسی عن ابیه (الی) فقال (ای النبی صلی الله علیه وسلم): اذا دخلتم مساجد المسلمین واسواقهم اواسواق المسلمین ومساجدهم ومعکم من هذه النبل شیء فامسکوا بنصولها لا تصیبوا احدا من المسلمین فتؤذوه او تجرحوه. (مسند احمد ص۳۱۳ ج۴، سنن ابی داؤد ص۳۴۰ ج۲)

حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو: «چه کله جماتونو یا بازارونو ته غشی سره ځئ نو هغه په خپله تیلئ کښې بند ساتئ دې دپاره چه یو مسلمان ته زخم یا تکلیف ونه رسی»

فعلم ان المراد من المرور الدخول ولذا بوب ابوداود دبباب فی النبل یدخل به المسجد

قال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالى: فی الحدیث جواز ادخال المسجد السلاح. (فتح الباری ص۵۵۰ ج۱)

«حافظ ابن حجر رحمه الله تعالی فرمائی له دې نه ثابته شوه چه جمات ته اسلحه راوړل جائزدی»

## جمات کښې اسلحه خیرات کول

(۵۸) عن رسول الله صلی الله علیه وسلم: انه امر رجلا کان یتصدق بالنبل فی المسجد ان لا یمر بها الا وهو اخذ بنصولها (صحیح مسلم ص۳۲۸ ج۲)

«یو صحابی جمات کښې غشی صدقه کول حضوراکرم صلی الله علیه وسلم هغه ته اوفرمائیل چه ددې څوکې مضبوطې نیسه، دې دپاره چه څوک زخمی نه شی»

الله دې پخپل رحمت سره هغه وخت راولی چه د امتِ مسلمه د اسلحې سره دومره مینه پیدا شی چه د اسلحو خیرات کول شروع کړی (آمین).

## جمات کښې اسلحې سره خطبه ویل

(۵۹) باب الخطبة علی القوس

فاقمنا بها ایاما شهدنا فیها الجمعة مع رسول الله صلی الله علیه وسلم فقام متوکئا علی عصا اوقوس فحمدالله الخ (ابوداؤد ص۱۰۹ ج۱)

«حضوراکرم صلی الله علیه وسلم عصا یا کمان باندې ډډه لګولو سره خطبه ورکړه»

## اسلحې سره د اخترخطبه

(۶۰) عن البراء بن عازب رضی الله تعالی عنه قال: لما کان یوم الاضحی اتی النبی صلی الله علیه وسلم البقیع نعول قوسا فخطب علیها. (مصنف عبدالرزاق ص۲۸۷ ج۳)

حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په کمان باندې ډډه لګولوسره د اخترخطبه ورکړه»

## خطیب دې په لاس کښې اسلحه نیسی

(۶۱) قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی:

و(یخطب) الامام (بسیف فی بلدة فتحت به) کمکة (والالا) کالمدینة وفی الحاوی القدسی اذا فرغ المؤذنون قام الامام والسیف فی یساره وهو متکئ علیه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله فتحت به الخ) ای بالسیف لیریهم انها فتحت بالسیف فاذا

رجعتم عن الاسلام فذلك يأتي في ايدي المسلمين يقاتلونكم ترجعوا الى الاسلام ، (ردالمحتار ص ۱۳۳ ج ۳، الفتاوی التاتارخانية ص ۴۰ ج ۴، البحر الرائق ص ۱۳۸ ج ۵، الفتاوی الهندية ص ۲۸ ج ۲)

«کومه علاقه چه په جهاد سره فتح وی هغلته دې خطیب په لاس کښې توره نیولو سره خطبه ورکړی خلقو ته ددې ښودنې دپاره چه دا علاقه په تورې سره فتح کړې شوې ده ، که چرته خلق د اسلام نه اوړی نوهغه دې دا سوچ وکړی چه تراوسه پورې د مسلمانانو په لاسونوکښې دا تورې موجودې دی چه د اسلام نه د انحراف کولو والا دماغ به درست کړی»

## تنبیه

بعضې روایاتوکښې د حرم او د اختر په ورځ اسلحه اخستلوسره د تللو ممانعت وارد.شوې دې ، حافظ ابن حجر ، حافظ عینی ، علامه قسطلانی اونور شارحینِ حدیث رحمهم الله تعالی ددې دوه محملونه بیان کړی دی:

(۱) د زیات رش د وجه نه اسلحې سره زخم یا تکلیف رسیدلې شی دا وجه په خپله احادیثو کښې موجود ده.

(۲) د فخر او ریاء نیت:

لیکن که د دښمن خطره وی نو بلاکراهته جائز دی چنانچه امام بخاری رحمه الله تعالی فرمائی:

وقال الحسن: نهوا ان يحملوا السلاح يوم العيد الا ان يخافوا عدوا (صحيح البخاري ص ۱۳۲ ج ۱)

ومثله في المصنف عن الضحاك مرسلا (المصنف لعبد الرزاق ص ۲۸۹ ج ۳)

«حسن بصری او ضحاک رحمهما الله فرمائی چه مسلمانان د اختر په ورځ اسلحې اخستلوسره د تللو نه منع کړې شوی دی مگر دا چه د دښمن نه خطره وی (نود حفاظت په خاطر اسلحه وړل جائز دی)»

غرض داچه د خطرې په صورت کښې خو بهرحال جائز دی ، که خطره نه وی نو په دې شرط سره چه چاته د نقصان رسیدلو خطره نه وی ، چنانچه د اختر په ورځ حضوراکرم صلی الله علیه وسلم تشریف وړلو نو د دوی وړاندې به نیزه باز وو ، امام بخاری رحمه الله تعالی په دې حدیث باندې دا باب قائم کړې دې: باب حمل العنزة والحربة بين يدي الامام يوم العيد

«د اختر په ورځ د امام په وړاندې د نیزې اوچتولو سره د تللو بیان»

قال القسطلاني: النهي عند خوف التاذي به، (ارشاد الساري ص ۳۰ ج ۲)

یعنې ممانعت صرف د تکلیف د خطرې په نظر کښې نیولو سره دې ، اوهم دا محمل دې دهغه روایاتو چه په هغې کښې جمات کښې دننه توره د نیام نه د راویستلو او اسلحې لره په جمات

کښې د اخوا دیخوا کولو نه منع او فرمائیلې شوه .

## آیا جماتونو کښې خلفاءِ راشدینو رضی الله تعالی عنهم حفاظتی انتظامات کړی وو؟

**پنځم نمبر اعتراض** : جمات کښې حفاظتی انتظامات او مسلح پیره د خلفاءِ راشدینو رضی الله تعالی عنهم د تابعینو ، ائمه مجتهدینو اود سلف صالحینو د طریقې خلاف ده .

## جماتونوکښې د خلفاءِ راشدینو رضی الله تعالی عنهم حفاظتی تدابیر

**جواب** : دا وئیل چه حفاظتی بندوبست د سلفو د طریقې سره منصادم دی دا خبره د حدیث ، سیرت او تاریخ نه ناواقفیت باندې مبنی ده ، دا لاندې روایات ملاحظه کړئ .

## په خیرالقرون کښې جمات کښې دننه حفاظتی کمرې

### امیرالمؤمنین حضرت عثما ن رضی الله عنه او مسجدِ نبوی کښې حفاظتی مورچه

(۶۲) قال العلامة السهودی رحمه الله تعالی:

الفصل الخامس عشر فی المقصورة التی اتخذها عثمان رضی الله تعالی عنه فی المسجد وما کان من امرها بعده

روی ابن زبالة وابن شبة عن عبدالرحمان بن سعد عن اشیاخه ان اول من عمل المقصورة بلبن عثمان بن عفان وانه کانت فیه کوی ینظر الناس منها الی الامام وان عمربن عبدالعزیز هو الذی جعلها من ساج حین بنی المسجد،

روی الاول ایضا عن عیسی بن محمد بن السائب ومحمد بن عمرو بن مسلم بن السائب بن خباب وعمر بن عثمان بن عبدالرحمان ان عثمان بن عفان اول من وضع المقصورة من لبن واستعمل علیها السائب بن خباب وکان رزقه دینارین فی کل شهر فتوفی عن ثلاثة رجال مسلم وبکیر وعبدالرحمان فتواسوا فی الدینارین فجریا فی الدیوان علی ثلاثة منهم الی الیوم،

(تاریخ المدینة ص، ج للحافظ الثقة الامام ابن شبة ۱۷۳، ۲۶۲هجری)

قال ابن زبالة:

وقال مالک بن انس: لما استخلف عثمان بعد مقتل عمربن الخطاب عمل عثمان مقصورة من لبن فقام یصلی فیها للناس خوفا من الذی اصاب عمر ابن الخطاب رضی الله عنه وکانت صغیرة.

وروی یحیی هذا کله فی زیادة عثمان رضی الله تعالی عنه (وفاء الوفاء للسمهودی المتوفی ۹۱۱هجری ص ۱۱۱ ج ۲)

«متعددو روایاتو کښې دا منقول دی چه مسجد نبوی کښې حفاظتی کمره د ټولو نه وړاندې امیرالمؤمنین حضرت عثمان رضی الله عنه جوړه کړې وه چه دهغې نګرانی ماهانه د دوو دینارو په تنخوا باندې سائب بن خباب ته سپارلې شوې وه.

امام مالک رحمه الله تعالی فرمائی چه کله د حضرت عمر رضی الله تعالی عنه د شهادت نه پس حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه خلیفه جوړ شو نو دوی حفاظتی کمره جوړه کړه . دوی هم په هغې کښې خلقو ته مونځ ورکولو دهغه خطرې په نظر کښې نیول سره چه د امیرالمؤمنین حضرت عمررضی الله تعالی عنه د شهادت په صورت کښې راپیدا شوې وه. دامقصوره بالکل وړوکې وه»

## امیرالمؤمنین حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه او جمات کښې مسلح پیره او حفاظتی کمره

(۶۳) واما صاحب معاویة وهو البرك، فانه حمل علیه وهو خارج الی صلوة الفجر فی هذا الیوم فضربه بالسیف، وقیل: بخنجر مسموم، فجاءت الضربة فی ورکه فجرحت الیته، ومسك الخارجی فقتل وقد قال لمعاویة: اترکنی فانی ابشرك ببشارة، فقال: وما هی؟ فقال: ان اخی قد قتل فی هذا الیوم علی بن ابی طالب، قال: فلعله لم یقدر علیه، قال: بلی انه لاحرس معه فامر به فقتل (الی) ومن حینئذ عملت المقصورة فی المسجد الجامع وجعل الحرس حولها فی حال السجود فکان اول من اتخذها معاویة لهذه الحادثة (البدایة والنهایة ص ۳۳۰ ج ۷، والکامل لابن الاثیر ص ۳۹۳ ج ۳، شرح مسلم للنووی ص ۲۸۸ ج ۱)

وفی التاریخ الامم: وامر معاویة عند ذلك بالمقصورات وحرس اللیل وقیام الشرط علی راسه اذا سجد (الطبری ص ۱۱۵ ج ۶)

«چه کله دریو خارجیانو د حضرت علی ، حضرت عمروبن العاص ، حضرت معاویه رضی الله عنهم د شهید کولو منصوبه جوړه کړه . فیصله دا وشوه چه د سحر په وخت کښې څنګه دا حضرات مونځ دپاره راؤځی نو (نعوذبالله) خپله دا ناپاکه منصوبه، به سرته ورسوؤ . چنانچه حضرت علی رضی الله عنه کوفه کښې اود حضرت عمر رضی الله عنه نائب خارجة بن حذافه شهید کړئ شو . برک نامی خارجی د حضرت معاویه رضی الله عنه د قتل منصوبه پخپله ذمه واخستله حضرت معاویه رضی الله عنه د سحر مونځ دپاره را وه وتلو نو «برک» تورې یا خنجر سره دوی باندې حمله وکړه لیکن خارجی زرترزره ونیولې شو . حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه (تعزیراً) د قتل حکم ورکړو نو هغه وه وئیل . تاسو ما مه وژنئ خکه چه زه تاسو ته یو لویه خوشخبری اوروم هغه دا چه نن خما یو وروړ علی بن ابی طالب وه وژلو (چونکه د حضرت علی اودحضرت معاویه رضی الله

عنهما په مینځ کښې اختلافات وو نو دې احمق دا خیال وکړو چه شاید حضرت معاویه رضی الله عنه به په دې خبرې سره خوشحاله شی ) حضرت معاویه رضی الله عنه اوفرمائیل تاته څنګه پته ولګیدله چه ستا ملګرې کامیاب شوې دې ، هغه اووئیل ددې وجه نه چه علی رضی الله تعالی عنه سره څوک محافظ نه وی ، حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه په ځائ د خوشحاله کیدلو دهغه د قتل حکم ورکړو .

ددې نه پس جامع مسجد کښې د امام دپاره حفاظتی کمره جوړه کړې شوه د سجدې په حالت کښې د کمرې ګیرچاپیره او دحضرت معاویه رضی الله تعالی عنه د سر دپاسه مسلح پیره دار متعین کړې شو »

حافظ ابن کثیر ، علامه ابن الاثیر او نور مورخین فرمائی چه ددې حادثې نه پس حضرت معاویه رضی الله عنه د حفاظت دا لاندې انتظامات وکړل :

(۱) په شپه کښې پیره .

(۲) مسجد کښې حفاظتی کمره .

(۳) مسجد کښې د مونځ په دوران کښې مسلح محافظ د حفاظتی کمرې ګیرچاپیره متعین کړئ شو .

د طبری د روایت مطابق د سجدې په حالت کښې حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه باندې هم مسلح پیره دار متعین وو .

## مساجدو کښې حفاظتی کمرې په ټولو اسلامی ملکونو کښې جوړې کړئ شوې

د حدیثو د کتابونو اود فقهې او تاریخ نه دا امرثابت دې چه حفاظتی کمره صرف حضرت معاویه رضی الله عنه پورې محدوده نه وه بلکه دوی حاکمانو او امراؤ او امامانو ته په مساجدو کښې د حفاظتی کمرې جوړولو حکم وکړو .

## حفاظتی کمرو کښې خلفاءِ راشدینو ، صحابه کرامو او لویو تابعینو او فقهاؤ مونځونه وکړل

(۲۴) - (۱) امیرالمؤمنین حضرت عثمان بن عفان رضی الله تعالی عنه

(۲) امیرالمؤمنین حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه

(۳) امیرالمؤمنین حضرت حسن رضی الله تعالی عنه

(۴) امیرالمؤمنین حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله تعالی

(۵) رئیس المفسرین حضرت عبد الله بن عباس رضی الله تعالی عنهما
(۶) خادم خاتم المرسلین حضرت انس بن مالک رضی الله تعالی عنه
(۷) حضرت حسین رضی الله تعالی عنه
(۹) حضرت قاسم بن محمدبن یزید رضی الله تعالی عنه
(۱۰) حضرت نافع رحمه الله (۱۱) حضرت سالم رحمه الله (۱۲) حضرت علی بن الحسین رحمه الله (۱۳) حضرت ابو القاسم رحمه الله (۱۴) حضرت معمر رحمه الله

**(صحیح مسلم صفحه ۲۸۸ جلد۱، السنن الکبری للبیهقی صفحه ۱۹۱ جلد ۲، باب الصلوة فی المقصورة المصنف لعبدالرزاق ص ۴۱۴ ج۲، باب الصلوة فی المقصورة المصنف لابن ابی شیبة ص ۴۹ ج۲)**

## حفاظتی کمرې جوړیدلو نه پس د فقهاؤ د اول صف په تعین کښې اختلاف

(۲۵) اول صف کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اود تابعینو رحمهم الله په اتفاق سره حفاظتی کمرې جوړې کړې شو او عوام الناس مقصوره کښې د داخلیدلو نه حصار کړې شول نواوس فقهاءِ کرامو کښې دا بحث روان دې چه آیا اول صف دې هم مقصورې لره وګرځولې شی اوکه مقصورې سره متصل رومبنی صف لره ، حقیقت کښې صفِ اول خو هم مقصوره وو په دې وجه باندې عامة المسلمین همیشه د صفِ اول د ثواب نه محرومه پاتې کیدل ، ددې وجه نه بعضې فقهاؤ رحمهم الله مقصوره سره متصل صف لره صفِ اول وګرځولو ، (رد المحتار ص ۵۲۹ جلد ۱، البحرالرائق ص ۱۵۷ جلد ۲، فتح الباری ص ۱۷۴ جلد ۲، المصنف عبدالرزاق ص ۴۱۵ جلد ۲، عمدة القاری ص ۲۵۵ جلد ۵، فتح الملهم ص۲۷ جلد ۲)

**ولیعلم ان ما ذکرنا من الاتفاق علی اتخاذ المقصورات فی الجوامع لا ینافی ما نقل من بعض اهل العلم من کراهة بناء المقصورات فان مثل هذا الخلاف القلیل لا یقدح فی الاتفاق لاسیما اذا جری تعامل الائمة القدیمة فی جمیع امصار المسلمین فی عهد الصحابة والقرون المشهود لها بالخیر، ولا علینا لو ندعی الاجماع علی ذلک.**

**واما کون عثمان رضی الله تعالی عنه اول من بنی المقصورة فانه وان کان خلاف المشهور ولکن التطبیق ورفع التعارض لیس بمتعسر علی المتفکر،           (عبدالرحیم)**

## حضرت عمر رضی الله تعالی عنه محافظ ولې نه دې ساتلې ؟

**شپږم نمبر اعتراض:**

امیر المؤمنین حضرت عمر رضی الله عنه د اسلام په خلفاؤ کښې د ټولو نه زیات هوښیار ، مدبر او عقل مند وو ، دوی هم دخپل ځان سره یو محافظ ونه ساتلو په شپه کښې د مدینې منورې په کوڅو کښې به ئې یواځې پیره کوله ، ځنګل یواځې او تنها وځی اود مسکینانو اود یتیمانانو

خبر اخلی ، که چیرته د دفاع او حفاظت مسئله دومره اهمه وای نو د حضرت عمررضی الله تعالی عنه په شان مدبرِ سلطنت به ضرور ددې اهتمام کړې وای ، حد خو دا دې چه کله غلام ابولؤلؤ ده ته اختار ورکړو او دوی پوهه هم شو چه هغه ماته د قتل اختار راکړې ده نو بیا هم دوی لره د حفاظت د اهتمام خیال په فکر کښې رانغې ؟

## د حضرت عمر فاروق رضی الله تعالی عنه په شا ن مدبر سړې د حفاظتی تدابیرو نه څنګه غافله پاتې کیدلې شی ؟

**جواب**:

تیرو شوؤ پاڼرو کښې تاسو په تفصیل سره اووئیل چه حضورصلی الله علیه وسلم باندې پیره کیدله ، صحابه کرامو رضی الله عنهم به پخپله پیره کوله او حضوراکرم صلی الله علیه وسلم به د پیرې ترغیب اودهغې حکم کولو ، د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د پیره دارئ شرف په خپله امیرالمؤمنین حضرت عمررضی الله عنه ته خصوصیت سره حاصل شوې وه ، په دې سره دا خبره ښه واضحه او ثابته شوه چه د خطرې د وجه نه پیره نه خلافِ توکل ده اونه خلافِ سنت . اودحضرت عمر رضی الله عنه دخپل ځان سره مسلحه پیره نه ساتل ددې وجه نه وو چه مدینه طیبه کښې امیرالمؤمنین ته څه خطره نه وه .

چه کله خطره نه وی نو پیره لازمه نه ده ، حضوراکرم صلی الله علیه وسلم هم هروخت او همیشه پیره دار نه دې ساتلې څنګه چه د احادیثو اود تیرشوؤ آثارو نه ښکاره ده .

**سؤال** : اوس پاتې شو دا سؤال چه دحضرت عمر رضی الله تعالی عنه په شان عظیم انسان ته څه خطره ولې نه وه چه هرکله د ټولې دنیا کافران ، یهود اونصاری ، مجوس اومشرکین د دوی مخالف وو ؟

**جواب** : مدینة الرسول صلی الله علیه وسلم کښې د کافرانو نه خطره خو د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په آخره زمانه کښې ختمه شوې وه چه کله د اسلام بې مثاله فوج صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم د رحمة للعالمین صلی الله علیه وسلم په قیادت کښې او د دوی په قمندانئ کښې د مدینې یهودیانو لره د ګازرو اومولو په شان کټ کړی وو او باقی لره ئې رسوا کولو سره د خیبر نه ویستلی وو . مسلسل د جهاد اوقتال په برکت سره د اسلام سرحدونه ورځ په ورځ زیاتیدل . په مدینه طیبه کښې یا دهغې نزدې خواوشا ، نه یو کافر باقی پاتې شو اونه یو منافق . ټوله مدینه د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم نه ډکه وه په داسې حالت کښې د خطرې څه کار دې ؟

سره ددې نه حضرت عمررضی الله عنه د مدینې په حدودو کښې د بالغ او مراهق (قریب البلوغ) ذمی کافر په داخلیدلو باندې سخته پابندی لګولې وه . مشهور محدث ، ثقه اومعتبر مورخ امام

ابن شبه رحمه الله فرمائی:

حدثنا حجاج بن نضير قال حدثنا قرة بن خالد عن محمد بن سيرين ان عمر رضی الله عنه كان يقول لا تدخلوا المدينة من السبى الا الوصفاء. (تاريخ المدينة المنورة ص۸۸۸ ج۳)

وعن الزهرى قال كان عمر رضی الله تعالى عنه لا يأذن لسبى بقل وجهه فى دخول المدينة (تاريخ المدينة المنورة ص۸۸۶ ج۳)

عن نافع عن ابن عمر رضی الله تعالى عنه قال كان عمر رضی الله تعالى عنه يكتب الى امراء الجيوش لا تجلبوا علينا من العلوج احدا جرت عليه الموسى. (تاريخ المدينة المنورة ص۸۹۲ ج۳)

«حضرت عمررضی الله عنه د اسلام د فوځونو قوماندانانو اود اسلامی ښارونو والیانو ته دا فرمان او حکم جاری کړې وؤ چه»: «مدینې طرف ته یو بالغ او مراهق قیدی لره هم مه رالیږئ. البته هغه وینځه چه هغه مراهقه شوې نه وی هغه رالیږلې شئ»

## د سرکاری فرمان وجه

دا هدایت او فرمان د احتیاطی تدبیر په طور باندې وو. هم دا وجه ده چه کله د حضرت مغیرة بن شعبه اود حضرت عباس رضی الله عنهما په سفارش سره یو مجوسی غلام ابولؤلؤ لره په صنعت اوحرفت کښې د مهارت په بنیاد باندې مدینې ته را ولیږل شو او هغه حضرت عمررضی الله عنه لره د سحرپه مانځه کښې مسجدنبوی کښې دننه په خنجر اووهلو. دوئ زخمی شول او دې کورته راوستلې شو نو پوښتنه یې وکړه چه: «زه چا وهلې یم؟»

خلقو اووئیل چه: «د حضرت مغیره رضی الله عنه غلام ابولؤلؤ».

دوی ارشاد اوفرمائیلو: الم اقل لكم لا تجلبوا الينا من العلوج احدا فغلبتمونى

(تاريخ المدينة المنورة ص۹۰۳ ج۳)

عمل اصحابك كنت اريد ان لا يدخلها علج من السبى فغلبتمونى. (تاريخ المدينة المنورة ص۹۰۲ ج۳)

هذا عملك وعمل اصحابك والله لقد كنت انهاكم ان تجلبوا الينا منهم احدا. (تاريخ المدينة المنورة ص۹۰۰ ج۳)

«ما تاسې دهغه کافرانو مدینې ته د داخلولو نه همیشه بند کړی وئ لیکن تاسو (دمصلحت ښکارکیدلو سره) ما باندې غالبه شوئ. دا واقعه ستاسو د وجه نه وشوه اوکه نه نو زه خو پخپله رایه باندې پوخ ووم»

په دې سره ثابته شوه چه د حضرت عمررضی الله تعالی عنه فرمان او حکم د حفاظتی تدابیر په طور باندې وو

علاوه ددې نه د حضرت عمررضی الله عنه رعب او دبدبه په ټولو باندې داسې ناسته وه چه پخپله د دوی په خیال کښې هم په پوره جزیرهٔ عرب کښې چاته امیرالمؤمنین باندې د حملې تصور قدرې هم نه شو کیدلې.

امیرالمؤمنین ددې خیالاتو اظهار په هغه وخت کښې وکړو چه کله خلقو تحقیق کولوسره اووئیل چه حمله «ابولؤلؤ» غلام کړې ده.

دوی اوفرمائیل: الله اکبر ما کانت العرب لتقتلنی (تاریخ المدینة المنورة ص۹۰۲ ج۳)

«الله اکبر (ما هم سوچ کولو چه) عربو کښې خو چاته هم ځما د وژلو جرات نه وو»

**سوال**: اوس پاتې شو دا اشکال چه کله ابولؤلؤ منحوس غلام د امیرالمؤمنین حضرت عمر رضی الله عنه په خدمت کښې دحضرت مغیره رضی الله عنه شکایت وکړو چه ځما آقا ځما نه ځما د استطاعت نه زیات کار اخلی تاسو هغوی ته اووایئ چه له ما سره تخفیف وکړی، حضرت عمررضی الله عنه اوفرمائیل تاسو ډیرڅه ګټلې شئ همت کوه او د الله نه ویریږه او واوره آیا ته به ځما دپاره یو چکئ (د غنمو میده کولو آله) جوړه کړې؟ غلام اووئیل: «زه به تاسو دپاره یوه داسې چکئ جوړه کړم چه خلقو کښې به ډیرې مودې پورې دهغې خبرې کیږی»

حضرت عمر رضی الله عنه پوهه شو او وې فرمائیل: «دې خبیث ماته د وژلو اختار راکړو»

دوی په هغې باندې هم څه حفاظتی انتظامات ونه فرمائیل؟

**جواب**: دا سړې یواځې وو دده دپاره د حضرت عمر رضی الله عنه په شان بهادر ته دیو معاون او محافظ ضرورت نه وو، ددې وجه نه نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم ددې اختار باوجود هغه قابلِ اعتناء ونه ګڼلو، هسې خو حضرت عمررضی الله عنه به هم خالی لاس نه وو د دوی توره او د دوی دُره ضرب خو المثل دی.

همدارنګه دوی دا خیال کړې وو چه هغه اشارةً کوم اختار ورکړې دې دا دهغه وقتی جذبات دی فی الواقع به دهغه ارادې دپاره څه عملی اقدام نه کوی یا یی نه شی کولې او که نه نو حضرت عمر رضی الله عنه چه معمولی معمولی غلطیانو باندې لویو لویو ته تنبیه ورکوی هغه کافر غلام ته به ئې سخت تعزیر ورکړې وؤ کم ازکم مدینې نه دهغه د اخراج فیصله خوبه ئې یقینی کوله بالخصوص چه هرکله د دوی په رایه کښې دیو کافر په مدینه کښې وجود د احتیاط خلاف وو.

په همدې روایت کښې لاندې الفاظ د پاسنی مضمون تصدیق کوی:

قال لو قتلت احدا بسوء الظن لقتلت هذا العلج (تاریخ المدینة المنورة ص۸۹۳ ج۳)

## حکیم الامة حضرت تهانوی رحمه الله تعالی حفاظتی تدبیر ولې ونه کړو

**اوم نمبر اعتراض:**

بعضې حضراتو د حکیم الامة حضرت تهانوی رحمه الله تعالی هغه معمول لره بنیاد جوړولو سره اشکال کړې دې چه کله دوی ته د «تحریک خلافت» په زمانه کښې د قتل اختارونه ورکړې شوی وو نو دوی د حفاظت څه بندوبست ونه فرمائیلو .

## که خصومت دینی وی او خصم کافر وی نو دفاع واجبه ده

## بیا ن القرآن کښې ددې تصریح

**جواب**: چه هرکله آیاتِ قرآنیه ، احادیثِ نبویه ، معمولاتِ نبویه ، تعاملِ خلفاءِ راشدین اجماع اوقیاس سره د حفاظتی تدابیرو حکم ښه واضحه شو نو اوس که چیرته مونږ ته په سلف صالحینو کښې دیو بزرګ عمل په ظاهره دهغې په خلاف معلوم شی نو په هغه متفق علیه شرعی حکم کښې د شک کولو په ځائ باید دهغه دغه عمل بنیاد ته ورسوو او د هغې صحیح توجیه پیدا کړو .

حکیم الامت حضرت تهانوی رحمه الله تعالی د حفاظت انتظام ولې ونه کړو ؟ ددې جواب پوهیدلو دپاره ړومبئ دا مسئله په ذهن کښې کینوئ چه کله د مسلمانانو د دوو جماعتونو په مابین په یوه مسئله شرعیه کښې اجتهادی اختلاف وی نو احتیاطی تدابیر لازم نه دی .

حکیم الامت ته اختار ورکولو والا کافر نه وؤ بلکه مسلمانان وو چه د تحریکِ خلافت حامی وو ، په جانبینو کښې اختلاف اجتهادی وو .

دواړه جانبه محق اومحقق علماؤ وو او دواړه طرفته شرعی دلائل وؤ ، ددې وجه نه دوی د حفاظت اهتمام ونه فرمائیلو ، ددې وجه څخه نه چه کافران، ملاحده اوزنادقه دې په اهلِ حق علماؤ باندې حمله وکړی نو دوی د دفاع ، مقابلې او مقاتلې قائل نه وو ، دوی بیان القرآن کښې په واضحه طور باندې دفاع واجب ګرځولې ده او لیکی چه:

«که چیرته څوک سړې هغه لره وژل وغواړی او دا سړې په قوی قرائنو سره دا وګڼي چه زه بغیر ددې نه چه هغه لره اوونژنم بچ کیدلې نه شم نو وژل جائز دی اوکه چرته په هغه جنګ کښې دې اووژلې شو نو شهید به وی او که چیرته دې مدافعت ونه کړی بلکه بغیر د څه کولو نه اووژلې شی نو بیا هم جائز دی » ، البته چیرته چه انتقام او مدافعت کښې اسلامی مصلحت وی واجب دی (بیان القرآن ص ۳۷۳ جلد ۱)

د حضرت حکیم الامت په دې تحریرسره د زیرِ نظر مسئلې ډیره واضحه فیصله وشوه .

« په هغه حالاتوکښې د دفاعی تدابیرو اختیارول واجب دی ،او په هغې کښې هیڅ قسمه

غفلت جائز نه دې » البته د دوی د مذکورې رائې مطابق خصومت دنیویه کښې دفاع واجبه نه ده . د بعضې نورو حضراتو نه هم دا قول منقول دې . مګر دهغې په مقابله کښې خالص خصومت دنیویه کښې هم د وجوبِ دفاع فیصله په لاندې وجوهو سره راجحه ده :

(۱) دا فیصله د څلورمې صدئ لوئ جلیل القدر امام ابوبکر جصاص رحمه الله تعالی متوفی ۳۷۰ هجری مدلل بیان کړې ده . او دلائل نقلیه اوعقلیه سره یې دهغې د خلاف ډېر پرزور تردید . نکیرِشدید او سخت مذمت کړې دې ، تردې پورې چه هغې لره ئې د دین او دنیا د ټولو فساداتو او د تباهئ او بربادئ جرړه ګرځولې دې . دا قول یې بعضې حشویه او ظاهریه کښې جاهلانو طرف ته منسوب کړې دې . اود ابوداؤد اود ترمذی د روایت نه علاوه دهغوی نورهم د ډېرو مستدلاتو مکمل ابطال یې کړې دې (احکام القرآن ص ۳۱ . ۳۴ . ۴۰۱ تا ۴۰۳ ج ۲)

(۲) د عدمِ وجوب په قائلینو کښې چرته هم د «حشویه او جاهلانو » نه سوا د بل چا نوم په نظر نه راځی . «جهال » کیدلو نه علاوه مجهول هم دی . بعضې کتابونوکښې امام شافعی رحمه الله تعالی نه عدمِ وجوب منقول دې چه خلافِ راجح دې . د دوی په نزد هم وجوب راجح دې . الاان یکون الصائل مسلما محترما ای محقون الدم وتارك صلوة عنده لیس بمحقون الدم (تحفة المحتاج بهامش حاشیة الشروانی ص۱۸۳ ج۹) والمسلم المحترم لا یقدم علی قتل مسلم الا لشبهة اجتهادیة ویؤیده ما استدل به من صنیع امیر المؤمنین عثمان رضی الله عنه،

(۳) د امام جصاص رحمه الله تعالی نه علاوه دتفسیر . حدیث اود فقهې نور ائمه عظام او عمائد اسلام رحمهم الله تعالی د ټولوپه وجوب باندې اجماع ده . البته بعضو په مال سره د ترکِ دفاع اجازت ورکړې دې . د ائمه عظام رحمهم الله تعالی په فیصلې سره د تطبیق صورت دا کیدلې شی چه هغې لره د دفاع په صورت کښې د قتلِ نفس ظنِ غالب باندې محمول کړې شی . او دا شرط خو بهرحال لازم او متفق علیه دې چه عدمِ دفاع سره د فساقواود فجارو دفساداتو د طریقوخطره نه وی . کما هو معقول ومنصوص فی الاصول ومجمع علیه بلا خلاف احد من ذوی العقول،

دا بحث محض د مسئلې د تنقیح اود اتمامِ فائدې دپاره لیکلې شوې دې اوکه نه نو د عداوتِ دینیه په صورت کښې حضرت حکیم الامت رحمه الله هم د وجوبِ دفاع تصریح فرمائیلې ده او داهم پورته واضحه کړې شوی دی چه د دوی اختلاف د علماءِ حق په مابین کښې د اجتهادی اختلاف په شان وؤ چه په هغې کښې بالاتفاق دفاع واجب نه ده بلکه عدم دفاع افضله ده . کما صرح به الامام الجصاص وغیره من ائمة الاسلام رحمهم الله تعالی وحملوا مستدلات الحشویة وجهال الظاهریة علیه.

علاوه ددې نه د حفاظتی تدابیرو اهمیت د حالاتو اود خطراتو د نوعیت مطابق وی مثلاً : وجه دخصومت ، د اختار ورکولو والا شخصیت ، چاته چه اختار ورکړې شوې دې دهغه شخصیت ، د اختار د وصول ذریعه ، د اختار د مضمون نوعیت ، زمان ، مکان ، ماحوال وغیره کوائف .

بیا که چیرته د اختار په ځائ د سازش یو افواه وی نودهغې حیثیت نور هم کم دې لکه د حضرت حکیم الامت رحمه الله په یو دوکاندار باندې تیریدل وشو نو هغه د سازش د دې منصوبې خبر ورکړو ، که چیرته دا یوه اهمه خبره وې نو هغه به یې پخپله را رسولې وه .

ددې دورِ فساد نه یو څو کاله وړاندې پورې مذهبی او سیاسی اختلافات نهایتِ عروج ته د رسیدلونه باوجود پخپل مینځ کښې د قتل او قتال څه تصور قدرې هم نه وو ، تقریری او تحریری مناظرې ، ستېجونو باندې د نورو مذاهبو پوره تردید او پوره تنقید او په هغې باندې د سختو الفاظو استعمال ، بلکه بعضې وختونوکښې هم په یو ستېج باندې د مختلفو مذاهبو د پیشواګانو دخپل مذهب په تایید او د نورو مذاهبو په تردید کښې بیانات ، یو بل باندې اعتراضونه ، اوریدلو والا هم دهغه مختلف مذاهبو خلق په مزې سره اوری دیو بل په خلاف لاسونه پرکوی خندا ګانې کوی ، ددې باوجود په خپل مینځ کښې داسې غاړې ورکوی ګویا چه سکه وروڼه دی یا ژور دوستان دی ، غاړې یوبل ته ورکوی ، په دنیوی معاملاتو کښې پخپل مینځ کښې تعاون کوی ، دیو بل په دعوتونو او تقریباتو کښې شاملیږی ، مذاهبوکښې د شدید اختلاف باوجود چرته هم اوکله هم د قتل اوقتال یو واقعه مخې ته نده راغلې ، بالفرض که چیرته شوې وی نو هغه به ډیره شاذ اونادره وی .

دا خو د اسلام اوکفر په مابین کښې دمقابلو او مناظرو د رواداریٔ عالَم وو ، د حضرت حکیم الامت رحمه الله تعالی اختلاف خو د علماءِ دین سره وو ، دا ټول اهلِ حق علماؤ وو ، پخپل مینځ کښې یی د محبت ، عظمت او احترام مضبوطې رشتې وې ، کانګریسی هندوانو هم دعامو مسلمانانو سره د رواداریٔ اود علماءِ اسلام احترام کولو ، په داسې حالاتوکښې دیو سازش د افواه په بنیاد باندې د حفاظتی تدابیرو ضرورت نه وو ، که چرته واقعةً خطره تسلیمه هم کړې شی نو جواب هم هغه دې چه د مسلمانانو پخپل مینځ کښې د اجتهادی اختلاف په صورت کښې دفاع واجب نه ده .

## د مونځ کوونکو تلاشی آیا د الله د کور نه د بندولو مترادف نده ؟

### اتم نمبر اعتراض :

جمات د الله کور دې چه په هغې کښې هرمسلمان بغیر د څه بندیز نه د داخلیدلو حق لری ، تلاشئ لره خلق توهین ګنې ، ددې ویرې نه مونځ کوونکی دهغه جمات په طرف نه ځی نو آیا

تالاشی اخستل دلاندی آیت د ذکر شوی وعید مصداق نه دې؟

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا ٱسْمُهُۥ وَسَعَىٰ فِى خَرَابِهَآ﴾ (۲: ۱۱۴)

«دهغه سړی نه لوئ ظالم بل څوک کیدلې شی چه خلقو لره په جماتونو کښې د الله الله کولو نه حصاروی او دجماتونو د ورانولو کوشش کوی»

## محراب کښې مسلح محافظ ولې د تشویش باعث دې؟

**نهم نمبر اعتراض:**

محراب کښې محافظ سره خشوع او خضوع کښې خلل پیدا کیږی، دچا طرف ته مخ کولو سره مونځ کول مکروه هم دی.

## د تلاشئ باوجود محراب کښې مسلح محافظ ولې ساتلې شی؟

**لسم نمبر اعتراض:**

چه کله یو ځلې تلاشی واخستلې شوه نواوس محراب کښې د مسلح محافظ څه ضرورت دې؟ آیا دا بې له کومې وجه نه خلقو لره مرعوبه کول او دهشت خورول او ریاء کاری نه ده؟

## آیا دومره حفاظتی انتظامات بې ضرورته او اسراف نه دې؟

**یوولسم نمبر اعتراض:**

د دومره محافظینو ساتلو څه ضرورت دې؟ په نورو ځایونوکښې چیرته چه خطر وی اود حفاظت بندوبست کیږی هغلته هم داسې ډیر اوشدید انتظامات نه وی نو دا آیا اسراف نه دې؟

## دارالافتاء والارشاد کښې د حفاظتی انتظاماتو د مختلفو مراحلو مفصله واقعه

**جواب:** لوستونکو حضراتو! د پورته څلورو اعتراضاتو د جواب نه وړاندې دا خبره ښه په ذهن کښې کینوئ چه کله جناب عالی ته د نقصان رسولو دپاره کفر دیو بیرونی حکومت په مدد باندې یلغار شروع کړو نو د جناب عالی دامت برکاتهم خداماو مجاهدینو د دوی نه د حفاظتی تدابیرو اود مسلحې پیرې اجازت اوغوښتلو، چه کله د مجاهدینو اصرار ډیر زیات شو نو جناب عالی دخپلو زرینو اصولو مطابق د لاندې امورو اهتمام اوفرمائیلو:

(۱) د دفاع اوحفاظتی تدابیرو شرعاً حدود اوشروط څه دی؟ دا مسئله یې د دارالافتاء والارشاد دمفتیانو حضراتو د تحقیق مجلس ته وړاندې کړه، حضرت په خپله هم اجتماعی او

انفرادي تحقيق کولو ، علاوه ددې نه پخپلو شاگردانو او متعلقينو کښې نورو اهلِ افتاء اوعلماؤ ته يې د قرآن او سنتو په رڼا کښې ددې مسئلې د حدودو او د قيودو دحل تلاش کولو حکم اوفرمائيلو

هغه ټولو مفتيانو حضراتو دفاع لره شرعاً اوعقلاً نه صرف بهتره بلکه لازم او واجب اوگرځوله.

(۲) چه کله مسئله په پوره طريقې سره ښکاره شوه نو جناب عالي پخپلو متعلقينو اوخدامو کښې دجنگی امورو ماهرينو ، د افغانستان دجهاد او دکشمير د جهاد د گوريلا (پياده) مجاهدينو قائدين اود پاکستان د فوج ايس ايس جی کمانډوز افسرانو لره د دفاعی اقداماتو ترتيب اولائحۀ عمل جوړولو سره د پيش کولو اجازت ورکړو.

هغه ماهرينو دترتيب او نظام جوړولو په وخت کښې په لاندې امورو باندې اجتماعی او انفرادي غور وکړو ؟

(۱) دښمن څوک دې ؟ (۲) فرد دې اوکه ډله ؟ (۳) دهغوی تعلق ديوجماعت سره دې اوکه هغوی د مختلفو جماعتونو سره وابسته دی ؟ (۴) سرکاری دی ياغيرسرکاری ؟ (۵) د عدوات وجه څه ده ؟ (۶) تراوسه پورې څه واقعات شوی دی اوکه نه؟ (۷) محله کښې څوک څوک خلق قيام پذير دی؟ (۸) وړاندې وروستو اخوا ديخوا متصل کورونه د چا دی ؟ (۹) د جناب محترم په فتاوی خطاباتو ، بياناتو او مواعظو کښې کومو کومو بې دينه جماعتونو باندې رد کړې شوې دې؟ چه کله هغوی ته ټول معلومات ورکړې شول نو هغوی د دارالافتاء والارشاد د محلِ وقوع اود گيرچاپيره کورونو جائزه واخستله او پخپل مينځ کښې يې د مشورې نه پس مسلح پيره ، تلاشی ، مورچو او محراب کښې مسلح محافظ اودځه نورو انتظاماتو هم چه دهغې پټول هم د دفاع حصه ده لائحه عمل جوړولو سره په خدمت کښې پيش کړه .

(۳) دهغوی ټولو کوششونو او فيصله شوی تجاويزو لره حضرت مکرر د دارالافتاء والارشاد مفتيانو حضراتوپه مجلس کښې مختلفو وختونوکښې څو څو ځلې وړاندې کړه ، مجلس کښې هغه ټول احتمالات هم زيرغور راغلل چه د اعتراضاتو په صورت کښې دخلقو د طرف نه کيدل خصوصاً محراب کښې مونځ کوونکو طرف ته مخ کولو سره د مسلح محافظ اودريدلو مسئله يې ښه او پوره وځيړله .

ټول تجاويز او تدابير شرعاً درست او جائز کيدلو باوجود دلته د انتظاميه بعضې افرادو دهغه کمانډرانو او کمانډوز ماهرينو بعضې تجاويزو ته غيرضروری اووئيل نو هغوی جواب ورکړو چه «تاسو خو دا وئيلې شئ چه دا تجويز زمونږ د طاقت نه بهر دې يا ديو عالم شرعی په اعتبارسره يو تدبير غلط وگرځوی ليکن هغه ته غيرضروری ، زائد ، بې فائدې او غلو وئيل ستاسو کار نه دې اوکه نه نو دابه داسې شی لکه يو جاهل ديو مفتی په فتویٰ کښې ترميم شروع کړی يا د فتوی

کومې حصې لره بې فائدې وګرځوی »

حضرت دهغه ټولو کوششونو او تحقیق نه پس په شوو تجویزونو کښې څه ډیر داسې تجاویز ترک هم اوفرمائیل چه پخپله دهغه ماهرینو په خیال کښې ډیرزیات اهم او لازم نه وو.

## کامل اطمینا ن

هسې خو بحمدالله هغه تدابیرو باندې شرعی اعتبار سره هرقسمه اطمینان وو لیکن هغه وخت د اطمینان ، شرح صدر انتهاء پاتې نه شوه چه کله دحضرت معاویه رضی الله عنه په حفاظتی انتظاماتو کښې د مسلح محافظینو په محراب کښې اودریدل اود حضرت معاویه رضی الله عنه د سجدې په وخت د دوی سر ته اودریدل د نظر نه تیرشو ، دهغې تفصیل په عنوان «حضراتِ خلفاءِ راشدین رضی الله عنهم او جماتونو کښې حفاظتی انتظامات » کښې تیرشوې دې.

## د اهلِ بصیرت دپاره د احتیاط سبق

پاسنې تفصیل په نظرکښې نیولو سره هرخاوند د شعور ددې ښه ادراک کولې شی چه دهغه حفاظتی انتظاماتو لائحه عمل جوړولو کښې د عقل اونقل ، تفقه اوتحقیق ، د فهم اوفراست تقاضو څومره لحاظ کړې شوې دې ، «ان فی ذلک لعبرة لاولی الابصار »

« یقیناً په دې کښې بصیرت والو ته لوئ سبق ملاویږی »

سره ددې نه د بعضې خلقو د طرف نه د اعتراضاتو انبار شروع شو چه تراوسه پورې جاری دې.

## اعتراضات څه د حیرانتیا خیز نه دې

او اعتراض څه د حیرانتیا خبره نه ده ، په دنیا کښې هرڅیز خواه که هرڅومره ښه ، عمده او لازم او واجب وی ، چیرته چه دهغې غوښتونکی او قبلولو والا په کثیرتعداد کښې وی هغلته په هغې کښې د چینجې لټولو والا هم کمې نه وی ،اود کتاب الله په شان لاجواب کتاب اود حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په شان بې مثاله اوخلاصهٔ کائنات اود کائناتو د مقصد مقدس ، هستئ لره هم معاف نه کړې شو.

مګر حیرت اوافسوس په هغه معترضینو باندې دې چه پخپله ځان ته دیندار ونیلوسره ډیر خوشحالیږی او دینی معاشرې کښې واقعی هغوی باحیثیته اود دین ..... مشهور دی ، چه کله هغوی عقل اونقل او فهم لره هیرولوسره د مروت اود اخلاقو ټولو تقاضو لره شاه ته غورځولوسره اعتراضات وکړل.

## د تالاشئ مسئله

چه کله قرآن اوحدیث ، تعامل اواجماع او عقل اوقیاس سره ثابته شوه چه حفاظتی او دفاعی انتظامات واجب دی اود امورِ حرب ماهرمجاهدین علماء او دینداراهلِ فن تلاشی او محراب کښې مسلح محافظ او عمده انتظاماتو لره لازم گرځوی نو دا اعتراض چه د تلاشئ د وجه نه خلق جمات ته نه راځی ، که چرته دا درست وی نوناقابل اعتبار ندې ،د داسې خلقو په ذاتی انانیت او د علماؤ سره په دښمنئ باندې د اسلام یو عظیم مجاهد او مفتی اعظم ، جمات ، ادارې او خپل مونځ کوؤنکی قربانی کولې نه شی ، دین او علم او د اهلِ علم جان اوعزت لره نه شی داغ کولې.

## هوایی میدان باندې تالاشی

کوم خلق چه تالاشی لره خپل توهین گنی هغوئ ته وایو چه بیشکه خپل توهین مه کوئ ، د جماتونو الحمدلله کمې نشته لیکن دهغه خلقو نه چه د تلاشئ د وجه نه جماته ته نه راځی څوک دا پوښتنه کولې شی چه هغوی هوایی میدان باندې په کوم مخ سره په رضااورغبت تلاشی ورکوی؟ آیادالله دکوراوداسلام دیوعظیم مفتی اوعالمِ شریعت قدراواهمیت د هوایی میدان نه هم کم دې ؟

هغه معترضینو ته پکار دی چه کله هوایی میدان باندې حاکمان تالاشی شروع کړی نو دهغه خائ نه دې واپس راشی .

## حرمین شریفین کښې تلاشی

حرمین شریفین کښې هم تالاشی اخلی، که چرته تالاشی دنفرت څیز وی نو هغلته هم حرم شریف کښې د اخلیدلو نه انکار کوئ اود حرم څوکیدارانو ته دا آیت ولولئ : **ومن اظلم ممن منع مساجد الله ان یذکر فیها اسمه وسعی فی خرابها** (۲: ۱۱٤)

«اود هغه سړی نه څوک لوئ ظالم دې چه خلقو لره په جماتونو کښې د الله الله کولو نه حصاروی او هغې لره د ورانولو کوشش کوی»

بنده ته په ۱۴۰۷هجری کښې د حج کولو سعادت حاصل شو ، هغه کال په هرمونځ کښې د هرحاجی اود مونځ کوونکی باقاعده تالاشی اخستل کیدله ، د حرم شریف د عقیدت اومحبت د وجه نه ټولو خلقو نهایتِ خوشحالئ سره تالاشی ورکوله او هغه عمل لره ئې ښه گڼلو او ښه صفت ئې کولو . معلومه شوه چه د اعتراضاتو بنیاد تلاشی نه ده څه بل څه دی ، اوس هغه کوم غل دې چه په زړه کښې پټ شوې دې ؟ دهغه د تعیین نورو ته ضرورت نشته اودچا په زړه کښې چه دې هغه ته معلومه ده .

څنگه چه په حرمین شریفین کښې تالاشی د آیتِ مذکوره منافی نه ده اود مسجدِ نبوی د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم د دور نه په شپه کښې بندیدل د آیت خلاف نه دی ، د ټولې دنیا د

جماتونو د مخصوص وختونو نه سوا قلف کول د آيت په مذکور وعيد کښې داخل نه دی . همدغه شان که چيرته په يو جمات کښې د شرپسندو اود دښمنانِ اسلام نه د علماؤ ، طلباؤ او په خپله د مونځ کؤونکو د حفاظت دپاره تالاشی اخستلې کيږی نو دا هم د آيت خلاف نه دی .

که چيرته د لګې غوندې پوهې نه کار واخستلې شی نو د تالاشئ په عمل باندې د خوشحالئ اظهار کول پکار دی ، په دې کښې د انسانانو اود املاکو حفاظت ، د جمات د تقدس بقاء ، د دښمنانو سازشونو لره ناکامه جوړولو او په هغې کښې تعاون ، د علماؤ قدر اومنزلت پيژندلو او کفر باندې رعب اچولو سره دخپل ځان په باره کښې د اطمينان ورکولو مظاهره هم ده .

الحمدلله ! بې شميره حضرات اهلِ علم اود دنيا مختلفې شعبې د ژوند سره تعلق لرلو والا خلقو دهغه اقداماتو خيرمقدم کړې دې او د نورو دپاره ئې قابلِ رشک اولائقِ تقليد وګرځولو .

همدارنګه په دې تفصيل سره دا هم معلومه شوه چه محافظ زياتيدلواو تلاشی او محراب کښې د مسلحو محافظينو په اجتماع باندې اعتراض کول ناواقفيت باندې مبنی اود ماهرينو په رائې باندې خپلې رائې لره ترجيح ورکول دی .

همدارنګه دا هم چه حفاظتی تدابيرو کښې يوځائ لره په دويم ځائ باندې قياس کيدلې نه شی د امور حرب د ماهرينو مطابق د لاندينو د امورو د وجه نه تدبير مختلف کيدلې شی :

(۱) اختلافِ زمان

(۲) اختلافِ مکان

(۳) د دښمنَ طاقتور او کمزوری کيدل چه موقوف دی د دښمن په حيثيت باندې يعنې داچه انفرادی دی يا اجتماعی ، سرکارئ دی يا غيرسرکاری ، دينی دی يا دنيوی ، ماهر دی يا غيرماهر

(۴) د مهلک څيزونو په ايجاداتو کښې ورځ په ورځ اضافه

(۵) بناء عداوت

(۶) محل وقوع

(۷) د داخلی او خارجی حالاتو سازګار کيدل

(۸) استطاعت

## اشکال :

بعضې حضراتو ته دا اشکال شوې دې چه محراب کښې مسلح محافظ لره د حضرت معاويه رضی الله تعالی عنه په عمل باندې قياس کيدلې نه شی هغه خو اميرالمؤمنين وو ، ښکاره ده چه د اميرالمؤمنين احکام د نورو نه په معاملاتو کښې مختلف وی .

## جواب

احادیثو اود فقهې او تاریخ نه دا ثابته ده چه جمات کښې دننه حفاظتی کمرې په ټولو اسلامی ممالکو کښې جوړې شوی دی چه په هغې سره ثابته.شوه چه دا د امیرالمؤمنین څه خپل خصوصیت نه وو ، اوکه چرته څوک د اشکال داسې تقریر وکړی چه دهغې ثبوت صرف د حکامو دپاره دې لهذا غیرحکامو لره په حکامو باندې قیاس کول درست نه دی نو د هغې جواب دادې چه حکامو د ممکنه خطراتو په نظر کښې نیولو سره د مسجد جماعت ترک کولو په ځائ په مسجد کښې دننه حفاظتی اقدامات دې دپاره کړی وو چه امامت ، خطابت اود جمات انتظامات دهغوی په حواله وو ، نن سبا خو حکامو د دین او ایمان نه غفلت اختیارکړې دې ، اوس د امامت ، خطابت اود جمات د انتظاماتو والی او وارث علماء دی ، ددې وجه نه علماء دې په کورنو کښې د بند پاتې کیدلو په ځائ د سلف صحالحینو په طرز جمات کښې دننه حفاظتی اقدامات وکړی ، اصلاً خو دا فریضه عامو مسلمانانوته راجع کیږی لیکن که چرته هغوی د غفلت مظاهره وکړی نو په خپله علماؤ باندې لازم ده چه هغوی احتیاطی تدابیر اختیار کړی او ظاهری اسبابو سره دې کفر ته څه د خوشحالئ موقع ورنه کړی .

## که خطر وی نو په کور کښې مونځ ولې نه ادا کوی ؟

**دولسم نمبر اعتراض** :

که چیرته حضرت مفتی صاحب ته واقعةً خطره وی نو خپل ځان سره دې مسلح محافظینو لره په جمات کښې راوستلوسره مونځ کوونکو لره د پریشانه کولو په ځائ په کور کښې مونځ ولې نه کوی ؟ آخر مرض کښې خو هم مونځ په کور کښې کوی .

## د خطرې د وجه نه په کور کښې بندیدل او کیناستل خلافِ معقول هم دی او منقول هم

**جواب** : دا امر معقول هم دې او مجرب اومشاهد هم اود ماهرینو فیصله هم ده چه دښمن د مطلوب سړی اهلِ خانه ، دهغه متعلقین اودهغه جائیداد او مالونو لره هم نشانه جوړه وی ، د دښمن هدف دمطلوب سړی محض وژلو پورې مخصوص ګڼل خطرناک دی ، ددې وجه نه دحضرت یا د بل عالم دین که د دښمنانو نه ویره وی نو په کور کښې د نظربند پاتې کیدلو فارموله د عقل ، تجربې اود ماهرینو د فیصلې نه خلاف ده .

همدغه شان دا رائې د نقل سره هم متصادم ده ، د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اودصحابو رضی الله عنهم اود نورو سلف صالحینو سنت د حدیثو په کتابونو اود سیرت په کتابونو او د

تاریخ په کتابونو کښې منقول دی چه د بیمارئ د وجه نه هغوی د جمات ترک خو اوفرمائیلو مگر د دښمنانو د طرف نه ممکنه خطراتو په نظر کښې نیولوسره که هغوی د همیشه دپاره په کورونو کښې بند شوی وی داسې هیڅ کله نه دی شوی.

حضوراکرم صلی الله علیه وسلم باندې سفراوحضر کښې د پیرې روایات څه تیرشوی دی. او څه د رسالې په آخری حصې کښې راتلونکی دی، دوی صلی الله علیه وسلم حفاظتی انتظامات او اقدامات وکړل، په کور کښې ئې نظربندی اختیار نه کړه، علاوه ددې نه د مرض په ورځو کښې دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه لره خلیفه جوړولوسره پخپله په کورکښې مونځ ادا کولو واقعه د امیرالمؤمنین حضرت عثمان، امیرالمؤمنین حضرت معاویه، امیرالمؤمنین حضرت حسن رضی الله عنهم اود امیرالمؤمنین حضرت عمربن عبدالعزیزرحمه الله په وړاندې وه، ظاهری اعتبار سره څنګه چه حفاظت په کور کښې دننه کیدلې شی هم هغسې بهر ممکن نه دی، د رسول صلی الله علیه وسلم صحابی اود امیرالمؤمنین کیدلو په وجه دهغه حضراتو د نفوسِ مقدسه قیمت د تصور نه پورته دې، سره ددې نه هغه حضراتو دفاعی اقدامات وکړل او د مسجد جماعت ئې ترک نه کړو.

دا رائې ورکولو والا خلق پخپل ځان کښې خواه هرڅومره مخلص وی مگر دهغې په عواقبو باندې که غور وکړې شی نو دا د اسلامی دښمنئ لاره هواروی، ځکه چه څنګه په جمات کښې خطره ده مدرسه او مجلس اواجتماع کښې هم ده، په دې ټولو ځایونوکښې بهادر مسلمانان وی چه اسلحې ته د کتلو طاقت نه لری نودهغه رائې نتیجه سوا ددې نه بله څه راؤځی چه حق وئیلو والا علماءِ کرام یا خو دې د حق نه منع شی اوکه نه نو د حقې وینا په سزا کښې دې هغوی لره د همیشه دپاره نظر بند کړئې شی د حق آواز لره دې همیشه دپاره بند کړې شی او مسلمانانو لره دې دحق اوریدلو نه همیشه دپاره محرومه کړې شی.

## مسجد د عالم دپاره پارلمان دې

د علماؤ دپاره مسجد د وعظ کولو او دعوامو د دینی رهنمائې دپاره اصل ځائ دې په دې اعتبار سره جمات د عالم دین دپاره پارلمان دې اوعالم د هغه صدر او رئیس دې، آیا څوک باشعوره سړې دا وئیلې شی چه وزیراعظم یا صدر به د خطراتو د وجه نه همیشه د پارلمان نه غائب اوغیرحاضر کیږی.

## محاسبه وکړئ

کوم خلق چه علماءِ حق ته پخپل خیال کښې دا د خیر مشوره ورکوی هغوئ دې په دې باندې هم فکر وکړی چه د اسلام په دښمنانو کښې خو دومره جرأت دې چه هغوی د یو ملک له سرحد نه په

تیریدلو سره د لرې ځایٔ نه د راتللو مشقت برداشت کوی اود کفر دپاره دخپل ځان قربانولو سره علماؤ باندې حمله کوی او خپل ځان ته دیندار ویونکی د بهادرئ دا نمونې چه د علماؤ د حفاظت فریضه ادا کولو اود دښمن دغاښونو ماتولو په ځایٔ بالعکس علماؤ لره په کور کښې د نظر بند کولو مشوره ورکوی ، العیاذبالله ، شعر :

چوں کفر از کعبہ برخیزد کجا ماند مسلمانی

## یوه لمحۀ فکر

ډیر تعجب او افسوس دادې چه کفارخو دخپلو زندیقانو او ملحدینو د لرې لرې ځیز حفاظت کوی اودهغوی په بدن باندې هیڅ ځیز نه پریږدی ، د سلمان رشدی په شان منحوس اوملعون حفاظت یورپ او امریکه کوی او د دین دعویدار او علماء خپل قیمتی نفوسو لره چه په دې وخت کښې زمونږ دپاره اصل سرمایه ده مړه کړی، اوکه چرته څوک آیاتِ قرانیه ، احادیثِ نبویه ، نصوصِ فقهیه اوسنتِ نبویه اود خلفاءِ راشدینو د تعامل په تعمیل کښې دیو هستئ د حفاظت فریضه ادا کړی چه هغه د ټولو فتنو د ختمولودپاره خپل ځان وقف کړې وی او بغیر د ویرې نه د لومة لائم «النذیرالعریان» تصویرجوړیدلوسره د دښمنانِ اسلام اود دښمنانِ صحابه اود اکفرالکفار اواخبث الخبثاء شیعه ګانو کفر یی مشهورکړې وی چه د هغوی فتواګانو د ایران په شان مضبوط او د کفر د قلا بنیادونه خوزولی وی چه دهغوی وروستو د ایران حکومت خپل فوځیان ورپسې پریښودلی وی ، د داسې هستئ د حفاظت کولو لره خلاف توکل ، خلافِ سنت اوخلافِ مروت او هغې لره اسراف او ریاکاری ګرځول قهرِ الٰهی ته دعوت ورکول دی ، شعر

غیرت کا جنازہ ہے ذرا دھوم سے نکلے

**د توکل منتر پخوونکو !**

## یو نظر خپل طرف ته هم وکړئ !

نورو ته د توکل درس ورکولو والا خودې لږ دخپلې دنیا د حفاظت د اسبابو جائزه واخلئ :

د کور بالکل دننه ته خانو کښې تیلئ تیلئ هغه هم داسې تالو والا چه په بله چابی بالکل خلاصیږی ، بیا د کمرو ، ته خانو اود کورونو تالې جدا ، دهغې باوجود د زړه رپیدل اود ډاکې خیالات ، بیا د بینکونو رُخ ، سودخورو سره تعاون بیا حسبِ منشاحفاظت نه کیدلو باندې د شپو خوب حرام ، د ورځې وآرام نه وی ، د کورونو په دیوالونو باندې د شیشو اوږدو اوږدو ځوکو والا ټکړې ، د صحن مخې ته د اوسپنې مضبوطې جنګلې ، د کمرو په دروازو باندې لوټې لوټې کنډې بندشونه او تالې ، دروازو باندې څوکیدار ، چت باندې پیره دار ، د سحرجماعت ترکولو باندې

دوام او اصرار ، شپه کښې که د ټيلی فون ټالئ وغرېږي نو د رسيور اوچتولو نه انکار ، که غلطئ سره ئې اوچت کړی او وئيلو والا خپل نه وی نو د دروغو اظهار چه صاحب د ملک نه بهر دې
دا حالات د هيچا نه پټ پناه نه دی ، ليکن چه کله د يو عالم دين ، وارثِ نبی او ماهرِ شريعت اود حق وئيلو والا عالم حفاظت اودغه د قيمتی نفس د دفاع معامله وی نو هغلته توکل په ياد راځی او سنت هم ، ختنې (سنتی) او خلافِ شرع رسوماتو باندې په لاکهونو روپو خرچ کولو والا ته اسراف هم په نظر نه راځی او رياء کاری هم .
دا خلق د دين محب نه دی بلکه د دين دښمنان دی ، د علماؤ سره د محبت په دعوی کښې رښتينی نه دی دروغژن دی څوک چه دا غواړی چه علماءِ کرام د دښمنانِ اسلام دپاره خوندوره غذا جوړېږی ، دا ظالم غواړی چه علماء د مارغانو په شان وی دې دپاره چه هر سړې هغوی لره په سهولت سره ښکار کړی او کافر خلق د خپل هرخوب تعبيرو کړې شی ، الله تعالی دې داسې خلقو ته هدايت وکړی او که نه نو ، شعر

*نکل جا اے زمیں ناپید انهیں اے آسماں کر دے*

## دعبرت سبق

د اسلام د دښمنانو اود فتنه گرو په جماتونو باندې په پټه او ښکاره حملې او تخريبی کارروايانې د روزمره معمول جوړ شوې دې ، په جماتونو کښې دننه کيدلو سره په موښځ کوونکو باندې فائرنگ ، بارودی دهماکې ، په خنجراو چاقوباندې دزخمی کولو واقعات ، هنگامې ، بدحال، د جماتونو په دروازو باندې صحابه کرامو رضی الله عنهم ته کنځلې کول او هغوی باندې لعن طعن کول ، علماءِ حق ته بدې ردې وئيل ، د جماتونو د امامانو تښتول ، د علماءِ دين وژل ، دهغوی د ډيرو خيرلو حادثات روزانه د پاکستان په ټولو اخباراتو او رسالو کښې سرخيانو سره چاپ کيږی .
لاهورکښې د «مسجدِ احسان» واقعه ، د فيصل آباد د «مسجدِ صديق اکبر» واقعه د گوجرانوالې «محمدی مسجد» باندې دهشت گردی ، د جهنگ ، ليه اود ملتان اودغې د خواو شا څه ډير جماتونه ، کراچئ کښې د ناگن چورنگی ، اسکاوټ کالونی ، کورنگی ، او نگی ټاون ، عزيزآباد ، بنوری ټاؤن ، گرومندراو د نمائش په جماتونو کښې دهشت گردی د ظلم واقعات اوس د چا نه پټ نه دی ، د يونيم يا دوو کالو په لړه موده کښې د پاکستان څومره جماتونو لره د دهشت گردئ نشانه جوړه کړې شوه ، څومره موښځ کوونکو لره په وينو کښې ليت پيت کړې شو ، څومره موښځ کوونکی د لاسونو ، خپو ، سترگو اود بدن د نورو قيمتی اعضاؤ نه محرومه شو ، څومره علماء قتل کړې شو ، که چرته څوک د هغه ټولو فهرست جوړ کړی نو دا شمير د دښمنانِ اسلام د

طرف نه زمونږ دپاره لوئ مهلک پیغام او مستقبل کښې زمونږ د تباهئ اعلان دې اود بربادئ پیش گوئی ده.

الحمدلله ! بعضې معترضینو دهغه عبرتناکو حوادثو نه عبرت حاصل کړې دې او خپل اعتراضات ئې په معذرت او ندامت سره واپس اخستلی دی.

په دې سلسله کښې د بیرون سندهـ نه بعضې خطوط هم را رسیدلی دی، یو صاحب ولیکل چه ماته مسلح پیره باندې لوئ اشکال وو لیکن زمونږ نزدې په یو جمات باندې دښمنانِ اسلام حمله وکړه چه په هغې کښې په درجنونو مونځ کوونکی شهیدان، زخمیان او معذور شول اوس څما اشکال ختم شوې دې.

همداسې یو عالم چه حضرت سره اصلاحی تعلق لری لیکی: دارالافتاء والارشاد کښې مسلح پیره باندې دلته دیندارطبقې ته ډیر تشویش وو او لوئ اشکالات وو، دهغوی اعتراضاتو زه پریشانه کړې ووم اوس فی الحال مختلفو ښارونوکښې په جماتونو باندې د حملو سنگینو واقعاتو زمونږ سترگې خلاصې کړې دی اوس ټول وائی چه: «واقعی دحضرت مفتی صاحب په ځائ کښې د پیرې معمول نهایتِ صحیح بلکه بې انتهاء لازم او ضروری دې، بیشکه د الله والو نظر ډیر جور وی، مونږ ټولو ته دفاعی انتظامات کول پکار دی»

که چرته د چا په یو یو اشکال باندې په درجنونو مسلمانان قربانی ورکړی اود قرآن اود حدیثو نه د ناواقفیت په وجه باندې پیدا کیدلو والا د یویو اعتراض جواب څوک د مسلمانانو په وینه، د جماتونو د تقدس په پیمال کولو او دین باندې حملو کښې لټول شروع کړی نو غور وکړئ دهغه نه زیات ظالم څوک کیدلې شی؟

سره ددې نه دا خلق هم غنیمت دی چه اوس خو پوهه شول اوپه اور کښې له غورځیدلو نه را حصار او ټینگ خو شول، شعر

وہ بھی گرا نہیں جو گرا پھر سنبھل گیا

لیکن په خیر سره دلته داسې خلق هم دی چه د دې ټولو حقائقو، واقعاتو او حوادثو باوجود هم د بیداریدلو نوم نه اخلی او هغوی پخپل ضد باندې قائم او دائم دی.

## مشهور متل هم وه شرمیدلو

په یوه زمانه کښې دا متل مشهور وو چه هندو د خطرې نه یو هفته وړاندې بیداریږی مسلمان عینِ وخت باندې او سکهـ یوه هفته وروسته. لیکن د نن مسلمان د ذلت اود بې حسئ په هغه اعلی مرتبه باندې ولاړ دې چه په هغې کښې د بیدارئ نوم او نشان هم نشته، دا هفته څه د میاشتو او کلونو نه پس هم نه بیداریږی. (اللهم اهد قومی فانهم لا یعلمون)

## آیا اسلحه مونځ کوونکو لره د دهشت ورکولو دپاره ده ؟

**دیارلسم نمبر اعتراض**:

د اسلحې اهمیت پخپل ځائ لیکن دا هم حقیقت دې چه خلق د اسحلې تصور سره هم ویریږی ، په داسې حالت کښې د جمات اود جمات ګیرچاپیره د مسلح محافظو ډله اود هغوی په لاسونو او د بدن په مختلفو حصو باندې مختلف قسمه اسلحه خوفناک منظر پیش کوی چه په هغې سره د مونځ کوونکو خشوع او خضوع غرق او امن تباه کیږی .

## اسلحه د الله په دښمنانو باندې د دهشت اچولو دپاره ده

**جواب** : مسلح پیرې باندې څومره اعتراضات چه تراوسه پورې شوی دی دا اعتراض قدرمشترک طور باندې په ټولو کښې موجود وو یعنې د اسحلې نه خوف .

تیروشوو پاڼو کښې هغه آیت لیکلې شوې دې چه په هغې کښې د اسلام د دښمنانو نه د دفاع دپاره د استطاعت مطابق د بهتر نه بهتره اسلحه د تیار ساتلو حکم ورکړې شوې دې ، په هغې کښې الله تعالی د اسلحې حکمت اومصلحت اودهغې فائده دا بیان فرمائیلې ده چه : ﴿تُرْهِبُونَ بِهِۦ عَدُوَّ ٱللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ﴾ .

((دهغې په ذریعې سره تاسو د الله دښمنان هم وه ویروئ او خپل دښمنان هم)).

کوم مسلمان ورور چه اسلحې لره لیدلوسره ویریږی هغوی ته درخواست دې چه دا اسلحه دهغوی د حفاظت اود مسلمانانو دښمنانو لره د ویرولو دپاره ده ، هغه حالت بدل کړئ کوم چه په قرآن کښې الله تعالی د دښمنانو ښودلې دې .

داسې خلق دې په تنهائې کښې په پوره دیانتدارئ او اخلاص سره د خپل دې حالت جائزه واخلی او په ښه سکون سره دې سوچ وکړی :

کوم څیز چه الله تعالی خپلو دښمنانو لره د ویرولو دپاره پیدا کړې وو نن مونږ پخپله دهغې نه ولې وه ویریږو ؟

د کوم امت قرآن چه اسلحې ساتلو ته فرض او نه ساتلو ته جرم او هلاکت وئیلې دې نن هم د هغه قرآن منلو والو ته دهغه اسلحې نه ویره کیږی ؟

د کوم امت د نبی بعثت چه اسلحې سره شوې دې او هغې لره دهغه د معاش ذریعه وګرځولې شوه نن هم دهغه نبی د محبت دعویدار د اسلحې نه خائف ولې دی؟

په کوم شریعت کښې چه اسلحې سره د محبت حکم وی او دې شریعت لره راوړلو والا رسول دخپلې تورې په لاستی کښې چاندی لګولوسره د اسلحې سره د محبت او عشق مظاهره کړې وی

او هغه شریعت د اسلحې په زور باندې اخستلې شوی مالونه د کافرانو لره د ټولو مالونو نه پاکیزه ګرځولی وی نن هم دهغه شریعت تابعدارو ته د اسلحې نه ولې ویره کیږی ؟

د کومې اسلحې چه د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم په نزد د اهمیت دا حال وی چه د دوی په ذاتی ملکیت کښې یولس یولس تورې ، اته اته نیزې ، اوه اوه زغرې دی ، شپږ شپږ د غشو ویشتلو لیندې ، دوه دوه تیردان ، څلور څلور ډهالونه متعددې جنګی ټوپئ ګانې ، څه ډیر اوښان او قچر وو اود صحیح بخاری د روایت مطابق دوی صلی الله علیه وسلم نه په ترکه کښې سوا د اسلحې اود جنګ د آلاتو نه څه بل څه نه وو پاتی شوی نن د حبِ نبی دعویدار هغه میراث نبوی لره د کتلو طاقت ولې نه لری؟

کومې اسلحې چه زمونږ صحابه کرام رضی الله عنهم د ورځې دخپل بدن څخه نه جدا کوی اونه یی د شپې جدا کوی او هغوی هغې لره دخپل ځان او د دینِ اسلام عزت ګڼلو ، نن حبِ صحابه لره د ایمان جزء ګرځولو والا مدعیان اسلحې ته دیو نظر کتلو طاقت ولې نه لری ؟

چه دهغوی آباؤواجدادو د اسلحې په ذریعې جزیره عرب لره د کفر اوشرک نه پاکه کړه د خیبراود بنو قریظه یهودیانو ته ئې د همیشه دپاره د ذلت امیل اچولو سره دهغه ځائ نه بهر کړل ، د فارس کافرانو لره ئې ختم کړل اود روم او شام غاښونه ئې مات کړل ، نن هم دهغوی اولاد اسلحې ته کتلو سره ولې لړزیږی ؟

دکومې اسلحې خیرات به چه په مسجدِ نبوی کښې کیدلو اودهغې جنګی مشق ته مسجدِ نبوی کښې د نبوت د نګاه شرف حاصل وو نن هم دهغې اسلحې په تصورسره د مسلمانانو اودس ولې ماتیږی ؟

لله ! فکر وکړئ آیا تاسو د نبی السیف (تورې والا پیغمبر) امتی وئیلو مخ لرئ اوکه نه ؟ که چرته ستاسو د مسواک اود عمامې د سنت سره محبت وی نو د اسلحې په شان فرض سره ولې محبت نه کوئ ؟ دا چرته خوږ خوږ هپ او تریخ تریخ توکلو » والا معامله خو نه ده ؟

## صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د اسلحې نه ولې ویره نه کیدله ؟

الغرض د تیرشوو پاڼړو نه په ښه طریقه معلومه شوه چه اسلحه د ویرې څیز نه دې د مینې څیز دې بیا مونږ ته ولې له هغې نه ویره کیږی ؟

یو څو ورځې وړاندې یو صاحب تشریف راوړو چه دینی اعتبار سره لوئې رتبې والا دې ، هغه په اسلحې او په پیرې باندې سخت اشکالات وکړل ، بنده هغه ته د تیرشوو پاڼړو خلاصه بیان کړه نو هغه اووئیل : « ټول اشکالات ختم شو لیکن محراب کښې مسلح محافظ کښې تشویش دې او دهشت خوروی لله ! دا په څه طریقه ختم کړئ »

بنده عرض وکړو : ((چه هرکله یو څیز په قرآن ، حدیث ، فقه ، اجماع او تعامل سره ثابت شو اود حضرت معاویه رضی الله عنه په عمل سره باقاعده دهغې تصدیق وشو نو اوس څما په خیال کښې باید دهغه تشویش او خوف علاج وکړئ شی نه دا چه اسلحې ته د الله پامان اووئیلې شی ، آخر صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د اسلحې نه دهشت ولې نه کیدلو ؟))

په دې باندې هغه پاسیدلو سره په یو خاص انداز سره څما په اوږو باندې لاس وهلو سره اووئیل : ((بس ټیک ده یار))

## اسلحې نه د خوف علاج

داسې مسلمان ورور چه دخپل غفلت ، غلطو معلوماتو او بعضې د دین د ټهیکدارانو د غلط پروپاګند نه متاثره کیدلو سره اسلحې لره نعوذبالله قابلِ نفرت او عار ګڼي اود اسلحې نه د خوف او بزدلئ مهلک مرض دهغوی په زړونوکښې پیدا شوهغوی دې آئنده نسل ته د بزدلئ اود خوف سبق ورکولو په ځائ د بهادرئ نه کار واخلی او ددې حالت اصلاح دې وکړی ، لیکن ددې طریقه دا نه ده چه د اسلحې نه سترګې پټې کړی یا هغه وسوزولې شی ، که په سر کښې سپږې وشی نو سپږې ویستلې کیږی کهوپړئ نه ماتولې کیږی ، که جامې ګنده شی نو ګنده والې وینځلې کیږی کپړې نه غورزولې کیږی ، لهذا هغه ویرې لره د زړه نه اوباسئ او دهغې دپاره د لاندینو امورو اهتمام وکړئ :

(۱) تراوسه پورې چه تاسو د اسلحې نه د نفرت او د خوف کوم اظهار وکړو دوه رکعته مونځ کولو سره دهغه ګناه نه توبه اوباسئ .

(۲) د بزدلئ نه د پناه غوښتلو معمول جوړ کړئ ، حضوراکرم صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم (د انتهائی بهادرئ باوجود) د بزدلئ نه داسې پناه غوښتله څنګه چه د کفر او شرک نه یې پناه غوښتله (صحیح بخاری ص ۳۹۲جلد ۱)

(۳) د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اود صحابه کرامو رضی الله عنهم د جنګونو واقعات باقاعده مطالعه کښې ساتئ دهغې دپاره لاندې کتابونه ډیر مناسب دی :

(۱) ((سیرة المصطفٰی)) جلددوم تالیف شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد ادریس کاندهلوی رحمه الله تعالی .

(۲) د ملک شام عظیم الشان فتوحات اود صحابه کرامو رضی الله عنهم مجاهدانه کارنامې)) (تالیف حضرت مولانا فضل محمد صاحب مدظلهم استاذ حدیث جامعة العلوم الاسلامی بنوری ټاؤن کراچی)

(۳) حکایات صحابه (تالیف حضرت اقدس شیخ الحدیث قدس سره

(۴) په رومبنی فرصت کښې د جهاد تربیت (ټریننګ) حاصل کړئ، د اهلِ حق نمائنده عظیم متحده قوت ((حرکة الانصار)) معسکر (ټریننګ سنټر) لره غنیمت وګڼړئ.

(۵) د پاکستان هر کلی وال ته د قانون مطابق د اسلحې ساتلو اجازت دې، هغه قانون لره نعمتِ عظمیٰ وګڼړئ او حسبِ استطاعت اسلحه ساتئ، خلافِ قانون یو څیز هم مه ساتئ.

(۶) اوس وخت جهاد فرض دې او کشمیر اوتاجکستان، بوسنیا وغیره په ډیرو ځایونو کښې اهلِ حق له کفرسره میدانِ جنګ کښې دی، کوم خلق چه دهغه شرعی جهاد قیادت کوی دهغوی سره رابطه کولوسره جهاد کښې حصه واخلئ او یو څلې بیا دا سوچ وکړئ چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم خو اوه ویشت څلې بنفس نفیس جهاد ته تللې ؤ نو تاسو خو کم ازکم یوځل لاړشئ، بیا د جهاد د قائدینو خوښه ده که مونږ جهاد ته لیږی اوکه د جنګیدلو په ځائ د جهاد څه بل کار راته په حواله کوی.

اُٹھ باندھ کمر کیا ڈرتا ہے پھر دیکھ خدا کیا کرتا ہے

په ټوله دنیا کښې کافر د کفر دپاره جنګیږی

د ﴿وَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ ٱلطَّٰغُوتِ﴾

((کافر د کفر په خاطر جنګیږی))

مطابق کفرسره د وفادارئ ثبوت ورکوی، اهلِ ایمان دې هم اوچت شی او د دین دپاره دې مسلح قتال کولوسره د ((الذین یقاتلون فی سبیل الله)) ((اهل ایمان د الله په لاره کښې جنګیږی)) مصداق جوړیدلوسره د کفر برترئ لره دې ختمه کړی.

## د لنګ د وینځلو اجرت

افسوس زمونږ حالت د هندو کنجوس نه هم بدترشوې دې، هندو په بزدلئ کښې ضرب المثل وو وائی چه کله انګریزانو په هندوستان باندې غاصبانه قبضه وکړه نو متحد هندوستان ټول قومونه په فوج کښې داخل کړل، هندوان ئې په فوج کښې وانه خستل، په هغې باندې یو ((هندو چودری)) دخپل قوم سره د شوې نا انصافئ خلاف احتجاج وکړو، انګریز افسر اووئیل: ((ستاسو هندو قوم نهایتِ بزدل دې ددې وجه نه مونږ کوم یو هندو لره په فوج کښې نه اخلو))

هندو چودری جواب ورکړو: ((صاحب! تاسو ته غلطه اطلاع درکړې شوې ده، په بهادرئ کښې مونږ د یو قوم نه هم وروستو نه یو))

انګریز افسر اووئیل: ((ټیک ده بیا مونږ امتحان اخلو یو هندو راوله))

چوهدری په هندوانو کښې د ټولو نه بهادر هندو ښه پوهه کړو او دې وئیلو سره ئې راوستلو چه

« ګوره ویرېږه مه ، د ټول قوم د عزت مسئله ده »
افسر مخامخ کېنولو اویوفوجي ته ئې اووئیل : « احتیاط سره دده ټوپئ په نشانه کښې واخله »
فوجي نهایت صحیح نشانه لګولو سره ټوپئ په ګولئ سره والوزوله او هندو پخپل ځائ صحیح ناست وو . افسر حیران شو او چوهدري ډېر خوشحاله شو چه زمونږ د قوم سره د فخر نه اوچت کار وشو .

افسر اووئیل : « ده ته د ټوپئ قیمت ورکړئ او آئنده ده لره په فوج کښې واخلئ »
هندو په رپاری او ژړا سره اووئیل : « حضور د لنګ د وینځلو اجرت هم راکړه »
د ویرې نه د کم بخت اودس ماتې وتلې وؤ .
لیکن د نن سبا مسلمانان د اسلحې نه ویره او هغه قابلِ نفرت ګڼلو د وجه نه داسې شول چه د لنګ وینځلو اجرت غوښتلو والا بزدل هندو هم نن په ټول هندوستان کښې د مسلمانانو قتلِ عام کوی ، بې ګناه ماشومان ذبح کوی ، د معصومو جینکو عزت خرابوی ، جماتونه شهیدان کوی ، قرآن سوزوی . د تاریخ هغه بدترین ظلم کوی چه نه آسمان کتلې دې اونه زمکې ، آیا دهغه حالاتو او حقائقو نه څوک عبرت حاصلولو والا شته ؟

ظالم ابھی ہے فرصتِ توبہ نہ دیر کر وہ بھی گرا نہیں جو گرا پھر سنبھل گیا

## د بزدلئ علاج جهاد دې

دلته د حضرت د زیارت او ملاقات دپاره د جهادِ افغانستان اوکشمیر مجاهدین د دنیا د مختلفو ملکونو غازیان اود زمانې مشهور قوماندانان تشریف راوړی ، په هغوی کښې د عامو بهادرو مسلمانانو نه واخله تر طلباؤ ، علماؤ او مشایخو ټولو پورې موجود وی او بحمدالله ټول کال د اسلام ددې بهادرو قطار وی ، دا حضرات ددې ځائ د پیرې ، اسلحې او د تلاشئ نظام په لیدلو سره ډېر خوشحالیږی .
ددې دورعظیم ګوریلا کماندر مشهور فاتح نامور عالم دین حضرت مولانا جلال الدین حقانی دامت برکاتهم د شلو قوماندانانو اود علماءِ کرامو سره تشریف راوړو نو ډېر خوشحاله شو او وې فرمائیل : « ماته دلته پیره او اسلحه لیدلو سره داسې ښکاری لکه چه زه په سرزمینِ شهداء او ارضِ جهادِ افغانستان کښې یم »
او بیا یې اوفرمائیل : « ماته دلته ډېره خوشحالی محسوسه شوه »
د « حرکة الانصار » مرکزی نائب امیراول حضرت مولانا فضل الرحمان خلیل شکریه ادا کړلو سره ئې اوفرمائیل : « ماته ئې داسې ځائ وښودلو چه دا دهغه په مابانديې احسان دې »
یو مشهورد عربو عالم چه په جهاد کښې ئې ډېر خلې حصه اخستلې ده او د یو عرب ملک په

یو وزارت کښې اعلیٰ عهدې باندې هم فائز دې دلته پیره ، اسلحه او تلاشئ کتلو سره اوفرمائیل «دلته ماته هم هغه خوند محسوسیږی چه په جهاد کښې دننه په محاذ باندې وی»

ددې ځائ د بعضې محافظینو په باره کښې ئې دا پیشن گوئی هم وکړه چه : «ماته د دوی د مخونو نه د شهادت خوشبو محسوسیږی»

یو څو ورځې وړاندې د «حرکة الانصار» یو سعودی عربی مجاهد د حضرت زیارت ته تشریف راوړو نو اسلحه او پیرې کتلو سره ئې بې اختیاره اووئیل : **((والله هكذا ينبغي للعلماء ما قام الدين الا بالسلاح ولا يقوم ولن يقوم الا بالسلاح))**

«په الله قسم علماؤ ته هم داسې پکار دی ، دین نه وړاندې د اسلحې نه بغیر مستحکم شوې دې اونه اوس کیدلې شی او نه به آئنده مستحکم شی»

فاتح خوست اوگردیز د حضرت مولانا جلال الدین حقانی ممتاز قوماندان او مشهور عالم د جامعه منبع الجهاد خوست مهتمم حضرت مولانا عبدالحلیم صاحب مدظلهم د مولانا حقانی تجربه کار استاذ ، عظیم مجاهد شیخ الحدیث حضرت مولانا سیدشیرعلی شاه صاحب دامت فیوضهم شیخ الحدیث جامعه منبع العلوم میران شاه وزیرستان او نور لوئ لوئ علماؤ او مجاهدینو تشریف راوړې دې اوپیرې او اسلحې نظاروليدلو سره یی خپلې سترگې یخې کړې دی.

پاکستان کښې د اهلِ حق اکابرو د نمائنده تنظیمونو ټول مرکزی قائدین دلته تشریف راوړلو سره د پیرې د نظام ښه تعریف یی کړې دې.

## خوشخبری

الحمدلله دحضرت اود نورو اکابرو په مسلسل کوششونو سره د مجاهدینو دا ټول تنظیمونه مکمل طور باندې متحد او پخپل مینځ کښې منظم شوی دی دهغه متحده عظیم عسکری قوت نوم «حرکة الانصار» کیښودلې شوې دې.

## آیا محافظ اودربا ن په استفاده کولو کښې خنډ دی ؟

### څوارلسم نمبر اعتراض :

حضرت مفتی صاحب محافظینو او دربانیانو کښې داسې مشغوله دې چه دهغوی نه علمی یا عملی استفاده ممکنه نه ده ، د تلاشئ اود مسلح محافظینو نه په تیریدلو سره هم د زیارت اود استفادې تمنا نه پوره کیږی څکه چه د معمولاتو د پابندئ بهانه خو بهرحال موجوده وی

چه هرکله الله دعلم اومعرفت دولت عطا کړې دې نوهغه ئې داسې ولې پټ کړې دې ؟

## دا خیال سراسر باطل دي

**جواب** : دا خیال سراسر باطل دي چه د محافظو اود دربانیانو په وجه د حضرت سره ملاقات د دوی زیارت او د دوی نه استفاده ممکنه نه ده.

## ددې اعتراض د اصل سبب صحيح محمل

ددې اعتراض اصل منشاځه ده ؟ د حضرت تهانوی رحمه الله تعالی په مواعظو اوملفوظاتو کښې بې شمیره ځایونوکښې په دې باندې مفصل او اوږد کلام فرمائیلې شوې دې ،چه دهغې حاصل دادې چه دچا ادب او احترام د دوو وجه نه کیدلې شی.

(۱) اقتدار اوقوت

(۲) محبت اوعقیدت

علماؤ سره اقتدار اوحکومت خو نشته (چه کله وو نو ټولې دنیا سرښته سلام کولو لکه چه نن هم په افغانستان کښې دهغې مشاهده ښه کیدلې شی چرته چه الله تعالی علماؤ ته د مسلح جهاد په ذریعه اقتدار عطا کړې دې ) د محبت اوعقیدت مدار دینداری ده دیندار د اهل علم اود اهل الله په زړه سره قدر کوی اودهغوی د خپو خاورې لره د سترګو رانجه تصور کوی . لیکن کوم خلق چه د دینداریٔ نه محرومه وی هغوی د اهلِ دین یعنې د اهلِ علم اود اهل الله د محبت اوعقیدت نه هم اکثر محرومه کیږی ، داسې خلق چه کله یو عالم سره د ملاویدلو اراده لری نو د شیخ چیلی په شان له خپل طرف نه له دې خیالی منصوبې جوړولو سره ځی چه : (( ځنګه چه مونږ هغلته اورسو اولاً خو به مولانا صاحب د ړومبیٔ نه زمونږ استقبال ته ودریږی وکه نه نو ځنګه چه زمونږ د راتګ علم ورته وشی نو فوراً به بلاتاخیر خوراک ، څکاک ، خوب او ټول ضروری دینی خدمات پریښودلو سره به مونږ ته مرحبا وائی ، ناستې سره به په فریج کښې لګیدلې یخې بوتلې پیش کیږی ، اوکه نه نو چائ خو به په هرحال کښې وی بیا به زمونږ هره معقوله اونامعقوله خبره آوریدل کیږی او ګپ شپ چه وی هغه به جدا وی))

د عوامو دا خطرناک مزاج پخپله نه دې جوړ شوې ، دمال او ځائ مریضو بعضې جعلی ملایانو او نقلی پیرانو دخپلو مقصدونو ویستلو دپاره د عوامو دا مزاج خراب کړې دې.

حضرت تهانوی رحمه الله تعالی به فرمائیل : (( داسې خلق د علماؤ سره د ملاویدلو دپاره راځی چه هغوی عقل په کور کښې پریښودلې وی مګر چه کله عدالتونو ، تهانو ، هسپتالونو ، سرکاری اوغیرسرکاری دفترونو ته ځی نو صحیح صحیح انسان جوړیدلوسره ځی ، صرف د افسرانو طویل انتظار برداشت کول نه د چپړاسیانو نخرې هم په خوشحالیٔ سره برداشت کوی او دهغوی په رټې باندې ((سرجی)) وئیلوسره معذرت کولو ته دخپل ځان دپاره فخر او هغه د تهذیب ترقی ګرځوی))

همدارنګه حضرت تهانوی رحمه الله تعالی به فرمائیل : د داسې کسانو نه تنګ راتللو سره ما د ملاقات ، زیارت اود استفادې دپاره اصول جوړ کړی دی ، که چیرته زه داسې ونه کړم نو دا ظالم به مالره یوځلې هم د الله نوم اخستلو دپاره پرېږ نه دی »

حضرت ګنګوهی او حضرت تهانوی رحمهما الله تعالی به داسې خلقو لره چه دهغه حضراتو د اصولو مطابق تللو په ځائ دخپلو اصولو چلولو کوشش کولو د خانقاه نه بهر ویستل »

## د حضرت نانوتوی رحمه الله تعالی سبق آموزه واقعه

یو نواب صاحب چه په دینداریٔ کښې یی هم شهرت لرلو خپل خاص وزیر ئې د حضرت نانوتوی رحمه الله تعالی په خدمت کښې دې پیغام ورکولو سره ولیږلو چه : « زه د حضرت د زیارت ډیر مشتاق یم حضرت دې ما سره ملاؤ شی »

حضرت نانوتوی رحمه الله تعالی خو اول عذرونه شروع کړل چه زه غریب د کلی اوسیدونکې د امراؤ د ادب نه غیرواقف یم شاید د مجلس آداب پوره نه کړم ، په دې باندې وزیر اووئیل : «حضرت ! نواب صاحب خو به پخپله دحضرت ادب کوی حضرت به د ټولو آدابو نه مستثنیٰ وی »

حضرت نانوتوی رحمه الله تعالی اوفرمائیل : « بیا خو نواب صاحب ځما د ملاقات مشتاق دې زه خو دهغه د زیارت مشتاق نه یم که چیرته هغوی ته اشتیاق وی نوماسره دې ملاؤ شی دهغه په خپو باندې نکریزې خو نه دی لګیدلی »

حضرت تهانوی رحمه الله تعالی فرمائی : « بهرحال نه تللو اونه لاړو او د امراؤ په مقابله کښې دحضرت هم دا عمل وو » (ارواح ثلاثه ص ۲۴۱ ج)

## د علماءِ حق خلاف

## د بیهوده خبروکولو والا شرعی حکم

په داسې خلقو کښې چه دهغوی ذکر پورته وشو که چرته یو سړې د یو عالم په اصولو کښې دخل اندازی وکړی یا وخت نه ملاویدلو باندې د بدتمیزیٔ مظاهره وکړی نو داسې سړې صرف واجب الاخراج نه بلکه واجب التعزیر هم دې .

فقهاؤ رحمهم الله دا مسئله په ډیر وضاحت سره لیکلې ده چه که چیرته یو سړې دکوم یو عالم توهین محض ددې وجه نه کوی چه دا عالم دین دې نو هغه د اسلام د دائرې نه خارج او مرتد شو اودهغه ښځه دهغه د نکاح نه اووتله ، داسې سړی ته دوباره مسلمانولو سره تجدید دنکاح کول ضروری دې او هغه لره جلاوطن کول پکار دی که چرته دوباره مسلمان نه شی نو شرعاً د هغه د وژلو حکم دې .

دا مسئله په لاندینو کتابونو کښې ذکر شوې ده :

(۱) المحیط (۲) التفاوی البزایة (۳) تبیین الحقائق (۴) البحرالرائق (۵) الاشباه والنظائر (۶) حاشیة البیری علی الاشباه (۷) شرح الکنزلابن الضیاء (۸) منیة المفتی (۹) مجموع النوازل (۱۰) الخزانة (۱۱) عمدة الاسلام (۱۲) روضة العلماء (۱۳) البریقة المحمودیة (۱۴) تنقیح الفتاوی الخامدیة (۱۵) الوهبانیة (۱۲) الحاوی القدسی (۱۷) الفتاوی الخیریة

(البریقة المحمودیة ص ۹۲ج۳، تنقیح الفتاوی ص ۱۰۱ج۱، الفتاوی الخیریة ص ۲۳۵ج۲)

پورته ذکر شوو کتابونو کښې بعضو کښې خو دې حده پورې دی چه : «د غیرعالم دپاره جائز نه دی چه هغه د اهلِ علم په مینځ کښې کینی ځکه چه دا هم د علم او د اهلِ علم بې ادبی او گستاخی ده ، که چیرته څوک داسې وکړی نو حاکم باندې لازم دی چه هغه په زور سره ددې بې ادبئ نه منع کړی ، اوکه چیرته دعالم نه په اوچت او افضل ځائ باندې کیناستلو او دا حرکت دهغه نه د علماؤ د عظمت نه کیدلو د وجه نه اوشو نو دا سړې کافر شو ، ښځه یی د نکاح نه اووتله اوکه چیرته یی په زړه کښې تحقیرنه وی نوبیا هم داسې طبیعتاً په اوچت ځائ باندې کیناستلو نوکفر خو نه دې خوبیا هم هغه ته تعزیر پکار دې ، په دې باندې د ټولو ائمو اجماع ده »

(تنقیح الفتاوی للعلامة ابن عابدین رحمه الله ص ۱۰۱ج۱)

## د علماؤ خلاف

## پروپاګند کولو والا دویمه وجه

چونکه د داسې خلقو د علماؤ په دروازو باندې غرور په ښه طریقه خرابیږی او آپریشن سره ماده فاسده ښه خارجیږی ددې وجه نه هغوی علماؤ لره رنګ په رنګې بدنامولوسره د انتقام اخستلو کوشش کوی ،دددې دپاره دهغوی سره ساده عوامو ته د دهوکې ورکولو دپاره ددې عنوان نه سواځه بله حربه نه جوړیږی چه علماء عوامو ته وخت نه ورکوی حالانکه لږ عقل لرلو والا په دې باندې پوهیدلې شی چه د علماؤ ټول وخت هم دعوامو په خدمت کښې تیریږی ، وعظ ، تصنیف ، تالیف ، افتاء ، تدریس ، تزکیه نفس وغیره خدماتو سره اوس نه ترقیامته پورې عوام او خواص مستفید کیږی ، د علماؤ ټول وخت هم دعوامو دپاره وی .

دا حضرات خوب او آرام هم په دې نیت باندې کوی چه صحت او قوت سره تازه دم کیدلوسره د مسلمانانو خدمت وکړو ، هم ددې وجه نه د علماؤ خوب هم عبادت دې .

## په اوقاتو کښې نظم وضبط او قرآن اوسنت

بیا هر کار طریقې او نظم اوضبط سره پوره کول نه صرف عقلاً لازم دی بلکه شرعاً هم ضروری

دی ، د الله تعالی ارشاد دي : « **واتوا البيوت من ابوابها** » ( او کورونو ته ددروازو لخوا داخليږئ )
کورونو ته په دروازو باندې د دخول په حکم سره ثابته شوه چه هرکار سليقې اودهغې په خاص طريقې سره لازم دي .

حضوراکرم صلی الله علیه وسلم هم ټول کارونه په نظم سره کول ، چنانچه د جامع ترمذی روایت دې چه : **قال الحسين فسالت ابی عن دخول رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال كان اذا اوى الى منزله جزا دخوله ثلثة اجزاء جزء الله عزوجل وجزء لاهله وجزء لنفسه ثم جزا جزءه بينه وبين الناس فيرد ذلك بالخاصة على العامة لايدخر عنهم شيئا وكان من سيرته فی جزء الامة ايثار اهل الفضل باذنه وقسمه على قدر فضلهم في الدين (شمائل ترمذی ص ۲۳ ماجاء فی تواضع رسول الله صلی الله علیه وسلم)**

« حضرت حسین رضی الله تعالی عنه فرمائی چه ما دخپل پلار نه د حضور صلی الله علیه وسلم د کور د معمولاتو په باره کښې پوښتنه وکړه ، هغوی اوفرمائیل چه کله دوی صلی الله علیه وسلم په کور کښې وو نو خپلو وختونه به ئې په دریو حصو تقسیمول ، یوه حصه دخپل رب د عبادت دپاره ، دویمه حصه د کورو والو دپاره ، دریمه حصه دخپل ځان دپاره ، بیا به ئې خپله حصه دخپل ځان اودخلقو په مینځ کښې تقسیموله ،بیا به ئې دخلقو حصې لره دخواصو په ذریعې عوامو باندې صرف کوله ( یعنې خواصوته به یی هدایات او ارشادات نبویه بیانول اوهغوئ به بهر وتلوسره عوامو ته ښودل ) او د دوی صلی الله علیه وسلم سیرتِ طیبه دا هم وو چه د امت په حصه کښې به ئې اهل فضل اوکمال ته په نورو باندې ترجیح ورکوله »

هم ددې نظم اوضبط د وجه نه دوی صلی الله علیه وسلم او خلفاءِ راشدینو رضی الله عنهم په وخت د ضرورت د محافظینو نه علاوه دربانیان هم ساتلی وو ( په دې باندې عنقریب روایات راروان دی )

پس که چرته څوک سرې ټول امت سره وابسته دینی دائمی اجتماعی اوانفرادی خدماتو کښې د خلل اچولو کوشش کوی نو هغه لره نه خبرول انسانیت نه دې بلکه کفرانِ نعمت دې او ددې منصبِ عظیمه ناقدری او مداهنت دې .

## حضرت نه د استفادې پنځلس صورتونه

د چا زړونه چه د اهل الله اود اهل علم د محبت او عظمت نه ډک دی دهغوی دپاره د حضرت زیارت خو روزانه پنځه ځلې په جمات کښې کیدلې شی ، د ښکاره استفادې اود پټې هم د درجنونو نه زیات صورتونه دی چه دهغې په ذریعې سره په لاکهونو د علم اوعمل تګی خپله تنده ختموی ، او په هغه نعمت باندې څه ډیر زیات دحضرت ممنون او احسان مند دي .

(۱) د پنجشنبې په ورځ روزانه نیم ساعت وعظ ، په هغې کښې هر سړې کیناستلې شی ، د حضرت اود سامعینو په مینځ کښې څه واسطه حائله نه وی.

(۲) د جمعې په ورځ د مازیگر نه پس ماښامه پورې اوږد وعظ کیږی چه په هغې کښې د عوامو او خواصو ، د علماؤ اود طلباؤ لوئ تعداد شرکت کوی.

(۳) د جمعې په ورځ د ماښام نه پس متصل تقریباً څه ساعته پورې د علماؤ اود طلباؤ دپاره دفتر کښې مجلس کیږی ، په هغې کښې هریوعالم او هریو طالب حصه اخستلې شی ،

حضرت هر راتلونکی سره مصافحه کوی ، بیا د نوم ، ځائ اود مصروفیت پوښتنه ترې کوی ، د زیات رش اود ډیرو متعلقینو د وجه نه د نوم ، ځائ او د مصروفیت باربار پوښتنې باوجود یاد نه پاتې کیږی ، علاوه ددې نه د یاد نه پاتې کیدلو یوه لویه وجه دا هم ده چه یاد ساتل مقصود نه دی ، محض د اظهارِ محبت ، د زړه خوشحالولو په خاطر دا معمول ادا کوی.

په دې مجلس کښې د حضرت نه د پوښتنې هم اجازت دې.

(۴) د خالی (هفتې) په ورځ د مازیگر نه پس عوامو متعلقینو دپاره په دفتر کښې یو نشست منعقد کیږی په هغې کښې هم د حضرت د راتلونکو سره هم هغه معمول دې چه په دریم نمبر کښې تیرشو ، نشست اگرچه عوامو متعلقینو دپاره دې خوبیاهم په هغې کښې علماءِ کرام او طلباء هم شرکت کولې شی.

(۵) د جمعې نه سوا روزانه نیم ساعت سحر پاوکم یولسو بجو نه پاوباندې یولسو بجو پورې په دفتر کښې ناست وی ، په هغې کښې د دارالافتاء والارشاد مفتیان ، استاذان ، د تخصص اود نورو درجو طلباء او خانقاه کښې اصلاح دپاره قیام کولو والا حضراتو نه علاوه د بهر علماء ، طلباء او خاص متعلقین هم شرکت کوی.

دا مجلس اصلاً خو د نیم ساعت وی مگر د بهر نه د زیارت او ملاقات دپاره راتللو ولا علماءکرام یاد مجاهدینو د وجه نه کله ناکله یوساعت یا یونیم ساعت پورې اوږدیږی.

(۶) روزانه په ورځ کښې دوه ځلې ټیلیفون ته په پابندئ سره کینی.

سحر : د نهه نیمو نه ترلس نیمو پورې

دشپې : پاوباندې نهو نه تر پاوکم یولسو پورې.

په دې کښې هریو سړې حضرت سره په ټیلی فون باندې بالمشافهه بلاواسطه خبرې کولې شی حضرت ددې وختونو دپاره خپل ځان نهایتِ اهتمام سره فارغه وی او شاذ اونادر کله کله ناغه کیږی ، او عموماً دهغه ناغې سبب هم هغه ضرورت مند عوام یا علماءِ کرام مجاهدین وی چه هغوی سره د عام معمول نه اخوا کیدلو سره ملاویدل ضروری وی چه په معمولاتو کښې د تقدم اود تاخر باعث جوړیږی.

﴿۷﴾ د مازیگر نه یو ساعت وړاندې عوام او خواص په دارالافتاء والارشاد کښې دمسئلو په باره کښې پوښتنه کولې شی ، دهغې دپاره حضرت د نورو مشغلو د وجه نه په خپله نه شی کیناستلې ددې وجه نه ئې دا کار د دارالافتاء والارشاد د مفتیانو په ذمه باندې اچولې دې.

﴿۸﴾ که چیرته د مسئلې د مشکل والی ، اهمیت ، نوعیت یاد کومې بلې وجه نه د دارالافتاء والارشاد مفتیانِ کرام سائل لره د حضرت سره ملاوول مناسب یا ضروری وګڼي نو سائل لره د سحر پاوکم یولسو بجو په مجلس کښې غوښتلې کیږی ، چه په هغې کښې دحضرت سره مخامخ په مخامخ مجلس کیږی.

﴿۹﴾ هر سړې د لیکلو په ذریعه مسئله شرعیه معلومولې شی ، البته د ملک او بیرون ملک نه د راتللو والا بې شمیره استفتاګانو د وجه نه فوری جواب ممکن نه وی ، لس یا پنځلس ورځی او کله ددې نه هم زیات وخت لګیږی ، جواب په نمبر سره ورکولې کیږی ، البته سخت ضرورت او مجبوری جدا څیز دې.

﴿۱۰﴾ اصلاحی تعلق ساتلو والا دوستانو ته وئیلې شوی معمولاتو کښې یونهایتِ اهم معمول «مکاتبت» دې چه په هغې کښې هغه دخپلو دینی حالاتو ، امراضو او عیوبو اطلاع ورکولو سره نسخې اخلی ، دا خطونه هم په دومره کثیر مقدار کښې وی چه د یو خط د جواب نمبر کم ازکم لس ورځې پس راځی دلته هم سخت ضرورت او مجبوری مستثنٰی ده.

﴿۱۱﴾ د اصلاحی تعلق ساتلو والا حضراتو نه علاوه هم هریوسړې د دینی او دنیوی حاجتونو دعا دپاره ، تعویذ دپاره یا ذاتی حالاتوکښې د استشارې دپاره خط لیکلې شی دهغې جواب هم په ترتیب سره ورکولې کیږی د نمبر «۱۰» اود نمبر «۱۱» استثناء دلته هم ده.

﴿۱۲﴾ کوم خلق چه په خلوت کښې د خبرو کولو خواهشمند وی که چیرته د هغوی د کار نه د خلوت ضرورت ثابت شی نوحضرت په خلوت کښې هم وخت اوباسی لیکن دهغې نوبت ډیر کم راځی.

﴿۱۳﴾ د مازدیګر د بیان نه پس یو مولوی صاحب اهلِ حاجاتو ته د حضرت تعویذ ورکوی ، دا تعویذ د مازدیګر اود ماښام په مینځ کښې ورکولې کیږی په نورو وختونو کښې نه ورکول کیږی، دې دپاره چه د دین اود عامة المسلمین په نورو اهمو خدماتو کښې خلل واقع نه شی ، د پنجشنبې اود جمعې په ورځ د تعویذ ورکولو رخصتی وی ، د هرحاجت اود هر مرض دپاره هم یو تعویذ ورکولې کیږی ددې وجه نه دحالاتو او حاجاتو وئیلو او اوریدلو ضرورت نه پیښیږی.

﴿۱۴﴾ که چیرته یو سړی ته ناګهانه شدیدضرورت پیښ شی نو داسې هنګامی حالت (ایمر جنسی) کښې د نورو معمولاتو کمولو سره هم هغه ته وخت ورکولې کیږی.

﴿۱۵﴾پاسنو ذکر شوو معمولاتو او اوقاتو کښې دوه قسمه حضرات مستثنٰی دی

(۱) علماءِ کرام اومشایخ عظام (۲) د مختلف جهادی تنظیمونو قائدین.
حضرت ارشاد فرمائی: «یو لوئ عالم تشریف راوړو، ماته ئې اووئیل: اوریدلی مې دی چه تاسو د ټیلی فون اوقات متعین کړی دی په نورو اوقاتو کښې تاسو په ټیلی فون باندې خبرې نه کوئ؟
ما اووئیل: (هغه خو د عوامو دپاره دی، علماؤ دپاره خو هیڅ پابندی نشته، تاسو کله تجربه کړې ده یعنې چه تاسو ټیلی فون کړې وی او ددې طرف نه انکار شوې وی، د علماؤ دپاره نه په ټیلی فون باندې پابندی شته اونه بالمشافهه خبرو باندې پابندی شته، دهغوی دپاره دروازې خلاصې دی، د دارالافتاء والارشاد دروازې هم خلاصې دی او د زړه دروازې هم خلاصې دی، چه کله غواړی تشریف راوړې شي، څه تجربه خو وکړه، دلته چه کوم علماء تشریف راوړی هغوی او نور حضرات دې خبرې لره ښه یاده اوساتئ خلقو دلته د پابندئ ډیر تشهیر خور کړې دې خلق چه کومه خبره خوره کړی بیا بس څه مه وایه بلاتحقیقه په هغې باندې اعتماد کولې کیږی»
(وقت کی قیمت صفحه ۶)

## د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د ضرورت په وخت کښې دربان متعین کول

حدیث اوتاریخ سره دا خبره د نمبر په شان ښکاره ده او قرینِ قیاس هم ده چه د زمانې په شروع کښې د کسانو لګوالې، د حاجتونو قلت، اود معاملاتو د قلت سره پخپل مینځ کښې اختلافات جګړې، فتنه فساد نه وو، همدارنګه عامو خلقو کښې سادګی او رښتینولی وه، د دین سره محبت او په زړونو کښې د اهلِ دین نهایتِ ادب اواحترام وو، چه دهغې د وجه نه عامة المسلمین بلکه عوامو هم د حضور صلی الله علیه وسلم اود شیخینو رضی الله عنهم په خلوت، دینی خدماتو عباداتو او اُمورِ سلطنت کښې خلل نه اچولو، که یوه ډیره ضروری خبره یا څه کار به وو نومختصر ملاقات به ئې کولو. (فتح الباری صفحه ۱۱۸ جلد ۱۳)، (مقدمه ابن خلدون صفحه ۷۴۹ جلد ۲)
صحابه کرام رضی الله عنهم فرمائی: «مونږ به دا تمنا کوله چه یو کلی وال راشی اود حضور اکرم صلی الله علیه وسلم نه سوال وکړی اومونږ ته علم حاصل شی، ځکه چه مونږ به دزیاتو تپوسونو جرات نه شو کولې»
حضرت ابن عباس رضی الله عنهم فرمائی: «ما د حضورصلی الله علیه وسلم د صحابو رضی الله عنهم نه بهتره خلق نه دې کتلی، هغوی د دوی صلی الله علیه وسلم نه د دوی تر وصال پورې د تولو دیارلسومسئلو پوښتنه کړې ده چه په قرآن کښې منقول دی، دې خلقو به د کار او مهمه پوښتنه کوله» (ادب الفتیاللسیوطی صفحه ۵۵)
حضرت شعبی رحمه الله تعالی فرمائی: «که چیرته د نن سبا خلق د حضورصلی الله علیه وسلم

په زمانه کښې وې نو ټول قرآن به د « یسالونک ( یعني د تپوسونو) نه ډک وې» ، (ادب الفتیا صفحه ۵۴)

د پورته وجوهو په بناء باندې د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اود شیخینو رضی الله عنهم زیارت اوملاقات روزانه په جمات کښې پنځه ځلې هرمسلمان ته نصیب کیدلو هغه دوران بلاواسطه هریوسړی خبره کولې شوه ، دهغې نه علاوه هم په نورو وختونوکښې چه په هغې کښې دا حضرات د عوام الناس دپاره په جمات کښې کیناستل بالعموم مخامخ به څه دربان نه وو ، اهلِ حاجات او مقدمات به نیغ راتلل اوخپل حاجت او مقدمه به ئې پیش کوله .

لیکن دا هم په ډیرو روایتونو سره ثابته ده چه د ضرورت په وخت دوی صلی الله علیه وسلم د محافظینو نه علاوه درباریان هم ساتلی وو .

محدثین وائی چه په کومو روایاتونوکښې د درباریانو نفی ده دهغوی نه وظیفه دار او تنخوادار درباریان مراد دی ، یا دا چه د درباری ساتلو څه دائمی معمول نه وو (فتح الباری صفحه ۳۰جلد ۷، صفحه ۱۱۷جلد ۱۳) څنګه چه وروستو د خلفاءِ راشدینو اود عادلانو حضرت عثمان ، حضرت معاویه رضی الله عنهما اود حضرت عمرعبدالعزیز رحمه الله اود نورو خلفاءِ مسلمینو معمول وو د مطلقاً دربان نفی نه ده راغلې، ځکه چه :

(۱) دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم د حفاظت اود محافظینو په باره کښې مفصل نصوص تیرشوی دی ، محافظ هم دربان وی بلکه د اعلی درجې دربان هم محافظ دې .

ددې ټولو روایتونو نه د دربانی مسئله کلاً یا جزءً واضح طور باندې ثابتیږی .

(۲) علاوه ددې نه د صحاح په ډیرو روایاتونو کښې دربان ساتل منصوص هم دی :

ففی صحیح البخاری من حدیث عمربن الخطاب رضی الله عنه (قال) فجئت المشربة التی فیها النبی صلی الله علیه وسلم فقلت لغلام له اود استأذن لعمر فدخل الغلام فکلم النبی صلی الله علیه وسلم ثم رجع فقال کلمت النبی صلی الله علیه وسلم وذکرتك له فصمت فانصرفت حتی جلست مع الرهط الذین عند المنبر ثم غلبنی ما اجد فجئت فقلت للغلام استأذن لعمر فدخل ثم رجع فقال قد ذکرتك له فصمت فرجعت الخ (صحیح بخاری ص۳۰ ج۲)

«حضوراکرم صلی الله علیه وسلم چه په کومه زمانه کښې د امهات المومنین نه ناراضه کیدلو سره په جدا ځائ کښې قیام کولو د قیام کولو په دروازه باندې ئې یوحبشی غلام حضرت رباح رضی الله عنه لره دربان متعین کړو ، یوه ورځ حضرت عمررضی الله عنه د دربان په ذریعې دوه ځلې دحاضرئ اجازت وغوښتلو ، دوی صلی الله علیه وسلم خاموشه وو دریم ځلې ئې اجازت ورکړو»

وفی صحیح البخاری ایضاً من حدیث ابی موسی الاشعری رضی الله عنه قال فاذا هو رسول الله صلی الله علیه وسلم جالس علی بئر ریس وتوسطفقها وکشف عن ساقیه ودلاهما فی البئر فسلمت علیه ثم انصرفت فجلست عند الباب فقلت لاکونن بواب رسول الله صلی الله علیه وسلم الیوم فجاء ابوبکر فدفع الباب فقلت من هذا فقال ابوبکر فقلت علی رسلک ثم ذهبت فقلت یارسول الله! هذا ابوبکر یستاذن فقال ائذن له وبشره بالجنة (الی) فاذا انسان یحرک الباب فقلت من هذا فقال عمر بن الخطاب فقلت علی رسلک ثم جئت الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فسلمت علیه فقلت هذا عمر بن الخطاب یستاذن فقال ائذن له وبشره بالجنة (الی) فجاء انسان یحرک الباب فقلت من هذا فقال عثمان بن عفان فقلت علی رسلک فجئت الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فاخبرته فقال ائذن له وبشره بالجنة علی بلوی تصیبه الخ (صحیح بخاری ص ۵۱۹ ج۱)

وفی روایة اخری للبخاری ان النبی صلی الله علیه وسلم دخل حائطا وامرنی بحفظ باب الحائط الخ (صحیح بخاری ص۵۳۲ ج)

وفی صحیح ابی عوانة وفی مسند الرویانی فقال یا اباموسی املك علی الباب (فتح الباری ص۳۰ ج)

وعند الترمذی فقال لی یا اباموسی املك علی الباب فلا یدخل علی احد (جامع الترمذی ص۲۳)

« حضرت ابوموسیٰ اشعری رضی الله تعالی عنه فرمائی یوځلې حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د مدینې منورې یو باغ ته تشریف یوړو ، زه هم حاضرشوم سلام مې وکړو ، ما په زړه کښې فیصله وکړه چه نن خوبه د دربانی شرف ضرور زه حاصلوم ، په دې دوران کښې حضوراکرم صلی الله علیه وسلم پخپله د دروازې په حفاظت باندې زه مامور کړم او تاکیداً ئې اوفرمائیل : «د دروازې مالک نن ته ئې ګوره (بلا اجازت) څوک هم دننه رانه شی » زه په دروازې باندې (خوشحاله) کیناستلم ، یو صاحب دروازه وټکوله ، ما پوښتنه وکړه څوک ئې ؟ وې وئیل: ابوبکر ، ما ورته اووئیل : ودریږه (زه پوښتنه کوم بیا درته وایم ) ما عرض وکړو یا رسول الله ابوبکر دروازې باندې ولاړ دې او د حاضرئ اجازت غواړی ، وې فرمائیل هغه ته اجازت ورکړه او ورسره د جنت زیرې هم ورکړه ، بیا حضرت عمر اوحضرت عثمان رضی الله عنهما وقفې وقفې سره راغلل هغوی ته هم دغه شان حصارولو سره اجازت اود جنت زیرې ورکړې شو .

اخرج الامام ابوداود عن نافع بن عبد الحارث الخزاعی قال دخل رسول الله صلی الله علیه وسلم حائطا من حوائط المدینة فقال لبلال امسك علی الباب فجاء ابوبکر الخ (فتح الباری ص۳۱ ج۲)

« حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د مدینې طیبې یو باغ ته تشریف یوړو او حضرت بلال رضی الله عنه ته ئې اوفرمائیل : «ماپسې دروازه بنده کړه (یعنې چالره هم مه راپریږده ) »

اخرج الترمذی وابن ماجة واحمد عن علی رضی الله عنه قال جاء عمار بن یاسر یستاذن علی النبی صلی الله علیه وسلم فقال ائذنوا له من بالطیب المطیب، قال الترمذی حدیث حسن صحیح (جامع الترمذی ص ۳۳۲، سنن ابن ماجة ص ۱۳، مسند احمد ص ۱۰۰ ج ۱)

«حضرت علی رضی الله تعالی عنه فرمائی چه حضرت عماربن یاسر د حاضرئ اجازت وغوښتلو دوی صلی الله علیه وسلم درباریانو ته اوفرمائیل عمار ته اجازت ورکړئ دوی صلی الله علیه وسلم عمار لره طیب اومطیب یعنې طاهر اومطهر وګرځولو اوخوش آمد ئې ورته اوفرمائیل»

اخرج الامام البخاری عن مالک بن اوس (الی) فبینما انا جالس عنده (عمر) اتاه حاجبه یرفا فقال هل لک فی عثمان وعبدالرحمن بن عوف والزبیر وسعد بن ابی وقاص یستاذنون قال نعم الخ (صحیح بخاری ص ۴۳۱ ص ۱۰۵۵ ج ۲)

«حضرت مالک بن اوس رضی الله تعالی عنه فرمائی چه زه د امیرالمؤمنین حضرت عمررضی الله تعالی عنه په خدمت کښې حاضرووم د دوی دربان یرفا راتللو سره عرض وکړو چه حضرت عثمان، حضرت عبدالرحمان بن عوف، حضرت زبیراو حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنهم دننه راتلل غواړی حضرت عمررضی الله عنه اوفرمائی راوې غواړه.

قال الحافظ ابن حجر: ((حاجبه ای عثمان حمران.)) (تهذیب التهذیب ص ۲۳ ج ۳)

«دحضرت عثمان رضی الله عنه دربان حمران بن ابان وو په تابعینوکښې دې د لوئې درجې محدث او زبردست عالم وو» ویحجب علیا قنبر واحیاوابشر (تهذیب)

«د حضرت علی رضی الله تعالی عنه دربان به قنبر وو او کله کله به بشر هم»

فلما دفن عمر جمع المقداد اهل الشوری ب (الی و) امروا باطلحة ان یحجبهم وجاء عمرو بن العاص والمغیرة بن شعبة فجلسا بالباب فحصبهما سعد واقامهما. (الکامل لابن الاثیر ص ۶۸ ج ۳)

«حضرت عمررضی الله عنه د شهادت په وخت د نوی خلیفه مقررولو اختیار شپږو حضرات ته ورکړې وو چه کله دهغه شپږو مجلسِ شوریٰ شروع شوه نو هغوی حضرت ابوطلحه رضی الله عنه لره په دروازې باندې دربان متعین اوفرمائیلو، حضرت عمروبن العاص اوحضرت مغیرة بن شعبه رضی الله عنهما هم په دروازې باندې کیناستل، حضرت سعد رضی الله عنه هغوی لره دهغه ځائ نه واپس کړو»

ولما قدم عمر بن الخطاب رضی الله عنه الشام وجد معاویة رضی الله عنه قد اتخذ حاجبا ومراکب والملابس النفیسة ساله عن ذلک فقال له انا فی ارض نحن فیها محتاجون لهذا فقال عمر لا امرک ولا انهاک

(التراتیب الاداریة للکتانی ص ۲۶ ج ۱، الطبری ص ۳۳۱ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم

## الحمدلله

د حضرت اقدس دامت برکاتهم افاضات اوافادات هم د حضرت په توجه اوبرکت ، دعا او د دوی په رهنمائۍ کښې ولیکلې شول ، الله تعالی دې هغه مجوعې لره د حضرت او اکابرو دپاره صدقه جاریه اود امتِ مسلمه دپاره دې مشعلِ راه جوړه کړی او هغه ته دې د تعصب ، ضد اُود حسد نه بالاترکیدلوسره د وئیلو او د پوهې توفیق عطا کړی ، انګریز ملعون او قادیانیانو منحوسانو د مسلمانانو په زړونوکښې د جهاد سره نفرت او بزدلی اچولې ده ، الله تعالی دې ددې مجموعې په برکت سره ټولو مسلمانانو لره د انګریزانو اود قادیانیانو د زهرو نه پاک اوصاف کړی ، وما ذلک علی الله بعزیز.

**عبدالرحیم**

**نائب مفتی دارالافتاء والارشاد ۲۷ ربیع الثانی ۱۴۱۴ هجری**

## آیا په دارالافتاء والارشاد کښې مسلحه پیره دصفت قابل ده اوکه د تنقید ؟

**تحریرمولانا محمد مسعود اظهر صاحب**

**مرکزی ناظمِ اعلی «حرکة الانصار» ومدیر اعلی ما هنامه «صدائ مجاهد» اسلام اباد**

**بسم الله الرحمن الرحیم**

الله تعالی اهلِ ایمان ته حکم ورکړې دې چه :

« ای مؤمنانو صبر کوئ او په مقابله کښې مضبوط اوسئ اود (اسلام اود حدودِ اسلام په حفاظت کښې) شروع اوسئ اود الله تعالی نه ویریږئ دپاره ددې چه تاسو خپل مراد ته ورسیږئ »

آیتِ کریمه کښې د « صابروا » نه مراد دادې چه د دښمن په مقابله کښې مضبوطیا او ثابت قدمی ښکاره کړئ اود «رابطوا» معنیٰ دادهچه اسلام اود حدودِ اسلام په حفاظت کښې مشغول اوسئ ، دکوم ځائ نه چه هم د دښمن د حملې کولو خطره وی هغلته د دیوال په شان مضبوط شئ .

په دې آیت سره ثابته شوه چه مسلمانانو ته کله دکافرانو نه خطره وی نو هغوی دې میدان نه پریږدی اونه دې د بزدلئ مظاهره کولوسره د حضرت موسیٰ علیه السلام د قوم په شان خپل رسول ته دا وائی چه: «ته او ستا رب دې وجنګیږی مونږ خو دلته ناست یو »

بلکه اهلِ ایمان والو ته پکار دی چه هغوی د کافرانو په مقابله کښې مضبوط شی او دخپل تحفظ دپاره دې یو موټی شی اوخپلو سرحدونو لره دې مضبوط کړی دپاره ددې چه یو کافر هم هغوی طرف ته په کږه سترګه ونه ګوری ، په همدې کښې داسلام شوکت دې او په همدې کښې د مسلمانانو تحفظ دې .

حضوراکرم صلی الله علیه وسلم چه کله مدینې منورې ته هجرت وکړو نو د مکې مشرکان د مدینې منورې له منافقانو عبدالله بن ابی وغیره سره ملاؤ شو او حضورصلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د نقصان رسولو سازشونه یی وکړل او عبدالله ابن ابی ته ئې په دې سلسله کښې خطونه هم ولیکل ، حضورصلی الله علیه وسلم د کافرانو د سازشونو سره د مقابلې دپاره لاندې حفاظتی اقدامات وکړل.

(۱) حضورصلی الله علیه وسلم به کله کله د شپې ویښ پاتې کیدلو او هروخت به تیار وو ، ((رواه النسائی)) (فتح الباری ص ۲۰ ج ۲)

(۲) حضورصلی الله علیه وسلم به پخپله مسلح وو او په حالاتو باندې به ئې نظر ساتلو څنګه چه د صحیح بخاری د یو روایت نه معلومیږی چه مدینې والو یوځلې د شپې په وخت کښې یو داسې آواز واوریدلو چه په هغې سره په هغوی باندې ویره راغله ، هغوی ټول هغه آواز طرف ته روان شو ، حضورصلی الله علیه وسلم دهغه ټولو نه وړاندې وو او هم دوی صلی الله علیه وسلم دهغه واقعې تحقیق بیانولو سره خلقو ته تسلی ورکړه ، هغه وخت دوی صلی الله علیه وسلم د حضرت ابوطلحه رضی الله تعالی عنه په بې کتې آس باندې سور وو او د دوی صلی الله علیه وسلم په غاړه باندې توره زوړنده وه ، (صحیح بخاری صفحه ۴۰۷ جلد ۱)

(۳) د حضورصلی الله علیه وسلم ټول صحابه کرام رضی الله عنهم شپه او ورځ مسلح وو او اسلحه به ئې د خپل ځانه نه جدا کوله څنګه چه د مسنددارمی په روایت کښې دی :

« د حضرت ابی بن کعب رضی الله تعالی عنه نه روایت دې چه کله رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم مدینې ته تشریف راوړو او انصارو هغوی ته ځائ ورکړو نو د عربو تمام قبائل د مسلمانانو په خلاف د جنګ دپاره ودریدل ، په هغه حالاتو کښې به صحابه کرامو رضی الله عنهم شپه او ورځ اسلحه ځان سره ساتله»

(۴) د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په کور مبارک باندې به صحابه کرامو رضی الله عنهم پیره ورکوله ، پخپله حضورصلی الله علیه وسلم ددې تمنا کوله چه صالح مسلمان د دوی صلی الله علیه وسلم په کور باندې پیره ورکړی د صحیح بخاری د یو روایت نه معلومیږی چه حضور صلی الله علیه وسلم به پخپله ویښ وو او چه کله به څوک د پیرې دپاره راغلو نو دوی صلی الله علیه وسلم به آرام کولو .

د حضورصلی الله علیه وسلم داسې ویښه او تیاریدل د صحابه کرامو رضی الله عنهم هروخت مسلح کیدل ، دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم په کور باندې د صحابه کرامو رضی الله عنهم پیره کول ، دحضورصلی الله علیه وسلم خپل ځان سره اسلحه ساتل ،دا ټول هرڅه دې پاره نه وو چه دا حضرات (نعوذبالله ثم نعوذبالله ) د کافرانو نه ویریدل او بزدله وو .

بلکه حضورصلی الله علیه وسلم خو خلقو کښې د ټولو نه زیات بهادر وو .
(صحیح بخاری ص ۳۹۵ جلد ۱، نورالیقین ص ۲۷۷)

حضورصلی الله علیه وسلم اوصحابه کرامو رضی الله عنهم به د بزدلئ نه داسې پناه غوښتله څنګه به ئې چه د کفر اوشرک نه پناه غوښتله ، (صحیح البخاری صفحه ۳۹۲ جلد ۱)

صحابه کرامو رضی الله عنهم بزدلئ لره یو لوئ عیب او بیماری ګڼله ، هم ددې وجه نه یو صحابی حضورصلی الله علیه وسلم ته درخواست وکړو چه زه بزدل یم او د زیات خوب عادی یم تاسو ځما دپاره دعا وکړئ ، حضورصلی الله علیه وسلم دهغه دپاره دعا وکړه اود هغه نه د بزدلئ مرض لاړو ، (خصائل نبوی صفحه ۱۳۴)

د سنن ابوداود روایت دې چه حضورصلی الله علیه وسلم بزدلئ او بخل لره د سړی دپاره بدترین عیب وګرځولو .

ددې وجه نه دا سوچ هم ګناه ده چه د حضورصلی الله علیه وسلم اود صحابه کرامو رضی الله عنهم دا عمل (اسلحه ځان سره ساتل او پیره کول) د بزدلئ له وجه نه وو .

همدغه شان د حضورصلی الله علیه وسلم اود صحابه کرامو رضی الله عنهم دا اعمال ددې وجه نه هم (نعوذبالله) نه وو چه دحضورصلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم په الله تعالی باندې باور او اعتماد نه وو .

ځکه چه د حضورصلی الله علیه وسلم نه زیات د چا ایمان کیدلې شی او د دوی صلی الله علیه وسلم نه زیات په الله تعالی باندې اعتماد کولو والا څوک کیدلې شی ؟

همدغه شان د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ایمان ګواهی خو په خپله قرآن مجید ورکوی او ترقیامته پورې راتللو والا انسانانو ته دا حکم ورکوی چه دهغوی ایمان د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ایمان په شان پکار دې ، بیا د سوچ خبره داده چه هرکله د حضور صلی الله علیه وسلم ایمان خو دومره اعلی او ارفع دې چه د دوی ایمان پورې نه یو نبی اونه یو رسول رسیدلې شی او نه یو مقربه فرښته نو بیا حضورصلی الله علیه وسلم اسلحه ولې اوچته کړه ؟ په خپل کور مبارک باندې ئې د صحابه کرامو رضی الله عنهم پیره ولې مقرر کړه؟ میدانِ جنګ کښې په بدن مبارک باندې ئې دوه زغرې ولې تړلې وې ؟ سر مبارک باندې ئې جنګی ټوپئ ولې استعمالوله ؟

په داسې وخت کښې آیا یو ګستاخ دا وئیلې شی چه اسلحه خو د شانِ نبوت خلاف وه څنګه چه نن سبا د علماؤ د شان خلاف ده (نعوذبالله) پیره خو د توکل او اعتماد خلاف وه (نعوذبالله) په بدن باندې دوه زغرې تړل په الله تعالی باندې ایمان کښې د کمزورئ د وجه نه وو (نعوذبالله)

بلکه داسې موقع باندې صرف هم دا وئیلې شی چه حضورصلی الله علیه وسلم دا هر څه خو د الله تعالی په حکم سره وکړل او الله تعالی لره د راضی کولو دپاره اود هغه حکم لره پوره کولو

دپاره دوی صلی الله علیه وسلم دا حفاظتی تدابیر اختیار کړل.

محدثین حضرات فرمائی چه حضورصلی الله علیه وسلم په بدن مبارک باندې دوه زغرې دد ې وجه نه ترلې وې چه امت ته دخپل حفاظت اهمیت او طریقه وښائی.

دوی صلی الله علیه وسلم په سرمبارک باندې د اوسپنې توپئ ددې وجه نه ایښې وه چه امت دخپل سر د حفاظت نه غافله نه شی.

حضورصلی الله علیه وسلم اسلحه ددې وجه نه اوچته کړې وه چه کافر مسلمانانو لره کمزوری ونه ګڼي بلکه هروخت دمسلمانانو نه مرعوبه وی.

حضورصلی الله علیه وسلم جنګی تیاریانې ددې وجه نه وکړې چه دوی او د دوی دین دنیاکښې د ورانیدلو دپاره نه دې راغلې بلکه د دنیا نه کفراوشرک لره د ختمولو دپاره راغلې دې ځنګه چه د حضورصلی الله علیه وسلم ارشادِ ګرامی دې: «او ځما نوم ماحی (ختمولووالا) دې ، الله تعالی ځما په ذریعې کفر لره ختم کړې دې»

هسې خو هم د دنیا عام اصول دی چه د قیمتی څیزونو د حفاظت دپاره مختلف تدابیر اختیارول کیږی چه هغې لره یو هم معیوب نه ګڼي ، خلق د سونې اوچاندی دحفاظت دپاره څه څه نه کوی، بلکه دخپلو څپلو د حفاظت دپاره مختلف تدابیر استعمالوی ، عام طور باندې د مالیاتی ادارو نه بهر مسلح څوکیداران په نظر باندې راځی چه هغوی لره چا هم بد ونه ګڼل ، د کورونو او څناورو د حفاظت دپاره سپی ساتلې کیږی ، پخپله شریعتِ مطره هم دهغې اجازت ورکړې دې چه د څناورو د حفاظت دپاره سپې ساتل جائز دی ، د کور د حفاظت دپاره دیوالونو او دروازو باندې اکتفا نه کولې کیږی بلکه زنجیرونه او تالې او څوکیداران هم مقررولې کیږی.

چه هرکله د دنیا د پاتې څیزونو (سونې چاندئ ، څناورو ) حفاظت یو مستحسن بلکه ضروری امر ګڼلې کیږی نو د الله تعالی دین او په هغه دین باندې تللو والا مسلمانان اود هغه دین رهبر علماء خو دهغه ټولو څیزونو نه زیات قیمتی دی ، الله تعالی د انسان نفس او مال او عزت لره حرام کړې دې اودهغه څیزونو د حفاظت دپاره ئې محکم قوانین جاری کړی دی.

نو آیا د دین په شان قیمتی څیز اود مسلمان په شان قیمتی فرد لره بغیر د حفاظت نه پریښودلې کیږی؟ هیچرې نه ، بلکه الله تعالی د اسلام اود مسلمانانو د حفاظت دپاره هم داسې محکم قوانین نازل فرمائیلی دی چه که چیرته مسلمان په هغه قوانینو او احکامو باندې عمل وکړی نو یو کافر ته به هم د سترګو اوچتولو جرات نه وی.

قرآن مجید کښې الله تعالی ځائ په ځائ د اسلام اود مسلمانانو د دښمنانو تذکره کړې ده دې دپاره چه مسلمانان ښه پوهه شی چه د هغوی دښمن څوک دې اود هغوی دوست څوک دې ؟ الله تعالی په قرآن مجید کښې دهغه دښمنانو د ښمنئ ترتیب پورې بیان کړی دی چه لوئ دښمن څوک

دي او ورو کې دښمن څوک دي، اود هغه دښمنانو عزائم ئې هم بیان کړل اودهغوی طریقه واردات ئې هم بیان کړه، په دې سلسله کښې آیتونه خو ډیر زیات دی لیکن مونږ دلته یو څو آیتونه د نمونې او مثال په طور بیانوو:

« تاسو به یهودیانو لره د ټولو خلقو نه زیات دمسلمانانو دښمنان اومومئ او مشرکانو لره » (مائده آیت: ۸۲)

«او کافران به همیشه تاسو سره جنګیږی تردې پورې چه ستاسو دین نه تاسو لره واړه وی که چرته د هغې طاقت ولری » (بقره آیت: ۲۱۷)

« ای مؤمنانو مه جوړوئ رازدار چا لره دخپلو (مسلمانانو) نه علاوه، هغه کافران کمې نه کوی ستاسو په خرابولو کښې، هغوی خوشحاله کیږی چه تاسو په ډیر تکلیف کښې یئ، ستاسو دښمنی ښکاره کیږی دهغوی ژبو نه او څه چه پټ دی دهغوی په زړونو کښې هغوی دهغې نه هم زیات دی » (آل عمران آیت: ۱۸)

په دې موضوع باندې په قرآن مجید کښې بې شمیره آیتونه دی مقصد دهغه ټولو مسلمانانو لره د کافرانو د دښمنئ نه اود هغوی د سازشونو نه خبرول دی او دا بیانول دی چه کافرانو ته اسلام او مسلمان یو حالت کښې هم خوښ نه دې، دهغوی دکوششونو مقصد اسلام اومسلمانانو لره ختمول دی، چنانچه د حضورصلی الله علیه وسلم په زمانه کښې صرف حضورصلی الله علیه وسلم لره دشهیدکولوکوم کوششونه وکړې شو دهغې د ذکر کولو دپاره هم یو دفتر پکار دې، د اجتماعی اوانفرادی حملو په ذریعې حضورصلی الله علیه وسلم لره دشهید کولو څه ډیر کوششونه وشول، زهرورکولوسره د شهیدکولو ناپاک سازش هم وشو، حضورصلی الله علیه وسلم باندې د پټې حملې کولو دپاره جنګی کیمپ هم په وجود کښې راغې، آسونولره هم په پالولوسره سربه کړې شو، مګر حضورصلی الله علیه وسلم په هرسازش باندې نظر ساتلواوهرې فتنې لره ئې د اوچتیدلونه وړاندې ښکسته کړه.

ځکه چه په قرآن مجید کښې الله تعالی صرف د کافرانو دښمنی اودهغوی سازشونه بیان نه کړه بلکه مسلمانانو ته ئې داسې هدایات هم وښودل چه په هغې باندې عمل کولو سره هغوی د کافرانو د مکر اوفریب نه بچ کیدلې شی، بلکه داسې هدایات ئې وښودل چه هغې باندې عمل کولوسره مسلمان دکفراوشرک خاتمه کولې شی.

الله تعالی مسلمانانو لره د کافرانو دپاره غافله جوړولوسره نه دی پریښودلی بلکه د مسلمانانو په خلاف ئې د کافرانو ټولې لارې بندې ګرې.

ځکه چه الله تعالی دینِ اسلام لره په دنیا کښې په ټولو دینونو باندې د غالب کولو دپاره رالیږلې دې او دا غلبه په هغه وخت کښې کیدلې شی چه په دې دین باندې عمل کولو والا او ددې

دین نوم اخستلو والا محفوظ وی او مضبوط وی ، الله تعالی د ایمان والو دپاره صرف د غلبې اود سربلندئ اعلان نه دې کړې بلکه هغه اعلان سره سره هغوی لره ئې د غلبې اود سربلندئ د لارو نه هم خبر کړی دی او د کافرانو سره ئې د جنګ طریقې هم ښودلی دی ، او مسلمانانو ته ئې ددې حکم ورکړې دې چه هغوی د کافرانو نه خپل حفاظت ( خپل دین ، خپل ځان ، خپل عزت ) لره د همیشه دپاره مقدم وساتی ، په دې باندې بې شمیره دلائل موجود دی ، په خبره باندې د پوهیدلو دپاره صرف (صلوة الخوف ) واخلئ ، الله تعالی مسلمانانو ته ددې حکم نه دې ورکړې چه تاسو په مونځ کښې د کافرانو سره بې فکره کیدلو سره ځما وړاندې ولاړ اوسئ زه به ستاسو حفاظت کوم ، بلکه حکم ئې ورکړې دې چه هرکله په مونځ کښې د کافرانو د حملې خطره وی نود مونځ په دوران کښې اسلحه اوچته ساتئ او زغرې ترلې ساتئ ، چرته چه د کافرانو سره جنګ شروع وی هغلته دې یو جماعت د امام نه وروستو وی هغوی به هم مسلح وی ، بیا دې دا جماعت نیم مونځ کولوسره په میدان کښې د کافرانو سره مقابله وکړی او دویم جماعت دې راتللو سره مونځ وکړی بیا د دوی نه پس دې رومبئ جماعت راتللو سره خپل مونځ مکمل کړی .

لږ غوروکړئ د مونځ په شان اهم عبادت چه د دین ستنه ده په هغې کښې ئې هم د حفاظت دا بهترین بندوبست اوفرمائیلو ، حالانکه د مونځ نه اوچت د الله تعالی سره قرب بل چرته کیدلې شی ، مګر دهغه قرب اومناجاتو په حالت کښې هم الله تعالی مسلمانانو ته حکم ورکړې دې چه هغوی دې د خپلې اسلحې نه غافلې نه وی اودخپل تحفظ بندوبست دې کوی او کافرانو ته دې د کاروائې موقع ورنه کړی ، ددې دپاره ئې هغوی ته اجازت ورکړو چه هغوی دې په مونځ کښې ګرځی راګرځی کافرانو لره دې وژنی مګر دهغوی مونځ نه ماتیږی ځکه چه دا ټول افعال ( ګرځیدل راګرځیدل جنګ کول کافرانو لره وژل ) هم عبادت دې اود الله تعالی حکم هم دې، ددې وجه نه د مونځ په صحت باندې څه اثر نه پریوځی .

د (( صلوة الخوف )) په آیت کښې الله رب العزت د کافرانو یو خواهش اودهغوی د یو مکر ذکر کړې دې ، ارشادباری تعالی دې چه : (( او په (مونځ کښې ) ځان سره ساتئ خپله اسلحه ، کافر غواړی چه په یوه نه یوه طریقه تاسو غافله شئ دخپلو اسلحو نه او اسبابو نه دې دپاره چه په تاسو باندې په یوځل حمله وکړی )) (نسآء آیت : ۱۰۲)

دا د قرآن فیصله ده چه کافران همیشه د مسلمانانو په تلاش کښې وی چه کله دوی د اسلحې نه غافل شی او کافران په هغوی باندې حمله وکړی ، دا خو د کافرانو خواهش دې لیکن الله تعالی څه غواړی ؟ نظر وکړئ ارشاد باری تعالی ته : (( او الله غواړی چه رښتیاکړی حق لره پخپلو کلامونو سره او کټ کړی بیخ د کافرانو ))

یعني الله تعالی غواړی چه مسلمانان د کافرانو سره جنګ وکړی اوهغه د هغوی نصرت کولو

سره د حق ربښتینوالی لره داسې ثابت کړی چه هرچاته اقرار کول پیښ شی ، الله تعالی که وغواړی نو بغیر د جنګ نه هم حق لره غالب او باطل لره مغلوب کولې شی، مګر الله تعالی د مسلمانانو امتحان اخلی چه آیا هغوی دهغه په حکم سره اسلحه اخستلوسره میدان کښې ننوتلوسره د دښمن سره جنګیږی اوکه نه ، بیا چه کله مسلمانان په هغه امتحان کښې کامیاب شی او د کافرانو سره جنګیږی نو الله تعالی خصوصی نصرت کوی اودهغه جنګ په عوض د دنیا نه د فساد خاتمه کیږی اومسلمانانو ته لوئ لوئ مقامات حاصلیږی لیکن که چرته مسلمانان د کافرانو مقابلې ته د ورتللو نه انکار کوی نو هغوی باندې ذلت راځی څنګه چه په حدیثِ صحیح کښې وارد شوی دی:

خلاصه دکلام دا شوه چه کافردمسلمانانو دښمنان دی اوهغوی د اسلام اود مسلمانانو د ختمولو په تلاش کښی دی ، الله تعالی مسلمانانو ته د کافرانو د شر نه د بچ کولو دپاره مختلف احکام ورکړل چه په هغې کښې یو حکم دادې چه مسلمانان په هغه کافرانو باندې خپل رعب او دهشت اچولو دپاره د جهاد ډیر سامان جمع کړی ، تر ټولو ښه اسلحه دې ساتی د اعلیٰ قسم تربیت یافته آسونه دې وپالی دې دپاره چه کافر مرعوبه وی اود کوم یو مسلمان جان اومال او عزت تباه نه کړې شی ، ارشاد باری تعالی دې چه: «او تیارکړئ دهغه کافرانو سره د جنګ کولو دپاره څه چه تاسو جمع کولې شئ په قوت سره او په ځربو آسونو سره چه په هغې سره رعب پریوځی د الله په دښمنانو باندې او ستاسو دښمنانو باندې» (انفال آیت نمبر ۶۰)

له دې آیتِ کریمه نه واضحه طور باندې معلومه شوه چه مسلمانانو ته هروخت اسلحه او دجنګ سامان تیارول پکار دی بالخصوص چه کله د کافرانو د حملې خطره وی نودهغه تیارئ اهمیت زیاتیږی۔

دغزوه تبوک په موقع باندې حضورصلی الله علیه وسلم د مدینې منورې د تحفظ دپاره څومره زبردسته تیاری وکړه اودمسلمانانو لښکر ئې تیارکړو۔

دصحابه کرامو رضی الله عنهم نه ئې اموال جمع کړل ، دجنګ سامان ئې واخستلو اوپه سخته ګرمئ کښې ئې اوږد سفر اوفرمائیلو اودهغه خطرې آثار ئې هم ختم کړه چه وروستو لویه خطره جوړیدلې شوه ، په هغه غزوه کښې جنګ ونه شو مګر دهغې باوجود چه کوم خلق په هغې کښې شامل نه شو حضورصلی الله علیه وسلم دهغوی سره قطع تعلق اوفرمائیلو اومسلمانانو ته ئې هم دهغوی سره د قطع تعلق حکم وکړو ، بالآخر پنځوسو ورځو نه پس دهغه حضراتو توبه قبوله شوه۔

د مکې مکرمې یوکافر خالدبن سفیان هذلی د منیٰ په علاقه کښې جناب محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم لره د شهید کولو دپاره یوکیمپ تیارولو ، دوی صلی الله علیه وسلم په پنځم (۵) محرم په سنه ۴هجری کښې خپل صحابی حضرت عبدالله بن انیس انصاری رضی الله تعالی عنه لره دهغه د وژلو دپاره ولیږلو او چه کله هغه کامیابیدلوسره واپس راغې نو هغه ته ئې یوه عصا

(کوټنئ) بطورِ انعام او اکرام ورکړه.

حضورصلی الله علیه وسلم پخپله باقاعده اسلحه اخستله څنګه چه د صحیح البخاری په روایت کښې دی: «حضورصلی الله علیه وسلم د بنی نضیرنه حاصل شوی اموالو کښې دخپلو بیبیانو مطهراتو رضی الله تعالی عنهن نفقه ویستلوسره باقی مال به ئې د جهاد فی سبیل الله دپاره اسلحه او آسونو اخستلو باندې خرچ کولو»

د حضورصلی الله علیه وسلم د اسلحې سره د محبت اندازه ددې نه لګیدلې شی چه حضورصلی الله علیه وسلم سره د عربو مشهورې اومعروفې تورې وې چه په هغې کښې په بعضو باندې د چاندې لاستی خیژولې شوې وې، دوی به همیشه د جنګ د سامان د زیاتولو په فکر کښې وو، غزوه بدر کښې مسلمانانو سره صرف دوه آسونه او یو څو تورې وې مګر د دوی جذبه ئې جهاد د اسلحې انبار ولګولو، پخپله حضورصلی الله علیه وسلم سره یولس تورې، اته نیزې، شپږ کمانونه، دوه خنجرونه، دوه جنګی ټوپیانې، اووه زغرې، څلورډهالونه، د جهاددپاره آسونه، قچر، اوښ، اوښې وې.

د اسلحې نه کرکه کولو والا او نفرت کولو والا دې په دې روایت باندې غور وکړی او پخپل مزاج باندې دې ماتم وکړی.

د حضرت عمربن حارث رضی الله عنه نه روایت دې چه حضورصلی الله علیه وسلم پخپله ترکه کښې سوا دخپل سپین قچر، دخپلې اسلحې او هغه زمکه چه صدقه کړې ئې وه هیڅ نه دی پریښودلی (صحیح البخاری ص ۴۳ج۱)

په بل روایت کښې تصریح ده چه دا قچر هم د حضورصلی الله علیه وسلم په جهاد کښې په کار راتللو، د حضورصلی الله علیه وسلم توره ساتل او زغره تړل وغیره وغیره خو په تواتر سره په احادیثو کښې راغلی دی، دهغه یهودی واقعه تول پیژنی چه هغه حضور صلی الله علیه وسلم یې د خوب په حالت کښې وکتلو او د دوی صلی الله علیه وسلم توره په ونه کښې زوړنده وه نو هغه دا توره اوچته کړه (الحدیث)

بهرحال حدیث سره ثابته شوه چه د خوب په وخت کښې به هم توره د حضور صلی الله علیه وسلم سره وه، د حضور صلی الله علیه وسلم نه پس د خلفاءِ راشدینو رضی الله تعالی عنهم په زمانه کښې هم دفاعی انتظاماتو ته خاص اهمیت حاصل وو، مسلمانان د تورې مالکان وو، د حضور صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم منجنیق زده کړې وو اود طائف په غزوه کښې ئې استعمال کړې هم وو، د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس صحابه کرامو رضی الله عنهم صبورنومې یو دفاعی اسلحه ایجاد کړه، د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دا تربیت یافته مجاهدین خپلې تورې او غشی اخستلوسره د روم او فارس مضبوطو قوځونوسره

وجنګیدل ، هغه وخته پورې د چا په خیال کښې هم نه وو چه تورې او اخلاق پخپل مینځ کښې متضاد څیزونه دی ، چاهم دا نکته په سوچ کښې نه وه راوستلې چه اسلحه د دهشت ګردو او غلو شعار دې ، چا امت ته دا مسئله نه وه ښودلې چه د اهلِ علم دپاره اسلحه سخته معیوبه ده ، په هغه زمانه کښې خو دسیدنا ابوهریرة رضی الله تعالی عنه په شان محدث ، د سیدنا ابن عباس رضی الله تعالی عنه په شان مفسر ، د سیدنا ابی بن کعب رضی الله تعالی عنه په شان قاری ، دسیدنا معاذبن جبل رضی الله تعالی عنه په شان مفتی ، دسیدنا ابوعبیدة ابن جراح رضی الله تعالی عنه په شان امین الامة ، سیدنا عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه په شان فقیه ، د سیدنا ابوبکرصدیق رضی الله تعالی عنه ، سیدناعمرفاروق رضی الله عنه ، سیدنا عثمان بن عفان رضی الله تعالی عنه، سیدنا علی بن ابی طالب رضی الله عنه په شان د علم سمندر او خلفاءِ راشدینو پخپله اسلحه ساتله پخپله ئې اسلحه چلوله او د اسلحې سره ئې محبت کولو .

د حضرت معاویه رضی الله تعالی عنه په زمانه کښې د مونځ په دوران کښې پیریدار په محراب کښې پیره کوله ، په هغه زمانه کښې جماتونو کښې دننه مقصورې (حفاظتی مورچې) په ړومبنی صف کښې جوړې کړې شوې وې او صحابه کرامو رضی الله عنهم او غټو تابعینو او ائمو په هغه مورچو کښې مونځونه ادا کړی دی ، دهغه زمانې مسلمانان د یوې لمحې دپاره هم دخپلې اسلحې نه غافل اود خپلې دفاع څخه نه بې پرواکیدل ، ځکه چه هغوی ګڼل چه د اسلام عزت ، دمسلمانانو عزت او تحفظ په همدې کښې دې ، که چیرته د مسلمانانو تحفظ کمزورې شو او سرحدونه کمزوری شول نو اسلامی شعائر به هم محفوظه پاتې نه شی ، د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم په شان په تابعینو کښې هم دا ذوق وو ، د حضرت امام حسن بصری په شان اوچت امام پخپله اسلحه اوچته کړه او په میدانونو کښې وجنګیدلو اود کابل په جنګ کښې ئې حصه واخستله ، په هغې سره نه خو د حسن بصری په علم کښې کمئ راغې اونه دهغه په فضیلت کښې څه کمئ راغې اونه د تصوف هغه بې تاجه بادشاه ته چا طعنه ورکړه چه بزرګی او اسلحه خو جدا جدا څیزونه دی تاسو دا اسلحه ولې اوچته کړې ده .

دحضرت حسن بصری شاګرد لیکی چه په بوډها توب کښې هم دوی جهاد نه دې پرېښودلې اود اسلحې نه ئې زره نه دې جدا کړې ، حالانکه طبیب به منع کولو مګر حسن بصری د جهاد په خوند کښې ډوب وو .

د تابعینو نه پس اهلِ علمو او اهلِ فضل محدثینو او فقهاؤ د جناب محمد صلی الله علیه وسلم په طریقې باندې جهاد لره جاری وساتلو او د اسلحې سره ئې مینه وکړه ، د حضرت عبدالله بن مبارک په شان محدث اود امام اوزاعی په شان فقیه په میدانونو کښې جنګیدل اود علم خدمت ئې هم کولو ، د هغه علماؤ او مشایخو یو اوږد فهرست دې چاچه د علم او معرفت سره سره د جهاد

ډیوه هم بله کړې ده او په هغوی کښې په زرګونو علماء کرامو د شهادت جام هم نوش کړو ، په سلفو کښې چا هم اسلحې لره د علم منافی او جهاد لره د بزرګئ ضد نه دې ګرځولې بلکه دچا نه چه څومره کیدلې شوه هغه د الله تعالی د طرف نه د نازل شوی ددې محکمې او قطعی فریضې خدمت وکړو ، څوک پخپله میدان ته اووتل ، چا کتابونه ولیکل ، چا د جهاد د مسائلو رسالې ولیکلې
نن سبا د یو اسلامی کتب خانې د تفسیر ، حدیث ، فقه او اصولِ فقه یو کتاب هم داسې نشته چه په هغې کښې د جهاد فضائل ومناقب او اسلحې سره د محبت درس نه وی ذکر شوې، بلکه زمونږ د اسلافو خو د ډیر وړاندې نه دا نظریه راروانه ده چه جهاد افضل ترین عبادت دې اود جهاد په ذریعې سره په علومو کښې برکت وی ، د صحابه کرامو رضی الله عنهم په علومو کښې برکت هم ددې جهاد د مبارک عمل په وجه وو ، هغوی چه څه په قرآن کښې اوریدل هم هغه به ئې د جهاد په میدان کښې لیدل ، د هغوی په نیز د د الله تعالی نصرت او طاقت یو محسوس څیز وو ، ددې وجه نه د هغوی علوم ډیر اوچت وو ، په آخره کښې زمونږ اکابرعلماء دیوبند هم په دې طرزِ عمل باندې قائم وو ،چشم فلک د برصغیرد تصوف امام حضرت حاجی امدادالله مهاجر مکی رحمه الله تعالی ، حجة الاسلام قاسم العلوم والخیرات حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوی رحمه الله تعالی ، فقیه النفس ابوحنیفۂ ثانی حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهی رحمه الله تعالی ، برکة العصر حضرت مولانا حافظ ضامن شهید رحمه الله تعالی ، امام زمانه حضرت مولانا سیداحمد شهید رحمه الله تعالی ، عالم ربانی حضرت مولانا اسماعیل شهید رحمه الله تعالی ، لره په لاسونو کښې اسلحه نیولوسره په میدانونو کښې لیدلې شوی دی ، هغه اهلِ علمواواهلِ فضل اکابرو د ذلت په ژوندون باندې د عزت مرګ لره ترجیح ورکړه اوهغوی په میدانونو کښې وتلو سره د انګریزانو سره په بهادرئ سره مقابله وکړه ، مګر چاته هم دا جرات ونه شو چه هغوی په هغه اکابرو باندې طعن کړې وې چه د دین محافظ یعنې د الله رب العالمین په موجودګئ کښې هغه حضراتو اسلحه اوچتولو سره علم لره عیب وګڼلو او د دین توهین ئې وکړو (نعوذبالله)
مګرافسوس زرځلې افسوس د انګریزانو د مکارئ آره وچلیدله ، د مرزاقادیانی ملعون د ناپاک جادو څه اثر وچلیدلو ، انګریزانو علماؤ لره ذلیل او رسوا کول غوښتل هغوی علماؤ لره کمزوری اود نورو محتاج جوړولو سره دین لره ذلیلول غوښتل ، هغوی د علماؤ قوت او عظمت نه خائف وو ، هغوی په دې نکتې باندې پوهه شوی وو چه د دیندارو په قوت کښې د دین د عظمت راز پټ دې ، ددې وجه نه دیندارو لره دې خالی لاس کړې شی .
انګریز محنت وکړو ، مرزاقادیانی کتابونه ولیکل ، ذرائع ابلاغ په حرکت کښې راغلل او ټولو په شریکه دا فیصله وکړه چه اسلحه د دهشت ګردئ نښه ده ، اسلحه د اهلِ علم د شان خلاف ده ، اسلحه د غنډه ګانو د ناپاکو عزائمو د تکمیل لاره ده ، اسلحه د مشایخو دستارلره د عیب جوړولو

والا څیز دي ، دا پروپاګند دومره زورداره شوه چه د زیرې تبې په شان دمسلمانانو په زړه او جګر باندې خوره شوه .

د نبی السیف ( توري والا نبی ) امت د تورې سره نفرت شروع کړو . دالله تعالی احکام ئې نظر انداز کړل علماء بدنام کړې شول ، اهلِ علم کمزوری شو ، اسلحه غلو او ډاکوانو ته ورکړې شوه ، اسلحه د جاګیردارانو اود ظالمانو د ظلم محافظه جوړه کړې شوه ، اسلحه د دین د محافظانو نه اخستلو سره د دین دښمنانوته ورکړې شوه ، ایمان او جهاد چه تر پرونه پورې لازم او ملزوم وو نن د یو بل نه جدا ښکاره کړې شو، فاسق طاقتور او مؤمن کمزورې شو، قاتل طاقتور اودیندار مظلوم شو، د اسلحې په زور باندې ملحدانو حکومتونه حاصل کړل ، علماء په جمات او مدرسه کښې محدود کړې شو، که چرته اهلِ علمو آواز اوچت کړو نو هغوی به په ګولوسره سورې کولوسره د نورو دپاره د عبرت نښه جوړه کړې شوه ، سپی پرینښودلې شو ، بیا ژبې د اسلام په خلاف شروع شوې، مګر هغه ژبو ته قیضې اچولو والا بې بسه خولې کتلوسره پاتې شول ، بیا قلم د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم په ناموس باندې ډاکې اچول شروع کړې مګر دهغه ناموس محافظ هیڅ ونه کړې شو، د علماؤ ګیرې وشلولې شوې ، د ختم نبوت مسئلې په شان د اجماعی مسئلې د وژلو او ختمولو کوشش وکړې شو، د اسلام نظام ته په ډک بازار کښې کنځلې وکړې شوې ، د اهلِ حق علماؤ بدنونو لره په ګولوسره سورې سورې کړې شول ، مګر اهلِ دل رپیږې اود اسلحې نه د غفلت سزا ورته ملاویږې .

دکوم منبر نه چه د عصماء یهودیه د قتل حکم ملاؤ شوې وو دهغه منبر نه د دین په تباهئ باندې د صبر پیغام خوریدل شروع شو، دکوم منبر نه چه د کعب بن اشرف د قتلولو حکم ملاؤ شوې وو دهغه منبر نه د سلمان رشدی د قتل فیصله صادره نه کړې شوه ، کفر په ډک بازار کښې ګډیدلو او اهلِ ایمان والو د سر پټولو دپاره د پناه ځائ لټولو .

په داسې وخت کښې زمونږ په پاکستان کښې د اسلام نه سوا د هرڅیز آزادی ده د جمهوریت عفریت د اسلام مقدس نظام ته بد ګوری ، د پاکستان زمکې د مولانا جهنګوی اود مولانا ایثار القاسمی وینه وسکله ،دلته د ختمِ نبوت په شان متفقه مسئله حل کولو دپاره په زرګونو ځوانانو ځان قربان کړو ، او اوس خو حالات دې حده پورې راغلی دی چه غنډه ګرد عناصر ښکاره په جماتونو کښې په مونځ کوونکو باندې فائرنګ کوی اود جماتونو تقدس په اسلامی ممالکو کښې پامال کیږی .

دومره قدرې تفصیلی تمهید نه پس اوس راځو خپلې اصل موضوع طرف ته .

د فقیه العصر حضرت اقدس مولانا مفتی رشید احمد صاحب لدهیانوی دامت برکاتهم العالیه شخصیت د تعارف متحاجه نه دې ، د دوی علمی او روحانی فیوضاتو نه ټوله دنیا مستفیده ده .

په افریقه کښې یو ځلې بنده ته دیولوئ شیخ الحدیث اود عارف بالله بزرګ په مجلس کښې د حاضرئ شرف حاصل شو ، دا بزرګ عالم دین اود اعلی درجې محقق هم دې ، او په افریقه کښې دهغه د مریدانو اود متوسلینو یوګڼ شمیر موجود دې اوریدلی مې دی چه په اروپا کښې هم دهغه یوه لویه حلقه ده ، بنده د هغه په مجلس کښې د حضرت اقدس مفتی صاحب تذکره وکړه نو هغوئ اوفرمائیل : «تاسو خلق خوش قسمته یئ ، حضرت مولانا مفتی رشید احمد لدهیانوی خو په دې وخت کښې په علومو کښې یو فرد دې»

بهرحال عرب اوعجم کښې دحضرت مفتی صاحب د علومو او معارفو شغلې خورې شوی دی ، د دوی محققانه ذوق اوعلمی تحقیقات او روحانی مقاماتو باندې خو په دې وخت کښې امتِ مسلمه فخر کولې شی ، بیشکه د دوی په شان متقی فقیه د امت دپاره لویه سرمایه ده ، الله تعالی دې د دوی په ژوند کښې برکت واچوی اود علم اومعرفت دا جاری چینه دې امت لره سیرابه کړی ، آمین ثم آمین .

د حضرت اقدس مفتی صاحب نه چه چرته الله تعالی ډیر کار واخستلو هغلته د دوی نه ئې یو اهم کار دهغه باطلو فرقو په خلاف واخستلو چه د امت په ایمان باندې ئې ډاکه اچوله ، دوی تقریباً د هرې فتنې په خلاف ولیکل اود لیکلو حق ئې ادا کړو ، د دوی حق پرست قلم د تورې په شان دهغه فتنو په شاه رګ باندې پریوتلو نو علمی طور باندې دهغې مرګ ثابته شو ، دوی د تحریراود تقریر په ذریعې خپل خالص ایمانی جذباتو لره په کار راوستلوسره هرباطل سره مقابله وکړه مګر نن د امت ډیر خلق دهغه جذباتو نه محروم دی .

حضرت اقدس مفتی صاحب چه کله افغانستان ته تشریف یوړواو مونږه دوی ته د کیمونسټ فوځ جرنیل وښودلو ، هغه جرنیل چه د مسلمانانو په خلاف میدانونو کښې جنګیدلو اوهغه ته روسی طاقت باندې لوئ ناز وو مګر د الله شیرانو هغه ګیدړانو لره ژوندی ونیول نو هغوی د نورو دپاره عبرت جوړ شول ، اوس هغه ظالم درندګانو پخپلو مخونو باندې دمظلومیت اود لاچارئ داسې پردې واچولې چه څوک هم هغوی ته ګوری ترس یی پرې راځی ، مګر الله تعالی دې جزائې خیر ورکړی حضرت اقدس مفتی صاحب ته چه هغه قاتلانو ته ئې په غصه کښې اوفرمائیل : «ځما په نیز ستاسو سزا مرګ دې که چیرته ځما اختیاروې نو ما په تاسو پخپلو لاسونو سره وژلی وئ»

ما پورته واقعه قصداً لیکلې ده دې دپاره چه زمونږه دهغه بزدله مسلمانانوعقل په ځائ راشی چه د ظالم او جابر حکمرانانوپه مرګ سره هم ویریږی اود خپلو اسلافو تاریخ لره ئې هیر کړې دې ، اود صحابه کرامو رضی الله عنهم جهادی نعرو لره ئې هیرولوسره د بې بسئ ژوند تیروی ، اود بزدلئ هغه اوچت مقام ته رسیدلی دی چه پخپلو لاسونو کښې اسلحه قدرې نه شی اوچتولې ، که چرته څوک دهغوی په لاسونوکښې توپک ورکړی نو رپیږی او ویریږی چه هسې نه کومه ګولئ سرچپه ونه چلیږی اودهغوی قیمتی ساه د وخت نه وړاندې ونه وځی .

حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم چه دهغه یویوعمل د شریعت مطهره د احکامو نه عبارت دې د رافضیت د فتنې په خلاف یې توره په لاس اومیدان ته اووتلو اودهغه فتنې صرف د کفر نه بلکه دهغې په باره کښې د اسلامی حکم هم دوی په بهادرئ سره اعلان وکړو ، دا اعلان په یوه بنده کمره نه بلکه په ډیرو ښارونوکښې دمسلمانانو په لویو جلسو کښې دوی د صحابو کرامو دښمنانو ته چلنج ورکړو.

## د فارس ((ایران)) محلات ولړزیدل ، خمینیت افسوس شروع کړو

مسلحې چمچې په حرکت کښې راغللې او ددې علم او عمل جوړ شوی شخصیت لره د ختمولو دپاره یې کوششونه شروع کړل ، ددې حالاتو په نظر کښې نیولوسره د حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم خادمانو او مجاهدینو د دوی نه د حفاظتی تدابیرو او مسلحې پهرې اجازت وغوښتلو ، چه هرکله د مجاهدینو اصرار ډیر زیات شو نو دوی د دارالافتاء په خلکو او شاګردانو او متعلقینو کښې نورو اهلِ افتاء او علماؤ لره د قرآن او سنتو په رڼا کښې د شریعت په حدودو کښې دننه ددې مسئلې حل لټولو حکم اوفرمائیلو ، اهلِ علم او مجاهدینو سره مشورې وشوې ، د حضور صلی الله علیه وسلم د حیاتِ طیبه د پاڼو اړول وشو ، چه دهغې په نتیجې کښې دا فیصله وشوه چه د حضرت مفتی صاحب او د دوی د ادارې اود طلباؤ دپاره شرعی اصولو باندې د مسلحې پیره دارئ سلسله شروع کړې شی ، ددې کارِ خیر دپاره ځوانانو خپلې ځوانیانې پیش کړې ، مجاهدینو د حضرت مفتی صاحب په علمی مرکز کښې د پیرې ترتیب جوړ کړو ، د فوځ لوئ افسران په هغه ترتیب باندې شاباشې ورکولو سره پاسیدل ، دارالافتاء والارشاد چه دارالجهاد هم وو اوس باقاعده دارالجهاد جوړ شو ، اسلحه هرطرف ته په نظر ښکاره شوه.

د کافرانو مور مړه شوه ، د مسلمانانو په کمزورئ باندې د غنده ګردئ رعب اچولو والا د ویریدونکې پیشو په شان دارالافتاء طرف ته کتل شروع کړل ، د سپو غاښونه مات شو د شرمخ لکئ وشلیدله ، یو دوه ځلې چا بهادری ښکاره کړه خو هغوی چپ کړئ شول.

د مفتی صاحب دا عظیمه دارالافتاء د مسجدِ نبوی د اعمالو میدانِ جوړ شو څومره مسلمانانو ته د اسلحې لیدلو سعادت ملاؤ شو ، څومره ته د پیرې لکولو فضیلت ملاؤ شو ، په زرګونو انسانانو لره هغه عملی قدم د جهاد عاشقان جوړ کړل ، د مرزا قادیانی د قبر اور نورې هم چغې وهلې ، د حضرت مفتی صاحب دارالافتاء دهغه د عزائمو قبرستان ثابت شو ، دملک په داخل کښې او بیرون له ملک نه راتللو والا علماء په ابتداء کښې دې نوی طرزِ عمل نه پریشانه کیدل بیا رو رو مانوسه کیدل او بیا په یو ځو ورځو کښې خپل رومبنی ژوند ته راګرځیدلو سره یې توبه کوله او اسلحې لره ئې سینې سره لګوله.

دنیادارو ته د اهلِ علم د عظمت احساس وشو ، په زرګونو مړه احکام ژوندی شو ، د پیره دارئ

اود تیراندازئ اود توري بازئ حديثونه په كتابونو كښې لټول شروع شو ، خوش قسمته د يو بل نه نمبر يوړو ، اسلحه دارالافتاء كښې څه راغله چه د مولانا جلال الدين حقاني په شان ددې دوړ عظيم فاتح يې هم را جذب كړو ، د علم او عمل دوه بادشاهان چه كله په دې دارالافتاء كښې جمع شو نو : «د لينن مجسمه هم په هغه وخت دخپل ځائ نه وخوزيدله»

سبيا خو دارالافتاء د كمانډرانو اود غازيانو داسې مركز جوړ شو چه كتلو والا هک بک حيران شو اود افغانستان فاتح دارالافتاء والارشاد نه دعلم او روحانيت خزانې تښتول شروع كړې اود دارالافتاء طلباؤ او علماؤ دجهاد په خالى خانو كښې رنګ ډكول شروع كړل.

په داسې وخت كښې جهاد لره فساد ګڼلو والا دې د خپل ايمان خير وغواړى ، او رو ته د ګوتې نيولو نه وړاندې دې دخپل ايمان تجديد وكړى او امت مسلمه ته دې نور د ذلت اود غلامئ سبق نه ښائى ، كه چرته هغوى بزدل وى ، د اسلحې اوچتولو طاقت نه لرى نو خپله بزدلى دې خپل ځان سره وساتى ، قرآن اوسنت نه دې غلط تعبير نه كوى چه دخپلې بزدلئ دپاره دلائل جمع كړى او خپل خپل مرض نور هم متعدى جوړ كړى .

دا موضوع نور هم ډير تفصيل غواړى، په دې وخت كښې بې شميره دلائل او نكات بحمدالله تعالى په ذهن كښې دى مګر د « صدائے مجاهد » د حجم اود خپلې مشغولتيا په بناء باندې آخر كښې مختصرطورباندې درې خبرې عرض كوم، الله تعالى دې مونږټولوته داسلام پوهه نصيب كړى

اسلحه ساتل د توكل قطعاً خلاف نه دى بلكه د الله تعالى حكم دې ، هم ددې وجه نه هريوسړې پدې سوچ كولوسره چه رازق خو الله تعالى دې، روزى كټل نه پريږدى ، خپلې ادارې لره د چلولو دپاره اسباب جمع كول نه پريږدى ، ځكه چه توكل د اسباب اختيارولو منافى نه دى ، پخپله د حضور صلى الله عليه وسلم په كور باندې صحابه كرامو رضى الله عنهم پيره كوله ، حالانكه د دوى نه زيات څوک متوكل دى ، د بعضې محدثينو او فقهاء كرامو په نزد خو دا پيره آخرى عمر پورې وه ، د تفصيل دپاره تفسيرابن كثير او تفسير مظهرى وګورئ.

دخلقو وينا ده چه د حضرت مفتى صاحب په ځائ كښې د پيرې د وجه نه څينى خلق متنفره شوى دى ، دا يوه دروغ خبره ده ، ځكه چه د حضرت مفتى صاحب په دې عمل سره خو عوامو او خواصو ته د جهاد د اهميت احساس شوې دې اوپه زرګونو خلقو ته د شركت موقع ملاؤ شوې ده ، د دوه سوو علماؤ نه زياتو دجهاد تربيت حاصل كړو او په هغې كښې يى عملاً حصه واخستله ، ډيرو زياتو اهلِ علمو ته جهاد باندې د تحقيقى كار كولو همت شوې دې.

د برطانيې يو لوئ عالم چه كله دحضرت مفتى صاحب په ځائ كښې دا نظام وكتلو نو دومره متاثره شو چه نن دهغه يومجلس هم د جهاد د تذكرې څخه نه خالې كيږى.

كه چيرته بالفرض والمحال بعضې خلقو ته دا عمل ښه نه ښكارى نو په دې كښې د حضرت

مفتی صاحب څه قصور دې ؟ په دې کښې قصور خو د هغه خلقو دې چاچه امت لره د اسلحې نه لرې ساتلې دې اود جهاد سبق ئې ورته نه دې ښودلې تردې پورې چه امت دې حال ته را ورسیدلو چه نن د جهاد نوم اوریدلو سره د ډیروزیاتو خلقو رنګ بدلیږی او مخونه یې توریږی حالانکه قرآن مجید کښې دا علامه د منافقانو بیان شوې ده چه د جهاد نوم اوریدلو سره دهغوی مخونه توریږی او په هغوی باندې مرګ راچاپیره کیږی .

اهلِ علم او اهلِ کمال حضرات غیرِ علماؤ (عوامو) لره عموماً اوفاسق اوفاجر خلقو لره خصوصاً د کتابونو دلیکلو اود تفسیر کولو نه منع کوی ځکه چه په دې سره ګمراهی خوریږی دهغوی دا عمل خو صحیح دې .

همدغه شان اهلِ علم او اهلِ دین ته پکار دی چه هغوی دفاسقو اوفاجرو خلقو په لاس کښې اسلحه ورنه کړی ځکه چه په دې سره به فسق ته قوت حاصل شی اود دین به نقصان وشی ، اسلحه د جنابِ محمد صلی الله علیه وسلم وراثت دې ددې وجه نه دا د دیندارو خلقو اود اهلِ علم په لاس کښې پکار ده دې دپاره چه دین ته قوت حاصل شی او اسلام ته عظمت حاصل شی .

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه سیدنا محمد وعلی اله واصحابه اجمعین**

**محمد مسعود اظهر**

**(ماهنامه صدائ مجاهد (( اسلام آباد ربیع الثانی ۱۴۱۴هـ)**

## الحاق

د حفاظتی تدابیرو په دلائلو کښې د احادیثو په بیان کښې لاندې حدیث د کتابت نه پاتې شوې وو چه دلته د (( الحاق )) په صورت کښې لیکل کیږی .

وړاندینی پنځه شپته روایات وو اوس ددې حدیث په اضافې سره شپږ شپته شو .

حدیث دادې : **عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال الراکب شیطان والراکبان شیطانان والثلاثة رکب، رواه مالك والترمذی وابوداؤد والنسائی (مشکوة ص ۳۳۹)**

رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : ((یو سوریدونکې یو شیطان دې او دوه سوریدونکی دوه شیطانان دی او درې سوریدونکی د صحیح سوریدونکو جماعت دې ))

دا حدیث د اسلام د ابتدائی د زمانې دې ، یعنې د کافرانو د غلبې د وجه نه د حفاظتی تدابیرو دومره تاکید کولې کیږی چه د دریو سوریدونکو نه کم یو یا دوه پیاده خو پریږده، سوریدونکو ته هم د بهروتلو اجازت نه وو ، په دې باندې ئې دومره سخت وعید اوفرمائیلو چه د دریو سوریدونکو نه کم وتلو والا سوریدونکی یی شیطانان وګرځول ، چه کله د دریو سوریدونکو نه کم هم شیطانان دی نو پیاده خو به نور هم لوئ شیطان وی .

**عبدالرحیم : نائب مفتی دارالافتاء والارشاد ناظم اباد کراچی**

# باب المرتد والبغاة

## د مرتد د مال حکم

**سوال**:- یوه مسلمانه زنانه مرتده شوه اوپه همدې حال کښې دهغې انتقال وشو، دهغې جائیداد دهغې مسلمانانو ورونو سره شریک وو ، دهغې دجائیداد شرعی وارث به څوک جوړیږی؟ بینواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ارتداد په صورت کښې د سړی اود ښځې د اموالو احکام مختلف دی ، ددې وجه نه دهریو حکم جدا جدا لیکلې کیږی:

که سړې مرتد شی نودهغه مال دهغه له ملکیت نه وځی ، البته دوباره د اسلام قبلولونه وروسته دهغه په ملکیت کښې راګرځی.

او که دارتداد په حالت کښې قتل کړې شو یا مړشو یا دارالحرب ته لاړو نو د حالت اسلام ګټلې شوې مال په مسلمانانو وارثانو کښې تقسیمیږی اود حالت ارتداد ګټلې مال یی په بیت المال کښې داخلیږی ، د بیت المال نه کیدلو په صورت کښې به مسکینانو باندې صدقه کیږی

که ښځه مرتده شی او په همدې حالت کښې مړه شی یا دارالحرب ته لاړه شی نودهغې ټول مال به په وارثانو باندې تقسیمیږی ، خواه که په حالت د اسلام کښې ئې ګټلې وی اوکه په حالت د ارتداد کښې یی ګټلې وی ، لهذا دهغه مړه کیدونکې زنانه په ترکه کښې د کافر رشته دارانو هیڅ حق نشته دې.

قال فی التنویر وشرحه: (ویزول ملك المرتد عن ماله زوالا موقوفا فان اسلم عاد ملکه وان مات او قتل علی ردته) اوحکم بلحاقه (ورث کسب اسلامه وارثه المسلم) ولو زوجته بشرط العدة زیلعی (بعد قضاء دین اسلامه وکسب ردته فیء بعد قضاء دین (دته) وقالا میراث ایضا ککسب المرتدة (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۳) والله تعالی اعلم ۲صفر ۷۳هجری

## د مرتد د هبې ، وصیت اود وراثت حکم

**سوال**:- د زید پلار مرتد شو نو آیا زید ته د هغه په کورکښې اوسیدل جائز دی اوکه نه ؟ همدارنګه دهغه په آمدنۍ سره خوراک څکاک اودنورو ضروری څیزونو اخستل جائز دی اوکه نه؟ دهغه په ترکه کښې به د زید حصه وی اوکه نه ؟ په ژوند کښې که چیرته هغه زید ته څه ورکړی یا د مرګ نه وړاندې د زید دپاره څه وصیت وکړی نو آیا د زید دپاره به یی اخستل جائز وی اوکه نه ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مرتد له مال سره دهغه د مسلمانانو وارثانو اود بيت المال حق متعلق کيږي ، که چيرته هغه قتل کړې شو ، يا حالت ارتداد کښې مړشو يا دارالحرب ته لاړو نو په حالتِ اسلام کښې ګټلې شوې مال به دهغه په مسلمان وارثانو باندې تقسيميږي او د حالتِ ارتداد ګټه به يې په بيت المال کښې جمع کولې شي ، ددې وجه نه مرتد پخپل مال کښې ديو غيروارث دپاره هبه ، وصيت وغيره تصرفات نه شي کولې.

که چيرته زيد د هغه مرتد پلار په وارثانو کښې ځانله وارث وی نودهغه نه هغه مال قبلولې شي کوم چه هغه په حالتِ اسلام کښې ګټلې وو ، همدغه شان حالتِ اسلام کښې جوړ شوی کور کښې اوسيدلې هم شي ، دهغه مال نه د زيد دپاره هبه ، وصيت وغيره قبلول هم صحيح دی ، د وصيت په صورت کښې به دا مال دهغه دمرګ نه وروسته زيد ته بطورِ وراثت ملاويږی نه بطور وصيت ، ځکه چه د وارث په حق کښې وصيت جائز نه دې.

او که چيرته د زيد نه علاوه دهغه نورمسلمانان وارثان هم وی او ټول عاقلان بالغان وی نو زيد دهغوی په رضا سره په هغه کور کښې اوسيدلې شي اود حالتِ اسلام د آمدنۍ نه خوراک اوڅکاک هم کولې شي.

بطورِ هبه اووصيت د نورو وارثانو په رضا سره داسې ځيز قبلولې شي چه ناقابلِ تقسيم وی ، يعنې چه تقسيم کړې شي نو په کار نه راځی ، لکه ډير وړوکې کور او ګاډې وغيره.

کوم ځيز چه قابلِ تقسيم وی هغه نه شي قبلولې ځکه چه دا مال د ټولو وارثانو مشترک دې او دا هبه په حقيقت کښې د وارثانو د طرفه ده او د داسې قسم مشترک ځيز هبه صحيح نه ده.

د مشترک ځيز وصيت هم په حقيقت کښې د وارثانو د طرفه هبه ده ، مګر د مرتد د قتل يا د مرګ يا دارالحرب ته د تللو نه پس د زيد په قبضه کښې به راځی ددې وجه نه په هغې کښې دا شرط دې چه هغه وخت به مسلمانان وارثان ټول راضی وی او ټول به عاقلان بالغان وی ، د مرتد د قتل يا د مرګ يا دارالحرب ته د تللو نه وړاندې دهغوی د رضا اعتبار نشته ، رضا به هغه معتبره وی چه د وارث جوړيدلو په وخت کښې متحققه وی.

زيد که چيرته مسکين وی نو مصارف په بيت المال کښې د داخليدلو د وجه نه دمرتد د هغه مال نه هم نفع اخستلې شي چه هغه په حالتِ ارتداد کښې ګټلې وی.

قال في التنوير وشرحه: (ويزول ملك المرتد عن ماله زوالا موقوفا فان اسلم عاد ملكه وان مات اوقتل على (ردته) اوحكم بلحاقه (ورث كسب اسلامه وارثه المسلم) ولو زوجته بشرط العدة زيلعى (بعد قضاء دين اسلامه و كسب ردته فيء بعد قضاء دين ردته (وقال بعد صفحة) ويتوقف منه المفاوضة والتصرف على ولده الصغير والمبايعة والعتق والتدبير والكتابة والهبة والاجارة والوصية ان اسلم نفذ وان هلك اولحق

بدار الحرب وحکم بطل (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۳) والله تعالی اعلم (۱۵محرم ۹۳ هجری)

## د قادیانیانو سره تعلقات

**سوال** :- قادیانیانو لره په ملک کښې غیرمسلم اقلیت گرځولې شوی دی نو اوس خو دوئ ذمی کافر دی ، سوال دادې چه :

(۱) که چیرته یو قادیانی میلمه راشی نو دهغه اکرام او میلمستیاجائزه ده اوکه نه ؟

(۲) که چیرته یو قادیانی په کوم مقصد سره درود شریف یا د قرآن مجید ختم وکړی نو مسلمان ته په هغې کښې شرکت جائز دې اوکه نه ؟

(۳) قادیانی یو مسلمان ته دعوت ورکړی چه په هغې کښې ذبیحه هم د قادیانیانو وی نو داسې دعوت قبلول جائز دی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قادیانیان دغیرمسلم اقلیت گرځولو باوجود ذمیان نه دی ځکه چه دوی زندیق دی او زندیق په یو صورت کښې هم ذمی نه شی جوړیدلې بهرصورت واجب القتل دی ، ددې وجه نه د قادیانیانو سره هیڅ قسمه تعلق جائز نه دې ، د مذکورة الصدر دریو واړو سوالونو جواب په نفی کښې دې ، والله تعالی اعلم ، ۲۸شعبان ۹۴ هجری

د شیعه گانو اود قادیانیانو وغیره د زندقه او زنادقه احکام تفصیل په «کتاب الحظروالاباحة» کښې دې.

## د تیر شوی سوال په شان یو بل سوال

**سوال** :- د قادیانیانو په باره کښې یو څو سوالونه دی :

(۱) قادیانی د مسلمان جنازې ته اوږه ورکولې شی اوکه نه ؟

(۲) قادیانی سره یو ځائ مسلمان خوراک څکاک کولې شی اوکه نه ؟

(۳) واده یا په بل تقریب کښې قادیانی مسلمانانو لره بللې شی اوکه نه ؟

(۴) که یوقادیانی مسلمان ته سلام وکړی نوجواب کښې یی باید څه اووئیلې شی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قادیانیانوسره داسې قسم تعلقات قطعاً جائز نه دی ، دوی د عامو کافرانو نه بدتر زندیقان او واجب القتل دی ، دهغوی په خوشحالئ اوغم کښې شرکت کول یا پخپل واده غم کښې هغوی لره شریک کول ، دهغوی سلام کلام، غرض داچه هیڅ قسمه تعلق ورسره ساتل جائز نه دی ، د مسلمان د جنازې سره داسې مغضوب خلقو لره دتللو هیچرې باید اجازت ورنه کړې شی ، والله تعالی اعلم ،

۱۳جمادی الاخره ۹۵ هجری

قادیانیانو سره دتعلقاتو لرلو یو څو احکام د جلدِ اول په « کتاب الایمان والعقائد » کښې هم

دی او زیات تفصیل یی په «کتاب الحظر والاباحة» کښې دې.

## د خاوند له ارتداد سره فوراً نکاح ماتیږي

**سوال** :- په کمپنئ کښې یو ذمه دار افسر دا الفاظ اووئیل : «که چرته الله تعالی د کمپنئ کار خراب کړی نو هغه لره به هم پهانسی ورکړو ، که چرته د الله تعالی خوئ هم راشی نودهغه نه به هم کار اخلو» دهغه د دین او ایمان اود نکاح څه حکم دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا سړې مرتد شو دهغه نکاح هم فوراً ماته شوه ، دهغه په ښځه باندې فرض دی چه بلاتاخیره دهغه نه جدا والې اختیارکړی ، هغه دوباره مسلمانولو سره له سرنه دې دهغه نکاح وکړې شی ، که چیرته مسلمان نه وی نو په حکومت باندې فرض دی چه هغه لره په عبرتناکه طریقه باندې مړ کړی او دخلقودپاره دې د عبرت نمونه جوړه کړی.

مرتد کیدلو سره دجمهور امت په اجماع سره نکاح ماتیږی ، په هغې کښې د قاضی د قضاء ضرورت نشته.

**قال فی التنویر: وارتداد احدهما فسخ عاجل،**

**وفی الشرح: بلا قضاء**

**وفی الحاشیة: ای بلا توقف علی قضاء القاضی وکذا بلا توقف علی مضی عدة فی المدخول بها کما فی البحر**

**(ردالمحتار ص۳۰۰ ج۲) والله تعالی اعلم، ۷ صفر ۹۰ هجری**

## د زوجې (ښځې) د ارتداد حکم

**سوال** :- معاذالله ! که د چا ښځه مرتده شی نودهغه نکاح به ماتیږی اوکه نه ؟ که چیرته ماته شوه نوهغې باندې به عدت واجب وی اوکه نه ؟ یعنې که چیرته هغه بیا اسلام قبول کړی نو بل سړی سره فوراً نکاح کولې شی اوکه له عدت تیرولو نه پس ؟

همدارنگه هغه ښځې ته د خاوند نه د خلاصی دپاره چه چا د هلاکت دا لاره ښودلې ده دهغه متعلق شرعی حکم څه دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې باره کښې درې روایات دی :

(۱) د ښځې نکاح ماته شوه او هغه به وینځه جوړیږی ، دهغې خاوند هغه له امام وقت نه اخستلی اوله خپل ځان سره یی ساتلې شی ، که چیرته خاوند مصرف وی نو امام یی هغه ته مفته هم ورکولې شی.

(۲) دهغې نکاح ماته شوه مگر دا د بل چا سره نکاح نه شی کولې بلکه هغه به تجدید اسلام او هم ړومبنی خاوند سره په تجدید نکاح باندې مجبورولې شی.

(۳) دهغې نکاح ماته نه شوه ، بلکه د هماغه خاوند په نکاح کښې به وی .

په دې زمانه کښې ړومبنی دوه صورتونه ممکن نه دی ، د اول صورت عدم امکان خو ښکاره دې ، له حکومت نه په دویم صورت باندې د عمل کولو هم څه توقع نشته . لهذا د فتوې دپاره فقط دریم صورت متعین دې ، یعنې د ښځې په ارتداد سره دهغې نکاح نه ماتیږی مګر د تجدید اسلام نه وړاندې دهغې نه استمتاع جائزه نه ده ، (کالموطوءة بالشبهة والحامل من الزنا ) بلکه د تجدیدِ اسلام نه پس تجدیدِ نکاح هم ضروری ده ، ځکه چه دویم روایت ظاهرالروایة دې ، په هغه خاص جزء کښې دهغې نه د عدول هیڅ ضرورت نشته دې ، لهذا د تجدیدِ اسلام نه پس هم د تجدیدِ نکاح نه وړاندې استمتاع حرامه ده .

قال الامام الحصکفی رحمه الله تعالی : وصرحوا بتعزیرها خمسة وسبعین وتجبر علی الاسلام وعلی تجدید النکاح زجرا لها بمهر یسیر کدینار وعلیه الفتوی والوالوجیة ، وافتی مشایخ بلخ بعدم الفرقة بردتها زجرا وتیسیر الاسیما التی تقع فی المکفر ثم تنکر قال فی النهر والافتاء بهذا اولی من الافتاء بما فی النوادر (الی قوله) وحاصلها انها بالردة تسترق وتکون فیئا للمسلمین عند ابی حنیفة رحمه الله تعالی ، ویشتریها الزوج من الامام اویصرفها الیه لومصرفا ،

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی : (قوله زجرا لها) عبارة البحر حسما لباب المعصیة والحیلة للخلاص منه اه ولا یلزم من هذا ان یکون الجبر علی تجدید النکاح مقصورا علی ما اذا ارتدت لاجل الخلاص منه بل قالوا ذلک سدا لهذا الباب من اصله سواء تعمدت الحیلة ام لا کی لا تجعل ذلک حیلة ، (ردالمحتار ص۳۳۱ ج۲)

وفی تعزیر العلائیة : ارتدت لتفارق زوجها تجبر علی الاسلام وتعزر خمسة وسبعین سوطا ولا تتزوج بغیره به یفتی ملتقط ،

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی : (قوله ولا تتزوج بغیره) بل تقدم انها تجبر علی تجدید النکاح بمهر یسیر وهذه احدی روایات ثلاث تقدمت فی الطلاق ، الثانیة انها لا تبین ردا لقصدها السیئ ، الثالثة ما فی النوادر من انه یتملکها رقیقة ان کان مصرفا (ردالمحتار ص۱۹۶ ج۳)

وفی الباب المرتد من العلائیة : ولیس للمرتدة التزوج بغیر زوجها به یفتی وعن الامام تسترق ولو فی دار الاسلام لو افتی به حسما لقصدها السیئ لا باس به وتکون قنة للزوج بالاستیلاء مجتبی ، وفی الفتح

انها فيء للمسلمين فيشتريها من الامام او يهبها له لو مصرفا.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : تحت قوله وليس للمرتدة التزوج بغير زوجها : قال في الفتح وقد افتى الدبوسي والصفار وبعض اهل سمرقند بعدم وقوع الفرقة بالردة ردا عليها وغيرهم مشوا على الظاهر ولكن حكموا بجبرها على تجديد النكاح مع الزوج وتضرب خمسة وسبعين سوطا واختاره قاضيخان للفتوى الخ (قوله عن الامام) اى فى رواية النوادر كما فى الفتح (قوله ولو افتى به الخ) فى الفتح قيل ولو افتى بهذه لاباس به فيمن كانت ذات زوج حسما لقصدها السيئ بالردة من اثبات الفرقة (قوله وتكون قنة للزوج بالاستيلاء) قال فى الفتح قيل وفى البلاد التى استولى عليها اذا استولى عليها التتر واجروا احكامهم فيها و نفوا المسلمين كما وقع فى خوارزم وغيرها اذا استولى عليها الزوج بعد الردة ملكها لانها صارت دار حرب فى الظاهر من غير حاجة الى ان يشتريها من الامام اه

(قوله وفى الفتح الخ ) هذا ذكره فى الفتح قبل الذى نقلناه عنه انفا وحاصله انها اذا ارتدت فى دار الاسلام صارت فيئا للمسلمين فتسترق على رواية النوادر بان يشتريها من الامام او يهبها له، اما لو ارتدت فيما استولى عليه الكفار وصار دار حرب فله ان يستولى عليها بنفسه بلا شراء ولا هبة كمن دخل دار الحرب متلصصا وسبى منهم وهذا ليس مبنيا على رواية النوادر لان الاسترقاق وقع فى دار الحرب لا فى دار الاسلام (ردالمحتار ص۳۱۳ ج۳)

خلاصه دا شوه چه په دې کښې هيڅ اختلاف نشته چه د کفر د لعنت طوق په مرئ کښې د اچولو نه باوجود دهغې ښځې دپاره د خاوند نه خلاصې ممکن نه دې ، بهر حال د هغه په قبضه کښې به وی ، د ښځې په حيثيت سره يا وينځې جوړيدلو سره (على اختلاف الاقوال ) که چيرته واقعةً يو شرعى عذر وی چه دهغې د وجه نه ښځه خلاصې غواړی مثلاً خاوند عنين وی يا متعنت وی چه نه خو نفقه ورکولې شی اونه طلاق ورکوی ، يامعسر وی نوداسې قسم ټولو صورتونوکښې د خلاصی دپاره دا شرعی حل موجود دې چه : «د خاوند نه دې طلاق واخستلې شی ، که چرته داسې طلاق نه ورکوی نود خلعې صورت دې اختيار کړې شی چه هغه ته څه ورکړی او طلاق ته دې آماده کړې شی که په دې باندې هم راضی نه شی نو عدالتی کارروائی دې وکړې شی ، مسلمان حاکم دې هغه عدالت ته طلبولو سره طلاق ورکولو باندې مجبوره کړی ، که چيرته د حاکم په وينا باندې هم طلاق ورنه کړی نو حاکم دې پخپله په دواړو کښې تفريق وکړی» .

دهغې نه پس دې ښځه عدت تیرولو سره چیرته چه غواړی نکاح کولې شی ، د مجبورۍ په حالت کښې جماعتِ مسلمین هم دا فرض ادا کولې شی .
ددې مسائلو تفصیل په رساله «الافصاح عن خیار فسخ النکاح» مندرجه احسن الفتاوی کښې دې هلته دې وکتلې شی .
باقی پاتې شو هغه خلق چاچه ښځې ته د کفر او ارتداد لاره وښودله یا په یوه درجه کښې په هغه کاروائې کښې شریک یا په زړه سره راضی شوی دی نو هغه ټول د اسلام دائرې نه خارج شوی دی . دهغوی په ستونو باندې د دوه چنده کفر وبال دې ، دهغه مرتدینو نکاح هم فسخه شوه ، مگر دهغوی په زنانو باندې هیڅ قسمه زور نشته بلکه هغوی ته اختیار دې چه : عدت تیریدلو نه پس چرته چه غواړی نکاح دې وکړی او پخپله دا مرتدین واجب القتل دی ، حاکم دې هغوی ته د دریو ورځو مهلت ورکړی ، که چیرته بیا د سره کلمه وئیلو سره او علانیه توبه کولو سره په اسلام کښې داخل شی نو بهتره ده اوکه نه نو دهغوی ستونه دې کټ کړی .
په اسلام کښې د داخلیدلو باوجود دهغوی وړاندینۍ ښځې چه دهغوی د ارتداد په سبب سره د نکاح نه وتلې وې هغوی لره دهغوی سره په دوباره نکاح باندې نه شی مجبوره کیدلې هغوی ته اختیار دې چه هغوی سره نکاح کوی یا نورو سره ، والله تعالی اعلم

**۷ صفر ۱۴۰۸ هجری**

## د باغیانو قتل کول

**سوال** :- آیا د بغاتو او مفسدینو وژل جائز دی ؟ څنګه چه ایران کښې خمینی دا عمل شروع کړې دې چه ډیرو خلقو لره ئې مفسد فی الارض ګرځولو سره په تخته باندې وخیژول که چرته د داسې قسم خلقو وژل جائز وی نو په کوم صورت کښې اوپه کومو شرطونو سره جائز دی ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کوم سړې یا جماعت چه د حکومتِ مسلمه په خلاف بغاوت وکړی ، دهغه بغاوت ختمولو دپاره د حکومت هغه لره وژل جائز دی ، په دې شرط چه بغیر د وژلو نه دهغه قوت ماتول ممکن نه وی . که چیرته د وژلو نه بغیر په کومې ذریعې سره دهغه د شر لرې کول ممکن وی نو وژل یې جائز نه دی .
د قتال په صورت کښې حاکم که چیرته د عامة المسلمین نه د باغیانوپه خلاف مدد طلب کړی نو د وس اوطاقت مطابق د هغه مدد کول ضروری دی .
کوم باغی او مفسد چه د حکومت په قبضه کښې وی که چیرته دهغه قوت مات شوې وی نو هغه لره وژل جائز نه دی ، اوکه چیرته دهغه په شا باندې څوک ولاړ وی یعنې طاقت ئې وی نو دهغه

فیصله د حکومت په کسانو باندې ده ، نو که غواړی هغه لره دې قتل کړی اوکه غواړی نوپه قید کښې دې باقی پریږدی د پاره ددې چه توبه ویستلوسره هغه له خپلو خیالاتو نه رجوع وکړی ، د توبې نه پس هم ترڅو پورې چه حکومت ته اطمینان نه وی شوې هغه لره قید کښې ساتل جائز دی .

لیکن د غلبې موندلو په صورت کښې دهغه ماشومانو لره غلامان او ښځو لره وینځې جوړول جائز نه دی ، همدغه شان دهغه اخستلې شوی اموالو او اسلحې لره دغنیمت په طور باندې تقسیمول جائز نه دی ، وقتی طور باندې اموالو لره حصارولوسره بغاوت سړیدلو نه پس واپس ورکول ضروری دی .

**قال فی التنویر: فاذا خرج جماعة مسلمون عن طاعته وغلبوا علی بلد دعاهم فیه وکشف شبهتهم فان تحیزوا مجتمعین حل لنا قتالهم بدءا حتی نفرق جمعهم ومن دعاه الامام الی ذلک افترض علیه اجابته لو قادرا (الی قوله) والامام بالخیار فی اسیرهم ان شاء قتله وان شاء حبسه (الی قوله) ولم تسب لهم ذریة وتحبس اموالهم الی ظهور توبتهم،**

**وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله حل لنا قتالهم بدءاً) ولو اندفع شرهم باهون من القتل وجب بقدر ما یندفع به شرهم زیلعی (ردالمحتار ص۳۱۰ ج۳)**

باقی پاتې شوه د خمینی مسئله هغه پخپله ریئس المفسدین او ابغی البغاة دې ، که چیرته دهغه په لاس سره الله تعالی څه مفسدانو او باغیانو ته سزاګانې ورکړې نو دا دهغه د ارشاد «**وکذلک نولی بعض الظالمین بعضا بما کانوا یکسبون**» او «**یذیق بعضکم باس بعض**» مصداق دې ، والله تعالی اعلم **۶ذی الحجه ۹۹ هجری**

## د باغیانو د مالونو احکام

**سوال** :- دلته د ظفار (سلطنت عمان) په غرونو باندې دحکومت او د باغیانو په مینځ کښې جنګونه کیږی ، په یو بل باندې د بمباریٔ په دوران کښې بعضې ځناور لکه غوا ، چیلۍ وغیره زخمی کیږی ، مګر دا نه معلومیږی چه دا ځناور د باغیانو دی اوکه دخپل قوم ، که چیرته هغه زخمی ځناورو لره ذبح نه کړې شی نو مرداریږی ، ددې وجه نه فوځی ځوانان هغه ذبح کوی ، که چیرته د ذبحې نه پس همداسې پریښودلې شی نو درندګان به ئې وخوری ، آیا فوځیان هغه خوړلې شی ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کوم ځناور چه د باغیانو په مقبوضه علاقه کښې وموندلې شی هغه خرڅولوسره دهغې قیمت دې محفوظ وساتلې شی چه کله هغوی د بغاوت نه توبه وکړی نو دا رقم او پیسې دې هغوی ته واپس ورکړې شی .

او کوم څناور چه پخپله علاقه کښې ومومی یا دخپلو نورو دښمنانو په مخلوطه آبادئ کښې وی یا کومو سره چه متعلق څه تحقیق نه شی کیدلې نو هغه په حکم د لقطې کښې دی اول دې دهغې تشهیر وکړې شی ، که چیرته د مالک پته په یو صورت کښې هم معلومه نشی نو دیو مسکین فوځی په ملک کښې دې ورکړې شی هغه که غواړی نو غنی فوځیانو ته یې هم هبه کولې شی لیکن د استعمالولو نه پس که چیرته د یو څناور مالک را پیدا شی نو هغه به د څناور قیمت ادا کوی.

قال فی التنویر وشرحه (وتحبس اموالهم الی ظهور توبتهم ) فترد علیهم وبیع الکراع اولی لانه انفع فتح ویقاس علیه العبید نهر (ونقاتل بسلاحهم وخیلهم عند الحاجة ولا ینتفع بغیرهما من اموالهم مطلقا) ولو عند الحاجة سراج .وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی (قوله لانه انفع ) ای انفع من امساکه والانفاق علیه من بیت المال اوللرجوع علی صاحبه کما یفیده کلام البحر (ردالمحتار ص۳۱۱ ج۳) والله تعالی اعلم

۱۴ ذوالحجه ۹۵ هجری

## د فاسق بغاوت

ددې تفصیل د رسالې «سیاست اسلامیه» په آخر کښې د حضرت حکیم الامة قدس سره په تحریرکښې تیر شوې دې ، دا رساله هم هغه جلد کښې د کتاب الجهاد په آخر کښې ده.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مَنْ بَدَّلَ دِيْنَهُ فَاقْتُلُوْهُ (بخاری)

((کوم مسلمان چه خپل دین بدل کړی هغه قتل کړئ))

# الفتل المشتَدْ

# لقتل المُرتَدْ

**د مرتد د قتل د وجوب ثبوت د صحیح احادیثو او د اُمت له اجماعِ نه**

**افاضه**

**حضرت فیقه العصر دامت برکاتهم**

**تحریر**

حضرت مفتی محمد ابراهیم صاحب صادق آباد مدظله



## الفتل المشتَدْ لقتل المُرتَدْ

- مرتد واجب القتل دي
- ارشاداتِ نبویه
- اجماع صحابه رضی الله عنهم
- اجماع امت
- عقل سلیم
- د مرتدینو حجت
- د مرتد نور احکام

## مُرتد واجب القتل دې

**سوال** :- د مرتد تعریف څه دې ؟ دهغه سزا څه ده ؟ اونور احکام یی څه دی ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ارتداد معنی ده دیو مسلمان د دینِ اسلام نه اوړیدل ، امام راغب رحمه الله لیکی : وهوالرجوع من الاسلام الی الکفر (المفردات ص ۱۹۲)

ارتداد عام دې که ښکاره د اسلام نه واوړی مثلاً یو سړې دخپل ځان دپاره د هندو ، آریه ، قادیانی یا د شیعه کیدلو اقرار وکړی .

یا خپل ځان ته مسلمان وئیلوسره د دین په ضروریاتو کښې د کومې یوې خبرې نه انکار وکړی د دین ضروریات هغه ټول قطعی احکام دی چه په نصِ قرآن سره ثابت وی یا د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم نه په تواتر سره ثابت وی ، په هغې کښې دیو حکم نه هم انکار کول کفر او ارتداد دې ، مثلاًیو سړې په ژبې سره د ختمِ نبوت اقرار کوی مګر دختمِ نبوت مفهوم او مطلب داسې بیانوی چه د امت متفق علیه اجماعی مفهوم نه مختلف وی او بل هریومفهوم کښې د اجراءِ نبوت قائل وی .

یا یو سړې د ایمان د دعوې باوجود د قرآن د تحریف عقیده لری یا ختمِ نبوت باندې د ایمان دعوی کولوسره هم په یو امتی کښې د نبی په شان صفات تسلیموی ، مثلاً هغه لره معصوم عن الخطاء او افضل الانبیاء ګرځوی نو دا سړې مرتد او زندیق دې چه د عامو کافرانو په نسبت څه زیات خطرناک او ضرری دې .

خلاصه داچه څنګه د اسلام دین پریښودل کفر او ارتداد دې همدغه شان د دین په قطعی او بدیهی خبرو کښې د یوې خبرې نه انکار کول هم کفر او ارتداد دې ، ګویا داسې سړې د دین باقی ټولوخبرو لره په زړه سره تسلیموی ، د عمل پابند او دې ... ره وی، دقرآن مجید واضحه اعلان دې :

﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾ ﴾ (۴ : ۶۵)

« بیا قسم دې ستا په رب چه دا خلق (صرف زبانی ایمان ښکاره کولوسره ګرځی راګرځی ) عندالله دوئ مؤمنان نه کیږی ترڅو پورې چه دا خبره نه وی چه د هغوی پخپل مینځ کښې جګړه واقع وی او په هغه جګړه کښې دا خلق د دوی (صلی الله علیه وسلم) نه ( او که دوی نه وی نو د دوی د شریعت نه ) تصفیه ونکړی (بیا چه کله دوی تصفیه وکړی نو ) د دوی په تصفیې سره پخپلو زړنو کښې د (انکار ) تنګی پیدا نکړی او ( هغه فیصلې ) لره پوره پوره (ظاهراو باطن سره ) تسلیم نکړی» .

جلیل القدر تابعی حضرت جعفر صادق رحمه الله تعالی ددې آیت په تفسیر کښې فرمائی :

لو ان قوما عبدوا الله تعالی واقاموا الصلوة واتوا الزکوة وصاموا رمضان وحجوا البیت ثم قالوا الشیء صنعه رسول الله صلی الله علیه وسلم الا صنع خلاف ما صنع؟ او وجدوا فی انفسهم حرجا لکانوا مشرکین ثم تلا هذه الآیة (روح المعانی ص ۱۱ ج ۵)

هریوقوم که چرته د الله تعالی عبادت وکړی ، مونځ قائم کړی ، زکوة ورکړی ، د رمضان المبارک روژې ونیسی او حج دبیت الله وکړی ، بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو فعل متعلق داسې اووائی چه دوی صلی الله علیه وسلم داسې ولې وکړل ؟ دهغې خلاف یې ولې ونه کړو؟ یا د هغه حکم تسلیمولو کښې په زړونو کښې تنګی محسوسه کړی نو داسې قوم به مشرک او کافر وګرځی ، بیا دوی هم دا آیت تلاوت کړو»

## د مرتد سزا

د مرتد سزا د امت په اجماع سره وژل دی ، البته دې حده پورې اختلاف دې چه دا حکم صرف د مرتد سړی دپاره دې او که مرتدې ښځې ته هم شامل دې ؟

د جمهورو په نزد مرتد او مرتده دواړه واجب القتل دی ، مګر د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله تعالی په نزد مرتد واجب القتل دې او مرتده واجبة الحبس ده ، حتی تعود الی الاسلام او تموت ، د مرتد د وژلو مسئله د حادیثو په نصوصو کښې، دامت په اجماع کښې او عقلِ سلیم سره ثابته ده ، دلائل بالترتیب راروان دی :

### نبوی ارشادات :

(۱) عن عکرمة رحمه الله تعالی قال: اتی علی رضی الله تعالی عنه بزنادقة فاحرقهم فبلغ ذلك ابن عباس رضی الله تعالی عنهما فقال لو کنت انا لم احرقهم نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم لا تعذبوا بعذاب الله ولقتلتهم لقول رسول الله صلی الله علیه وسلم من بدل دینه فاقتلوه (صحیح بخاری ج ص ۲۲۳، ج ص ۱۰۲۳، سنن نسائی ج ص ۱۶۹، سنن ابی داؤد ج ص ۲۵۰، ترمذی ج ص ۲۳۰)

«حضرت علی رضی الله عنه ته یو څو زندیقان راوستلې شول چه هغوی لره دوی رضی الله عنه په اور کښې وسوزول ، حضرت ابن عباس رضی الله عنه ته دا خبره ورسیدله نو وې فرمائیل که چرته زه وې نو هغوی به ئې په اور کښې نه وې سوزولې ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله تعالی په شان د عذاب ورکولو نه منع فرمائیلې ده ، او ، مابه هغوی ضرور وژلې ځکه چه د حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې : کوم مسلمان چه خپل دین بدل کړی هغه او وژنئ »

(۲) عن ابی موسی رضی الله تعالی عنه قال اقبلت الی النبی صلی الله علیه وسلم ومعی رجلان من الاشعریین

احدهما عن يميني والاخر عن يساري ورسول الله صلى الله عليه وسلم يستاك فكلاهما سال فقال يا ابا موسى او قال يا عبد الله بن قيس قال قلت والذي بعثك بالحق ما اطلعاني على ما في انفسهما وما شعرت انهما يطلبان العمل فكاني انظر الى سواكه تحت شفته قلصت فقال لن اولا نستعمل على عملنا من اراده ولكن اذهب انت يا ابا موسى او يا عبد الله بن قيس الى اليمن ثم اتبعه معاذ بن جبل فلما قدم عليه القى له وسادة قال انزل واذا رجل عنده موثق قال ما هذا؟ قال كان يهوديا فاسلم ثم تهود قال اجلس قال لا اجلس حتى يقتل قضاء الله ورسوله ثلث مرات فامر به فقتل الحديث (صحيح بخاري ج۲ص ۱۰۲۳، سنن نسائي ج۲ص ۱۲۹، سنن ابي داؤد ج۲ص ۲۵۰)

« د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله تعالی عنه نه روایت دې چه زه او دوه اشعری سړی د حضورصلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو په هغوی کښې یو سړې څما ښی طرف ته وو او بل چپ طرف ته ، حضوراکرم صلی الله علیه وسلم هغه وخت مسواک وهلو ، هغه دواړو د دوی صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو چه مونږ لره حاکمان مقرر کړئ . په دې باندې حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ، ای ابوموسی ! ما عرض وکړو : قسم دې په هغه ذات چه هغه دوئ صلی الله علیه وسلم لره په حقه سره مبعوث اوفرمائیلو ، ماته دې دواړو دخپل زړه خبره نه ده کړې اونه ماته پخپله ددې احساس وشو چه دوی به د منصب مطالبه کوی .

دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل څوک چه د حکومت طالب وی مونږ هغه ته هیچری منصب نه ورکؤو . لیکن ای ابوموسی ! تاته بلاطلبه منصب درکوم چه یمن ته لاړ شه بیا د دوی نه وروستو رسول اکرم صلی الله علیه وسلم معاذبن جبل رضی الله عنه لره هم ولیږلو .

چه کله هغه ورسیدلو نو حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه هغه ته تکیه ورنزدې کړه ، او وې فرمائیل تشریف کیږده ، حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه ناګهانه وکتل چه یو سړې تړلې شوې دې ، پوښتنه ئې اوکړه : دا څه ماجرا ده ؟ ابوموسی اشعری رضی الله عنه اوفرمائیل : دا سړې د یهودیت نه مسلمان شو بیا د اسلام نه اوړیدلوسره یهودی جوړ شو ، ابوموسی اشعری رضی الله عنه اوفرمائیل ، تشریف کیږده ، معاذبن جبل رضی الله عنه اوفرمائیل ترهغه وخته پورې به کینم ترڅوپورې چه د الله اود الله د رسول صلی الله علیه وسلم فیصله نافذولوسره دې مرتد لره قتل نه کړې شی ، دا ارشاد ئې درې ځلې تکرار کړو ، چنانچه هغه لره قتل کړې شو نو بیا کیناستلو »

(۳) ان اباهريرة رضى الله تعالى عنه قال: لما توفى النبي صلى الله عليه وسلم واستخلف ابوبكر وكفر من كفر من العرب قال عمر رضى الله عنه يا ابابكر كيف تقاتل الناس وقد قال النبي صلى الله عليه وسلم امرت ان اقاتل الناس حتى يقولوا لا اله الا الله فمن قال لا اله الا الله عصم مني ماله ونفسه الا بحقه وحسابه على الله قال

ابوبکر رضی الله تعالی عنه والله لاقاتلن من فرق بین الصلوة والزکوة الحدیث (صحیح بخاری ج۲ص۱۰۲۳)

((چه کله د حضور صلی الله علیه وسلم انتقال وشو او حضرت ابوبکر رضی الله تعالی عنه خلیفه مقرر شو او بعضې قبائل عرب مرتد شو نو حضرت عمرفاورق رضی الله تعالی عنه اووئیل : ای ابوبکر ! تاسو صرف انکارِ زکوة باندې مرتدگرځولو سره ولې د خلقو سره جهاد کوئ ؟ حالانکه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې : ماته هغه وخته پورې دخلقوسره د قتال حکم دې ترڅوپورې چه هغوی کلمه ونه وائی چاچه کلمه اووئیله هغه خپل مال او جان ځما بچ کړو مگر دهغې په حق سره ، یعنې کلمه وئیلوسره هم هغه موجبِ قتل کار وکړو نود قتل سزاواربه گرځیږی اودهغه حساب په الله تعالی باندې دې ، حضرت ابوبکر رضی الله تعالی عنه جواب ورکړو : والله ! زه به دهغه سړی سره ضرور قتال کوم چه د مونځ او زکاة په مابین کښې فرق وکړی ، یولره منی او د بل نه انکاروکړی))

(٤) عن انس بن مالك رضی الله تعالی عنه فی قصة رهط عکل، قتلوا الراعی واستاقوا الذود کفروا بعد اسلامهم فاتی الصریخ النبی صلی الله علیه وسلم فبعث الطلب فما ترجل النهار حتی اتی بهم فقطع ایدیهم وارجلهم ثم امر بمسامیر فاحمیت فکحلهم بها وطرحهم بالحرة یستسقون فما یسقون حتی ماتوا، (صحیح بخاری ج۲ص۱۰۲۳، ج۲ص۱۰۰۵،صحیح مسلم ج۲ص۵۷،سنن نسائی ج۲ص۱۶۲)

((د عکل قبیلې خلقو شپونکی لره اووژلو او اوښان ئې وتښتول اود اسلام نه پس ئې کفر اختیارکړو ، منادی دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې را ورسیدلو او قصه ئې بیان کړه نو دوی صلی الله علیه وسلم دهغه په تعاقب کښې یوڅو کسان ولیږل ، لا ورځ ختمه شوې نه وه چه هغه مرتدین راوستلې شول ، دوی صلی الله علیه وسلم دهغوئ لاس ښپې کټ کړې بیا ئې دهغو په سترگو کښې گرمه سلائی راښکله او هغه ئې په گرمو کاڼړو والا زمکه باندې سملولو ، هغه اوبه طلب کړې مگر هغه ته اوبه ورنه کړئ شوئ تردې پورې چه هغو همدغه شان د ارتداد په جرم کښې د ذلت په مرگ باندې مړ شو))

(٥) عن عبدالله رضی الله تعالی عنه: لایحل دم امرء مسلم یشهد ان لااله الا الله وانی رسول الله الا باحدی ثلاث الثیب الزان والنفس بالنفس والتارك لدینه المفارق للجماعة (صحیح مسلم ج۲ص۵۹،سنن ابی داؤد ج۲ ص۲۵۰،سنن ترمذی ج۱ص۲۵۹،سنن نسائی ج۲ص۱۶۵،سنن ابن ماجة ص۱۸۲)

((کوم سړې چه مسلمانیدلوسره گواهی ورکړی چه د الله تعالی نه سوا څوک د عبادت لائق نشته ، او زه د الله تعالی رسول یم ، دهغه وینه حلاله نه ده مگر په دې دریو وجو کښې کومې یوې وجې سره ، شادی شده زانی ، د نفس په بدله کښې نفس او خپل دین لره پریښودلوسره د

مسلمانانو د جماعت نه جدا کیدلو والا »

(٦) قالت عائشة رضی الله تعالی عنها اما علمت ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لا یحل دم امرء مسلم الا رجل زنی بعد احصانه او کفر بعد اسلامه اوالنفس بالنفس (صحیح مسلم ج ص، جامع ترمذی ج ص، سنن نسائی ج ص، سنن ابی داؤد ج ص)

« آیا تاسو ته معلومه نه ده چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلې دې : دیو مسلمان وینه حلاله نه ده سوا ددې نه چه واده ئې کړې وی او زناکوی یا د اسلام نه پس کفر اختیارکړی یا په ناحقه څوک قتل کړی »

(٧) ان عثمان رضی الله تعالی عنه قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول لا یحل دم امرء مسلم الا باحدی ثلاث رجل زنی بعد احصانه فعلیه الرجم اوقتل عمداً فعلیه القود او ارتد بعد اسلامه فعلیه القتل (سنن نسائی ج ص، ص ج، سنن ابن ماجة ص ١٨٢)

« د یو مسلمان وینه د دریو خبرونو نه سوا حلاله نه ده ، شادی شده زنا وکړی نو په هغه باندې رجم دې ، عمداً قتل وکړی نو هغه باندې قصاص دې ، د اسلام نه پس مرتد شی نو واجب القتل دې »

(٨) عن علی رضی الله تعالی عنه عن رسول الله صلی الله علیه وسلم : سیخرج قوم فی اخر الزمان حداث الاسنان سفهاء الاحلام یقولون من خیر قول البریة لا یجاوز ایمانهم حناجرهم یمرقون من الدین کما یمرق السهم من الرمیة فاینما لقیتموهم فاقتلوهم فان فی قتلهم اجرالمن قتلهم یوم القیامة (صحیح بخاری ص ج ٢)

« په آخره زمانه کښې به یو قوم راوځی کم عمر والا ، کم عقل ، د ټول مخلوق په نسبت به ښائسته مرکه کوی مګر دهغوی ایمان به د مرئ نه لاندې نه ځی ، د دین نه به داسې وځی څنګه چه غشې د ښکار نه وځی چیرته چه هغوی اوموميئ نو قتل ئې کړئ ، دهغه قاتل دپاره به په ورځ د قیامت اجر وی » د دې نه مراد زندیق، خوارج دی.

(٩) عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قال: کان عبدالله بن سعد بن ابی سرح یکتب لرسول الله صلی الله علیه وسلم فازله الشیطان فلحق بالکفار فامربه رسول الله صلی الله علیه وسلم ان یقتل یوم الفتح فاستجار له عثمان بن عفان رضی الله تعالی عنه فاجاره رسول الله صلی الله علیه وسلم (سنن ابی داؤد ج ص، سنن نسائی ج ص)

« عبدالله بن سعد بن سرح د رسول الله صلی الله علیه وسلم کاتبِ وحی وو ، شیطان هغه لره او غولولو نو مرتد کیدلو سره دکافرانوسره ملاؤ شو ، دوی صلی الله علیه وسلم د فتحې مکې په ورځ

دهغه د قتل حکم صادر کړو ، حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه دهغه دپاره پناه طلب کړه ، دوی صلی الله علیه وسلم هغه ته پناه ورکړه . » بیا هغه مسلمان شو .

(۱۰) **عن انس بن مالك رضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم دخل عام الفتح وعلی راسه المغفر فلما نزعه جاءه رجل فقال ان ابن خطل متعلق باستار الكعبة فقال اقتلوه (صحیح بخاری ص۲۴۹ ج۱)**

« حضور اکرم صلی الله علیه وسلم د فتحې مکې په موقع باندې مکې مکرمې ته داخل شو ، د دوی صلی الله علیه وسلم په سرمبارک باندې د اوسپنې ټوپۍ وه ، چه کله دوی صلی الله علیه وسلم هغه اخوا کړه نو یو سړی راتللو سره اووئیل چه ابن خطل (مرتد) دکعبې په پردو پورې نښتې دې دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : هغه قتل کړئ » چنانچه هغه هم په هغه حال کښې قتل کړې شو .

(۱۱) **عن عائشة رضی الله تعالی عنها انه اتی عبد الله رضی الله تعالی عنه فقال ما بینی وبین احد من العرب حنة وانا مررت بمسجد لبنی حنیفة فاذا هم یؤمنون بمسیلمة فارسل الیهم عبد الله فجیئ بهم فاستتابهم غیر ابن النواحة قال له سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول لولا انك رسول لضربت عنقك فانت الیوم لست برسول فامر قرظة بن کعب فضرب عنقه فی السوق ثم قال من اراد ان ینظر الی ابن النواحة قتیلا بالسوق (سنن ابی داؤد ص۲۴۳ ج۱)**

« حضرت حارثه بن مضرب رحمه الله تعالی د کوفې والی حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله تعالی عنه په خدمت کښې عرض وکړو چه څما د اهلِ عرب سره هیڅ کینه نشته ، لهذا رښتیا وایم چه زه د بنی حنیفه قبیلې جمات سره تیرشوم نو ومې کتل چه بنوحنیفه مسیلمه کذاب باندې د ایمان راوړلو د وجه نه مرتد شوی دی ، حضرت عبد الله رضی الله تعالی عنه هغه خلقو لره را وغوښتل ، چه کله هغوی راوستلې شول نو دوی د ابن النواحه نه سوا باقی مرتدینو لره د توبې مهلت ورکړو او ابن النواحه ته ئې اوفرمائیل : ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ستا متعلق دا ارشاد اوریدلې وو چه « که چرته ته قاصد نه وې نو ما به ستا سټ وهلې وې » لیکن نن ته قاصد نه ئې ، بیا دوی رضی الله تعالی عنه حضرت قرظه بن کعب رضی الله تعالی عنه ته حکم ورکړو چه دعامو خلقو په وړاندې ده سټ کټکولو سره ده لره د خلقو دپاره نمونه د عبرت جوړه کړه ، هغه په ډک بازار کښې دهغه سټ کټ کړو ، بیا دوی اوفرمائیل : کوم سړې چه ابن النواحه مرتد لره کتل غواړی نو هغه په بازار کښې مقتول پروت دې »

(۱۲) **اذا ابق العبد الی الشرك فقد حل دمه (سنن ابی داؤد ص۲۴۹ ج۲)**

« چه کله غلام د اسلام نه مرتد کیدلو سره شرک طرف ته روان شی نو دهغه وینه حلاله ده »

دا هغه روایات دی چه معمولی لټون سره مونږ ته په صحاح سته کښې مخې ته راغلی دی ، د حدیثونو د کتابونو که لټون وکړې شی نو ددې نه زیات ملاویدلې شی ، لیکن د حق ښکاره کولو دپاره دومره حدیثونه کافی دی

## دصحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع

یوه مسئله باندې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع د ټول امت په نزد حجت قطعیه دې ، افضل الخلائق بعد الانبیاء د سیدنا صدیق اکبر رضی الله عنهم خلافت منعقد کیدلو سره د ټولو نه وړاندې په کومه مسئله باندې چه بې له استثناء د فرد واحد نه پوره جماعت د صحابه کرامو رضی الله عنهم قولاً ، عملاً ، سکوتاً په هر پهلو سره اجماع منعقد شوه هغه د قتلِ مرتد مسئله ده ، د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د وصال نه پس نوی مسلمان شوی قبائلو کښې هرطرف د کفر او ارتداد چپې وچلیدلې ، خلیفهٔ اول رضی الله عنه دهغوی د ختمولو دپاره د صحابه کرامو رضی الله عنهم لښکر روان کړو ، هغه جنګونو کښې چه چیرته په زرګونو مرتدینو لره واصل جهنم کړې شول هغلته لویو لویو جلیل القدر صحابه کرامو رضی الله عنهم هم دشهادت جام نوش کړو .

مشهور مؤرخ امام ابن کثیر رحمه الله تعالی د قتل مسیلمه کذاب لاندې لیکی

**فكان جملة من قتلوا فى الحديقة وفى المعركة قريباً من عشرة الاف مقاتل وقيل احد وعشرون الفاً وقتل من المسلمين ستمائة وقيل خمسمائة فالله اعلم وفيهم من سادات الصحابة واعيان الناس (البداية والنهاية ص۳۳۰ ج۶)**

« د مرو شوؤ کافرانو فوځیانو شمیر لس زره اود یو قول مطابق یوویشت زره وو ، په مسلمانانو کښې شپږ سوه او دیو قول مطابق پنځه سوه شهیدان شو ، په هغه شهداؤ کښې څه ډیر اکابر صحابه او نورې معروفې هستیانې هم شامل دی رضی الله تعالی عنهم اجمعین»

دیوې بلې معرکې «مرتدین اهلِ عمان» حال لیکی : **وركب المسلمون ظهورهم فقتلوا منهم عشرة الاف مقاتل (البداية والنهاية ص۳۳۰ ج۶)**

« مسلمانانو په هغوی باندې حمله وکړه او لس زره فوځیان ئې نیست ونابود کړل»

په هغه پوره مهم کښې خلفاء ثلاثه رضی الله عنهم هم د خلیفه اول رضی الله تعالی عنه سره اوږه په اوږه وو ، سره ددې نه د قتلِ مرتد متعلق دهغه حضراتو نه جدا تصریحات هم منقول دی

یو مرتد ته مهلت ورکولو نه بغیر فوری طور باندې مسلمانانو قتل کړو نو حضرت فاروق اعظم رضی الله تعالی عنه په هغې باندې اوفرمائیل : **افلا ادخلتموه بيتاً واغلقتم عليه باباً واطعمتموه كل يوم رغيفاً ثم استتبتموه ثلاثاً فان تاب والا قتلتموه (مصنف ابن ابی شیبة ص۳۰۰ ج۱۰ وغیره)**

« تاسو داسې ولې ونه کړل چه هغه لره مو په يو کوټه کښې بند کړې وې او هره ورځ مو يو چپاتی هغه ته د خوراک دپاره ورکولې ، بيا مو هغه ته د توبې موقع ورکړې وې ، که چرته توبه ئې ويستلې وې نو ښه به اوکه نه نو وژلې به مو وو »

د حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه نه په پورته روايت نمبر۷ کښې د حضوراکرم صلی الله عليه وسلم ارشاد تيرشوې دې چه د مسلمان وينه د دريو خبرو نه سوا حلاله نه ده.

د دې نه علاوه د دوی نه منقول دې چه: **انه کفر انسان بعد ايمانه فدعاه الی الاسلام ثلاثا فابی فقتله**.

(**کتاب الخراج لابی يوسف ص۲۳، المحلی لابن حزم ص۱۹۰ ج۱۱ بحواله عبد الرزاق**)

« يو سړې د اسلام راوړلو نه پس مرتد شو نو حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه هغه ته درې ځلې د اسلام دعوت پيش کړو مګر هغه انکار وکړو ، بالاخر دوی هغه لره اووژلو »

دحضرت علی رضی الله تعالی عنه نه پورته د صحيح بخاری روايت تير شوې دې چه دوی رضی الله تعالی عنه زنادقه لره ژوندی وسوزول.

او بيا نقل شوی دی چه: **قال علی رضی الله تعالی عنه: يستتاب المرتد ثلاثا فان عاد يقتل**، (**ابن ابی شيبة ص۱۳۸ ج۱۰، سنن کبری للبيهقی ص۲۰۶ ج۸**)

« مرتد ته دې دريو ورځو پورې مهلت ورکړې شی که چرته اسلام قبول کړی نو بهتره ده ، اوکه نه نو ودې وژلې شی»

## د اُمت اجماع

خلفاءِ راشدينوسره د پوره جماعت د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم اجماع نقل کولو نه پس نورو حوالو پيش کولو ته ضرورت نشته خو بيا هم دې ښودلودپاره چه وروستو ټولو ادوارو کښې هم پوره امتِ مسلمه د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم په نقشِ قدم باندې قائم وو او تر ننه پورې يو فرد ته هم دهغې اجماعی حکم سره د اختلاف جرات نه دې شوې ، لاندې د مذاهبِ اربعه اود ظاهريه اجماع نقل کيږی:

### احناف:

**قال الامام المرغينانی رحمه الله تعالی: واذا ارتد المسلم عن الاسلام والعياذ بالله عرض عليه الاسلام فان کانت له شبهة کشفت عنه (الی قوله) ويحبس ثلاثة ايام فان اسلم والاقتل، وفی الجامع الصغير المرتد يعرض عليه الاسلام فان ابی قتل (هداية ص۵۸۰ ج۱)**

« العياذ بالله که يو مسلمان د اسلام نه واوړی نو هغه ته دې اسلام پيش کړې شی ، هغه ته که

کومه شبهه وی نو لرې دې کړې شی » ، او دریو ورځو پورې دې هغه قید کړې شی ، که چیرته مسلمان شی نو ډیره ښه ده او که نه نو قتل دې کړې شی ، او الجامع الصغیرکښې دی چه مرتد ته دې اسلام پیش کړې شی ، که چیرته د قبولِ اسلام نه انکار وکړی نو قتل دې کړې شی»

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: اعلم ان المرتد یقتل بالاجماع کما مر (رسائل ابن عابدین ص ۳۱۸ ج ۱)

«یقین وکړئ چه مرتد د اُمت په اجماع سره واجب القتل دې ځنګه چه مونږ مفصلو دلائلو سره راروان یو » .

## مالکیان :

مالک عن زید بن اسلم رحمه الله تعالی ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال من غیر دینه فاضربوا عنقه قال مالک ومعنی قول النبی صلی الله علیه وسلم فیما نری والله اعلم من غیر دینه فاضربوا عنقه انه من خرج من الاسلام الی غیره مثل الزنادقة واشباههم فان اولئك اذا ظهر علیهم قتلوا ولم یستتابوا لانه لا یعرف توبتهم وانهم کانوا یسرون الکفر ویعلنون الاسلام فلا اری ان یستتاب هؤلاء ولا یقبل منهم قولهم ، واما من خرج من الاسلام الی غیره واظهر ذلك فانه یستتاب فان تاب والا قتل ذلك اه (موطا مالك ص ۶۳۹)

« رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو : «د مرتد سټ اووهئ » امام مالک رحمه الله تعالی فرمائی : ددې ارشاد مطلب دادې چه کوم سړې دینِ اسلام پریښودلو سره بل دین اختیارکړی دهغه سټ کټ کړئ ، لکه زندیق اودهغه په شان نور خلق ، د غلبې موندلونه پس هغه لره د مهلت ورکولو نه بغیر دې قتل کړې شی ، ځکه چه دهغه د توبې حال نه شی معلومیدلې ، دې خلقو د وراندې نه کفر پټولو اود اسلام اظهارئې کولو ددې وجه نه هغوی ته د توبې موقع دې ورنه کړې شی ، اودهغوی د ژبې نه دې د توبې الفاظ قبول نه کړې شی . او کوم سړی چه اسلام پریښودلو سره بل دین اختیارکړو اودهغې اظهار هم کوی نو هغه ته دې د توبې مهلت ورکړې شی که چرته توبه اوباسی نو ډیره ښه ده ، اوکه نه نو قتل دې کړې شی »

## شوافع :

(وقال الشافعی رحمه الله تعالی) فلم یجز فی قول النبی صلی الله علیه وسلم (لایحل دم امرء مسلم الا باحدی ثلاث) احدهن الکفر بعد الایمان الا ان تکون کلمة الکفر تحل الدم کما یحله الزنا بعد الاحصان اوتکون کلمة الکفر تحل الدم الا ان یتوب صاحبه (الی قوله) فلم یختلف المسلمون انه لا یحل ان یفادی عمرتد بعد ایمانه ولا یمن علیه ولا تؤخذ منه فدیة ولا یترك بحال حتی یسلم اویقتل (کتاب الام ص ۱۶۸ ج ۱)

« امام شافعی رحمه الله تعالی فرمائی چه د حضوراقدس صلی الله علیه وسلم ارشادگرامی دې

« دمسلمان وينه د دريو خبرو نه سوا حلاله نه ده » ددې دوه مطلبه کيدلې شي يوداچه د زانی محصن په شان مرتد د توبې نه پس هم واجب القتل دې ، دويم داچه په توبې سره د قتل سزا معاف کيږی ، همدا راجح دې . د امتِ مسلمه په دې کښې هيڅ اختلاف نشته دې چه د مرتد نه فديه اخستل يا احسان کولوسره پريښودل ، په يو حالت کښې هم پريښودل جائز نه دی ، بس هم يو صورت متعين دې چه هغه اسلام قبول کړی او که نه نو هغه دې قتل کړې شی »

شارح موطا شيخ الحديث حضرت مولانا محمدزکريا صاحب ددې حديث په تشريح کښې ليکی چه :

**وفی المحلی قال النووی رحمه الله تعالی اجمعوا علی قتله واختلفوا فی استتابته فقال الائمة الاربعة والجمهور رحمهم الله تعالی انه يستتاب ونقل ابن القصار رحمه الله تعالی اجماع الصحابة رضی الله تعالی عنهم عليه، وقال طاؤس والحسن والماجشون وابويوسف رحمهم الله تعالی لا يستتاب ولو تاب نفعته توبته عندالله ولا يسقط قتله اه (اوجز المسالك ص۱۸۰ ج۵)**

« امام نووی رحمه الله تعالی فرمائی چه د قتلِ مرتد په مسئله باندې د پوره امت اجماع منعقد ده او هغه ته د توبې په مهلت ورکولو کښې اختلاف دې .

د ائمه اربعه اود جمهور رحمهم الله تعالی مذهب دې چه مهلت دې ورکړې شی ، ابن قصار رحمه الله تعالی په دې باندې د صحابو رضی الله تعالی عنهم اجماع نقل کړې ده .

اود امام طاؤس ، حسن ، ماجشون اود ابويوسف رحمهم الله تعالی مذهب دې چه مهلت دې ورنه کړې شی ، که چيرته توبه اوباسی هم نو دا توبه به صرف عندالله نافع وی اود قتل حکم به نه ساقطيږی »

## حنابله :

**قال الامام ابن قدامة رحمه الله تعالی : واجمع اهل العلم علی وجوب قتل المرتد وروی ذلك عن ابی بکر وعثمان وعلی ومعاذ وابی موسی وابن عباس وخالد وغيرهم رضی الله تعالی عنهم ولم ينكر ذلك فكان اجماعاً.**

**مسالة : قال ومن ارتد عن الاسلام من الرجال والنساء وکان بالغاً عاقلاً دعی اليه ثلاثة ايام وضيق عليه فان رجع والاقتل (المغنی مع الشرح الکبير ص۷۴ ج۱۰)**

« د قتلِ مرتد په وجوب باندې د علماء امت اجماع قائم ده او دا حکم د حضرت ابوبکر ، عمر ، عثمان ، علی ، معاذ ، ابوموسی ، ابن عباس ، خالد اود نورو صحابو رضی الله تعالی عنهم نه منقول دې او يو صحابی هم ددې نه انکار نه دې کړې لهذا د ټولو اجماع منقعده شوه .

**مسئله** : چه کوم بالغ عاقل سړې يا زنانه د اسلام نه واوړی هغه لره درې ورځې په قيد کښې

حصارولوسره د اسلام دعوت دې ورکړې شی ، که چیرته اسلام طرف ته واپس راشی نو صحیح ده اوکه نه نو قتل دې کړې شی »

## اهل ظواهر :

د اصحابِ ظاهر مسلم امام علامه ابن حزم ظاهری رحمه الله تعالی هم په المحلی کښې د قتلِ مرتد مسئله د حدیثونو اود آثارِ صحابه په رڼا کښې په پوره تفصیل سره بیان کړې ده . (ص ۱۸۸ ، تا ص ۱۹۴ ج ۱۱)

مرتدلره دې د جرمِ ارتداد نه پس قتل کړې شی یا دې مهلت ورکړې شی . اومهلت دې ورکړې شی نو ترکوم حده پورې ؟ دې باره کښې مختلف مذاهب نقل کولو نه پس موصوف خپله فیصله تحریرفرمائی :

**ولیس قول من قال یستتاب مرتین باولی ممن قال ثلاثة ولا ممن قال اربعا اوخمسا اواکثرمن ذلك وکل هذه الاقوال بلا برهان فسقط هذا القول بلا شك فلم یبق الا قول من قال یدعی مرة فیقال له: ان من اسلم ثم ارتد قد تقدم دعاؤه الی الاسلام حین اسلم بلا شك ان کان دخیلا فی الاسلام ما وحین بلغ وعلم شرائع الدین هذا مما لا شك فیه وقد قلنا ان التکرار لا یلزم فالواجب اقامة الحد علیه اذا قد اتفقنا نحن وانتم علی وجوب قتله ان لم یراجع الاسلام اهـ(المحلی ص۱۹۲ ج۱۱)**

« کوم حضرات چه وائی چه مرتد ته د قتل نه وړاندې دوباره مهلت دې ورکړې شی دهغوی دا قول دهغه حضراتو د قول نه څه زیات اولیٰ او راجح نه دې کوم چه مرتد ته د دریو یا څلورو یا پنځو یا ددې نه زیاتو ورځو د مهلت ورکولو قائل دی . دا ټول اقوال بلا دلیله دی . د دوباره ملهت ورکولو قول هم یقینا وغورځیدلو . اوس صرف دهغه حضراتو قول باقی پاتې شو چه وائی چه هغه لره د وژلو نه وړاندې یوځل دې مهلت ورکړې شی .

قاضی شوکانی رحمه الله تعالی هم د قتلِ مرتد مسئله حسبِ عادت ډیره تفصیلی بیان کړې ده . (نیل الاوطار ص ۲۰۱ تاص ۲۰۲ ج ۷)

د اختصار په نظرکښې نیولوسره مونږ صرف هم هغه حواله جاتو باندې اکتفاکړو ، اوکه نه نو د ائمه حدیث ، د فقهاءِ کبار اود نورو اساطینو تصریحات په دومره کثرت سره دی چه دهغې استقصاء دیو ضخیم کتاب موضوع ده . شاید د حدیثو یا د فقهې یومستند کتاب به داسې نه وی چه په هغې کښې د قتلِ مرتد تفصیل نه وی .

## عقل سلیم

د عقلِ سلیم په رو سره هم د مرتد سټ کټ کول دی ځکه چه هغه ه دینِ فطرت نه د بغاوت

جهنډه اوچتولو سره دين پورې خندا کوی ، د الله تعالی اود هغه د رسول صلی الله علیه وسلم توهين کوی ، د پوره امتِ مسلمه جذباتو سره لوبې کوی ، په دنيا کښې به ددې نه لويه فتنه او فساد بل څه وی ؟

د زمکې په مخ باندې يو داسې حکومت نشته چه خپل نظامِ مملکت لره داسې ګډ وډ ليدلو سره هم چپ چاپ شی او صرف تماشا کوی ، ددې وجه نه د دنيا په هرقانون کښې د باغی سزا د وژلو نه کمه نشته .

مرتد صرف د يو ملک نه بلکه د پوره انسانيت دښمن دې ، د هغه د ناپاک وجود نه انسانی معاشرې لره پاکول ضروری دی ، ناسور شوې اندام کټکول غورځول بې رحمې نه ده بلکه د بدن د بقاء اود حفاظت ذريعه ده ، او د ددې نه غفلت کول مرګ ته دعوت ورکول دی .

مرتدين پخپل جرم باندې پرده اچولو دپاره څه دلائل هم پيش کوی دهغې حقيقت ستاسو په خدمت کښې اوس پيش کيږی :

## د مرتدينو دلائل

**رومبنۍ دليل** : ﴿لَآ إِكْرَاهَ فِي الدِّينِ﴾ د قرآن مجيد واضح اعلان دې ، لهذا يو مسلمان د سوچ کولو نه پس خپله نظريه بدلول غواړی نوپه جبراوزور سره هغه په اسلام کښې داخل ساتل تنګ نظری ده

ددې جواب دادې چه دا قرآنی اصول پخپل ځائ کښې مسلم دی ، مګر د مرتد د سزا سره ددې څه تعلق دې ؟ ددې آيت شانِ نزول چه د سنن ابی داؤد ، نسائی ، ابن حبان وغيره په حوالې سره په ټولو معتبرو تفاسيرو کښې منقول دې دادې چه د جاهليت په زمانه کښې د انصارو د يوې زنانه چه اولاد نه کيدلو نو هغې به نذر منلو چه « که چرته الله تعالی ماته ځوئ راکړی نو هغه به زه د يهودو په مذهب کښې داخلوم ، د ځوئ په پيدائش باندې به ئې هغه نذر پوره کولو ، هم دغه شان ډيرو انصارو زنانو خپل ځامن د يهودو په حواله کړی وو ، چه کله د يهودو قبيله بنی نظير دهغوی د چلونو په بدله کښې جلاوطن کړې شو نو ددې انصاری نسل يهود هم دهغوی سره لاړل ، په دې باندې بعضې انصارو اووئيل « مونږ به خپل ځامن هغوی ته نه حواله کوو بلکه هغوی به په زوره په اسلام کښې داخلوو » په دې باندې دا آيت نازل شو ، په يو روايت کښې د انصارو الفاظ دی چه :

**انما فعلنا ما فعلنا ونحن نری ان دينهم افضل مما نحن عليه واما اذا جاء الله بالاسلام فنكرههم عليه فنزلت لا اكراه فی الدين (تفسير قرطبی ص۲۸۰ ج۳ وغيره)**

« مونږه دې سوچ کولوسره خپل ځامن دهغوی په حواله کړی وو چه دهغوی دين زمونږ د دين نه افضل دې ، ليکن چه اوس هرکله الله تعالی مونږه ته دينِ اسلام نصيب کړو نو اوس به مونږ خپلو

خامنو لره په اسلام باندې مجبوره وو ، په دې باندې دا آيت نازل شو »

شان نزول کښې مفسرينو نور هم ډير واقعات نقل کړی دی چه ټول په ټوله د اصلی کافرانو سره متعلق دی ، په هغه واقعاتو کښې د کوم يو مرتد لرې لرې پورې څه ذکر نشته.

بيا دا آيت هم پخپل اطلاق باندې نه دې ، جزيرة العرب کښې اوسيدلو والا غيراهلِ کتاب کافران ددې نه مستثنیٰ دی.

بلکه بعضې حضراتو دې لره منسوخ کړې دې ، امام ابن کثير رحمه الله تعالی فرمائی

**وقد ذهب طائفة كثيرة من العلماء ان هذه محمولة على اهل الكتاب ومن دخل فى دينهم قبل النسخ والتبديل اذا بذلوا الجزية وقال اخرون بل هى منسوخة بآية القتال وانه يجب ان يدعى جميع الامم الى الدخول فى الدين الحنيف دين الاسلام فان ابى احد منهم الدخول فيه ولم ينقد له اويبذل الجزية قوتل حتى يقتل وهذا معنى الاكراه (تفسير ابن كثير ص ۳۱۱ ج ۱)**

« د علماؤ يوه لويه ډله دې طرف ته تلې ده چه دا آيت اهلِ کتاب او هغه خلقو باندې محمول دې چه نسخ اوتحريف نه وړاندې دهغوی په دين کښې داخل شو ، په دې شرط چه دا خلق جزيه ورکول قبوله کړی.

اونور حضرات وائی دا آيت په قتال سره منسوخ شو ، اوس ټولو خلقو ته به دينِ حنيف کښې د داخليدلو دعوت ورکولې کيږی ، که چيرته څوک دين کښې د داخليدلو نه انکار وکړی ،او نه په دين کښې مخلص کيدلو سره راتلل غواړی اونه جزيه ورکړی نوهغوی سره به قتال کيږی تردې پورې چه قتل کړې شی ، داکراه همدا معنیٰ ده »

غرض دا چه د **(لا اكراه فى الدين)** اصول عامو کافرانو سره متعلق دی ، د مرتد د وژلو مسئله ددې نه بالکل جدا ده ، په دې مسئله کښې مونږ د امت اجماعی موقف بالتفصيل ليکلې دې.

**دويم دليل** : د قتل سزا د هر مرتد دپاره نه ده بلکه خاص دهغه مرتد دپاره ده چه باغی وی لکه د حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه په روايت کښې تصريح تيره شوې ده

**(التارك لدينه المفارق للجماعة)**

ددې جواب دادې چه په دې کښې د « المفارق للجماعة » قيد احترازی نه دې بلکه واقعی دې ، هرمرتد باغی اومفسد اود مسلمانانو دجماعت نه جدا دې ، اوکه نه نو نور احاديث چه وروستو مفصل نقل کړې شوی دی په هغې کښې چرته هم ددې خبرې اشاره نشته چه د قتل د مستوجب کيدلو دپاره د ارتداد له جرم سره بغاوت هم شرط دې.

که چيرته د مرتدينو دا دروغ تسليم کړې شی نو ددې صفا مطلب دا راوځی چه ارتداد هيڅ جرم

نه دي ، ځکه چه هر باغي خواه هغه مسلمان وي يا نه وي د بغاوت په حالت کښې واجب القتل وي چه هرکله د بغاوت د جرم مستقله سزا قتل دې نو دارتداد جرم لره له دې سره ديو ځانې کولو څه ضرورت دې ؟

حقيقت دادې چه د مرتد سزا قتل ده خواه هغه باغي وي اوکه مطيع وي ، څنګه چه د باغي سزا قتل ده خواه هغه مرتد وي اوکه مسلمان ، دخلفاءِ راشدينو رضى الله تعالى عنهم اود پوره امت متوارث عمل په دې باندې شاهد دې ، د احاديثو په کتابونو کښې هم د باغيانو او محاربينو اود مرتدينو د سزاګانو دپاره جدا جدا ابواب قائم کړې شوى دى ، دوارو لره خلط کول د پوره امت تجهيل اود احاديثو د يو پوره باب نه انکار دې .

**دريم دليل** : په دنيا کښې د مرتد يوه سزا هم نشته ، ځکه چه دا جرم د قانون لاندې نه راځي ، دا خالص أخروى معاملاتو کښې دې ، په خپله قرآن مجيد ددې شهادت ورکوى :

﴿ وَمَن يَرْتَدِدْ مِنكُمْ عَن دِينِهِۦ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُوْلَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴾ (۲، ۲۱۷)

ددې دليل بې معنى والې هم ښکاره دې ، له أخروى جرم کيدلو نه خو دا نه لازميږى چه په دنيا کښې دې جرم سره متعلق هيڅ پوښتنه نه وى ، داسې خو زنا ، غلا ، قتل ټول أخروى جرائم دى آخر په دې باندې شريعت په دنيا کښې داسې سختې سزا ګانې ولې ايښى دى ؟ که چيرته د هر جرم فيصله آخرت ته پريښودلې شى نو په دنيا کښې به د جرائمو پوره آزادى ورکړې شى ، آيا حضورصلى الله عليه وسلم د مرتدينو متعلق چه د قتل فيصله صادر اوفرمائيله ، خلفاءِ راشدينو رضى الله عنهم د دوى صلى الله عليه وسلم د ارشاد په تعميل کښې مرتدين جهنم ته ونه رسول ، آيا دا ټول حضرات د قرآن مجيد د مذکوره آيتونو نه نا آشنا وو ؟ العياذبالله!

**څلورم دليل** : يو وړوکې غوندې دليل داهم پيش کولې کيږى چه په اسلام کښې آزادئ باندې هيڅ ممانعت نشته ، اسلامى رياست کښې هرسړى ته دا حق حاصل دې ، اود مرتد د وژلو قانون دې حق لره سلب کوى لهذا اسلام کښې ددې هيڅ ګنجائش نشته ، د آزادئ فرياد کولو والا دهغه اسيرانِ فکر فرنګ نه څوک پوښتنه وکړى چه د آزادئ څه حد هم شته اوکه نه ؟ که چيرته هرفرد لره بې واګو پريښودلو نوم آزادى وى نود وژلوټکولو ، فتنه اوفساد اود بغاوت الفاظ مهمل او بې معنى پاتې کيږى ، په دې باندې د پوښتنې ياد سزا جواز باقى نه پاتې کيږى ، ځکه چه ددې جرائمو مرتکب دخپلې خپلې ((آزادئ)) مظاهره کوى ، دهغوى لاره نيول بندول هغوى لره د جمهورى حق نه دمحروم کولو مترادف دې ، اسلام کښې د داسې آزادئ هيڅ تصور نشته

په پخوا زمانه کښې ديو سياسى مشر اود عالمِ دين په مابين کښې په دې موضوع باندې يو

خوندوره مکالمه دنظر نه تیره شوې وه چه هغه د موضوع په مناسبت سره دلته ذکر کیږی:

مستر: مولانا ! تاسوخو هسې هم د غیرو په وړاندې دې صفائی ورکولو سره نه ستړی کیږی چه: «زمونږ په دین کښې د فرد په آزادئ باندې هیڅ بندیز نشته ، نه مونږ د دین په معامله کښې چالره مجبوره ؤو»

مګر بل طرف ته یو سړې آزاد فکری سوچ کوی او د اسلام نه د ځان ویستلو فیصله کوی نوتاسو دهغه د وژلو فیصله صادره کوئ ، دا څه بې هوده خبره شوه ؟

مولانا : ماته اووایه چه یو غیرملکی اوسیدونکې پخپل ملک کښې ناست وی اود پاکستان مخالفت وکړی اود پاکستان په مشرانو پورې بدې ردې اووائی نو تاسو به د هغه سړی سره څه سلوک کوئ ؟

مستر : هغه خو زمونږ د قبضې نه بهر دې مونږ دهغه څه کولې شو ؟

مولانا : ښه که چیرته هغه پاکستان ته راشی اوددې ځائ شریعت قبلولو سره داسې وکړی نو بیا:

مستر : نوبیا خوبه هغه ته غدار وئیلې کیږی هغه به مونږ په ګولئ سره وژنو .

مولانا : بس ! بس ! هم دا مونږ د دین په معامله کښې وایو .

« که چیرته څوک کافر پخپل ملک کښې اسلام پسې بدې ردې وائی دهغه په مقدس هستیانو باندې لعنت وائی نو دهغه نه کوم حده پورې چشم پوشی ممکنه ده ،مګر یاد ساته د اسلام په حظیرة القدس کښې قدم اینښودلو نه پس که چیرته داسې وکړی نو دا غدار د هیڅ رحم مستحق نه دې » که چیرته تاسو د ملک غدار لره په ګولئ باندې ویشتلې شئ نو مونږ مسلمانان باید دخپل دین غدار لره په توپه باندې والوزوو ؟

## خلاصه

داچه د قتلِ مرتد مسئله په امتِ مسلمه کښې نه مخکې مختلف فیه وه او نه اوس ده ، فلهذا د داسې بدیهی مسئلې انکار پخپله بدترین کفر او ارتداد او لائق د سخت وهلو جرم دې.

## د مرتد نور احکام

(۱) **د اعمالو ختمیدل** : د مرتد ټول نیک اعمال ضائع کیږی ، البته مسلمان کیدلو باندې دهغې قضاء واجب نه ده سوا د حج نه ، که چیرته ئې دمرتد کیدلونه وړاندې حج کړې وی نو دوباره مسلمانیدلو باندې د استطاعت په شرط سره د حج اعاده ضروری ده.

د اکثرو محققوعلماؤ په نیزد د ارتداد نه وړاندې قضاشؤو مونځونو قضا هم واجب ده اودهغه زمانې حقوق العباد هم واجب الاداء دی.

(۲) ښځه به بائنه کیږي د قبولِ اسلام نه پس به د سرنه نکاح کول ضروري وي.

(۳) مرتد کیدلو سره به د خپلو مالونو نه دهغه ملکیت زائله کیږي، لیکن دا زوال به موقوف وي که چیرته مسلمان شو نوملکیت به حسبِ سابق واپس راځي.

او که په حالتِ ارتداد کښې مړ شو یا دارالحرب ته وتښتیدلو نوحالتِ اسلام کښې د ګټلې شوې ملکیت نه د اسلام د زمانې مالي حقوق ادا کولو نه پس باقي به مسلمان وارثانو ته ورکول کیږي، اود ارتداد د زمانې ګټې نه به د ارتداد د زمانې حقوق ادا کولو نه پس باقي ټول مال به فئ ګرځولې کیږي.

(۴) نور مالي تصرفات، بیع، هبه، رهن، اجاره وغیره به هم موقوف کیږي، که چیرته مسلمان شو نو نافذ کیږي به اوکه نه نو کالعدم به ګرځولې کیږي.

(۵) د مرتد وقف به باطلیږي.

(۶) د ارتداد په حالت کښې کړې شوې نکاح، ذبیحه، ښکار (چه بسم الله وئیلوسره ئې مثلاً د ښکاري سپي، باز یا د غشي په ذریعې سره ویشتلې وي) ګواهي او میراث (چه هغه ته ملاویدلو) باطل اوکالعدم دي.

همدارنګه دهغه مالي حقوق به حلالیږي، دهغې ادا کول ضروري نه دي.

(۷) د حاکم وخت دپاره بهتر دي چه مرتد ته اسلام پیش کړي او دریو ورځو پورې قید کولوسره دهغه شبهات لرې کړي، په دې دوران کښې که چرته مسلمان شي نو ډیره ښه ده اوکه مسلمان نشي نو هغه دې قتل کړي.

د مرتد اسلام به په هغه صورت کښې معتبر وي چه کلمهٔ شهادت وئیلو سره د اسلام نه سوا د ټولو دینونو نه د برائت اعلان وکړي، یا فقط دهغه دین نه د بیزارئ اظهار وکړي چه هغې لره اختیارولوسره مرتد شوې وو، رسمي طور باندې کلمه وئیلوسره به مسلمان نه ګڼلې کیږي.

(۸) مرتده چه ترڅوپورې مسلمانه شوې نه وي په قید کښې به ساتلې کیږي، په هغه دوران کښې به دهغې وهل ټکول هم کیږي او هغې سره به هرقسمه مقاطعه ساتلې کیږي ترهغه وخته پورې چه مسلمانه شي یا هغې ته مرګ راشي، په هغه دوران کښې که چیرته هغې لره چا اووژله نو په قاتل باندې هیڅ ضمان نشته.

دا حکم د عامې مرتدې دې، ساحرې (جادوګرې) دپاره هم د قتل سزا متعینه ده، د خنثیٰ مشکل هم دا احکام دي.

(۹) د نابالغ، مګرد عاقل ماشوم اسلام او ارتداد هم معتبر دې.

که چیرته د یو کافر ماشوم مسلمان شو یا مورپلار سره تبعاً مسلمان وو اود بلوغ نه وړاندې مرتد شو نو واجب القتل نه دې، نه د بلوغ نه وړاندې اونه وروستو، البته قیدکولو سره او

وهلوسره هغه به په اسلام باندې مجبوره کولې کیږي ، که چیرته په هغه حال کښې چا قتل کړو نو هغه باندې ضمان نشته.

که چیرته د بالغ کیدلو نه پس هغه د اسلام اقرار وکړو بیا مرتد شو نو واجب القتل دې ، که کوم یو سړې جبراً مسلمان جوړکړې شو او هغه مرتد شو نو واجب القتل نه دې.

(۱۰) مړکیدلو باندې مرتد لره په کوم یو قبرستان کښې (خواه که دمسلمانانو وی یا د کافرانو) دفن کول جائز نه دی بلکه جدا یو کنده کنلوسره به په هغې کښې دهغه لاش واچولې شی.

**محمد ابراهیم**

**نائب مفتی دارالافتاء والارشاد**

**۶ربیع الاخر ۱۴۱۲ هجری**

## تتمه

**من العبدالفقیرالی رحمة ربه الغنی الحمید رشید احمد وفقه الله لمافیه رضاه**

## زندیقان اودهغوئ احکام

عوام بلکه اکثرخواص هم شیعه او قادیانی وغیره زنادقه لره مرتد گنی ، حالانکه دهغوی احکام د مرتدینو نه هم زیات سخت دی.

**د زندیق تعریف** : چه د اسلام مدعی وی اودخپلو کفری عقائدو په ښکاره اعلان کوی اوهم هغه کفریه عقائدو لره اسلام گرځوی.

## د دورِ حاضر زنادقه

(۱) شیعه گان ، دا د زندیقانو ډیره زړه فرقه ده اود ټولو نه لویه د اسلام دښمنه اود ټولو نه زیاته بدترینه اوخبیثه ډله، د زندیقانودی ، دې اخبث الخبائث فرقې اسلام او مسلمانانو ته څومره چه لوئ نقصان رسولې دې او رسوی یی دومره نقصان د زندیقانو نورو د ټولو فرقو مجموعې هم ندې رسولې بلکه دهغې لسمه حصه نقصان ئې هم نه دې رسولې.

(۲) مرزائی ، قادیانی اولاهوری ، (۳) آغاخانی ، اسماعیلی (۴) بوهری (۵) بهائی (۶) مهدوی اودهغې شاخونه ذکری وغیره (۷) منکرین حدیث ، چکړالوی او پرویزی وغیره (۸) انجمن دینداران، مدعی الوهیت د «چن بسویشور» بنده گان.

## د زندیقانو احکام

(۱) حکومت باندې فرض دی چه دهغوی د وژلو حکم دې وکړی ، خواه څوک پخپله زندیق جوړ

شوې وي یا د پلار نیکه نه په هغه مذهب کښې راروان وي ، حالانکه د مرتد اولاد واجب القتل نه دي ، همدغه شان که ښځه مرتده شي نو واجب القتل نده مګر زندیقه ښځه هم واجب القتل ده .

(۲) ګرفتارولو نه پس دهغوی توبه قبوله نه ده ، او د مرتد توبه د ګرفتارولو نه پس هم قبول ده .

(۳) دهغوی د سړی یا ښځې سره دمسلمان نکاح جائزه نه ده .

(۴) دهغوی ذبیحه حرام قطعی ده .

(۵) دهغوی سره هیڅ قسمه معامله جائزه نه ده ، تجارتی لین دین کښې د سختې مجبورئ په حکم (کتاب الحظروالاباحة) کښې دي .

(۶) دهغوی په جنازه کښې شرکت جائز نه دي .

(۷) دمسلمانانو بلکه د کافرانو په قبرستان کښې هم دهغوئ دفن کول جائز ندی ، چرته یو کنده کنلو سره په هغې کښې اچولو سره دې خاوره ورګذار کړې شی ، والله الهادی الی سبیل الرشاد

رشیداحمد

۱۱ذی الحجه سنه ۱۴۱۴هجری

# كتاب اللقطة

## د كافر لقطه

**سوال**: زيد د يو کافر مقروض وو هغه قرضخواه هندوستان ته تللوسره چرته غائب (ورک) شو، هغه پورې د رسيدلو يو صورت هم په نظر نه راځي، زيد دهغه رقم سره څه وکړي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اولاً د خط اوکتابت يا نورو ممکنه ذرائعوسره د قرضخواه يا دهغه د وارثانو پته لګولو کوشش دې وکړي، انتهائی کوشش نه پس چه کله مايوسه شی نوهغه پيسې دې صدقه کړي.

په دې صورت کښې اصل حکم خو بيت المال کښې د جمع کولو دې مګرچونکه د حکومتِ اسلاميه نه کيدلو د وجه نه بيت المال مفقود دې، ددې وجه نه دې په فقراؤ باندې صدقه کړي.

**قال فی الهندية كل لقطة يعلم انها للذمي لا ينبغي ان يتصدق ولكن يصرف الى بيت المال لنوائب المسلمين، كذا فی السراجية (عالمگيرية ص۳۰۰ ج۲) ومثله فی الشامية ص۳۱۱ ج۳، والله تعالى اعلم**

**۲ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هجری**

## يو سړی ساعت ساز ته ساعت د جوړلو دپاره ورکړو اوبيا رانغې

**سوال**:- زيد د ساعتونو د جوړول کار کوی خلق د جوړلو دپاره ساعتونه هغه ته ورکوی، په هغې کښې څه ساعتونه د څو کالو راهيسې هغه سره پرتې دی چه دهغې مالکان تراوسه پورې نه دی راغلی، اونه يې د آئنده راتللو اُميد شته. ساعت ساز ته دهغه مالکانو متعلق هيڅ معلومات هم نشته چه څوک دی؟ چيرته اوسيږی؟ اودغه ساعتونه دزياتو کيښودلو سره بيکاره کيږی دهغې سره څه وکړې شی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ساعت ساز که چيرته د مالکانو د راتللو نه مايوسه شوې وی نو هغه ساعتونه دې صدقه کړی، صدقه کولو نه پس که چيرته ديو ساعت مالک راشی نو هغه ته به اختيار وی چه هغه دغه موقوفه صقه نافذه کو اوکه لقطه اوچتولو والا نه دهغې ضمان اخلی اويا د فقير نه خپل ساعت، اخلی که چيرته ساعت دهغه نه ضايع شوې وی نودهغه نه دې ضمان واخلی، که چيرته لقطه اوچتولو والا ضمان ادا کړو نود صدقې ثواب به ده ته ملاويږی. ساعت ساز دپاره دهغه ساعت خرڅول جائز نه دی.

**قال الامام المرغيناني رحمه الله تعالى: قال فان جاء صاحبها والا تصدق بها ايصالا للحق الى المستحق وهوواجب بقدر الامكان وذلك بايصال عينها عند الظفر بصاحبها وايصال العوض وهو الثواب على اعتبار**

اجازته التصدق بها وان شاء امسکها رجاء الظفر بصاحبها.

قال فان جاء صاحبها یعنی بعد ما تصدق بها فهو بالخیار ان شاء امضی الصدقة وله ثوابها لان التصدق وان حصل باذن الشرع لم یحصل باذنه فیتوقف علی اجازته والملك یثبت للفقیر قبل الاجازة فیه وان شاء ضمن الملتقط لانه سلم ماله الی غیره بغیر اذنه الا انه باباحة من جهة الشرع وهذا لا ینافی الضمان حقا للعبد کما فی تناول مال الغیر حالة المخمصة وان شاء ضمن المسکین اذا هلك فی یده لانه قبض ماله بغیر اذنه وان کان قائما اخذه لانه وجد عین ماله (هدایة ص ۱۱۰ ج ۲) والله تعالی اعلم ۱۷ صفر ۱۳۸۸ هجری

## که د کور مالک ورک شو نوکرایه به چاته ورکوی ؟

**سوال** :- زید د کرایه په کور کښې اوسیږی ، ترڅو پورې چه د کور مالک کرایه اخستله نو زید کرایه ورکوله ، مگر اوس د څه مودې نه را پدې خوا هغه غائب دې ، مارکیټ کښې دهغه دکان دې هغلته تللو سره معلومه شوه چه هغه هم بند پروت دې ، نده معلومه چه هغه ژوندې دې اوکه مړ شوې دې ؟ اوس دهغه دکان کرایه چاته ورکړې شی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هغه لټول ضروری دی ، که هرممکن حده پورې لټولو سره پته ونه لګیدله نو تر یوڅه وخته پورې دې انتظار وکړې شی ، که چیرته د هغه د راتللو نه بالکل مایوسه شی اودهغه څوک وارث هم موجود نه وی نو دا رقم دې دهغه د طرف نه مسکینانو باندې صدقه کړې شی ، که چیرته یو وخت کښې هغه راغلو او دا صدقه هغه منظوره کړه نو ډیره ښه ده ، اوکه نه نو هغه پوره رقم دې هغه ته دوباره ادا کړې شی ، په دې صورت کښې به د صدقې ثواب کرایه دار ته ملاویږی ، والله تعالی اعلم . ۱۶ جمادی الاخرة ۸۹ هجری

## پروت قلم ملاؤ شو

**سوال** :- زید ته یوقلم په لاره کښې ملاؤ شو ، آیا دا قلم زید پخپله ځان سره ساتلې شی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : زید باندې دهغې اعلان واجب دې چه کله هغه ته یقین وشی چه اوس ددې مالک نه راځی نوصدقه دې کړی . که زید مسکین وینو خپل ځان سره یې هم ساتلې شی

قال فی التنویر : فینتفع الرافع بها لو فقیرا والا تصدق بها علی فقیر ولو علی اصله وفرعه وعرسه (ردالمحتار ص ۳۳۰ ج ۳) والله تعالی اعلم (۲۰ ربیع الثانی ۹۳ هجری)

## که د ماهانه رسالې خریدارانوپورې رسول مشکل شو ؟

(۱) د مشرقی پاکستان بعضې خلقو الابقاء راغوښتلې ده ، وروستو بنګله دیش جوړ شو ، اوس دچا نهه رسالې او د چا لس رسالې باقی پاتې دی ، د ډاکخانې خرچه اوس کافی زیاته شوې ده ، دهغه ځائ نه دخلقو خطونه هم راغلل دخپلو رسالو وصولولو دپاره ، هغوی ته ما ولیکل چه دعاکوئ که منی آرډر کهولاؤ شی نو چه د کومو حضراتو رسالې حصارې شوی دی دهغوی چه څومره رقم څما سره بقایه دې هغه ټولو ته به ټول رقم ورلیږم ، لیکن منی آرډر تراوسه پورې نه دې کهولاؤ شوې.

اتفاق سره دمولانا محمدالله صاحب صاحبزاده تشریف راوړو ، ماهغوی ته اووئیل چه د ټولو حضراتو پیسې سره له پتې اود منی آرډر خرچه تاسو ته درکوم تاسو هغلته لاړشئ او دا ور ولیږئ ، هغوی منظوره کړه ، آیا په دې صورت کښې به زه د قرضه خلاص شم ؟

(۲) بیا ما هغه ته اووئیل چه په هغوی کښې به ډیر بهرنی وی چه هجرت به ئې کړې وی یا به ډیر مړه شوی وی چه دهغوی منی آرډر به واپس راځی ، لهذا دهغوی رقم دخپلې مدرسې مستحق طلباؤ ته ورکړه ، آیا د مدرسې مستحق خلقو ته ورکولو سره څما ذمه به فارغه شی ؟.

(۳) بعضې خلق خپلې رسالې په خپل لاس سره وړی چه اوس د ډیرې مودې څخه نه راځی ، څما نیت دې چه ټولې رسالې په کومه دینی مدرسه کښې مستحق طلباؤ کښې تقسیم کړم، بیا که چیرته هغوی راغلل نوهغوی ته به یی دوباره ورکړم همدغه شان د هندوستان نه خلقو رسالې راغوښتلې ، اوس یی نه راغواړی دهغوی په باره کښې هم دا خیال دې یعنې د تقسیمولو ، بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : (۱) که چیرته ټولې پسې تاسو دیومعتبر سړی په لاس باندې واستوئ اود منی آرډر خرچه هم تاسو ورکړه نوستاسو ذمه دهغه قرض نه فارغه کیږی ، په دې شرط چه مالکانو ته پیسې ورسیږی، که چرته هغوی ته ونه رسیږی نو ستاسو ذمه نه فارغه کیږی

(۲) دکومو خلقو چه انتقال شوې دې دهغوی وارثان دې ولټولې شی که چیرته وارثان ملاؤ نه شی نو دا پیسې مستحقو طالبانو ته ورکولوسره ستاسو ذمه به فارغه شی.

کوم خلق چه مسافر وو هجرت ئې کړې دې که چیرته د کوشش نه باوجود هغوی پورې یا د هغوی وارثانو پورې رسیدل ونه شو نو دا پیسې هم د یو مدرسې مستحقو طالبانو ته ورکړئ ، بیا که چیرته څوک اتفاق سره راشی اوهغوی په صدقه باندې رضامند نه وی نو هغه ته به دوباره پیسې ورکول وی.   (۳) جائز دې ، والله تعالی اعلم   (۲۷ رمضان ۹۷ هجری

# کتاب الشرکة

## د پلار او ځامنو مشترکه ګټه د پلار ملکیت دې

**سوال**:- زید دخپلو دوو ځامنوسره یوځائ کاروبار وکړو او یو معقول رقم ئې جمع کړو ، د زید یو نابالغه ځوئ هم وو چه اوس بالغ شوې دې لیکن هغه څه ګټلی نه دی ، اوس که چیرته زید جمع شوې رقم په دریو واړو ځامنو کښې برابر تقسیمول غواړی نو آیا دا به جائز وی اوکه نه ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د پلار او ځامنو د مشترکه کاروبار په صورت کښې ټول ملک د پلار شمیرلې کیږی لهذا پلار پخپل ژوند کښې چه کوم تصرف غواړی کولې یې شی اودهغه دمرګ نه پس دهغه دریم ځوئ ته به هم په ترکه کښې برابره حصه ورکول کیږی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی معزیا الی القنیة : الاب وابنه یکتسبان فی صنعة واحدة ولم یکن لهما شیء فالکسب کله للاب ان کان الابن فی عیاله لکونه معینا له الاتری لو غرس شجرة تکون للاب (الی ان قال) وفی الخانیة زوج بنیه الخمسة فی داره وکلهم فی عیاله واختلفوا فی المتاع فهو للاب وللبنین الثیاب التی علیهم لاغیرالخ (ردالمحتار ص۳۱۰ ج۳) والله تعالی اعلم (یوم العاشورا۱۴هجری)

## مشترکه ګټه کښې د ټولو برابره حصه ده

**سوال**: د یو سړی شپږ هالکان دی او ټول په ګټه کښې سره شریک دی ، لیکن په هغوی کښې بعضې هوښیار اوتجربه کار دی ، چه دهغوی ګټه نسبتاً زیاته ده او بعضې بې محنته او سست دی چه دهغوی ګټه کمه ده ، هغه ټولو په شریکه یوه زمکه واخستله او بیا ئې خرڅه کړه ، اوس زیاتې ګټې والا ورونه وائی چه په دې کښې زیاته حصه زمونږه ده او نور ورونه وائی چه د ټولو حصه برابره ده ، په دې دواړو فریقینو کښې دچا خبره صحیح ده او ددې رقم شرعی تقسیم به په کومه طریقه وی ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا رقم مشترک دې ، او په دې کښې ټول ورونه برابر حصه دار دی.

قال فی التنویر وشرحه: وما حصله احدهما فله وما حصلاه معا فلهما نصفین ان لم یعلم ما لکل وما حصله احدهما باعانة صاحبه فله ولصاحبه اجر مثله بالغا ما بلغ الخ

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: یوخذ من هذا ما افتی به فی الخیریة فی زوج امراة وابنها اجتمعا فی دار واحدة واخذ کل منهما یکسب علی حدة ویجمعان کسبهما ولا یعلم التفاوت ولا التساوی والتمییز فاجاب

بانه بينهما سوية وكذا لو اجتمع اخوة يعملون في تركة ابيهم ونما المال فهو بينهم سوية ولو اختلفوا في العمل والرای اه (ردالمحتار ص۳۶۰ ج۳)

لیکن که چیرته مشترک کاروبار کښې تفاوت معلوم شو اومعین زیاتوالې په اقرار یا بینه سره ثابته شو نو په دې صورت کښې به هغې ته اعتبار وی كماهو مفهوم من العبارة المذكورة ومصرح قبيلها في الشامية، والله تعالى اعلم (يوم العاشوراء ۶ هجری)

## دیوشریک دپاره د زیاتې ګټې شرط

**سوال**:- زید د کرایی د دوکان مالک دې چه په هغې کښې هغه کاروبار کوی ، اوس زید او بکر په هغې کښې مشترک کاروبار شروع کړو ، کاروبار کښې زید دوه زره (۲۰۰۰) او بکر شپږ زره (۶۰۰۰) روپئ شاملې کړې ، فیصله دا وشوه چه نفع به پنځه دیرش (۳۵) فیصده زید اخلی او پنځه شپته (۶۵) فیصده به بکر اخلی او همدې تناسب سره به دواړه نقصان هم برداشت کوی ، لیکن دا فیصله هم وشوه چه زید به نه څه کار کوی اونه به په انتظامی امورو کښې څه قسمه مداخلت کوی ، دهرې میاشتې په اختتام باندې به دحساب کولونه پس نفع تقسیموی ، مګر وشو داسې چه بکر خو په ابتداء کښې یو څو میاشتو پورې صحیح حساب کولواو زید ته یی نفع ورکوله ، اووروستو یی بیا حساب کول پریښودل ، اوپه تخمینی اندازې سره ئې زید ته د نفع یوڅه روپئ ورکولې ، زید په هغه باندې اعتراض هم وکړو ، مګر بکر ټال ورکولو ، البته کله کله به ئې هغه لره د مطمئن کولو دپاره د پیسو په مقدار کښې یولږ غوندې ردوبدل کولو ، او اوس دهغه همدا معمول دې چه په تخمینی طور هغه ته پیسې ورکوی ، اوس سوال دادې چه په دې اندازې سره د نفع تقسیم جائز دې اوکه ناجائز ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته د عقد په وقت کښې شریکینو کښې دیو دپاره په کاروبار کښې دڅه کار نه کولو فیصله وشوه نودهغه دپاره دهغه د راس المال مقدار نه د زیاتې منافع شرط جائز نه دې ، د هرشریک په نفع اونقصان دواړو کښې دهغه د سرمایی مطابق حصه وی ، د زید پنځه ویشت فیصد اود بکر پنځه اویا فیصده ، البته زید د دوکان کرایه اخستلې شی .

دمنافعو په تقسیم کښې د حساب پوره اندازه لګول اوتحقیق ضروری دې ، تخمیناً څه ورکول او اخستل جائز نه دی ، ددې نه وړاندې اندازې سره چه څومره د نفعې تقسیم شوې دې په هغې باندې دې فریقین توبه او استغفار وکړی .

**قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى:**

(قوله ومع التفاضل في المال دون الربح) ای بان یکون لاحدهما الف وللاخر الفان مثلا واشترطا التساوی

فی الربح (وقوله وعکسه) ای بأن یتساوی المالان ویتفاضلا فی الربح لکن هذا مقید بأن یشترطا الاکثر للعامل منهما اولاکثرهما عملا اما لو شرطاه للقاعد اولاقلهما عملا فلا یجوز کما فی البحر عن الزیلعی والکمال قلت والظاهر ان هذا محمول علی ما اذا کان العمل مشروطا علی احدهما وفی النهر اعلم انهما اذا شرطا العمل علیهما ان تساویا مالا وتفاوتا ربحا جاز عند علمائنا الثلاثة خلافا للزفر والربح بینهما علی ما شرطا وان عمل احدهما فقط وان شرطاه علی احدهما فان شرطا الربح بینهما بقدر راس مالهما جاز ویکون مال الذی لا عمل له بضاعة عند العامل له ربحه وعلیه وضیعته وان شرطا الربح للعامل اکثر من راس ماله جاز ایضا علی الشرط ویکون مال الدافع عند العامل مضاربة ولو شرطا الربح للدافع اکثر من راس ماله لا یصح الشرط ویکون مال الدافع عند العامل بضاعة لکل واحد منهما ربح ماله والوضیعة بینهما علی قدر راس مالهما ابدا هذا حاصل ما فی العنایة اوما فی النهر، قلت وحاصل ذلک کله انه اذا تفاضلا فی الربح فان شرطا العمل علیهما سویة جاز ولو تبرع احدهما بالعمل وکذا لو شرطا العمل علی احدهما وکان الربح للعامل بقدر راس ماله او اکثر ولو کان الاکثر لغیر العامل اولاقلهما عملا لا یصح وله ربح ماله فقط وهذا اذا کان العمل مشروطا الخ (ردالمحتار ص۲۰۱ ج۳) (غرة ربیع الاول ص۳۰ ھجری)

## مشترک مال کښې بغیر له اجازې نه تصرف کول

**سوال**:- د څلورو ورونو مشترک جائداد وو ، دهغوی د پلار انتقال وشو ، وروستو دهغه نه دوو مشرانو ورونو جائداد کښې تصرف کولو او دوه وړوکی ورونه چه عاقلان او بالغان وو دهغوی تابع وو ، ددې څلورو ورونو یوه مشترکه زمکه یو سړی بغیر له اجازته خرڅه کړه ، د بائع انتقال وشو ، مشرانو ورونو د مشتری خلاف دعویٰ وکړه ، بالاخر د اتوکالونه پس دا زمکه هغوی ته واپس ورکړې شوه ، لیکن دواړو ورونو د اتو کالو حاصل مشتری ته معاف کړو او بیا ئې زمکه دوباره دهغه په لاس باندې خرڅه کړه ، دا ټول تصرف ئې د وړو ورونو د اذن نه بغیر وکړو ، اوس سوال دادې چه دا تصرف به صرف د مشرانو ورونړو په حق کښې نافذ وی او که د وړو ورونو په حق کښې به هم نافذ وی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مالکانو ته د زمکې د خریدار نه د زمکې اجرِ مثل یعنې د ټیکې د معلومو پیسو اخستلو حق وو ، د مشرانو ورونو معاف کول به صرف دهغوی په حق کښې نافذ وی د وړو ورونو حصه به معاف نه وی ، لهٰذا د مشتری په ذمه د زمکې اجرِ مثل نه دهغوی حصه اداء کول دیانةً واجب دی.

هسې خو وروستو چه دوو مشرانو ورونو زمکه د مشتری په لاس خرڅه کړه نودا تصرف هم صرف دهغوی پخپله حصه کښې صحیح دې ، د وړو ورونو په حق کښې صحیح نه دې ، والله تعالی اعلم (۲۹ رمضان ۸۸ هجری)

## سامان کښې شرکت عنان صحیح نه دې

**سوال** :- زید ، بکر او عمرو مشترک کاروبار کول غواړی ، د زیدیو دوکان دې چه په کرایه باندې ئې چلوی چه دهغې قیمت دیارلس زره او کرایه پنځه دیرش روپئ ماهانه ده ، بکر او عمرو څلور څلور زره روپئ شاملوی ، دکان سره دا ټول مالیت یوویشت زره روپئ جوړیږی ، اوس فیصله دا کیږی چه د اصل نفعې نصف خو به دکار کولو والا د شرکاؤ د محنت معاوضه وی او باقی نصف به د شرکاؤ د سرمایی مطابق شرکاؤ کښې تقسیمیږی، آیا شرعاً دامعامله صحیح ده اوکه نه ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا شرکت عنان دې چه په هغې کښې د نقد روپو وجود شرط دې . د سوال په صورت کښې یو طرف سامان او بل طرف نقدې روپئ دی ، لهذا دا شرکت صحیح نه دې ، دې لره د صحیح کولو صورت دادې چه ړومبئ دې زید بکر اوعمرو لره په ځائ کښې شریک کړی بیا دې برابر یا کم اوزیاته سرمایه جمع کړی او د شرکت عقد دې وکړی .

**قال فی التنویر وشرحه : ولا تصح معاوضة وعنان ذکر فیهما المال والا فهما تقبل ووجوه بغیر النقدین والفلوس النافقة والتبر والنقرة ای ذهب وفضة لم یضرب ان جری مجری النقود التعامل بهما ،**

**وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت قوله (بغیر النقدین ) فلا تصحان بالعرض ولا بالمکیل والموزون والعدد المتقارب قبل الخلط بجنسه واما بعده فکذلك فی ظاهر الروایة فیکون المخلوط شرکة ملك وهو قول الثانی رحمه الله تعالی وقال محمد رحمه الله تعالی شرکة عقد (ردالمحتار ص ۳۰۰ ج ۳) والله تعالی اعلم (۲۱ ذی قعده ۸۸ هجری)**

## په شریک کاروبار کښې نقصا ن وشو

**سوال** :- که دوه زره روپئ د بکر او زر روپئ د زید وی اوپه کاروبار کښې نقصان وشی نو زید باندې به څومره نقصان راځی او په بکر باندې څومره ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هغه نقصان به اول له نفع نه پوره کیږی ، که چیرته نفع نه پوره کیږی نو دواړو باندې به په قدر د حصې نقصان راځی ، یعنې د زرو روپو والا باندې به دریمه حصه او په دوه زرو والا باندې به دویمه حصه وی، والله تعالی اعلم (۱۷ ذی قعده ۸۸ هجری)

## هر شریک ته د شرکت ختمولو اختیار دي

**سوال** :- زید دیوځو نورو شرکاؤ سره یوځائ مشترک کاروبار دپاره یو دوکان واخستلو ، هغوی سره عمرو هم د شرکت کولو خواهش ښکاره کړو نو هغه په دې شرط باندې شریک کړې شو چه هغه به د معمول مطابق د قرآن د تعلیم په خدمت کښې مشغول وی او کاروبار کښې به هیڅ قسمه دخل نه کوی ، همدارنګه دا فیصله هم وشوه چه زید به کار زیات کوی ، ددې وجه نه به په منافعو کښې دهغه حصه هم زیاته وی یعنې څلوېښت فیصده نفع د زید دپاره او شپېته فیصده د باقی دشرکاؤ دپاره ، څه موده تیریدلو نه پس شریکان د زید په خیانت باندې خبر شول ، ددې وجه نه هغوی هغه لره د شرکت نه جدا کول غواړی ، آیا شرعاً هغوی ددې حق لری ، همدارنګه دزید مطالبه ده چه د جدا کیدلو په صورت کښې د دوکان موجوده قیمت لګولو سره هغه ته دې دهغه حصه ورکړې شی ، ځکه چه د دوکان موجوده قیمت د وړاندې نه زیات دې آیا د زید دا مطالبه صحیح ده ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هرشریک ته هروخت اختیار دې چه د نورو شرکاؤ د رضا نه بغیر چه کله غواړی شرکت لره دې ختم کړی ، په دې صورت کښې د مشترکه څیزونو قیمت لګولو سره اصل دحصې په اندازه او منافع دې د شرط مطابق تقسیم کړې شی .

که چیرته دیو څیز اخستلو هرشریک خواهش مند وی نو د نیلام په صورت کښې چه کوم شریک زیات قیمت باندې اخستلو ته آماده وی هغه ته دې ورکړې شی .

لهذا د شرکاؤ د زید شرکت لره ختمول صحیح دی خواه ددې څه معقوله وجه وی اوکه نه وی ، البته زید د موجوده دوکان د قیمت نه دخپلې حصې مستحق دې اوکه چیرته د ټولو شرکاؤ نه زیات قیمت ورکولوسره دکان پخپله ځان سره ساتی نو زید ته ددې هم اختیار دې څنګه چه نورو شریکانو ته هم دا اختیار دې .

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وفی البحر عن البزازیة اشترکا واشتریا امتعة ثم قال احدهما لا اعمل معك بالشرکة وغاب فباع الحاضر الامتعة فالحاصل للبائع وعلیه قیمة المتاع لان قوله لا اعمل معك فسخ للشرکة معه واحدهما یملك فسخها وان کان المال عروضا بخلاف المضاربة هو المختار ھ (رد المحتار ص ۳۶۲ ج ۳) والله تعالی اعلم (۲۰ ربیع الاول ۱۴۰۰ هجری)

## د شریک د اذن نه بغیر تصرف جائز نه دې

**سوال** :- عنایت الله او علی محمد دواړو په پنځه دیرش زرو روپئ ګاډې واخستلو چه په هغې کښې شپاړس زره روپئ یی نقدې ادا کړې او نولس زره رپئ یی یوې میعنی موده پورې قرض پاتې

شوې، دوو يا دريو مياشتو نه پس علي محمد ايران ته لاړو چه هر کله د روپو ورکولو وخت راغې نو عنايت الله سره پيسې نوې ، قرض غوښتونکی عنايت الله ه مجبور کړو چه روپئ ورکړی اوکه نه نو هغه به په ګاډی باندې قبضه وکړی ، مجبوره کيدلو سره عنايت الله ګاډې په ديرش زرو باندې خرڅ کړو ، څو ورځې پس علي محمد هم راغې او اعتراض ئې وکړو چه تا د پنځو زرو په نقصان باندې ګاډې ولې خرڅ کړو ؟ عنايت الله خپل عذر پيش کړو چه مالک ډير تنګ کړم آخر مې څه کړې وې ؟ اوس آيا دا بيع وشوه اوکه نه او نقصان به په چاباندې راځي ؟ بينواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : صرف د عنايت الله د حصې بيع صحيح ده ، ګاډې د علي محمد اود خريدار په مينځ کښې شريک دې ، که چيرته خريدار په اشتراک باندې راضي نه وی نو هغه بيع لره فسخ کولو سره ګاډې واپس کولې شي .

**قال في شرح التنوير : نحو حمام وطاحون وعبد ودابة حيث يصح بيع حصته اتفاقاً ه (ردالمحتار ص ۳۳۰ ج ۴)**

**والله تعالی اعلم (۳ شعبان ۱۰ هجری)**

## مشترکه زمکه کښې يی بغير دشريک د اجازت نه بوټی ولګول

**سوال** :- دوه سړی په يوه زمکه کښې شريکان دی يو شريک د کهجورو ونې په مشترکه زمکه کښې وکرلې ، څو کاله پس چه کله ونو ميوه نيول شروع کړل نو کرلو والا شريک اووئيل چونکه ما ونې لګولی دی ددې وجه نه زه دويم شريک ته حصه نه ورکوم .

دويم شريک وائی چه چونکه تاسو په مشترکه زمکه کښې بلااجازته بوټی کرلی دی ددې وجه نه دا بوټی به هم تقسيم کيږی ، اوس به په دې صورت کښې څه فيصله کيږی ؟

واضحه دې وی چه زمونږ په کلو کښې دا عرف دې چه د کهجورو ونې لګولو والا ته نيمې ونې ملاويږی ليکن دا نيمی هغه وخت ورکوی چه کله دزمکې د مالک اجازت صراحةً يا دلالةً موجود وی ، بينواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا زمکه به په دواړو کښې تقسيميږی ، د بوټی لګولو والا په حصه کښې به دهغه بوټی برقرار پاتې وی ، اود دويم شريک د حصې نه بوټی لګولو والا دې خپل بوټی وباسی اوبوټی ويستلو سره چه په زمکه کښې کوم نقصان راځی هغه دې دهغې مالک ته ادا کړی .

**قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی : ارض بينهما زرع احدهما كلها تقسم الارض بينهما فما وقع في نصيبه اقر وما وقع في نصيب شريكه امر بقلعه وضمن نقصان الارض هذا اذا لم يدرك الزرع فلو ادرك اوقرب يغرم الزارع لشريكه نقصان نصفه لو انتقصت لانه غاصب في نصيب شريكه (ردالمحتار ص ۳۳۰ ج ۴)**

که چيرته بوټی ويستلو سره زمکې ته زيات نقصان رسيږی نود زمکې مالک ته اختيار دې چه

هغه پخپله حصه کښې د لګولې شوو بوټو قیمت ادا کولو سره دهغې مالک دې جوړ شی قیمت به دهغه بوټو لګولې کیږی چه واجب القلع وی.

قال فی التنویر: ومن بنی اوغرس فی ارض غیره بغیر اذنه امر بالقلع والرد وللمالك ان یضمن له قیمة بناء او غرس امر بقلعه ان نقصت الارض به (وفی الشامیة) قوله ان نقصت الارض به ای نقصانا فاحشا بحیث یفسدها اما لونقصها قلیلا فیاخذ ارضه ویقلع الاشجار ویضمن النقصان ساحکی عن المقدسی (ردالمحتار ص۳۴۰ ج۵) والله تعالی اعلم (۲۰ ذی الحجه ۹۰ هجری)

## شرکت کښې د نفع د تعیین اصول

**سوال** :- دوو سړو په شریکه یو کتاب چهاپ کړو ، په هغوی کښې یو هغه کتاب لره خرڅوی اوچه څه نفع کیږی هغه حصه مساوی اویاکم وزیات څنګه چه فیصله شوی وی پخپل مینځ کښې تقسیموی ، آیا داسې قسم شرکت شرعاً جائز دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو ! جائز دې ، البته که چیرته عقد کښې پوره یا اکثر کار دیو شریک په ذمه باندې مشروط وی نو د دویم شریک دپاره دهغه حصه د راس المال نه د زیاتې نفع شرط جائز نه دې که چیرته نفسِ عقد کښې دا شرط نه وی بلکه تبرعاً کار کوی نو د کار نه کولو والا دپاره هم د زیاتې نفع شرط جائز دې ، والله تعالی اعلم (۸محرم ۹۲ هجری)

## د مشترکه کور بغیر له اجازت نه ترمیم کول

**سوال** :- د زید په تحویل کښې دهغه د مرحوم پلار متروکه یو کور دې چه لا تراوسه په وارثانو کښې تقسیم شوې نه دې ، دکور یوې حصې نه چه کومه کرایه حاصله شوه هغه زید د ټولو وارثانو حق ګڼلو سره بطورامانت محفوظه وساتله، دې دپاره چه شرعی تقسیم وشی ، هپه همدې دوران کښې د کور یوه حصه د زړه کیدلو د وجه نه د ترمیم قابله شوه ، د کور په شرعی تقسیم کښې د دفتری کارروائې د وجه نه تاخیر کیږی ، زید سره دومره ګنجائش نشته چه هغه د کور دهغه حصې ترمیم وغیره وکړی ، نو آیا په دې صورت کښې له هغه کرایه نه حاصلې شوې روپئ چه زید سره امانت دی هغې سره د کور ترمیم کولې شی اوکه نه ؟ که چیرته د کور ترمیم ونشی نود خرڅولو په وخت بیا کور پوره قیمت نکوی ، همدارنګه دا هم ارشاد اوفرمایئ چه که چیرته په دې پیسو باندې د کور ترمیم کیدلې شی نود نورو وارثانو نه به دهغه پیسو خرچ کولو اجازت اخستل ضرور وی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرته کور وارثانو کښې قابلِ تقسیم وی نود شریکې کرایې پیسې خرچ کولو دپاره د نورو شرکاؤ نه اجازت اخستل ضروری نه دی.

اوکه چیرته کور قابلِ تقسیم نه وی یعنې د تقسیم په صورت کښې ناقابلِ انتفاع جوړیږی نو د

نورو شرکاؤ نه په ترمیم باندې د خرچ کولو اجازت اخستل ضروري دي ، که چیرته هغوی اجازت نه ورکوی نوحاکم ته درخواست ورکولوسره هغه په مرمت باندې مجبوره کولې شی ، که چرته د حاکم نه ددې امید نه وی نودشرکاؤ د اجازت نه بغیر هم په ترمیم باندې دهغوی پیسو خرچ کولو گنجائش معلومیږی .

لانه صار مضطرا الی المرمة کالمشترك الذی یقبل القسمة.

قال العلائی رحمه الله تعالی: والضابط ان کل من اجبران یفعل مع شریکه اذا فعله احدهما بلا اذن فهو متطوع والالا، ولا یجبر الشریك لی العمارة الا فی ثلاث وصی وناظر وضرورة تعذر قسمة ککری نهر ومرمة وقناة وبئرو دولاب وسفینة معیبة وحائط لا یقسم اساسه فان کان الحائط یحتمل القسمة ویبنی کل واحد فی نصیبه السترة لم یجبر والا اجبر و کذا کل مالا یقسم کحمام وخان وطاحون وتمامه فی متفرقات قضاء البحر والعینی والاشباه (ردالمحتار ص۳۰۵ ج۳) والله تعالی اعلم (۳ ربیع الثانی ۱۳۹۰ هجری)

## نابالغ سره مشترک مصارف

**سوال** :- دمرحوم د کونډې په نوم یو څه پیسې د پینشن په طور د لسوکالودپاره منظورې شوې دی ، او شپږویشت روپئ هره میاشت ورکول هم شروع شوی دی ، همدغه شان نورامدادی فنډ نه شپاړس روپئ هره میاشت دماشومانو تربلوغ پورې منظورې شوی دی چه هره میاشت ورته اوس ورکول کیږی، کونډه او څلور ماشومان چه په هغې کښې دوه بالغان دی دا ټول یوځائ اوسیږی او یوځائ خوراک څښاک کوی ، نو آیا دا کونډه به دغه پیسې په مجموعه خرچه کښې صرف کو اوکه علیحده کولوسره د اخراجاتو حساب به ساتی ، بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : چه کومې پیسې د نابالغو دپاره منظورې شوی دی هغه په بالغانو باندې خرچ کول جائز نه دی ، صرف د نابالغو په مصارفو کښې دې خرچ کړې شی ، البته خوراک څښاک کښې د ټولو حساب مشترک ساتلې شی ، والله تعالی اعلم ( ۲۹ رمضان ۹۷ هجری )

## شرکت سره له مضاربت نه جائز دي

**سوال** :- د زید اوعمرو په مینځ کښې دا فیصله وشوه چه دواړه به په کاروبار کښې برابره سرمایه اچوی عمرو به چونکه کار هم کوی لهذا دکار په عوض به د عمرو نیمه گټه وی ، او باقی نیمه به د اصل سرمایه مطابق دواړو کښې برابره تقسیمیږی ، نو آیا دا طریقه شرعاً جائز ده اوکه نه؟ که چیرته جائز وی نوآیا دا صفقة فی صفقة یا عقدبشرط کښې داخله نه ده ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : شرکت کښې عمل من الجانبین شرط دي چه دلته مفقود دې ددې

وجه نه دا شرکت نه دې بلکه مضاربت دې ، بيا که چيرته د رب المال د طرف نه مال لګول د شرط په درجه کښې نه وی نو هيڅ اشکال نشته ، اوکه چيرته مشروط وی نوبيا هم مضاربت اوشرکت کښې د ملايمت د وجه نه جائز دې ، چونکه په دې صورت کښې مضاربت اصل دې او شرکت بالتبع دې ، له همدې وجه نه د عمل من الجانبين شرط مرتفع شو .

همدغه شان اشتراط العمل من الجانبين سره تفاضل فی الربح هم ددې وجه جائز دې چه داد اول صورت برعکس اصل کښې شرکت دې او مضاربت بالتبع دې ، ددې وجه نه اشتراط العمل على الجانبين مضر نه دې .

قال ابن عابدين رحمه الله تعالى فى الشركة : وفى النهر اعلم انهما اذا شرط العمل عليهما ان تساويا مالاً وتفاوتا ربحاً جاز عند علمائنا الثلاثة رحمهم الله تعالى خلافاً لزفر رحمه الله تعالى والربح بينهما على ما شرطا وان عمل احدهما فقط وان شرطاه على احدهما فان شرطا الربح بينهما بقدر راس مالهما جاز ويكون مال الذى لا عمل له بضاعة عند العامل له ربحه وعليه وضيعته وان شرطا الربح للعامل اكثر من راس ماله جاز ايضا على الشرط ويكون مال الدافع عند العامل مضاربة ولو شرطا الربح للدافع اكثر من راس ماله لا يصح الشرط ويكون مال الدافع عند العامل بضاعة لكل واحد منهما ربح ماله والوضيعة بينهما على قدر راس مالهما ابدا هذا حاصل ما فى العناية اه ما فى النهر ، قلت وحاصل ذلك كله انه اذا تفاضلا فى الربح فان شرطا العمل عليهما سوية جاز ولو تبرع احدهما بالعمل وكذا لو شرطا العمل على احدهما وكان الربح للعامل بقدر راس ماله او اكثر ولو كان الاكثر لغير العامل اولا قلهما عملا لا يصح وله ربح ماله فقط هذا اذا كان العمل مشروطا الخ (ردالمحتار ص۳۰۱ ج۳)

وقال العلامة الرافعى رحمه الله تعالى : (قوله وان شرطاه على احدهما فان شرطا الربح بينهما بقدر الخ) فى الدرد من كتاب المضاربة مانصه والثالث اى من شروط المضاربة تسليمه الى المضارب حتى لا تبقى لرب المال فيه يد لان المال يكون امانة عنده فلا يتم الا بالتسليم كالوديعة بخلاف الشركة لان المال فى المضاربة من احد الجانبين والعمل من الجانب الاخر فلا بد ان يخلص المال للعامل ليتمكن من التصرف فيه واما العمل فى الشركة فمن الجانبين فلو شرط خلوص اليد لاحدهما لم تنعقد الشركة لانتفاء شرطها وهو العمل منهما اه وظاهر ما فيها ينافى مانقله المحشى ويقال فى دفع المنافاة ان شرط العمل منهما شرط لتحقق الشركة واذا شرط على احدهما تكون مضاربة او بضاعة على ما ذكره المحشى تأمل (الى قوله) وتخصيص العمل باحدهما يخرج المسئالة عن ان تكون من مفردات مسائل الشركة بل هى حينئذ بضاعة ان شرط العمل على احدهما مع التساوى فى الربح و مضاربة ان شرط الفضل للعامل (التحرير المختار ص۱۰ ج۲)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : ذكر محمد رحمه الله تعالى فى الاصل اذا جاء احدهما بالف درهم والاخر

بالقدر واشترکا علی ان الربح بینهما نصفان والعمل علیهما فهو جائز ویصیر صاحب الالف فی معنی المضارب الا ان معنی المضاربة تبع لمعنی الشرکة والعبرة للاصل دون التبع فلا یضرهما اشتراط العمل علیهما (منحة الخالق علی البحر الرائق ص ۱۸۳ ج ۵) والله تعالی اعلم (۲۰ محرم ۹۹ هجری)

## د پلار او ځوئ د مشترک جائداد حکم

**سوال**:- څه فرمائی علماء کرام چه د رحیم بخش نومی سړی دوه ځامن دی یو کریم بخش ، او بل دهنی بخش ، دواړه له یو بل نه جدا دی ، کریم بخش د جدائي نه یوکال پس پلار سره شریک شو او ددې شرکت شپاړس کاله موده تیره شوه ، بیا رحیم بخش وفات شو ، نو اوس به د مرحوم ترکه په کومه طریقه تقسیمیږی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اشتراک په وخت کښې د دواړو په مالونو کښې چه کوم تناسب وو دهغې مطابق ترکې نه د کریم بخش د حصې هغه په خپله مالک دې ، باقی ترکه به ټولو وارثانو باندې په قدر د حصې تقسیمیږی ، والله تعالی اعلم (۸ صفر ۹۹ هجری)

## مشترک کور کښې بغیر له اجازت نه د تعمیر حکم

**سوال**:- د زید انتقال په ۱۹۷۳ء کښې وشو او لاندې وارثان ئې پرېښودل :

(۱) یو ښځه (۲) نهه ځامن (۳) شپږ لونه . د والدینو انتقال د مرحوم نه ړومبی شوې وو .

ټول وارثان په خپله خپله حصه کښې اوسیږی صرف بکر د پلار په کور کښې اوسیږی ، په دې دوران کښې د نورو وارثانو د اجازت نه بغیر بکر د پلار په کور کښې یو پخلنځې اود دوو کوټې نورې اضافه کړې ، د پلار د وفات نه شپاړس کاله پس وارثانو دا فیصله وکړه چه دا پلاټ (حصه) دې خرڅ کړې شی او پیسې دې په ټولو وارثانو باندې تقسیم کړې شی ، ټولو عمر ته مختارنامه ورکړه اوهغه یې امیر جوړ کړو ، بکر هم خپله مختارنامه عمر ته ورکړه ، مګر دوه درې ورځې پس بکر دخپلې مختارنامې نه رجوع وکړه چه ماته دې دخپلې اضافه آبادئ قیمت جدا راکړې شی چه تقریباً شپیته زره روپئ جوړیږی اوکه نه نو زه مختار نامه نه درکوم ، او دا خبره یې په اخبار کښې شائع کړه ، عمر مجبوراً دهغه دا شرط قبول کړو ، د عمر په زړه کښې وو چه دا صرف یوه حیله ده چه کور خرڅولو باندې بکر آماده شی اوکه نه نو ډیر مشکلات به مخې ته راشی .

کور خرڅ کړې شو عمر دوعدې مطابق پیسې په ټولو وارثانو کښې د خپلو خپلو حصو په اندازه تقسیم کړوې ، اوس بکر دعوی کوی چه ماته د اضافی آبادئ پیسې راکړه چه دهغې تا وعده کړې وه ، اوس د پوښتنې وړ دا لاندې امور دی :

(۱) د بکر خرڅولو په وخت کښې دا شرط لګول چه ماته دې د اضافی آبادئ پیسې هم راکړې

شی جائز او که نه ؟

(۲) د بکر په مشترک ځائ کښې بغیرد اجازت د وارثانو نه اضافی آبادی کول جائز وو او که نه ؟

(۳) عمر چه بطورِ حیله د پیسو ورکولو وعده کړې وه دا وعده پوره کول ضروری دی او که نه ؟

(۴) بکر ته دخپل پلار د وفات نه پس د اضافی آبادئ پیسې اخستل پکار دی او که نه؟

(۵) که چیرته بکر د پیسو حقدار وی نو د څومره پیسو حقدار دې ؟ او اوس چه هرکله پیسې په ټولو وارثانو کښې تقسیم کړې شوی دی نو آیا د ټولو نه دې واپس واخستلې شی یا بل کوم صورت اختیار کړې شی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بکر د داسې عمارت قیمت اخستلې شی چه دهغې د غورخولو فیصله کړې شوې وی چه شاید د ملبې د قیمت نه به زیاته نه وی ، هر وارث دې بقدرحصه بکر ته اداء کړی ، والله تعالی اعلم (۲۳ذیقعده ۱۴۱۰ هجری)

## مشترکه زمکه کښې بغیر له جازت نه مسجد جوړول

دا بحث په کتاب الوقف باب المساجد کښې راروان دې.

## خپل شریک له ځان سره د شریک په طور ساتل

دا بحث په کتاب الاجاره کښې دې.

# كتاب الوقف

## د جمات يا د مدرسې ته قرآن يا بل څه كتاب بل ځائې ته وړل

**سوال**:- د شريعت مطهره حكم په دې حقله څه دې چې د جمات ته وقف شوې قرآن مجيد بل ځائې ته منتقلول، يا د يوې مدرسې كتاب بلې مدرسې ته اوړل روا دی او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب**: كه چيرې واقف د خاص جمات يا د خاص مدرسې د پاره قرآن يا كتاب وقف كړې وی، نو بيا ئې بل ځائې ته وړل روا نۀ دی۔ **والتفصيل فی كتاب الوقف من الهندية. والله سبحانه وتعالى اعلم.** **سلخ ذی الحجه ۱۳۷۲ هجری**

## د يوې مدرسې څيزونه بلې مدرسې ته مُنتقل كول

**سوال**:- د جمات انتظاميې يو عالم راوستلو او هغه ته ئې د جمات امامت او خطابت وسپارلو. عالم ورسره دا شرط كېښودلو چې مدرسه دې ورسره هم وی، نو انتظاميې ورله د جمات سره سره مدرسه هم جوړه كړه، او دغه عالم ئې د دې مهتمم وټاكلو، د كميټئ اركانو د دې متعلق يو ليك هم تيار كړو په كوم باندې د ټولو دستخطونه شته دی.

څه وخت پس د محلې خلق د دغه عالم مخالف شول او دا مطالبه كول ئې شروع كړل چې دا عالم دې د دې مدرسې او د جمات نه خارج كړې شی.

اوس پوښتنه دا ده چې دا عالم ددې ځائې نه منتقل كېدل غواړی او نوې مدرسه جوړول غواړی، آيا دا روا دی چې د رومبئ مدرسې ټول هر څه ملبه او جمع شوې پيسې د ځان سره يوسی او هلته پرې بله مدرسه جوړه كړی او په هغې باندې ئې ولګوی او كه نه؟۔ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: كۀ چيرې ذكر كړې شوې عالم خپل فرائض په پابندئ سره ادا كوی او د څه قسمه خيانت د هغۀ نه نوی شوې. نو بې د څه وجې نه د محلې د خلقو د هغۀ خلاف كېدل او د هغۀ د لرې كولو مطالبه كول روا ندی.

د مدرسې ملبه يا جمع كړې شوې پيسې په هيڅ صورت كښې منتقل كول روا ندی، دا څيزونه به د همدې مدرسې او جمات سره خاص وی. **والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۱ جمادی الاولی ۱۳۹۱ هجری**

## د پورتنی سوال په شان يو بل سوال

**سوال**:- يو مولوی صاحب په مدرسه كښې په تنخوا مدرس مقرر كړې شو، څۀ وخت پس انتظاميې په هغۀ باندې اعتماد او باور وكړو او هغۀ ته ئې د مدرسې اهتمام هم وسپارلو، په دې دوران كښې رسيدونه چاپ كړې شو او د مدرسې د پاره چنده هم كېدله. او كتابونه هم دمدرسې د

پاره واخستې شو، ځو کاله پس دې مولوی صاحب بې د اجازت نه مدرسه پرېښودله او نژدې علاقې ته لاړو، او د نوې مدرسې بنیاد ئې کېښودلو، اوس پوښتنه دا ده چه:

۱- آیا دغه مولوی صاحب د انتظامیې په اجازت سره یا بې د اجازته د سابقه مدرسې پیسې او وقف شوی کتابونه دې نوې مدرسې ته منتقلولې شی؟

۲ - د سابقه مدرسې په چاپ شوې رسیدونو باندې دې مدرسې ته چنده کولې شی او که نه؟

دا خبره دې په تاسو باندې واضحه وی چې د دې مدرسې نوم هم د سابقه مدرسې د نوم مطابق ایښودلې شوې دې.

دا فیصله هم راته ولیکئ چې مدرسه به د چا وی؟ آیا د مقامی آبادئ د مدد کوونکو، او که د مهتمم؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ - د سابقه مدرسې د پاره وقف کړې شوې کتابونه او د چندې پیسې بلې یوې ادارې ته منتقل کول روا نهٔ دی، نه د انتظامیې په اجازت سره او نهٔ بې د هغې د اجازت نه.

۲ - دا روا نهٔ دی، د نوې مدرسې نوم د سابقه مدرسې نه بیل ایښودل پکار دی.

۳ - مدرسه د هیڅ یو انسان هم ملکیت نهٔ وی، دا صرف د الله تعالی د پاره وقف وی، البته د محل وقوع یا د مقامی آبادئ اړخ ته مجازاً ددې نسبت کولې شی او دا روا دی. **والله سبحانه وتعالی اعلم**.

**۱۰ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری**

## د یو قرآن غلاف یا جلد بل قرآن ته منتقلول

**سوال**:- د قرآن مجید په ضعیف کیدلو سره ددې جلد بل قرآن مجید ته منتقلول یا د یو قرآن مجید غلاف بل قرآن مجید ته منتقل کول روا دی او که ناروا دی؟

**الجواب و منه الصدق والصواب**: که چیرې قرآن مجید وقف نه وی نو مالك ته ئې اختیار دې چې د دې جلد یا غلاف بل قرآن مجید ته منتقل کړی، او که چیرې قرآن مجید ئې وقف کړې وی نو بالطبع ورسره غلاف او جلد هم وقف دې، په دې صورت کښې د یو قرآن مجید نه د استغناء په حالت کښې ددې د جلد او دغلاف په حقله ځه جزئیه خو مې د نظر لاندې رانغله، البته د جمات په آلاتو باندې قیاس کیدلې شی، د جمات د آلاتو حکم دا دې، چې په وخت د استغناء کښې دغه ځیزونه د جمات د مالك ملګیت ته واپس راځی، لهذا دا د مالك په اجازت سره بل ځائې ته بیا منتقل کیدلې شی، (الشامیة کتاب الوقف) **سلخ ذی الحجه ۱۳۷۲ هجری**

## په زوړ قبرستان باندې جمات جوړول جائز دی

**سوال**:- په یوه زړه مقبره کښې چې د قبرونو نښې هم ختمې شوې وی،او خلقو بیا په هغې کښې مړی ښخول هم پریښې وی،آیا په داسې قبرستان باندې جمات جوړول روا دی او که نه؟

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په دې قبرستان کښې که خلقو مړی ښخول پریښې وی او د وراندینو قبرونو نښې نښانې په کښې ورانې شوې وې نو د مالك په اجازت سره په دغه ځائې کښې جمات جوړول روا دی.

قال الحافظ العینی رحمه الله: فان قلت هل یجوز ان تبنی المسجد علی قبور المسلمین؟ قلت قال ابن القاسم رحمه الله لو ان مقبرة من مقابر المسلمین عفت فبنی قوم علیها مسجدا لم ار بذلك بأسا وذلك لان المقابر وقف من اوقاف المسلمین لدفن موتاهم لا یجوز لاحد ان یملکها فاذا درست واستغنی عن الدفن فیها جاز صرفها الی المسجد لان المسجد ایضا وقف من اوقاف المسلمین لا یجوز تملیکه لاحد فمعناهما علی هذا واحد (عمدة القاری ص۱۷۹ ج۴)

وفی الشامیة عن الزیلعی ولو بلی المیت و صار ترابا جاز دفن غیره و زرعه والبناء علیه اهـ و مقتضاه جواز المشی فوقه (ردالمحتار ص۸۳۵ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم. غره محرم ۱۳۷۳ هجری

## وقف په مرګ پورې معلق کول صحیح دی

**سوال**:- یو سړی اووئیل چې زما په زمکه کښې دې شپږ برخې د زمکې زما د مرګ نه پس د مسکینانو د پاره وقف دی، ددې شرعا څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: دا وقف صحیح دې،او په ځینی احکامو کښې په حکم د وصیت کښې دې.

قال فی التنویر و شرحه او بالموت اذا علق به ای بموته کاذا مت فقد وقفت داری علی کذا فالصحیح انه کوصیة تلزم من الثلث بالموت لا قبله قلت ولو لوارثه وان ردوه لکنه یقسم کالثلثین الی اخر التفصیل مع ما بینه فی الشامیة (ردالمحتار ص۳۶۳ ج۳). والله سبحانه وتعالی اعلم. ۸ ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## په وقف کښې ناروا تصرف کوونکې متولی واجب العزل دې

**سوال**:- د داسې متولی معزوله کول څنګه دی چې په وقف کښې ناروا تصرف کوی؟

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: په وقف کښې هر ناروا تصرف کول خیانت دې،او هر یو خائن متولی واجب العزل دې،د داسې متولی نۀ معزوله کول ګناه ده،البته دا خبره ده چې پس د تجربې

او د اصلاح د ظهور نه ئې په دويم ځل متولی جوړولې شی.

قال فی التنویر وشرحه وينزع وجوبا بزازية لو الواقف فغيره بالاولی غير مامون

وفی الشامية مقتضاه اثم القاضی بتركه والاثم بتولية الخائن ولا شك فيه (ردالمحتار ص۳۹۶ ج۳)

وايضا فيها انه اذا اخرجه وتاب واناب اعاده وان امتناعه من التعمير خيانة وكذا لو باع الوقف او بعضه او تصرف تصرفا غير جائز عالما به (ص۳۹۶ ج۳) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۳ ربيع الثانی ۱۳۷۵ هجری

## په وقف باندې شهادت بالتسامع جائز دې

**سوال:-** يو زوړ وقف دې چې د واقف ئې څه معلومات نه کيږی ، په هغې باندې يو ظالم د ملکيت دعوی کړې ده،نو په دې حالت کښې به د وقف د اثبات څه صورت وی؟

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په وقف باندې شهادت بالتسامع والشهرة مقبول دې،په کومو مسئلو کښې چې شهادت بالتسامع روا دې،په هغې کښې د ا شرط دې چې د قاضی په مجلس کښې دې د دې تصريح نهٔ کوی چې دا شهادت هسې په تسامع سره دې،خو ولې وقف ددې نه مستثنی دې،چې په هغې کښې د قاضی په مجلس کښې د صراحت باوجود شهادة بالتسامع روا دې،اګر چې د واقف هيڅ پته نهٔ لګی،البته د موقوف عليه علم په کښې ضروری دې،دا حکم په اصل وقف کښې دې،په شرائطو او مصارفو د وقف باندې شهادة بالتسامع روا نهٔ دې.

قال فی شرح التنوير و تقبل فيه الشهادة علی الشهادة و شهادة النساء مع الرجال و الشهادة بالشهرة لاثبات اصله وان صرحوا به ای بالسماع فی المختار.

وفی الشامية معزيا الی الخيرية وقف قديم مشهور لا يعرف واقفه استولی عليه ظالم فادعی المتولی انه وقف علی كذا مشهور وشهدا بذلك فالمختار انه يجوز.(ردالمحتار ص۴۱۵ ج۳) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۳ ربيع الثانی ۱۳۷۵ هجری

## په وقف علی المسجد کښې قبر جوړول جائز نهٔ دی

دا مسئله په باب الجنائز کښې تيره شوې ده.

## د تقسيم الوقف بين المتولين تفصيل

**سوال:-** په يو موقوفه زمکه باندې دوه کسان متوليان دی،او دواړه په بيلو بيلو حصو باندې متصرف دی،آيا په دې طريقې سره تقسيم شرعا روا دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: قال فی الهندية ولو وقف ارضين وجعل لكل متوليا لا يشارك

احدهما الآخر (عالمگیریة ج۲ص۴۱۰)

وفی شرح التنویر ولا یقسم بل یتهایون الا عندهما فیقسم المشاع وبه افتی قارئ الهدایة وغیره اذا کانت القسمة بین الواقف وشریکه المالك او الواقف الآخر او ناظره ان اختلفت جهة وقفهما.

وفی الشامیة (قوله ان اختلفت جهة وقفهما) ای بان کان کل وقف منهما علی جهة غیر الجهة الاخری لکن هذا التقیید مخالف لما فی الاسعاف حیث قال ولو وقف نصف ارضه علی جهة معینة وجعل الولایة علیه لزید فی حیاته وبعد مماته ثم وقف النصف الاخر علی تلك الجهة او غیرها وجعل الولایة علیه لعمرو فی حیاته وبعد وفاته یجوز لهما ان یقتسما ویأخذ کل واحد منهما النصف فیکون فی یده لانه لما وقف کل ونصف علی حدة صارا وقفین وان اتحدت الجهة کما لو کانت لشریکین فوقفاها کذلك اه (ردالمحتار ص ۳۸۰ ج ۳)

د پورته عبارتونو نه د لاندینو صورتونو حکم مستفاد شو:

۱- دوه زمکې دې بیلې بیلې وی.

۲- د یوې زمکې نصف دې په یو جهت باندې وقف وی او دویم نصف دې په بل جهت باندې وقف وی.

۳- چې جهت متحد وی خیر دې خو دا خبره ده چې د زمکې نصف اول یی مخکې وقف کړې وی او د نصف ثانی ئې بیا وروستو وقف کړې وی.

۴- یوه زمکه په دوو کسانو کښې مشترکه وی، او دواړه ئې بیل بیل وقف وکړی.

۵- یوه زمکه په یو وخت کښې په یو جهت باندې وقف کړې شوې وی.

په اولنو څلورو صورتونو کښې په هر حصه باندې مستقل تولیت روا دې، او په پنځم صورت کښې روا نهٔ دی، حدیث د نزاع د علی او د عباس رضی الله عنهما هم په دې وروستی صورت کښې داخل دې.

والله سبحانه وتعالی اعلم — ۱۳ ربیع الاول ۱۳۷۶ هجری

## په وقف کښې تر ژوند پورې آمدن په خپله د اخستلو شرط لګول

**سوال:** چې یو سړې خپل صحرائی جائیداد، کور یا دکان، یا کتابونه وغیره د یوې مدرسې دپاره داسې وقف کړی، چې دخپله ژونده پورې یا د یو مقرر وخته پورې به په خپله یا ددهٔ اولاد یا بل یو سړې ددې موقوفه څیز نه فائده اخلی، بیا د هغهٔ د وفات نه پس یا د هغهٔ د تاکلې شوې مودې نه پس دې دغه څیز په دغه مدرسه وغیره کښې خرج کړې شی، د دې په حقله څوپوښتنې کول دی:

۱- آیا دا صورت شرعا روا دې؟

۲- په داسې صورت کښې په وقف کښې باید څه الفاظ ولیکلې شی؟

۳ - که چیرې واقف جائداد زباني یا په تحریري توګه باندې وقف کړي لیکن په سرکاري توګه وقف نامه رجسټر نۀ کړي، یا ددې د رجسټري کولو په وخت کښې وقف تسلیم نۀ کړي نو شرعا به د دې څه حکم وي؟ او آیا په داسې صورت کښې به هم واقف د اجر او د ثواب مستحق وي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب :** ۱ - دا روا دي.

۲ - په وقف کښې د داسې الفاظو استعمال ضروري دې کوم چې په صدقه علی سبیل التأبید باندې دلالت کوي۔

۳ - د وقف نامې رجسټري کول یا په تحریري توګه وقف کول ضروري نۀ دي، صرف زباني وینا کافي ده، البته که د وارثانو له ارخه ویره وي نو بیا رجسټري کول ضروري دي، که چیرې وارثانو دا وقف تسلیم نۀ کړو نو هغۀ به په دې باندې سخت ګناه ګار وي، او واقف ته به بهر حال اجر او ثواب ورکړې کیږي.

قال فی شرح التنویر وجاز جعل غلة الوقف اوالولایة لنفسه عند الثانی وعلیه الفتوی.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت قوله (وجاز جعل غلة الوقف لنفسه) واما اشتراط الغلة لمدبریه و امهات اولاده فالاصح صحته اتفاقا لثبوت حریتهم بموته فهو کالوقف علی الاجانب وثبوته لهم حال حیاته تبع لما بعدها وقید بجعل الغلة لنفسه لانه لو وقف علی نفسه قیل لا یجوز وعن ابو یوسف رحمه الله جوازه و هو المعتمد (وبعد سطر) (قوله وعلیه الفتوی) کذا قاله الصدر الشهید وهو مختار اصحاب المتون ورجحه فی الفتح واختاره مشائخ بلخ وفی البحر عن الحاوی انه المختار للفتوی ترغیبا للناس فی الوقف وتکثیرا للخیر (ردالمحتار ص۳۹۸ ج۳) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۴ جمادی الثانیه ۱۳۸۷ هجری

## په وقف شوي قبرستان کښې ذاتي تعمیر

**سوال :-** د یو قبرستان زمکه د ښار په مینځ کښې راغله اوس هغۀ د مړو د ښخولو دپاره نۀ استعمالیږي، د ښار خلق په هغې باندې قابض شو او تعمیرات په کښې لګیا دي کوي، او دغه شان یوه فراخه آبادي په دې باندې وشوه، د اوقافو محکمې په بیعه یا په کرایه باندې دغه حصه ورکړې ده، دې دپاره چې د دوي نه اخستلې شوې پیسې په نورو مصارفو د اوقافو کښې استعمال کړې شي، نو آیا دا اجاره او بیعه او شراء شرعا روا دي او که نه؟ او کومو خلقو چې دمتولي یا د اوقافو د محکمې نه دغه زمکه حاصله کړې ده، نو دغه زمکه او په دې باندې د تیار کړې شوي تعمیر اخستل او خرڅول روا دي او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قبرستان د پاره په وقف کړي شوي زمکه باندې د خلقو قبضه کول ناروا دی، او ددې بیعه او شراء باطله ده، په حکومت یا په متولی باندې دا خبره ضروری ده چې دغه زمکه سمدستی په دوی باندې خالی کړی، او که دا خاڼي چیرې د ښخولو دپاره په کار نهٔ راځی نو په دغه ځائې جمات یا بل څه د عامو خلقو د فائدې ځیز جوړ کړی.

قال الحافظ العینی رحمه الله : فان قلت هل یجوز ان تبنی المساجد علی قبور المسلمین ؟ قلت قال ابن القاسم رحمه الله لو ان مقبرة من مقابر المسلمین عفت فبنی قوم علیها مسجدا لم ار بذلک باسا و ذلک لان المقابر وقف من اوقاف المسلمین لدفن موتاهم لا یجوز لاحد ان یملکها فاذا درست و استغنی عن الدفن فیها جاز صرفها الی المسجد لان المسجد ایضا وقف من اوقاف المسلمین لا یجوز تملیکه لاحد فمعناهما علی هذا واحد (عمدة القاری ص ٤٠٠ ج ٣) والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۸ ربیع الاول ۱۳۸۹ هجری

## په وقف کښې ذاتی تصرف کول حرام دی

**سوال**:- په یو ځائې کښې مسلمانانو څه زمکه د دینی کارونو دپاره وقف کړه او یو مقامی بزرګ نې ددې متولی جوړ کړو، خو ولې د هغهٔ د وفات نه پس د هغهٔ په دوو ځامنو کښې یو ځوئی د وقف څه حصه په خپل نوم کړله او خرڅه نې کړله، په باقی څه حصه باندې اوس هم مدرسه جوړه ده، لیکن په څه حصه باندې د هغهٔ تصرف او قبضه ده. نو آیا د مسلمانانو دا وقف صحیح وو؟

که چیرې دا وقف صحیح وی نو د متولی د ځوئی دا په خپل نوم کول او خرڅول صحیح دی اوکه نه؟ بله دا چې د هغهٔ د ځامنو په دې وقف شوی عمارت کښې اوسیدل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کومه زمکه چې مسلمانانو د ذاتی کار د پاره وقف کړه، او د یو صالح او متقی سړی په بزرګئ باندې ئې اعتماد وکړو او هغهٔ ئې متولی جوړ کړو، او دحکومت په کاغذونو کښې ئې ددې د وقف اندراج ضروری ونهٔ ګڼلو نو دا وقف صحیح دې.

که په سرکاری اندراج کښې د غلطئ د وجې یا په بل څه وجه د متولی دا په خپل نوم کړله، نو د هغوی دا فعل غصب دې، او د دې خرڅول حرام دی.

د متولی ځامن په دې شرط باندې په وقف عمارت کښې پاتې کیدلې شی، چې د دینی تعلیم د پاره داسې وخت ورکړی لکه څنګه چې یو مدرس پابندی کوی.

د ښو خلقو مقامی جرګه دې څوک متقی عالم د دې وقف متولی جوړ کړی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۶ شعبان ۱۳۸۹ هجری

## د وقفي كتب خانې نه د كتابونو ويستل

**سوال:-** چې د يو دارالعلوم انتظاميه د كتب خانې نه د يوې مخصوصې ډلې كتابونه كوم چې د مختلفو حضراتو له اړخه وقف دى خارجول وغواړى، يا همداسې د دې ډلې نه د نفرت اظهار اوكړى، نو كومو خلقو چې دغه كتابونه وقف كړې وو آيا هغوى ته دا اختيار شته دې چې خپل وقف شوى كتابونه واخلى او په يوه بله اداره كښې ئې وركړى او يا ئې په خپله استعمال كړى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صرف د نفرت د اظهار د پاره د كتابونو اخراج روا نۀ دې، البته كه په دغه دارالعلوم كښې ددې كتابونو څه حاجت نۀ وى، نو يو بلې ښې نزدې مدرسې ته دې دا وركړې شى.

دا تفصيل د داسې كتابونو په حقله دې د كوم مضمونونه چې د دين خلاف نۀ وى، او د امت د اسلافو د رايو نه اخوا ديخوا په دې كښې څه خبره نۀ وى ليكلې شوې.

د دين په نوم باندې چې نن صبا كوم غلط مواد د مختلفو تنظيمونو له اړخه خورولې كيږى ، د هغې اينښودل د يوې دينى ادارې په وقف شوې كتب خانه كښې روا نۀ دى، داسې قسمه كتابونه دې تلف كړې شى، داسې د استعداد خاوند لويو لويو علماؤ ته دې دا اوسپارلې شى، چې هغوى د دې لوستنه وكړى او د دې رد وكړې شى، او عوام او خواص ددې زهرو نه بچ كړې شى. والله سبحانه وتعالى اعلم

۱۸ ربيع الاول ۱۳۸۹ هجرى

## د اوقافو نوكرى كول روا دى

**سوال :-** آيا د اوقافو نوكرى لكه امامت او خطابت كول روا دى او كه نه؟ ځكه چې د اوقافو اكثر آمدن ناروا دې، او آيا حكومت دا محكمه بالكل ځان له ساتلې ده، او كه نه په سركارى ملكيت كښې د دې ذ آمدن د رسيدلو نه پس بيا د دغه ځائ نه ددې محكمې نوكرانو ته تنخوا وركړې كيږى؟ لږ په تفصيل راته اوفرمايئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب :** د اوقافو د اكثر آمدن د ناروا كيدلو څه ثبوت نشته دې ددې وجې نه ددې نوكرى كول روا دى، خو په دې شرط چې په دې كښې څه شرط د شرعې نه خلاف نۀ وى.

والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۳ ربيع الثانى ۱۳۸۹ هجرى

## د دراهمو او د دنانيرو وقف

**سوال :-** د دراهمو او د دنانيرو وقف شرعا صحيح دې او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د دراهمو او د دنانیرو وقف صحیح دي، لیکن څنګه چې معلومه ده چې په وقف کښې انتفاع بالمنافع مع بقاء العین وی، د دې وجې نه په وقف دراهمو کښې دا شرط دې چې اصل دراهم دې خرج نهٔ کړې شی، بلکه د هغې منافع دې خرج کړی شی، یا په دغه دراهمو دې څه څیز واخلی او د هغې منافع دې په فقیر باندې خرج کړی، وتفصیله فی الشامیة، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۳ جمادی الثانیه ۱۳۸۹ هجری

## په مدرسه کښې ورکړې شوې پیسې واپس اخستل

**سوال:**- په یوه مدرسه کښې پیسې ورکړې شوې، لیکن پس د تحقیق نه دا خبره معلومه شوه چې د مدرسې کار په صحیح اصولو باندې نهٔ کیږی، د مدرسې په انتظامیه کښې دیانتداری نشته دې، آیا دا پیسې د هغوې نه واپس اخستلې شی او په یوه بله دینی مدرسه باندې ئې خرج کولې شی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د چندې پیسې په مدرسه کښې د داخلولو نه پس دا د معطینو د ملك نه خارجې شوې، کما حررت فی رسالتی (القول البدیع فی احکام التوزیع) لهذا ورکړې شوې پیسې واپس نهٔ شی اخستلې.

د اثر او رسوخ په خاوندانو باندې دا فرض دی چې د مدرسې د انتظامیې د اصلاح کوشش دې وکړی، که هغوی دا اصلاح قبوله نهٔ کړی نو هغوی دې معزوله کړی او دا نظم دې چرته یو صالح سړی یا د صلحاؤ یوې ډلې ته وسپاری۔ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۲ محرم ۱۳۹۰ هجری

## د مدرسې پیسې قرض ورکول

**سوال:**- آیا د مدرسې جمع شوی پیسو نه چا ته قرض ورکول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا روا نهٔ دی؟ که مهتمم داسې کار وکړو نو هغهٔ فاسق دې او واجب العزل دې، او ددې رقم به ضامن وی۔ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۲ ربیع الاخر ۱۳۹۱ هجری

## وقفِ مشاع جائز نه دې

**سوال** :- څه فرمائی علماء کرام د دین مبین په دې مسئله کښې چې وقف مشاع روا دې او که نه؟ مفتی به قول په کښې څه دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مفتی به قول مطابق وقفِ مشاع روا نهٔ دې۔

قال الامام الحصکفی رحمه الله تعالی: ویفرز فلا یجوز وقف مشاع یقسم خلافا للثانی رحمه الله تعالی.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله هلال بیان) واختاره المصنف تبعا العامة المشائخ وعلیه الفتوی و کثیر من المشائخ اخذوا بقول ابی یوسف رحمه الله تعالی وقالوا ان علیه الفتوی (ردالمحتار ص ۳۸٦ ج ۳) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۸ رجب ۱۳۹۳ هجری

## د قبرستان د ونو د میوو حکم

**سوال:-** یو سړی په خپله زمکه کښې څه حصه د قبرستان د پاره وقف کړه، په دې کښې ډیرې ونې دی، چې په کښې یوه ونه د غوزانو هم ده، آیا د دې ونو یا د میوو استعمال د چا د پاره روا دې او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې واقف یو اځې زمکه وقف کړې وی او ونې ئې نۀ وی وقف کړې نو دا ونې هم د هغه ملکیت دې، دهغۀ د اجازت نه بغیر د قبرستان هیڅ څیز استعمالول روا نۀ دی، لیکن هغۀ به په دې مجبورولې شی چې هغۀ دې دا ونې اوباسی او د قبرستان زمکه دې وزګاره کړی۔

او که د زمکې سره ئې ونې هم وقف کړې وی، نو چې څه د وقف مصرف وی هغۀ به د دې ونو مصرف هم وی۔ والله تعالی اعلم.

۱۳ جمادی الاولی ۱۳۹۳ هجری

## د قبرستان ونې پرې کول

**سوال:-** آیا د مقبرې ونې پرې کول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د کومو ونو په حقله چې د خلقو شرکیه عقیده وی چې دا د فلانی بزرګ یا پیر صاحب ونې دی، که چت دې له لاس یوړو نو څه آفت به وربانديې راشی، د هغۀ پیرې کول د شرکیه عقیدې د ابطال د پاره ضروری دی، خو ولې هغۀ دې خرڅې کړې شی او د هغې قیمت دې هم دې قبرستان باندې ولګولې شی، که چیرې په دې قبرستان کښې څه مصرف نۀ وی، نو بل چرته نزدې نه نزدې قبرستان باندې دې ولګولې شی،

دا حکم به ددې ونو هغه وخت وی چې کله دا ونې په خپله راختلې وی او که نه دا ونې چا کرلې وی نو دا بیا د کرونکې ملکیت دې۔ والله تعالی اعلم.

۲۷ ذی القعده ۱۳۹۴ هجری

## د قبرستان د ونو نه مسواک پرې کول

**سوال:-** په قبرستان کښې د جهاو (یو قسم ونې دی چه مسواکونه ترې جوړیږی) ډیرې ونې دی، آیا دهغې نه د مسواك دپاره لښته پرې کول روا دی او که نه؟ حال دا چې منع کوونکې څوك هم نۀ وی۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې دا قبرستان وقف وی،نو د دې په خپله راختلې ونې به هم وقف وی، د دې ونو نه د وقف د مصارفو نه علاوه بله څه نفع اخستل روا نهٔ دی. واللّٰه سبحانه وتعالی اعلم.

**۲۹ ربیع الثانی ۱۴۰۰ هجری**

## په وقف کښې تر خپله ژونده پورې په خپله د فائدې اخستلو شرط

**سوال**:- یو سړې چې ضعیف العمر دې هغهٔ په حالت دصخت کښې خپل کور د یوې دینی مدرسې دپاره وقف کول غواړی،او تر ژونده پورې ئې په خپل استعمال کښې ساتل غواړی،د هغهٔ .صرف یو دخور زوئ او یوه خورزهٔ ده،او باقی نه ئې ورور شته نهٔ خور او نه ئې ښځه شته ،تول وفات شوې دی، لهذا د ایصال ثواب دپاره هغهٔ وقف کول غواړی،د دې وجې نه چې د هغهٔ د نورو خپلوانو نه د ایصال ثواب څه طمع نشته دې.بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په وقف کښې تر خپله ژونده پورې په خپله د فائدې اخستلو شرط لګول روا دی، لیکن نفس وقف په دې شرط سره روا دې چې وارثان ئې غنیان وی،او د هغوی د محرومولو مقصد ئې نهٔ وی بلکه د ثواب اراده ئې وی.

**قال فی التنویر وشرحه (وجاز جعل غلة الوقف) او الولایة (لنفسه عند الثانی) وعلیه الفتوی.(ردالمحتار ص۳۸۷ج۳)** . واللّٰه سبحانه وتعالی اعلم

**۳۰ ذی القعده ۱۳۹۵ هجری**

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**:- زما دوه چته کور دې چې هغه خالص د الله تعالی د پاره وقف کول غواړم،لاندې چت مې په کرایه ورکړې دې او په پورته چت کښې زهٔ د خپلو درې ځامنو سره اوسیږم،زما دوه لونړه هم دی چې د هغوی زما په جائداد کښې څه حق نشته دې ځکه چې ما هغوی ته دهغوی حصه په خپل ژوندې کښې د نقدو په صورت کښې ورکړې ده،دا خپل تول کور د جمات د پاره وقف کول غواړم خوولې په دې شرط چې زما د دریم خوئی شاهد علی د وادهٔ توله خرچه به د جمات په ذمه وی،بله دا چې په دې جمات باندې اوس څلویښت زره روپئ قرض دې،او دا رقم به هم جمات ادا کوی،بله دا چې د کور ضروری سمون او د باقی پاتې حصې تعمیر به هم جمات کوی.آیا په دې صورت کښې به دا وقف د جمات د پاره صحیح کیږی؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ستا د وفات نه پس به جینکئ هم د جائداد نه حصه اخلی،په خپل ژوند کښې یو وارث ته د پیسو وغیره په ورکولو سره هغه وارث د وراثت د حق نهٔ محرومه کیږی.

**وقف داسې کوئ**: زما کور زما د وفات نه پس د فلانی جمات د پاره په دې شرطونو وقف دې

۱ - د دې کور په سلسله کښې چې په ما باندې کوم قرض دې ددې کور د آمدن نه دې

ورومبې هغه قرض ورکړې شي،

۲ - زما د خوئی «شاهدعلی» مصارف دې د کور د کرایه نه ادا کړې شی او زیات رقم دې جمات ته ورکړې شي.

۳ - د «شاهد علی» د وفات نه پس دې د دې کور ټول آمدن په جمات باندې خرج کړې شی۔

واللّٰه سبحانه وتعالیٰ اعلم ۲۹ محرم ۱۴۰۰ هجری

## د وقف زمکې بدلون جائز نهٔ دی

**سوال:**- جناز گاه په یو غیر موزون ځائې یعنی کنده کښې واقع ده،او چت هم پرې نشته دې، آیا دا متبادلې او مناسبې زمکې طرفته منتقل کول صحیح دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې دا ځائې د جنازې د مونځ د پاره وقف وی نو ددې بدلون روا نهٔ دې۔واللّٰه سبحانه وتعالیٰ اعلم ۱۱ محرم ۱۳۹۷ هجری

## په اقاربو باندې د وقف حکم

**سوال:**- د زید اولاد نشته او د هغهٔ یو ذاتی کور دې،د کوم چې هغه کرایه اخلی،دهغه په خپلو خپلوانو کښې درې ورونه او درې خویندې ژوندئ دی،چې څه په کښې ښه دی ګذاره ئې کیږی او څه په کښې مفلسه دی،دغه شان د یو مرحوم ورور اولاد ئې موجود دې چې هغهٔ ډیر تنګ حاله دی، اوس د زید دا اراده چې هغهٔ به د خپل ژوند پورې ددې کور نه خپله فائده اخلی،او د هغهٔ د وفات نه پس دې دا کور په وارثانو کښې تقسیم نهٔ شی بلکه وارثان دې د دې کرایه اخلی،او کور دې د زید دپاره صدقهٔ جاریه وی،آیا دا صورت شرعا ممکن دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : زید دې خپل جائداد داسې وقف کړی:

تر څو پورې چې زید ژوندې وی هغه وخته پورې به ددې منافع په خپله اخلی۔

د زید د انتقال نه پس به د دې جائداد منافع د زید په اقاربو کښې مسکینانو ته ورکولې شی۔

که د زید په اقاربو کښې څوک مسکین نهٔ وی نو دا دې بیا په عامو مسلمانانو کښې په مسکینانو باندې تقسیم کړې شی۔واللّٰه سبحانه وتعالیٰ اعلم ۱۷ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## د جمات دپاره کړې شوې وصیت په مدرسه باندې خرچ کول روا نهٔ دی

**سوال:**- زید دا وصیت وکړو چې زما د مرګ نه پس زما کور جمات ته ورکړئ،مطلب دا چې ددې قیمت جمات ته ورکړئ،یا دا چې دا کور د جمات سره یوځائې کړئ،دا کور د جمات سره دیوال په دیوال دې،اوس د زید د مرګ نه پس چې هغهٔ چا ته وصیت کړې وو،هغهٔ اووئیل چې

جماتونه خو د ورانديې نه په محله کښې دوه موجود دی،مدرسه په کښې يوه هم نشته ، لهذا ماشومانو ته د قرآن مجيد د تعليم کولو دپاره مدرسه جوړول ښهٔ دی،د ټولو په مشورې سره مدرسه جوړه کړې شوه، نو آيا شرعا دا روا دی او که نه؟ حال دا چې د زيد د مرګ نه پس د هغهٔ هيڅ څوك وارث نشته ، نهٔ د لرې خپل خپلوان او د نزدې خپل خپلوان هيڅ څوك ئې هم نشته دې. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا د وصيت مطابق په جمات کښې لګول ضروری دی،مدرسه پرې جوړول روا نهٔ دی. **والله سبحانه وتعالى اعلم** **۱۱ رجب ۱۳۹۸ هجری**

## واقف په خپله متولی جوړيدې شی

**سوال:**- زيد زمکه وقف کړه، ليکن کوم متولی ته ئې ونهٔ سپارله، بلکه پخپله ئې متولی او منتظم جوړ شو،آيا دا وقف صحيح دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** :برابره خبره ده که واقف د خپل توليت شرط لګولې وی او که نهٔ ئې وی لګولې، په هرصورت وقف او د دهٔ توليت صحيح دې.

**قال فى التنوير وشرحه: جعل الواقف الولاية لنفسه جاز بالاجماع وكذا لو لم يشترط لاحد فالولاية له عند الثانى وهو ظاهر المذهب نهر خلافا لما نقله المصنف (ردالمحتار ص۳۹۶ ج۳) والله سبحانه وتعالى اعلم.**
**۱۴ صفر ۱۳۹۹ هجری**

## د دينی مدرسې د پاره په وقف کړې شوی ځائې کښې سکول جوړول روا نهٔ دی

**سوال:**- يوه زمکه صرف او صرف د دينی درسګاه د پاره وقف کړې شوه،په دغه زمکه باندې حکومت قبضه وکړه او ثانوی مکتب پرې جوړوی،او د ښار خلق هم دا کوشش کوی چې مکتب جوړ شی، نو پوښتنه دا کول دی چه:

۱- آيا په ذکرکړې شوې زمکه باندې حکومت دقبضې کولو نه پس سکول جوړولې شی که نه؟
۲- کوم خلق چې دا کوشش کوی چې سکول دې جوړ شی د هغوی په حقله څه حکم دې؟
۳- که متولی اجازت ورکړی نو سکول جوړول به پرې روا وی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د دينی علوم دپاره چې کومه زمکه وقف کړې شوې وی هغه په څه بل څه مصرف کښې خرچ کول حرام دی،حکومت،د ښار خلقو،او متولی وغيره کښې چا ته هم په دې کښې د سکول جوړولو حق نشته ،کوم خلق چې داسې کوی هغوی سخت ګناه ګار دی ، که چيرې متولی ددې اجازت ورکړو نو هغهٔ به د بدديانته او خائنه کيدلو له کبله واجب العزل وی.

په حکومت باندې دا فرض دی چې د اسلامی اوقافو حفاظت به کوی، داسې نه چې هغه دې

داسې غاصبانه قدم اوچت کړي او دين ته دې نقصان ورسوی. **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

## چې وارثان محتاج وی نو وقف کول روا نهٔ دی

**سوال:** - بکر خپل يو کور په خپل ژوندې کښې د جمات په نوم په ستامپ باندې وليکلو، او دا شرط ئې کيښودلو چې تر څو پورې زهٔ او زما ښځه ژوندی يو نو په دې کور کښې به اوسيږو، او هر کله چې مونږ مړهٔ شو نو دا کور دې جمات ته وسپارلې شی، برابره خبره ده که د جمات خلق دا خرڅوی او که نه په کرايه ئې ورکوی، نو پوښتنه دا کول دی چې بکر کور د جمات په نوم کړو او وارثان ئې محرومې کړل، آيا شرعا داسې کول روا دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که د بکر وارثان محتاج وی، نو بکر به په دې وقف سره ګناه ګار وی او که محتاج نهٔ وی نو بيا ګناه ګار نهٔ دی، او وقف بهر حال نافذ دې. **والله تعالیٰ اعلم.**

**۲۶ جمادی الاولیٰ ۱۳۹۹ هجری**

## بې د قبض نه وقف صحيح نهٔ دې

**سوال:** - زيد خپل کور جمات ته ورکړو، او په ستامپ باندې ئې د دوو ګواهانو په وړاندې دا ليکل د وقف وکړل، اوس زيد وفات شو، نو آيا اوس د هغهٔ ښځه انکار کولې شی چې زهٔ کور جمات له نهٔ ورکوم؟ او حال دا چې دې وخت کښې په کور باندې د زيد د ښځې قبضه ده. او د زيد ښځې ددې کور نه خپله حصه هم جمات ته ورکړې وه، او کاغذ ئې ليکلې وو او په هغې باندې ئې خپله ګوته هم لګولې وه، نو آيا د جمات په قبضه کښې د ورکولو نه وړاندې د زيد د ښځې انکار کول او دا کور جمات ته نهٔ ورکول روا دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د وقف د صحيح کيدلو دپاره د متولی د قبض کول په شرط کښې اختلاف دې، دواړه قولونه مرجح او منتی به دی، عدم اشتراط احوط، اسهل، انفع او ارجح دې، خو سره د دې نه بيا هم د جانبينو حاجتونو او حالاتو ته کتل پکار دی او بيا يو اړخ ته فتوی ورکول پکار دی.

قال التمرتاشی: ولا یتم حتی یقبض ویفرز ویجعل اخره لجهة لا تنقطع.

وقال الحصکفی: هذا بیان شرائط الخاصة علی قول محمد لانه کالصدقة و جعله ابویوسف کالاعتاق واختلف الترجیح والاخذ بقول الثانی احوط واسهل بحر فی الدرر وصدر الشریعة وبه یفتی واقره المصنف.

وقال ابن عابدین تحت (قوله هذا بیان) واختاره المصنف تبعا لعامة المشائخ وعلیه الفتوی و کثیر من المشائخ اخذوا بقول ابی یوسف وقالوا ان علیه الفتوی ولم یرجح احد قول الامام (قوله واختلف الترجیح) مع التصریح فی کل منهما بان الفتوی علیه لکن فی الفتح ان قول ابی یوسف اوجه عند المحققین (ردالمحتار ص۳۵۱ ج۳)

وقال الطحطاوی: (قوله واختلف الترجیح) ای والافتاء ایضا کما فی البحر ومقتضاه ان القاضی والمفتی یخیران فی العمل بایهما کان و مقتضی قولهم یعمل بانفع للوقف ان لا یعدل عن قول الثانی لان فیه ابقاءه بمجرد القول فلا یجوز نقضه (حاشیة الطحطاوی ص۵۳۳ ج۲) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

**۲۳ ربیع الاول ۱۴۰۰ هجری**

# باب المساجد

## په عیدګاه کښې سکول جوړول

**سوال:-** د شریعت مطهره حکم په دې حقله څه دې، چې د عیدګاه په ځائې دې سکول جوړ کړې شی، او د عید ګاه د پاره دې بل ځائې معین کړې شی، نو دا روا دی او که ناروا؟

**الجواب و منه الصدق والصواب** : که چیرې عیدګاه وقف وی نو په دې کښې سکول جوړول روا نۀ دی، ځکه چې د وقف د جهت بدلول صحیح نۀ دی، لان شرط الواقف کنص الشارع، والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۲۷ صفر ۱۳۷۲ هجری

## د جمات زړې ګاډرې او دروازې خرڅول

**سوال:-** د یو جمات د تنګیدلو د وجې نه هغه ورانولې شی او د هغې په ځائې بل جمات جوړولې کیږی، د دې زړې آبادئ نه چې کومې ګاډرې وغیره راوتې دی آیا هغه خرڅولې شی چې پیسې ئې په دې جمات باندې ولګولې شی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجوب و منه الصدق والصواب** : د جمات نه راویستلې شوې ګاډرې وغیره بعینه که په جمات کښې په کار نۀ شی راتلې نود د مسلمانانو په اتفاق سره د هغې خرڅول او پیسې ئې په دې جمات باندې لګول روا دی.

قال فی الهندیة اهل المسجد لو باعوا غلة المسجد او نقض المسجد بغیر اذن القاضی الاصح انه لا یجوز کذا فی السراجیة. (عالمگیریة ص۴۳۹ ج۲)

قلت فعلم انه یصح باذن القاضی.

وفی الشامیة ناقلا عن فتاوی النسفی سئل شیخ الاسلام عن اهل قریة رحلوا و تداعی مسجدها الی الخراب وبعض المتغلبة یستولون علی خشبه وینقلونه الی دورهم هل لواحد لاهل المحلة ان یبیع الخشب بامر القاضی ویمسك الثمن لیصرفه الی بعض المساجد او الی هذا المسجد قال نعم.

وقال قبیل هذا لا سیما فی زماننا فان المسجد وغیره من رباط او حوض یأخذ انقاضه اللصوص والمتغلبون کما هو مشاهد. (ردالمحتار ج۳ کتاب الوقف)

قلت فی زماننا جماعة المسلمین بمنزلة القاضی لان ولایته مستفاد منهم فکانه هم و کانهم هو فان حکام زماننا لا یعتنون بمثل هذا الامور الدینیة، والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۲۱ ربیع الاول ۱۳۷۲ هجری

## د جمات زړې درۍ خرڅول

**سوال:**- آیا د جمات غیر مستعملې درۍ یا مستعملې او زړې ګډې وډې درۍ چې خرڅې کړې شی او څه پیسې ورسره نورې یو ځائې کړې شی او نسبتاً لګه ښهٔ درۍ پرې واخستې شی شرعا دا صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا ـ

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قالین،درۍ،او پوزی وغیره یعنی هغه څیزونه کوم چې د جمات په تعمیر وغیره کښې داخل نهٔ دی،هغهٔ په وخت د استغناء کښې د معطی په ملك کښې داخلیږ ، لهذا د معطی په اجازت سره دا خرڅولې شی،که معطی نهٔ وی نو د هغهٔ د وارث په اجازت سره،که وارث ئې هم نهٔ وی او یا معلوم نهٔ وی نو بیا د قاضی په اجازت سره یا په اتفاق د مسلمانانو دجماعت سره ددې بیعه روا ده۔

قال فی وقف الهندیة: ذکر ابو اللیث رحمه الله تعالیٰ فی نوازله: حصیر المسجد اذا صار خلقا واستغنی اهل المسجد عنه وقد طرحه انسان ان کان الطارح حیا فهو له وان کان میتا ولم یدع وارثا ارجو ان لا بأس ان یدفع اهل المسجد الی فقیر او ینتفع به فی شراء حصیر اخر للمسجد والمختار انه لا یجوز لهم ان یفعلوا ذلك بغیر أمر القاضی کذا فی فتاوی قاضی خان (عالمگیریة ص ۴۵۸ ج ۲)

او که داسې څیزونه د وقف مال نه وی نو منتظمین دا خرڅولې شی او د دې پیسې په جما باندې خرچه کولې شی۔ والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۳ صفر ۱۳۹۳ هجری

## په وقف علی المسجد کښې قبر جوړول

دا مسئله په کتاب الجنائز کښې تیره شوې ده۔

## په حکومتی زمکه کښې بې د اجازت اخستلو نه د جمات په زمکه کښې زیاتوالی کول

**سوال:**- یو جمات تنګ دې،د هغې د حصې د زیاتوالو سخت ضرورت دې،خلق غریبانان ډیر پریشانه دې، لیکن جمات سره پیوسته سرکاری زمکه ده،او سرکار د جمات د رقبې د زیاتولو اجازت نهٔ ورکوی،په دې صورت کښې بې د اجازت نه جمات فراخه کول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: په حکومت باندې د جماتونو انتظام او تعمیر کول په قدر د ضرورت فرض دی، لیکن سره د دې هم که حکومت خپل دا فرض نهٔ ادا کوی، نو بې د اذن د حکومت نه په سرکاری زمکه باندې تعمیر کول روا نهٔ دی۔ والله تعالیٰ اعلم. ۲۱ ربیع الاول ۱۳۷۲ هجری

## د يو جمات سامان بل جمات ته منتقل كول

**سوال**:- د يو جمات سامان د بل جمات په كار كښې رواستلې شی او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب**: د جمات سامان په دوه قسمه دې: يو هغه چې د هغې تعلق د جمات آبادئ سره وی،لكه خښتې،گاډرې او دروازې وغيره،دې ته انقاض المسجد وئيلې شی،د داسې سامان حكم دا دې چې كه چيرې جمات آباد وی او په هغې كښې مونځونه كيږی،نو د داسې جمات سامان بل جمات ته منتقل كول روا نۀ دی،دا سامان بعينها او يا دا دې خرڅ كړې شی او د دې قيمت دې په دې جمات خرچه كړې شی۔

قال ابن عابدين رحمه الله: الفتوى على ان المسجد لا يعود ميراثا ولا يجوز نقله ونقل ماله الى مسجد اخر.

(ردالمحتار ج۳ كتاب الوقف مطلب فی نقل انقاض المسجد)

او كه چيرې جمات شاړ شوې وی،څوك هم په هغې كښې مونځ نۀ كوی،لكه داسې چې د جمات نه گير چاپيره خلقو هغه علاقه پريښې وی،او بل ځائې كښې چرته آباد شوې وی،د كومې د وجې نه چې جمات بالكل شاړ شوې وی،نو په داسې حالت كښې ددې جمات خښتې،گاډرې او دروازې وغيره د دمسلمانانو دجماعت په متفقه فيصلې سره بل جمات ته منتقل كولې شی۔

قال فی الهندية: اهل المسجد لو باعوا غلة المسجد او نقض المسجد بغير اذن القاضی الاصح انه لا يجوز كذا فی السراجية. (عالمگيرية ص۴۴۹ ج۲)

قلت فعلمه ان يجوز باذن القاضی

وقال فی الشامية: ناقلا عن فتاوى النسفی سئل شيخ الاسلام عن اهل قرية رحلوا و تداعی مسجدها الی الخراب وبعض المتغلبة يستولون علی خشبه ويعقلونه الی دورهم هل لواحد لاهل المحلة ان يبيع الخشبة بامر القاضی ويمسك الثمن ليصرفه الی بعض المساجد او الی هذا المسجد قال نعم.

وقال قبيل هذا لا سيما فی زماننا فان المساجد وغيرها من رباط او حوض ياخذ انقاضه اللصوص والمتغلبون كما هو مشاهد(ردالمحتار كتاب الوقف ج۳)

د جمات دويم قسم سامان د كوم سامان چې د جمات په بناء كښې څه دخل نشته دې،لكه درئ او فانوسونه وغيره دې ته آلات المسجد وئيلې شی،ددې حكم دا دې چې كه په دې جمات كښې ئې ضرورت نشته دې،نو ددې بل جمات ته منتقل كول روا دی ليكن په دې شرط چې واقف ئې هم اجازت وركړی،څكه چې داسې سامان په وخت د استغناء كښې د واقف ملك ته راواپس كيږی، لهذا د واقف اذن په كښې ضروری دې۔

قال فی الشامیة تحت (قوله ومثله حشیش المسجد الخ) قال الزیلعی وعلی هذا حصیر المسجد وحشیشه اذا استغنی عنهما یرجع الی مالکه عند محمد رحمه الله علیه وعند ابو یوسف رحمه الله علیه ینقل الی مسجد اخر وعلی هذا الخلاف الرباط والبئر اذا لم ینتفع بهما اهـ وصرح فی الخانیة ان الفتوی علی قول محمد رحمه الله علیه فی آلات المسجد (ردالمحتار ج۳) والله تعالی اعلم.

سلخ رجب ۱۳۷۲ هجری

## د يو جمات نه قرآن شريف بل جمات ته منتقل کول

دا مسئله په کتاب الوقف کښې تيره شوې ده.

## په زړه مقبره باندې جمات جوړول

دا مسئله هم په کتاب الوقف کښې تيره شوې ده.

## آيا عيدگاه د جمات په حکم کښې ده او که نهٔ؟

**سوال:-** آيا عيدگاه هم دجمات په حکم کښې ده او که نه؟

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په ټولو احکامو کښې د عيدگاه حکم د جمات په شان کيدل مختلف فيه دی،د شامېې نه په ټولو احکامو کښې د جمات په حکم کښې د کيدلو ترجيح معلوميږی، وهو احوط ومقابله اوسع.

قال فی شرح التنویر واما المتخذ لصولة جنازة اوعید فهو مسجد فی حق جواز الاقتداء وان انفصل الصفوف رفقا بالناس لا فی حق غیرہ به یفتی نهایة.

وفی الشامیة (قوله به یفتی نهایة) عبارة النهایة والمختار للفتوی انه مسجد فی حق جواز الاقتداء الخ (وبعد سطرین) ومقابل هذا المختار ما صححه فی المحیط فی مصلی الجنازة انه لیس له حکم المسجد اصلا وما صححه تاج الشریعة ان مصلی العید له حکم المساجد وتمامه فی الشرنبلالیة (ردالمحتار ج۱)

وایضا فی کتاب الوقف منها (قوله والمصلی) شمل الجنازة ومصلی العید قال بعضهم یکون مسجدا حتی اذا مات لا یورث عنه وقال بعضهم هذا فی مصلی الجنازة اما مصلی العید فلا یکون مسجدا مطلقا وانما یعطی له حکم المسجد فی صحة الاقتداء بالامام وان کان منفصلا عن الصفوف وفیما سوی ذلك فلیس له حکم المسجد وقال بعضهم یکون مسجدا حال اداء الصلاة لا غیر وهو والجبانة سواء ویجنب هذا المکان عما یجنب عنه المساجد احتیاطا اهـ خانیة واسعاف والظاهر ترجیح الاول لانه فی الخانیة یقدم الاشهر.

(ردالمحتار ج۳) والله تعالیٰ اعلم ۲۷ شوال ۱۳۷۳ هجری

## په عیدگاه کښې لوبې کول جائز ندی

**سوال:-** په عید گاه کښې لوبې کول یا په هغې کښې دعوت کول وغیره روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب** : دعید گاه احترام په هرحال کښې واجب دې، اگرچې دا په جمات کښې داخلیدو کیدلو کښې اختلاف دې، لیکن د بې عزتئ کولو نه ئې حفاظت بهر حال ضروری دې، لهذا د تپوس کړې شوو امورو اجازت نشته.

قال فی الشامیة (قوله به یفتی نهایة) عبارة النهایة والمختار للفتوی انه مسجد فی حق جواز الاقتداء الخ لکن قال فی البحر ظاهره انه یجوز الوطء والبول والتخلی فیه ولا یخفی ما فیه فان البانی لم یعده لذلك فینبغی ان لا یجوز وان حکمنا بکونه غیر مسجد وانما تظهر فائدته فی حق بقیة الاحکام و حل دخوله للجنب والحائض اه (ردالمحتار ج۱)

وایضاً فی کتاب الوقف منها عن الخانیة و یجنب هذا المکان عما یجنب عنه المساجد احتیاطاً اه (ردالمحتار ج۳)

والله تعالیٰ اعلم ۲۷ شوال ۱۳۷۳ هجری

## د جمات د جوړولو نذر

دا مسئله په کتاب النذر والیمین کښې تیره شوې ده.

## په جمات کښې د اودس د پاره ټینکئ جوړول جائز ندی

**سوال:-** د شریعت مطهره حکم په دې حقله څه دې چې د جمات په یو گوټ کښې د اودس د پاره ټینکئ جوړول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصوا ب** : که چیرې دا ځائې د ابتداء نه په جمات کښې نهٔ وې داخل کړې شوې نو په دې کښې بیا ټینکئ جوړول روا وو، په جمات کښې د اخلولو نه پس په دې کښې ټینکئ جوړول او د جمات نه د دې ځائې خارجول روا نهٔ دی، که د جمات د حدودو د مقررولو په وخت کښې ئې صرف په ژبه باندې د دې اظهار وکړو چې دا دومره ځائې جمات دې، د دې نه پس د جمات بانی اووئیل چې په دې ځائې باندې دشروع نه زما اراده د ټینکئ جوړولو وه، نو د دهٔ دا قول به نهٔ شی قبلولې، لهذا چې د جمات د بانی نه د شروع نه ددې ځائې د اودس د پاره معین کول ثابت نهٔ شو، نو دا ځائې به په جمات کښې داخل وی، او په جمات کښې د اودس اوبهٔ تویول روا نهٔ دی۔

دا شبه دې ونه کړې شی، چې د اودس اوبه به د جمات د فرش نه لاندې په نالئ کښې غورځيږی، ځکه چې د تحت الثرى نه واخله د عنان السماء پورې دا ځائې په حکم د جمات کښې دې بله دا چې د تېنکئ په جوړولو سره به مونځ ګذاره تنګ شی، او دا منع دی، که چرې جمات وسيع وی او د تېنکئ جوړولو باوجود په مونځ ګذارو باندې د ځائې د تنګيدلو ويره نه وی نو بياهم ما اعد للصلوة لره مشغولول روا نه دی.

قال فى البحر لو بنى بيتا على سطح المسجد لسكنى الامام فانه لا يضر فى كونه مسجدا لانه من المصالح فان قلت لو جعل مسجدا ثم اراد ان يبنى فوقه بيتا للامام او غيره هل له ذلك قلت فى التتار خانية اذا بنى مسجدا و بنى فوقه وهو اى المسجد فى يده فله ذلك وان كان حين بناه خلى بينه وبين الناس ثم جاء بعد ذلك يبنى لا يتركه وفى جامع الفتاوى اذا قال عنيت ذلك فانه لا يصدق. (البحر الرائق كتاب الوقف ج ٥)

وقال شارح التنوير فى بيان محرمات المساجد والوضوء الا فيما اعد لذلك.

وفى الشامية (قوله والوضوء لانه ماءه مستقذر طبعا فيجب تنزيه المسجد عنه كما يجب تنزيهه عن المخاط والبلغم بدائع . (ردالمحتار ج ١)

وايضا فى الشرح لانه مسجد الى عنا السماء.

وفى الشامية وكذا الى تحت الثرى (ردالمحتار ج ١)

وفى الشامية فى بيان الاشجار فى المسجد ولا يضيق على الناس (وبعد اسطر) لان فيه شغل ما اعد للصلوة و نحوها وان كان المسجد واسعا (ردالمحتار ج ١) والله تعالى اعلم. ۷ محرم ۱۳۷۴ هجری

## په مشترکه زمکه کښې بغير د اجازت نه جمات جوړول

**سوال:-** په يوه مشترکه زمکه کښې يو سړی جمات جوړ کړو، په کوم جمات کښې چې د دويم شريك په مخامخه اذانونه کيدل، تقريباً د پنځو کالو په تيريدلو باندې اوس دويم شريك خپله حصه په جمات کښې د ورکولو نه انکار کوی، نو آيا دا مسجد شرعا صحيح دې او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : قال فى شرح التنوير: باع الفضولى ملك رجل والمالك ساكت حيث لا يكون سكوته رضا عندنا.

وفى الشامية: عن فتاوى امين الدين عن المحيط اذا اشترى سلعة من فضولى وقبض المشترى المبيع بحضرة صاحب السلعة فسكت يكون رضا اهـ ومثله فى البزازية عن المحيط ايضا فعلم به ان محل ما هنا ما اذا لم

يقبض السلعة بحضرة صاحبها وهو ساكت (در المحتار مسائل شتى ص ۶۵۰ ج ۵)

وايضا فيها (قبيل هذا) ومثل المبيع الوقف.

وايضا فيها (قوله حاضر) المراد من الحضور الاطلاع. وفى شرح التنوير فى احكام المسجد من كتاب الوقف و شرط محمد والامام رحمهما الله تعالى الصلوة فيه بجماعة.

وفى الشامية (قوله بجماعة) لانه لابد من التسليم عندهما خلافا لابى يوسف رحمه الله وتسليم كل شيء بحسبه ففى المقبرة بدفن واحد وفى السقاية بشربه وفى الخان بنزوله واشتراط الجماعة لانها المقصودة من المسجد ولذا شرط ان تكون جهرا باذان واقامة والا لم يصر مسجدا (الى قوله) ولو اتحد الامام والمؤذن وصلى فيه وحده صار مسجدا بالاتفاق لان الاداء على هذا الوجه كالجماعة قال فى النهر واذ قد عرفت ان الصلوة فيه اقيمت مقام التسليم علمت انه بالتسليم الى المتولى يكون مسجدا دونها اى دون الصلوة (الى قوله) وكذا لو سلمه الى القاضى او نائبه. (ردالمحتار ص ۵۱۱ ج ۳) وفى شركة شرح التنوير وكل من شركاء الملك اجنبى فى مال صاحبه لعدم تضمنها الوكالة (ردالمحتار ص ۳۶۰ ج ۳)

ددې جزئياتو نه دا لاندې امور ثابت شول:

۱- په شركت د عين كښې هر شريك د بل شريك په حصه كښې اجنبى او فضولى دې.

۲- بيع الفضولى مع قبض المشترى وحضور المالك دال على الرضا دې.

۳- مالك ته اطلاع وركول په حكم د حضور كښې دى.

۴- وقف په موقوف على الاجازة كيدلو كښې عموما او د ملك په مزيل كيدلو كښې خصوصا د بيعې په حكم كښې دې.

۵- په جمات كښې صلوة مع الجماعة په منزله د تسليم او د قبض دې.

د دې تفصيل نه دا خبره ثابته شوه چې دې ته د شرعى مسجد درجه حاصله شوې ده، اوس په دې كښې د شريك دعوى غير مسموع ده. والله تعالى اعلم.

۲۰ ربيع الاول ۱۳۷۵ هجرى

## په حرام مال سره د تعمير شوى جمات حكم

**سوال:-** يو جمات د زنا په آمدن سره تيار كړې شوې دې، د دې شرعا څه حكم دې؟ بينوا بالبرهان توجروا عندالرحمن.

**الجواب و منه الصدق والصواب:** د حرام مال په جمات باندې د لګولو مختلف صورتونه دى او د دې حكم هم مختلف دې.

۱ - په حرام مال باندې ئې د جمات زمکه نۀ وی اخستې، بلکه په دیوالونو ئې خرچ کړې وی، د دې صورت په حقله بعضو اکابرو لیکلې دی چه : په دې کښې د مونځ کولو په وخت کښې د حرام استعمال نۀ شی موندلې، د دې وجې نه په دې کښې مونځ صحیح دې، لیکن د حرام مال په جمات باندې د لګولو ګناه به ئې کیږی، لهذا په حرام مال باندې جوړ شوی دیوالونه راغورځول او د دې په حلال مال سره بیا جوړول ضروری دی.

قال فی الشامیة(قوله لو بماله الحلال) قال تاج الشریعة اما لو انفق فی ذلك مالا خبیثا او مالا سببه الخبیث والطیب فیکره لان الله تعالی لا یقبل الا الطیب فیکره تلویث بیته بمالا یقبله اهـ شرنبلالیة(ردالمحتار ج۱)

قول د عدم استعمال خلاف د ظاهر دې، لهذا د دې صورت حکم هم د صورت ثانیه په شان معلومیږی۔

۲ - که چیرې حرام مال په فرش باندې ولګولې شو، نو په دې باندې د مونځ په کولو باندې به په کښې د حرام استعمال وی، لهذا په دې باندې مونځ کول مکروه تحریمی دی، ددې تدارك داسې کیدلې شی، چې په حرام مال باندې تیار کړې شوې فرش دې وکنلې شی او ددې په ځائې دې په حلال مال باندې فرش جوړ کړې شی۔

۳ - که په حرام مال باندې ئې زمکه واخستله او په هغې باندې ئې جمات جوړ کړو، نو په دې کښې د مونځ کولو په صورت کښې د حرام استعمال راځی، د کومې د وجې نه چې مونځ کول پرې مکروه تحریمی دی، او ددې تدارك هم ممکن نۀ دې، خو ولې د دې وقف خو صحیح شوې دې، د دې وجې نه دا نه شی کولې چې د بیعې اولې استرداد دې وکړې شی او دا دې دوباره په مال طیب باندې واخستې شی.

دا جمات اګرچې غیرمقبول دې، لحدیث ان الله طیب لا یقبل الا طیبا. لیکن ددې باوجود ددې په جمات کیدلو کښې څه شك نشته دې، لهذا ددې بې عزتی روا نۀ ده۔

د جمات د پاره صرف دا شرط دې چې موقوف للصلوة وی، او د صحت د وقف د پاره فارغیدل عن ملك الغیر کیدل شرط دی، دا شرائط په داسې مسجد کښې موجود دی، د کشاف او مدارك د جزئیې، قیل کل مسجد بنی مباهاة او ریاء وسمعة اولغرض سوی ابتغاء وجه الله او بمال غیر طیب فهو لاحق بمسجد الضرار، نه دې شبه ونۀ کړې شی، ځکه چې: اولاً خو دا قول په (قیل) سره د نقل کولو له کبله ضعیف دې۔

ثانیا دا په غیر مقبول باندې محمول کول واجب دی، دا مطلب نۀ شی کیدلې چې دا بیخی

جمات نهٔ دي، ځکه چې د جمات کيدلو شرائط په کښې موجود دي-

غرض دا چې په دې جمات کښې مونځ کول مکروه دی، او ددې بې عزتی کول هم روا نهٔ دی، او نهٔ ددې د تدارك څه صورت په نظر راځی، ددې مثال داسې دې چې قرآن مجيد په مغصوبه ورقو باندې ليکلې شوې وی، نو ددې لوستل روا نهٔ دی، للزوم استعمال الحرام او ددې بې عزتی کول هم روا نهٔ دی، لانه قرآن، والله تعالیٰ اعلم. ١١ ربيع الاخر ١٣٧۴ هجری

## د عيدگاه په زياتی زمکه باندې مدرسه جوړول

**سوال:-** دلته په مدرسه عربيه کښې د تعميراتو تنگسيا ده، او عيدگاه ډيره وسيعه ده، ددې عيدگاه په څه حصه کښې کرکرونده کولې شی، او ددې آمدنی په عيدگاه باندې خرچ کولې شی، زمونږ دا خيال دې چې که د مدرسې د پاره د عيدگاه زياتی زمکه استعمالول شرعا روا وی، نو بيا دا مدرسه په ښه وسيعه پيمانه چلولې کيدې شی، ددې يو استفتاء مونږ مرتب کړې وه او د بعضې علماء کرامو حضراتو په خدمت کښې مو ليگلې وه، مولانا مفتی محمد شفيع صاحب او مولانا محمد يوسف صاحب بنوری بې د څه شك او شبې نه د جواز فتوی راکړه، ليکن د خير المدارس د دارالافتاء نه او د سهارنپور نه چې کوم جواب راغلو، نو هغوی د شرط الواقف کنص الشارع عبارت وړاندې کړې دې، او دا ئې د شرط خلاف گرځولې دې او د عدم جواز حکم ئې کړې دې، بيا حضرت مولانا خير محمد صاحب دلته تشريف راوړلو او د هغوی سره مو خبرې وشوې، هغوی هم دا غوښتل چې که د مسئلې گنجائش راوه ويستلې شی نو ضرورت خو واقعی ددې خبرې شته دې چې مدرسه دې ورته منتقل کړې شی، او هغوی دا اوفرمائيل چې ستاسو په خدمت کښې استفتاء در وليگو نو تاسو به راته مفصل جواب راکړئ، لهذا دا عرض دې چې تاسو مونږ ته تفصيلی جواب راکړئ .بينوا توجروا .

**الجواب و منه الصدق والصواب** : ما ددې مسئلې په صورت کښې څو څو ځله غور وکړو ليکن همدا مې پوهې ته راغلل چې د عيدگاه په زمکه باندې مدرسه جوړول روا نهٔ دی، د ډير سوچ باوجود د جواز د فتوې ورکونکو حضراتو د خيال بنا زما په ذهن کښې نهٔ راځی ،که چيرې تاسو راته د حضرت مولانا مفتی محمد شفيع صاحب مدظله او د حضرت مولانا محمد يوسف بنوری مدظله د افتاء دلائل هم ليکلې وې نو په هغې به مو څه غور کړې وو، بهر حال د مسئلې نوعيت بالکل واضحه دې، چې د لگ شان شك او شبهې کولو ځائې په کښې هم نشته ،خو سره د دې نه هم چې کوم امور موجب د خلجان او د شك کيدلې شی، د جواب په دوران کښې د هغې تنقيح هم وکړې شوه .

قال فی الشامیة فان شرائط الواقف معتبرة اذا لم تخالف الشرع وهو مالك فله ان يجعل ماله حيث شاء ما لم يكن معصية وله ان يخص صنفا من الفقراء ولو كان الوضع فی كلهم قربة (ردالمحتار ص۴۹۹ ج۳)

وقال فی التنویر اتحد الواقف والجهة وقل مرسوم بعض الموقوف عليه جاز للحاكم ان يصرف من فاضل الوقف الاخر عليه وان اختلف احدهما لا. (ردالمحتار ص۵۱۵ ج۳)

معلومه شوه دا خبره چې د واقف د شروطو خلاف کول او د وقف جهت بدلول روا نۀ دی.
په خپله واقف هم د خپل شرط خلاف نۀ شی کولې.

قال فی شرح التنویر وقف ضیعة علی الفقراء ثم قال لولیه اعط من غلتها فلانا كذا وفلانا كذا لم يصح لخروجه عن ملكه بالتسجيل. (ردالمحتار ص۵۱۳ ج۳)

د درمختار د پورته جزئیې نه پس دې د (ان للواقف الرجوع فی الشرط ولو مسجلا (ردالمحتار ص۵۱۴ ج۳) جزئیې نه شبه ونۀ کړې شی، ځکه چې هم په دې موقع باندې علامه ابن عابدین رحمه الله فرمائی (و فيه كلام سيأتی). چنانچه وړاندې په یو موقع باندې ئې ډیر په بسط سره د دې تحقیق فرمائیلې دې، د کومې نه چې یو څو اقتباسات تاسو ته لیکلې شی:

لا يجوز ان يفعل الا ما شرط وقت العقد . وما كان من شرط معتبر فی الوقف فليس للواقف تغييره ولا تخصيصه بعد تقرره ولا سيما بعد الحكم الخ (ردالمحتار ص۵۹۶ ج۳)

غرض د خبرې دا دې چې په خپله واقف هم د وقف جهت نۀ شی بدلولې.
همدغه شان حاکم هم د بیت المال په وقف کښې د جهت د بدلون اختیار نۀ لری.

قال فی شرح التنوير ان السلطان يجوز له مخالفة الشرط (الی ان قال) وان غاير شرط الواقف لانه اصلها لبيت المال.

وفی الشامية قلت والمراد من عدم مراعاة شرطها ان للامام اونائبه ان يزيد فيها وينقص ونحو ذلك وليس المراد انه يصرفها عن الجهة المعينة الخ (ردالمحتار ص۵۷۹ ج۳)

حاصل د خبرې دا دې چې په ټولو معتبرو کتابونو کښې دا وضاحت دې، چې د واقف د شرط او د وقف د جهت نه خلاف کول روا نۀ دی، که د موقوف علیه نه استغناء شوې هم وی، نو بیا به هم د وقف آمدن د موقوف علیه په مجانسِ اقرب باندې خرچ کولې شی، په دې حالت کښې هم د وقف جهت بدلول روا نۀ دی،

قال فی التنوير ومثله حشيش المسجد وحصيره مع الاستغناء عنهما والرباط والبئر اذا لم ينتفع بهما فيصرف

وقف المسجد والرباط والبئر (والحوض شرح) الی اقرب مسجد او رباط او بئر (او حوض شرح) الیه

وقال فی الشامیة (قوله الی اقرب مسجد او رباط الخ) لف ونشر مرتب وظاهره انه لا یجوز صرف وقف مسجد خرب الی حوض وعکسه وفی شرح الملتقی یصرف وقفها لاقرب مجانس لها (ردالمحتار ص ۵۱۳ ج ۳)

مذکوره جزئیه اگرچې د ورومبی مصرف د خرابیدلو په حقله ده، لیکن د ورومبی مصرف نه د اوقاف آمدن که چرې زیات وی نو د هغې هم دا حکم دې، ځکه چې استغناء دواړو صورتونو لره جامع ده.

شرح التنویر مع الشامیة ص ۵۲۰ کښې دا جزئیه ده.

ویبدء من غلته بعمارته ثم ما هو اقرب بعمارته کامام مسجد ومدرس مدرسة یعطون بقدر کفایتهم ثم السراج والبساط الی اخر المصالح وان لم یشترط الواقف لثبوته اقتضاءً

ددې نه دې دا وهم ونۀ کړې شی چې د وقف جمات نه مدرس ته ورکول روا دی، ددې نه مقصد دا دې چې د وقف جمات نه امام ته او د وقف مدرسې نه مدرس ته ورکول روا دی، ځکه چې په دې لاندینۍ جزئیه کښې ددې خبرې تصریح ده چې د جمات د پاره د وقف کولو په وخت کښې که چرې مدرس هم مشروط فی الوقف وی نو هغه هم د لازمی مصارفو څخه ندی.

قال فی شرح التنویر وانما یکون المدرس من الشعائر لو مدرس المدرسة کما مر اما مدرس الجامع فلا لانه لا یتعطل لغیبته بخلاف المدرسة حیث تقفل اصلا. (ردالمحتار ص ۵۲۵ ج ۳)

خلاصه د خبرې دا چې د اصل موقف علیه نه د استغناء په وخت کښې هم د وقف جهت بدلول روا نۀ دی، په اقربو مجانسو باندې خرچ کول ضروری دی، په عالمگیریه کښې هم ددې قسمه جزئیه موجوده ده:

سئل شمس الائمة الحلوانی عن مسجد او حوض خرب ولا یحتاج الیه لتفرق الناس هل للقاضی ان یصرف اوقافه الی مسجد آخر او حوض آخر قال نعم ولو لم یتفرق الناس ولکن استغنی الحوض عن العمارة وهناك مسجد محتاج الی العمارة او علی العکس هل یجوز للقاضی صرف وقف ما استغنی عن العمارة الی عمارة ما هو محتاج الی العمارة قال لا کذا فی المحیط (عالمگیریة ص ۴۵۲ ج ۲)

په دې عبارت کښې د مجانسِ اقرب تصریح نشته دې، د شرح التنویر او د شامیې په ذکر کړې شوو جزئیو کښې ددې وضاحت شته دې چې په حالت د استغناء کښې به د جمات وقف د نزدې نه نزدې جمات باندې او د حوض وقف د نزدې نه نزدې حوض باندې خرچ کولې شی. وهذا ما جاء فی فهم هذا الفقیر والعلم عند الله اللطیف الخبیر.

۱۸ رجب ۱۳۷۴ هجری

## د جمات په زمکه کښې د امام دپاره کور جوړول

**سوال**:- یو جمات ډیر زیات فراخه دې،نو د هغې څه حصه خارجول او په هغې باندې د جمات د امام دپاره کور جوړول روا دی او که ناروا ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب**: کومه زمکه چې یو ځل په جمات کښې داخله شوه،هغهٔ به تر قیامته پورې جمات وی،د هیڅ یو ضرورت د پاره هغه د جمات نه نۀ شی خارجولې۔

قال فی شرح التنویر ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام والثانی ابدا الی قیام الساعة وبه یفتی.

وفی الشامیة(قوله ولو خرب ما حوله الخ) ای ولو مع بقائه عامرا و کذا لو خرب ولیس له ما یعمر به وقد استغنی الناس عنه لبناء مسجد آخر (ردالمحتار ص۵۱۳ ج۳) والله تعالی اعلم. ۱۹ شوال ۱۳۷۴ هجری

## نزد مسجد بیت الخلا و غسل خانه ساختن

**سوال**:- نزد دیوار مسجد پائخانه تیار کرده درآن قضاء حاجت می کنند و همچنین غسلخانه بنا می کنند درین دوچیز و مسجد چقدر فاصله ضروری هست؟ بحواله کتب جواب دهید.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: قال فی الشامیة فی باب مکروهات الصلوة لو جعل الواقف تحته بیتا للخلاء هل یجوز کما فی مسجد محلة الشحم فی دمشق لم اره صریحا نعم سیاتی متنا فی کتاب الوقف ان لو جعل تحته سردابا لمصالحه جاز تامل (ردالمحتار ص۶۱۳ ج۱)

این جزئیه دال ست برجواز بناء بیت الخلاء نزد مسجد بلکه بزیر مسجد هم ابتداءً، مگر درین قیاس مع الفارق ست چرا که بیت الخلاء را باغراض-و مصالح مسجد بهیچ گونه تعلق قریب نیست، و اما تعلق بوسائط بعیده پس باین طور هر فعل باغراض مسجد متعلق خواهد شد و این مبطل ست برائ قید (لمصالحه)،و نیز بناء بیت الخلاء بقرب مسجد عرفا خلاف احترام ست، و نیز موجب ایذاء مصلیان، و درحدیث آکل ثوم و بصل را ازقرب مسجد بالفاظ(فلا یقربن مسجدنا)نهی آمده است، و ظاهر ست که تعفن بیت الخلاء از بد بوئ ثوم و بصل بدرجها زیاده ترست،شاید که علامه ابن عابدین رحمه الله بحکم تامل باین جانب اشاره فرمودند۔

همچنین غسلخانه از اغراض و مصالح مسجد نیست،بلکه مزید برین موضع اقذار و اوساخ است

و بر وغیر مصلیان فساق و فجار هم جمع می شوند،بقرب مسجد امثل این چنین محدثات ساختن خلاف حرمت مسجد است .(فی بیوت اذن الله ان ترفع) ، (و من یعظم شعائر الله فانها من تقوی القلوب). والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۳ جمادی الاولی ۱۳۷۵ هجری

## د کافر په پرېښودلی شوی جائداد باندې جمات جوړول

**سوال:-** یو مولوی صاحب دا فرمائی چې د هندوستان اړخ ته د تلونکو غیر مسلمو په زمکو باندې جمات جوړول روا نهٔ دی، اګر چې د پاکستان د حکومت په اجازت سره وی، په دلیل کښې د قرآن مجید دا آیت (**ما کان للمشرکین ان یعمروا مساجد الله**) بیانوی، حال دا دې چې په حدیث شریف کښې دی، چې د مشرکینو د قبرونو په ځائې مسجد نبوی جوړ کړې شو، د ذکر کړې شوی مولوی صاحب قول او استدلال تر کوم حده پورې صحیح دې؟ بینوا توجروا .

**الجواب و منه الصدق والصواب** : د مولوی صاحب قول او استدلال صحیح نهٔ دې، ځکه چې د غیر مسلم په خپله مملوکه زمکه کښې په نیت د قربت سره جمات جوړول روا نهٔ دی.

د مشرکانو د قبرونو په ځائې باندې د مسجد نبوی د تعمیر نه د کفارو په زمکه باندې د تعمیر په جواز باندې استدلال کول صحیح نهٔ دی، ځکه چې د مسجد نبوی د تعمیر په وخت کښې د دغه زمکې مالکانو اسلام راوړې وو، دا مقبره د هغوی مملوکه وه، نو د مسجد نبوی تعمیر په زمکه د مسلمان باندې وشو، دا نهٔ چې د کافر په زمکه باندې، لیکن دا خبره چې د کافر په زمکه باندې د ذکر شوی شرط په بنا د جمات تعمیر روا دې، او په دې زیر بحث صورت کښې خو د کافر زمکه نده ،ځکه چې د دواړو حکومتونو په خپله کښې د فیصلې مطابق هر یو حکومت په پرېښودلې شوی جائداد باندې د وکالت قبضه لری، یعنی په تصرفاتو کښې د اصل مالك وکیل دی ، لهذا هر کله چې غیر مسلم ته د هغهٔ د جائداد عوض په هندوستان کښې ورکړې شو، نو دا د دې جائداد بیع په واسطې د وکیل شوله.

که د آبادئ د انتقال او د املاکو د معاوضو د دې معاهدې اعتبار اونهٔ کړې شی، لکه څنګه چې د بعضو حضراتو دا رائې ده، نو پرېښودلې شوی املاك په حکم د فئ کښې د کیدلو د وجې نه د کافرانو د ملك نه خارج شو، لهذا بهر حال په پرېښودلی شوی جائداد کښې د حکومت په اجازت سره د جماتونو تعمیر بې د څه شك او شبې نه روا دی.والله تعالی اعلم. ۲۹ رجب ۱۳۷۵ هجری

## د پورتنی سوال په شان یو بل سوال

**سوال:-** د یو سړی زمکه دریا خان ښار، مری سره نزدې ده، دغه د زمکې مالك او نورو

مسلمانانو ته د محلې د جمات ضرورت دې، د زمکې مالك وائي چې د دې زمکې نه زۀ د جمات د پاره د ضرورت مطابق يوه ټوټه وقف کوم، ليکن په دې زمکه کښې هندو زما سره شريك دې،او هغه هندوستان ته لاړو ،د هغۀ حق به داسې ادا کوم چې د دې زمکې نه به هغۀ ته د هغۀ حصه ورکړم او يا به ورله نقدې پيسې ورکړم، نو په دې صورت کښې په دې زمکه کښې د جمات تعمير روا دې او که نه؟ بينوا توجروا .

**الجواب و منه الصدق والصواب** : حکومت له دې درخواست ورکړى او دا زمکه دې تقسيم کړى او په خپله حصه کښې دې بيا جمات جوړ کړى،که د نورې زمکه حاجت ورته راپيښ شى نو د شريك هندو زمکه هم د حکومت په اجازت سره په خپل کار کښې راوستلې شى.**والله تعالىٰ اعلم.**

**غره ذى حجه ۱۳۷۱ هجرى**

## د پورتنى په شان يوبل سوال

**سوال**:- په پاکستان کښې د غيرمسلم په پريښودلى شوى جائداد باندې جمات تيارول روا دى او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په پريښودلى شوى جائداد د حکومت قبضه برابره خبره ده که په توګه د استيلاء وى او که په توګه د انتظام وى **بمنزلة الوكالة عن المالك وهو الظاهر**. بهر کيف د حکومت په اذن سره په پريښودلې شوې زمکه کښې د جمات جوړول روا دى.**والله تعالىٰ اعلم.**

**۳۰ ذى حجه ۱۳۷۴ هجرى**

## د کافر جمات لره جوړول

**سوال**:- کافر که جمات جوړ کړى يا د جمات په جوړولو کښې چنده ورکړى نو دا روا دى او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب** : کافر که د قربت په نيت سره جمات جوړ کړى،او يا د جمات په جوړولو کښې چنده ورکړى نو روا دى،وړاندې په دې کښې اختلاف دې، چې د واقف په مذهب کښې قربت کيدل شرط دى او که د واقف په خيال او عقيده که قربت کيدل کافى دى،راجح په کښې دا دويم قول دې.

قال في الهندية واما سببه فطلب الزلفى (الى قوله) واما الاسلام فليس بشرط.

وفي كتاب الوقف من شرح التنوير بدليل صحته من الكافر،

وفي الشامية حتى يصح من الكافر (الى قوله) بخلاف الوقف فانه لابد فيه من ان يكون في صورة القربة وهو معنى ما

بل لو لم يشترط ان يكون قربة في ذاته اذ لو اشترط كونه قربة حقيقة لم يصح من الكافر (ردالمحتار ج ۳)

وقف د کافر په حکم د وصیت د کافر کښې دې،او په هدایهٔ وغیره ټولو کتابونو کښې ئې لیکلي دی،چې که د وصیت جهت د کافر په نیز هغه قربت وی نو دا وصیت روا دې.

د دې آیت کریمه (ما کان للمشرکین ان یعمروا مساجد الله) نه د کافر د جمات د جوړولو په عدم جواز باندې استدلال صحیح نهٔ دې،د آیت په سیاق او سباق او شان نزول باندې د نظر اچولو نه پس دا خبره واضحه شی،چې په دې کښې د مسجدحرام د تعمیر او حاجیانو ته د اوبو ورکولو په سلسله کښې د مشرکینو د افتخار رد دې، داسې چې په مشرکینو کښې د عمل د قبلیدلو شرط (یعنی د ایمان) د نهٔ موندلو له کبلې د هغوی دا عمل مقبول نهٔ دې او په غیر مقبول عمل باندې فخر کول لغو دی،په دې آیت کښې د جواز او د عدم جواز سره څه تعرض نشته دې،لهذا (للمشرکین) کښې لام د جواز نهٔ دې بلکه لام د استحقاق او صلاحیت دې. والتفصيل في بيان القرآن

د دې نه دا خبره معلومه شوه چې ددې آیت نه د بعضې مفسرینو عدم جواز ثابتول صحیح نهٔ دی،ځکه چې دا د آیت د سیاق او د سباق او د شان نزول نه د خلاف کیدلو سره سره د فقهاء کرامو ﷺ د تصریحاتو سره هم معارض دی،او په وخت د معارضه کښې به د مفسرینو قول قابل د قبلیدلو نهٔ وی. فانه لكل فن رجال

د خانه کعبې هغه تعمیر کوم چې مشرکینو کړې دې د هغې په خپل ځائې د ساتلو نه زیات قوی بل کوم یو دلیل په جواز باندې کیدلې شی؟ فبای حدیث بعده یؤمنون

غرض د خبرې دا چې که چرې کافر د ثواب په نیت جمات تعمیر کړی نو دا روا دی،البته که په دې عمل کولو سره په مسلمانانو باندې د کافرانو د افتخار او د احسان د اظهار اندیښنه وی نو د هغوی دا عمل قبلول به روا نهٔ وی.-والله تعالى اعلم. ۲۹ رجب ۱۳۷۵ هجری

## په جمات کښې اخستل او خرڅول جائز ندی

**سوال:-** یو مولوی صاحب فرمائی چې په جمات کښې بیعه هغه وخت مکروهه ده چې کله مبیع ډیر زیات وی،او په جمات کښې بیعه عموماً د بازار په شانتې کیږی. که چیرې د یو وړوکی څیز بیعه کله کله په جمات کښې وکړې شی نو په دې کښې څه خبره نشته ،په دلیل کښې دا لاندینې عبارت وړاندې کوی

وكذلك النهي عن البيع فيه هو الذي يغلب عليه حتى يكون كالسوق لانه ﷺ لم ينه عليا ﷺ عن خصف النعل فيه مع ان لو اجتمع الناس لخصف النعال فيه كره فكذلك البيع و انشاد الشعر و التحلق قبل الصلوة انما غلب عليه كره

مالا فلا اه. (ردالمحتار ص۶۱۸ ج۱)

ورسره دا فرمائی چې په بذل المجهود شرح ابی داود کښې ددې نه هم د زیات جواز تصریح او تشریح ده، بله دا چې په شامیه باب الاعتکاف کښې دی:

ان المبیع لو لم یشغل البقعة لا یکره احضاره کدراهم یسیرة او کتاب ونحوه (الی قوله) ان احضار الثمن و المبیع الذی لا یشغل جائز اه (ردالمحتار ص۱۸۳ ج۲)

آیا د مولوی صاحب دا خیال او استدلال صحیح دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: د شامیې باب الاعتکاف جزئیه خو صرف د معتکف په حقله ده، په دې کښې د بیعې د جواز او د عدم جواز په حقله څه بحث نشته دې، بلکه صرف د احضار مبیع فی المسجد للمعتکف تفصیل دې په کښې، معتکف د پاره د ضرورت د څیزونو بیعه خو هسې هم روا ده، صرف په احضار د مبیعې کښې تفصیل دې:

د غیر معتکف د بیعې په حقله مطلقاً کراهت تحریمی تصریح هم د ذکر کړې شوی عبارت سره نزدې په شرح التنویر او شامیه کښې موجوده ده:

قال فی شرح التنویر و کره ای تحریما لانه محل اطلاقهم احضار المبیع فیه کما کره فیه مبایعة غیر المعتکف مطلقاً للنهی. وفی الشامیة (قوله مطلقاً) ای سواء احتاج الیه لنفسه او عیالها و کان للتجارة احضره اولا کما یعلم مما قبله ومن الزیلعی والبحر. (ردالمحتار ص۱۸۳ ج۲)

او په شامیه کښې په باب المساجد کښې دا د علامه ابن عابدین رحمه الله خپل تحقیق نهٔ دې، بلکه دا ئې د امام طحاوی رحمه الله تحقیق نقل کړې دې، اګر چې په دې ځائې کښې دوی په دې ځائې باندې سکوت اختیار کړې دې، لیکن په باب الاعتکاف کښې ئې مطلق کراهت تحریمیه ثابت کړې دې، کما مر. د امام طحاوی رحمه الله ذکر کړې شوې قول د مذهبِ مشهور خلاف دې، لکه څنګه چې د پیشو د جوتې مسئله او دغه شان نورو بعضو مسئلو د دوی تحقیق د مذهبِ مشهور خلاف دې، لهذا رافعی رحمه الله د امام طحاوی رحمه الله د ذکر کړې شوی تحقیق په حقله فرمائی:

(قوله و کذلك النهی عن البیع فیه هو الذی یغلب علیه الخ) هذا خلاف المشهور فان المشهور کراهة البیع فی المسجد وان لم یغلب علیه (التحریر المختار ص۸۶ ج۱)

په بذل المجهود کښې ئې هم د امام طحاوی رحمه الله عبارت په دې شان نقل کړې دې:

قال الشوکانی اما البیع و الشراء فذهب جمهور العلماء الی ان النهی محمول علی الکراهة (الی قوله) و فرق اصحاب ابی حنیفة بین ان یغلب ذلك و یکثر فیکره او یقل فلا کراهة و هو فرق لا دلیل علیه انتهی قلت وهذا

الذی عزاه الی اصحاب ابی حنیفة رحمه الله هو الذی ذکره الطحاوی رحمه الله فی معانی الآثار الخ (بذل المجهود ص۱۶۷ ج۲، باب التحلق یوم الجمعة قبل الصلوة)

ددې عبارت نه دا هم معلومه شوه چې په احنافو کښې په دې تحقیق کښې امام طحاوی رحمه الله متفرد دې، د دې وجې نه د شوکانی رحمه الله د قول محمل د امام طحاوی رحمه الله وګرځولې شو.

غرض دا چې د احنافو مذهبِ مشهور او مفتی به هم دا دی چې بیع فی المسجد بهر صورت د غیر معتکف د پاره مکروه تحریمی ده او واجب الرد ده.

قال فی شرح التنویر واعلم ان فسخ المکروه واجب علی کل واحد منهما ایضا بحر وغیره لرفع الاثم.

وفی الشامیة (قوله ایضا) ای کما فی البیع الفاسد وقدمنا عن الدرر انه لا یجب فسخه وما ذکره الشارح عزاه فی الفتح اول باب الاقالة الی النهایة ثم قال وتبعه غیره وهو حق لانه رفع المعصیته واجب بقدر الامکان اه قلت ویمکن التوفیق بوجوبه علیهما دیانةً بخلاف البیع الفاسد فانهما اذا اصرا علیه یفسخه القاضی جبراً علیهما ووجهه ان البیع هنا صحیح قبل القبض ویجب فیه الثمن لا القیمة فلا یلی القاضی فسخه لحصول الملك الصحیح (ردالمحتار ص۱۸٦ ج۴)

هر کله چې دا بیع واجب الرد ده، نو په دې مبیعه کښې تصرف او اکل وغیره به حرام وی، لیکن دا مبیعه په خپله حرامه نهٔ ده، یعنی اکل ئې حرام دې او ماکول حرام نهٔ دې.

قال فی شرح التنویر اشتری مکیلاً بشرط الکیل حرم ای کره تحریما بیعه واکله حتی یکیله وقد صرحوا بفساده وبانه لا یقال لاکله انه اکل حراما لعدم التلازم کما بسطه الکمال.

وفی الشامیة تحت (قوله کما بسطه الکمال) لو اکله وقد قبضه بلا کیل لا یقال انه اکل حراما لانه اکل ملك نفسه الا انه اثم لترکه ما امر به من الکیل فکان هذا الکلام اصلا فی سائر المبیعات بیعا فاسدا اذا قبضها فملکها ثم اکلها (الی قوله) وحاصله انه اذا حرم الفعل وهو الاکل لا یلزم منه ان یکون اکل حراما (الی قوله) وکذا لو غصب شیئا واستهلکه بخلطه ونحوه حتی ملکه ولم یؤد ضمانه یحرم علیه التصرف فیه باکل ونحوه وان کان ملکه (ردالمحتار ص۲۲۷ ج۴) والله تعالی اعلم. ۱۸ صفر ۱۳۷٦ هجری

## په جمات باندې مدرسه جوړول

**سوال:-** د جمات د پاسه د مدرسې تعمیر روا دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب:** قال فی التنویر واذا جعل تحته سردابا لمصالحه ای المسجد جاز کمسجد

القدس (ردالمحتار ص ۳۸۲ ج ۳)

وقال الرافعی رحمة الله (قول المصنف لمصالحه) ليس بقيد بل الحكم كذلك اذا كان ينتفع به عامة المسلمين على ما افاده فى غاية البيان حيث قال اورد الفقيه ابو الليث سؤالا و جوابا فقال فان قيل اليس مسجد بيت المقدس تحته مجتمع الماء والناس ينتفعون به قيل اذا كان تحته شيء ينتفع به عامة المسلمين يجوز لانه اذا انتفع به عامتهم صار ذلك لله تعالى ايضا اھ ومنه يعلم حكم كثير من مساجد مصر التى تحتها صهاريج ونحوها (التحرير المختار ص ۸۰ ج ۲)

و فى الهندية و من جعل مسجدا تحته سرداب او فوقه بيت و جعل باب المسجد الى الطريق وعزله فله ان يبيعه و ان مات يورث عنه ولو كان السرداب لمصالح المسجد جاز كما مسجد بيت المقدس كذا فى الهداية (عالمگيرية ص ۴۵۵ ج ۲)

د اولنی او د دریم عبارت ظاهر په عدم جواز باندې دلالت کوی، لان مفهوم الفقهاء رحمهم الله حجة بالاتفاق او په روایتِ ثانیه کښې د جواز تصریح ده، ددې وجې نه په وخت دسخت ضرورت کښې ترې نه ګنجائش معلومیږی، لیکن دا اجازت په هغه صورت کښې دې چې د ابتداء نه ئې ددې جمات د پاسه یا د لاندې د مدرسې د جوړولو اراده وی، که چرې ابتداءً ئې اراده نهٔ وه بلکه د جمات حدود ئې متعین کړل او ددې رقبې په حقله ئې زبانی اووئیل چې دا جمات دې، د دې نه پس ئې که په دې د پاسه د جمات جوړولو اراده وشوه نو دا روا نهٔ دی۔

قال فى شرح التنوير لو بنى فوقه بيتا للامام لا يضر لانه من المصالح اما لو تمت المسجدية ثم اراد البناء منع ولو قال عينت ذلك لم يصدق (ردالمحتار ص ۳۸۲ ج ۳) والله تعالى اعلم. ۱۳ ربيع الاول ۱۳۷۶ هجرى

## په جمات باندې د امام د پاره کور جوړول

**سوال:-** د امام د اوسیدلو د پاره د جمات د پاسه کور جوړول روا دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د زمکې څومره حصې ته چې یو ځل مسجد شرعی اووئیلې شو، هغې کښې دننه، لاندې او باندې بل هیڅ یو څیز جوړول روا نهٔ دی، د مسجد شرعی د تاکلو نه وړاندې د امام د پاره د کور یا د جمات د مصالحو د پاره د څه جوړول که ټاکلې شوې وی، او ددې عامه اطلاع هم کړې شوې وی نو دا بیا روا دی، د مسجد شرعی د ګرځیدلو نه وروستو که متولی د شروع نه د نیت کولو دعوی وکړه نو دا دعوی به نهٔ شی قبلولې۔

قال فى شرح التنوير :لو بنى فوقه بيتا للامام لا يضر لانه من المصالح اما لو تمت المسجدية ثم اراد البناء

منع ولو قال عنيت ذلك لم يصدق تاترخانية (ردالمحتار ص ۳۸۲ ج ۳) والله تعالى اعلم.

۱۱ محرم ۱۳۸۶ هجری

## د خلقو د مړی ژوندی د پاره دزمکې په خاص حصه باندې جمات جوړول

**سوال**:- په ناظم آباد کښې يو خالی پلاټ دې، کوم چې د محلې د خلقو د مړی ژوندی دپاره مخصوص دې، د دولس دیارلس کالو نه مقامی خلق دا خپل ځان له یا د اجتماعی مړی ژوندې دپاره استعمالوی، نزدې دلته ورسره جمات نۀ وو، ددې وجې نه د ضرورت له کبله هم د دې پلاټ په یو ګوټ کښې يو سپر جوړ کړې شو او په هغې کښې پنځه وخته مونځ ادا کول شروع کړې شو، او دا طریقه تر ننه پورې روانه ده، بلکه د جمعې مونځ په کښې هم په پابندئ سره ادا کیږی، ددې کار کولو نه وړاندې د مقامی حاکمانو نه اجازت نۀ دې حاصل کړې شوې، اوس ددې کوشش روان دې، آیا د محلې خلق داسې جمات جوړولې شی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** حضراتو فقهاء کرامو ؒ ددې خبرې تصريح کړې ده چې په وخت د ضرورت کښې د محلې خلق د لارې نه هم جمات جوړولې شی، لیکن په دې شرط چې تیریدونکو ته ددې نه څه ضرر نۀ وی، ځکه چې لاره هم ددې خلقو د ضرورت دپاره ده، لهذا هغوی په دې کښې د تصرف کولو حق لری ، په همدې بنا کوم خالی پلاټ چې د اهلِ محله د فائدې او د راحت دپاره پرېښودلې شوې دې، په دې باندې د اهلِ محله د اجتماعی رائې مطابق جمات جوړول په طریقِ اولی روا دی، جمات د مسلمانانو د آبادئ بنیادی ضرورت دې، په حکومت باندې دې خلقو سره تعاون ضروری دې، دا نه چې په دې کښې دې رکاوټ (یعنی بندیز) راولی. والله تعالى اعلم.

۵ شوال ۱۳۸۶ هجری

## په جمات کښې جامې وچول

**سوال**:- جامې د وینځلو نه پس د جمات په غولی یا په دیوال باندې وچول روا دی او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د جمات په غولی یا په دیوال باندې جامې وچول روا نۀ دی، د مؤذن او د خادم د پاره که بهر بل څه ځائې نۀ وی نو هغوی بیا د جمات سره پیوسته ځائې کښې جامې وچولې شی. والله تعالى اعلم.

۱۱ شوال ۱۳۸۶ هجری

## په جمات کښې چنده کول

**سوال**:- په یو جمات کښې څو زره روپئ د اول نه جمع دی، لیکن بیا هم د عادت مطابق د مونځ ګذارو وړاندې د چندې پیټئ ګرځولې شی او چنده ترې نه اخستې شی، آیا شرعا دا کار صحیح

دې؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : كه ضرورت وى نو بيا هم په دې طريقه باندې چنده غوښتل روا نۀ دى، په دې كښې دا مفاسد دى:

۱ - په مونځ كښې خلل پيدا كول .

۲ - مونځ ګذارو ته تكليف رسيږى په صفونو باندې خپې اړول او تلل روا نۀ دى .

۳ - د چا مخې ته پيتئ وړاندې كول د چندې غوښتلو دپاره خصوصى خطاب دې،او دا روا نۀ دى، ځكه چې په دې كښې د وركوونكى طيب خاطر نۀ دې معلوم،خصوصا د نورو په وړاندې خصوصى خطاب كښې جبر او اكراه ظاهره خبره ده،د رسول الله ﷺ ارشاد دې،چې بې د طيب خاطر نه د چا مال اخستل حلال نۀ دى .

دچندې كولو صحيح طريقه دا ده چې د خطاب په ذريعه دې عام خطاب وركړې شى.

ددې تفصيل په رساله(صيانة العلماء عن الذل عند الاغنياء) كښې شته دې.والله تعالى اعلم.

غره ذى القعده ۱۳۸۶ هجرى

## د جمات د بجلئ بې ځايه استعمال

**سوال**:- جمات ته نزدې په سرك باندې جلسه منعقد كيږى،چې په كښې به د يو بزرګ عالم دين وعظ وى، كيدې شى چې د شپې د دولسو يا يوې بجې پورې د جلسې كاروائى جارى وى، د دې ضرورت دپاره د جمات بجلى د تار په ذريعه بوتلل او استعمالول ئې صحيح دى اوكه نه پداسې حال كښې چې دجمات له منتظمينو نه د دې اجازت هم واخستې شى ؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دجمات بجلى هم د جمات د پاره خاص ده،د يو داسې كار د پاره د دې استعمال روا نۀ دې چې هغۀ كار د جمات په مصالحو كښې داخل نۀ وى،اګرچې هغه كار په خپل ځائې د هر څومره نيكئ وى، هر كله چې د يو جمات د څيزونو استعمال په بل جمات كښې روا نۀ دې، نو د عاموځايونو دپاره به ددې استعمال څنګه روا شى، د انتظاميې د داسې بې موقعې بلكه د شرعې خلاف اجازت ته هيڅ اعتبار نشته دې.والله تعالى اعلم. ۲۳ شوال ۱۳۸۶ هجرى

## د پورتنى په شان يوبل سوال

**سوال**:- د جمات بجلى د امام يا د مؤذن په حجره كښې استعمالول روا دى او كه نه؟ ورسره دا چې دې جمات سره په پيوسته مدرسه كښې د انتظاميې په اجازت سره ددې جمات بجلى استعمالول روا دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د امام او د مؤذن حجره خو د جمات په متعلقاتو كښې راځى.لهذا

ددې دپاره د جمات بجلی بوتلل روا دی،همدغه شان دا مدرسه هم که چرې د دې جمات تابع وی، او په عامه توګه خلقو ته د دې علم هم وی،او د چندې ورکوونکی هم د دې تصریح نۀ کوی چې د هغوی چنده دې مدرسه کښې خرچ نۀ کړې شی،نو په دې صورت کښې پیوسته مدرسې ته هم بجلې ورکولې شی۔

که چرې دا مدرسه د جمات تابع نۀ وی، نو بیا دې مدرسې ته د جمات بجلې ورکول روا نۀ دی، د جمات څه څیز بل ځائې ته اګر که دویم مسجد ته وی منتقل کول روا نۀ دی۔

قال العلامة ابن عابدین رحمہ اللہ: لکن علمت ان المفتی به قول ابی یوسف رحمہ اللہ انه لا یجوز نقله ونقل ماله الی مسجد اخر کما مر عن الحاوی (ردالمحتار ص ۳۸۳ ج ۳) والله تعالیٰ اعلم. ۳ ذی قعده ۱۳۸۶ هجری

## د جمات په نلکه باندې لمبل

**سوال:**- دجمات نل دې دهغې په اوبو باندې په غسل خانه کښې غسل کول یا جامې وینځل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غسل خانه که چیرې د جمات په حدودو کښې وی، نو د عامو خلقو دپاره ددې استعمال روا نۀ دې،صرف د امام،مؤذن او د جمات د خدمت سره متعلقه افراد ددې استعمال کولې شی ، او که د جمات د ضرورت د پاره د وقفِ تام کیدلو نه وړاندې د عامو خلقو د فائدې دپاره دا نل لګولې شوې وی نو هر یو سړی ته ددې د اوبو وړلو اجازت شته دې، لیکن په دې شرط چې د جمات تلویث په کښې نۀ وی،او ددې نه مونځ ګذارو ته اندیښنه او ضرر هم نۀ وی۔

والله تعالیٰ اعلم. ۴ ذی قعده ۱۳۸۶ هجری

## امام ته پیشکی (یعنی د وړاندې نه) تنخوا ورکول

**سوال:**- دجمات امام د خپل اهل او عیال د پاره کور جوړول غواړی،آیا دا به صحیح وی چې انتظامیه هغۀ ته د وړاندې نه دا ټولې پیسې ورکړی،او بیا د هغۀ د تنخوا نه ئې هره میاشت مثلاً لس روپئ حصاروی ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دعام عرف مطابق پیشکی تنخوا ورکولې کیدې شی، لیکن په دې شرط چې د امامت پرېښودلو په صورت کښې ترې نه د پیسو د واپس اخستلو او په صورت د وفات کښې ئې د ترکې نه د اخستلو قدرت وی.والله تعالیٰ اعلم. ۲۵ ذی الحجه ۱۳۸۶ هجری

## په جمات کښې ویده کیدل

**سوال:**- د طالب علمانو د پاره په جمات کښې ویده کیدل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مسجد بنا د ذکر او د عبادت د پاره ده،ددې قسمه کارونه د پاره نۀ ده،ددې وجې نه په عامو حالاتو کښې خو د چا د پاره هم په جمات کښې ویده کیدل روا نۀ دی، برابره خبره د که طالب علم وی او که نور څوك،که چیرې د مجبورئ د وجې نه طالبان په جمات کښې ویدۀ کیږی نو ددې شرطونو سره ئې ګنجائش شته دې:

۱ - د جمات نه علاوه بله څۀ عارضی یا مستقله قیامګاه نۀ وی،او متولی او منتظهم هم ددې انتظام نه شی کولې.

۲ - د جمات د ادابو دې پوره خیال وساتلې شی،چې د شور ، غږ ، خندا خوندی،او د لایعنی خبرو نه دې په کښې پرهیز وکړې شی،د صفائې دې پوره اهتمام وکړې شی،او د اعتکاف نیت دې په کښې هم وکړې شی.

۳ - مونځ ګذارو ته باید د دوی نه هیڅ قسمه ضرر ونه رسیږی چې څنګه اذان کیږی سمدستی دې پاسیږی،او د مونځونو نه پس هم څو پورې چې خلق په سنتو ،نفلونو یا په ذکر او تلاوت وغیره کښې مشغوله وی نو د هغوی په عبادت کښې دې د څه قسمه خلل نه واقع کوی.

۴ - طالبان چې د ګیرو والاوی یا کم از کم چې د جمات د آدابو نه واقف او باشعوره وی،د کم عمره او بې شعوره ماشومانو په جمات کښې ویده کول روا نۀ دی.

**الغرض**: ممکنه حده پورې دې د دې نه د بچ کیدلو کوشش وکړې شی،او د مجبورئ خبره بیا بیله ده.واللہ تعالیٰ اعلم. **۲۴ ربیع الاخر ۱۳۸۷ هجری**

## د پورتنی په شان یوبل سوال

**سوال**:- د چا مقیم دپاره په جمات کښې کټ اچول یا بې د کټ نه ویده کیدل روا دی اوکه نه؟ بله دا چې نن صبا دا دستور دې،چې د تبلیغی جماعت حضرات په جمات کښې ویدۀ کیږی، او په جمات کښې خورا څښاك هم کوی،او نور معمولات هم په جمات کښې پوره کوی، آیا شرعا ددې خبرې اجازت اوګنجائش شته دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د معتکف او دمسافر دپاره په جمات کښې د اودۀ کیدلو ګنجائش شته دې،لهذا د تبلیغی جماعت دا دستور روا دې،څکه چې اهلِ تبلیغ عموما مسافر وی،خو سره ددې نه هم د اعتکاف نیت دې وکړی،او د دې دې هم اهتمام وکړی چې که چیرې جمات ته نزدې څه حجره وغیره وی چې په کښې تول ملګرې ځائیدې شی نو په جمات کښې دې بیا نۀ ویدۀ کیږی، او خوراك دې هم بهر کوی،او په جمات کښې کټ اچول د چا د پاره روا نۀ دی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: واكل ونوم الا لمعتكف وغريب الخ

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله و اکل و نوم) و اذا اراد ذلك ينبغي ان ينوي الاعتكاف فيدخل و يذكر الله تعالی بقدر ما نوی او يصلي ثم يفعل ما شاء فتاوی هندية (ردالمحتار ص۶۱۹ ج۱) والله تعالی اعلم.

۲۷ ربيع الاول ۱۳۸۹ هجری

## د بلې محلې په جمات کښې مونځ کول

**سوال:-** یو سړې د محلې د جمات جمع پریږدی او ځی بله محله کښې مونځ ادا کوی، ددغه سړی دا فعل شرعا صحیح دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د محلې د جمات امام صحیح العقیده وی او بل هم څه شرعی یا طبعی مانع په هغهٔ کښې نوی، نو بیا دا جمات پریښودل او بل جمات ته تلل صحیح نهٔ دی، د محلې د جمات دومره حق دې چې هغې ته د داخلیدلو نه پس که د چا نه جمع هم وشوه، نو د جمعې په طلب کښې بل جمات ته د تلو نه ددې خپلې محلې په جمات کښې مونځ کول افضل دی، غرض دا چې د دغه سړی دا عمل د حد.نه افراط او خلاف شرع دې، لیکن د محلې خلقو ته ددې سړی نه بد گمانه کیدل، یا په هغهٔ باندې ملامتیا وئیل روا نهٔ دی، په عامه توگه دا قسمه طریقه د عمل کولو د شرعی مسائلو نه د ناخبره کیدلو یا په څه غلط فهمئ باندې مبنی وی، ددې وجې نه په شفقت او همدردئ سره ددې اصلاح ضروری ده، که چیرې هغهٔ په پوهولو سره هم نهٔ پوهیږی نو بیا دې هم هغهٔ په خپل ځائې باندې پریښودلې شی، د داسې قسمه خلقو سره د بحث کولو په ځائې دې په هغه خلقو باندې محنت او خواری وکړې شی کوم چې له سره د مونځ نه آزاد دی او په هیڅ یو جمات کښې هم قدم نهٔ ږدی. والله تعالی اعلم.

۱۸ ربيع الاخر ۱۳۸۷ هجری

## د جمات د چندې تبادله

**سوال:-** د جمات د چندې نه کهٔ خوك ماتې پیسې واخلی او غټې لوټ ورکړی نو دا اخستل او ورکول په جمات کښې دننه یا د جمات نه بهر کول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جمات نه بهر دا روا دی، او په جمات کښې دننه روا نهٔ دی. والله تعالی اعلم.

۲۳ ربيع الاول ۱۴۰۰ هجری

## د جمات کتاب لره بهر وېستل جائز ندی

**سوال:-** یو سړی په جمات کښې ایښودلې شوې کتاب د مضمون د اورولو دپاره کور ته یوړلو، او د مضمون د اورولو نه پس ئې کتاب واپس جمات ته راوړلو، آیا د هغهٔ دا فعل صحیح دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : كه چيرې دا كتاب د دې جمات د پاره وقف وى، نو ددې بل ځائې ته منتقل كول روا نۀ دى، بلكه د جمات په حدودو كښې دې ددې نه فائده واخستلې شى۔
كذا حرر العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه (ردالمحتار ص۳۸۷ ج۳) والله تعالىٰ اعلم. رمضان ۱۳۸۷ هجری

## د اذان نه پس ځان له مونځ كول او د جمات نه وتل

**سوال**:- كه د يو سړى عجله اوتادى وى، مثلاً سفر ئې په غاړه وى،يا بل څه ضرورى كار ئې وى، نو د اذان نه پس په جمات كښې ځان له مونځ كولې شى او بيا تلې شى كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : كه د جمع په انتظار كولو كښې معتدبه حرج وى نو بيا جمع پريښودل روا دى.

قال فى التنوير: فتسن او تجب على الرجال العقلاء البالغين الاحرار القادرين على الصلوة بالجماعة من غير حرج . (ردالمحتار ص۵۱۸ ج۱) والله تعالىٰ اعلم. ۱۵ ذى قعده ۱۳۸۷ هجری

## د جمات څيز په ذاتى استعمال كښې راوستل

**سوال**:- د جمات متولى يا د هغۀ رشته دار او ګوانډيان دجمات كوم څيز د خپل ذاتى كار دپاره استعمالولې شى اوكه نه ؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هر كله چې د يو جمات سامان د بل جمات د پاره استعمالول روا نۀ دى نو متولى يا غير متولى د جمات څيز څنګه استعمالولې شى؟چا ته دومره اختيار هم نشته دې چې د جمات ډيوه دې كور ته يوسى.

قال فى الهندية ولا يحمل الرجل سراج المسجد الى بيته (عالمگيرية ص۱۱۰ ج۱) والله تعالىٰ اعلم.
۲۴ صفر ۱۳۸۹ هجری

## په جمات كښې لالټين بلول

**سوال**:- زيد د ماسخوتن د مونځ نه پس نيم ساعت د حديث درس كوى،كه په دې دوران كښې بجلې لاړه شى،او د هوا د تيزيدلو د وجې نه ډيوه يا شمع بلول هم ممكن نۀ وى، نو په لالټين كښې چې د خاورو تيل واچولې شى او په جمات كښې بل كړې شى نو دا به روا وى او كه نه؟ همدغه شان د مونځ په دوران كښې به د لالټين بلول روا وى او كه نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په حديث شريف كښې دى چې د اومه (خام) پياز يا د اوږې خوړونكې دې جمات ته نزدې نۀ راځى،او د خاورو د تيلو بوئى خو ددې څيزونو نه په څو څو چنده زيات دې، لهذا دا په جمات كښې بلول روا نۀ دى۔ والله تعالىٰ اعلم. ۲۷ ربيع الاخر ۱۳۸۹ هجری

## جمات بل ځائې ته منتقل کول

**سوال:**- یو جمات د محلې په مینځ کښې واقع دې،د اوبو په کښې ډیر تکلیف دې،او مونځ گذارو ته په کښې مونځ ادا کول هم گران وی،ددې حالاتو په بنا دا جمات ددې ځائې نه اخوا کول او دا یو داسې ځائې ته منتقل کول روا دی چې په هغهٔ ځائې کښې ددې قسمه څه تکلیف او مشکلات نهٔ وی، او مونځ په کښې ښه په سهولت او اسانتیا سره ادا کیدې شی ؟ بینوا توجروا ـ

**الجواب باسم ملهم الصواب** : جمات په هیڅ یو حال کښې هم منتقل کول روا نهٔ دی،کوم ځائې چې یو ځل جمات شو هغهٔ ځائې به تر د قیامته پورې جمات وی، بالفرض که چیرې جمات شاړ شی او څوك مونځ کولو والا په کښې هم نهٔ وی،بیا هم د دې جمات باقی ساتل واجب دی،البته که د خوشی جمات په سامان باندې د ضائع کیدلو ویره وی نو ددې خوشی جمات سامان بل یو نزدې جمات ته منتقل کولې شی . **والله تعالیٰ اعلم** **۱۱ رجب ۱۳۸۹ هجری**

## د پورتنی په شان یوبل سوال

**سوال:**- یو غیر مسلم کارخانه دار په کارخانه کښې جمات جوړ کړو، مسلمانانو شپږو اووو کالو پورې په هغې کښې مونځ ادا کولو، بیا دغه غیر مسلم دا کارخانه د یو مسلمان په لاس خرڅه کړه، د دې نه پس هم اوو اتو میاشتو پورې په دې جمات کښې مونځونه د جمعې سره ادا کیدل، لیکن اوس مسلمان کارخانه دار وائی،چې زهٔ دا جمات ددې ځائې نه اخوا کوم او په دغه بل گوټ باندې ئې جوړوم، او دلته زهٔ ځان له خپل ذاتی عمارت جوړول غواړم،آیا د هغهٔ داسې کول صحیح دی؟ بینوا توجروا ـ

**الجواب باسم ملهم الصواب** : غیر مسلم که دا د ثواب کار گڼلو او په دې نیت ئې وقف کړې وو نو د هغهٔ وقف صحیح دې، دلته هم ښکاره خبره دا ده چې هغهٔ دا د نیکئ کار گڼلې دې او جمات ئې تعمیر کړې دې،لهذا دا جمات شرعی جمات وگرځیدلو ،اوس د مسلمان کارخانه دار د دې اخوا کول روا نهٔ دی .

که چیرې د غیر مسلم وقف صحیح ونهٔ منلې شی، نو بیا هم د مسلمان کارخانه دار په وړاندې دلته اووهٔ اتهٔ میاشتې د جمعې مونځ کیدلو او هغهٔ په دې باندې چپ پاتې وو، دا چپ پاتې کیدل هم د رضامندئ دلیل دې، لهذا په خپله د هغهٔ په رضا باندې هم دا شرعی جمات گرځیدلې دې، اوس ددې اخوا کول روا نهٔ دی. **والله تعالیٰ اعلم** **۱۳ جمادی الثانیه ۱۳۹۹ هجری**

## په جمات کښې کټ اچول

**سوال:**- په فتاوی رشیدیه کښې ئې لیکلې دی،چې مسافر او مقیم لره په جمات کښې کټ اچول

او په هغې کښې ویدهٔ کیدل روا دی، د دې مسئلې په کتلو سره مې په زړهٔ کښې څه اشکال غوندې پیدا شو چې مقیم د پاره خو په جمات کښې ویدهٔ کیدل روا نهٔ دی،د دې راته لګه تشریح اوفرمایئ ـبینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**

په فتاوی رشیدیه کښې ددې سوال په جواب کښې صرف دومره دی چې په جمات کښې کټ اچول صحیح دی، لیکن لاندې په حاشیه کښې د حضرت مولانا عبدالحی صاحب رحمه الله نه د منقول تحقیق نه دا معلومیږی چې دا د معتکف د پاره دی، و نصه:

جائز ست چه برائ آنحضرت ﷺ در مسجد سریری نهاده شده و بر آن درایام اعتکاف آرام می فرمودند کما فی سفر السعادة، وابن ماجه ازابن عمر رضی الله عنهما روایت کرده ان رسول الله ﷺ کان اذا اعتکف طرح له فراشه او یوضع له سریره وراء سطوانة التوبة . والله تعالی اعلم (فتاوی رشیدیة ص ۴۱۵)

د فقهاء کرامو رحمهم الله د نص مطابق د غیر مسافر او معتکف د پاره په جمات کښې ویدهٔ کیدل مکروه دی،د سخت ضرورت په حالت کښې دا چل اختیارولې شی چې اول دې په نیت د اعتکاف داخل شی او څه عباذت دې وکړی۔

قال العلامة الحصکفی رحمه الله :واکل ونوم الا لمعتکف وغریب الخ

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله : (قوله واکل ونوم) واذا اراد ذلک ینبغی ان ینوی الاعتکاف فیدخل ویذکر الله تعالی بقدر ما نوی ویصلی ثم یفعل ما شاء فتاوی هندیة (ردالمحتار ص۶۱۹ ج۱)

په اصل کښې د ادب او د بې ادبۍ مدار په عرف باندې دې،زمونږ په عرف کښې په جمات کښې کټ اچول عیب ګڼلې کیږی، بله دا چې په داسې کولو سره د عوامو د زړونو نه د جمات عزت اوځی، هغوی به په کټ باندې قیاس اوکړی او نور ناروا کارونه به هم په جمات کښې شروع کړی، لهذا اوس د معتکف د پاره هم کټ اچول په جمات کښې روا نهٔ دی،لکه څنګه به چې وړاندې پاک پیزار او په هغې کښې جمات ته راتلل عیب نهٔ ګڼلې کیدل، لیکن زمونږ په عرف کښې دا د جمات بې ادبی ګڼړلې کیږی، که چیرې چا پاک پیزار واچولو او جمات ته په کښې راغلو نو خلق به ملك په سر راواخلی۔ والله تعالی اعلم. ۲۳ رجب ۱۳۸۹ هجری

## په جمات کښې توک دان (یعنی د لاړو توکولو لوښې) ایښودل

**سوال:**- یو سړې مریض دې او دا سړې جمات جارو کوی،ده لره په لاړو کښې ډیر بلغم راځی،که چیرې دا سړې د لاړو توکلو د پاره په جمات کښې یو ډبې یو ګوټ کښې کیږدی او د ضرورت په وخت کښې په هغې کښې لاړې توکی،او بیا هغهٔ بهر وغورځوی نو دا به روا وی او که نه؟ بینوا

توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا روا نهٔ دی، د اودس په ځائې کښې دې وتوکی او اوبه دې پرې واړوی، که دا ورته ګرانه وی نو په دست مال وغیره کښې دې لاړې وغیره توکی، او ددې دست مال د پاك ساتلو اهتمام دې کوی. **والله تعالیٰ اعلم** ۲۳ رجب ۱۳۸۹ هجری

## د جمات په آمدن باندې د جمات دپاره څیزونه اخستل

**سوال**:- یو صاحب وائی چې د جمات په عام آمدن باندې د جمات د پاره درئ او لوټه وغیره اخستل روا نهٔ دی، او حواله ورکوی چې مولانا عبدالحی لکهنوی رحمه الله په نفع المفتی کښې هم داسې لیکلې دی، آیا د هغوی دا وینا کول صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که د چندې ورکوونکو اذن دلالةً یا صراحتاً موجود وی نو بیا روا دی او که موجود نهٔ وی نو ناروا دی، په نفع المفتی کښې په لټون سره دا مسئله تر لاسه نهٔ شوه. بینوا توجروا.

## د کافر په زمکه کښې بې د اجازت نه جمات جوړول

**سوال**:- د یو غیر مسلم په زمکه کښې بې د هغهٔ د اجازت نه جمات جوړ کړې شو، په دغه جمات کښې مونځ کول څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا ځائې جمات نهٔ دې، بې د مالك د اجازت نه په دې کښې مونځ کول مکروه تحریمی دی. **كذا في الشامية قبيل باب الاذان.**

د دې وجې نه د مونځ راګرځول واجب دی.

**قال العلامة المرغيناني رحمه الله في مكروهات الصلوة: والصلوة جائزة في جميع ذلك لاستجماع شرائطها وتعاد على وجه غير مكروه وهو الحكم في كل صلوة اديت مع الكراهة (هداية ص ۱۳۳ ج ۱) والله تعالیٰ اعلم.**

۲۴ صفر ۱۳۹۱ هجری

## جمات ته په راتلو او د جمات نه په وتلو سلام کول

**سوال**:- جمات ته په راتلو او د جمات نه په وتلو کښې په جمات کښې په ناستو خلقو باندې سلام کول روا دی او که نه؟ حال دا چې خلق په دغه وخت په عامه توګه په ذکر او تسبیح او مونځ وغیره کښې مشغول وی، البته بعضې خلق په کښې فارغ هم ناست وی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : جمات ته راتلونکی خلق په مختلفو عبادتونو کښې مشغول وی، د دې وجې نه هغوی ته سلام کول روا نهٔ دی، او د داسې سلام جواب هم واجب نهٔ دې.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله معزیا للحموی یأثم بالسلام علی المشغولین بالخطبة او الصلوة او قراءة القرآن اومذاکرة العلم الخ

ونقل عن الزیلعی: ولو سلم علیهم لا یجب علیهم الرد لانه فی غیر محله اهـ (ردالمحتار ص ۵۰۸ ج ۱) والله تعالی اعلم.

۲۵ جمادی الآخر ۱۳۹۱ هجری

## په جمات کښې اودس کول

**سوال:**- د یو جمات غولې وران کړې شو او بیا د سره ئې جوړوی، په دې کښې د کون کیږی او د سر نه ئې بیا نوې جوړوی، په دې حالت کښې په دې غولی کښې اودس کول روا دی او که نه؟ او په دې غولی کښې د پیزار سره تګ روا دې او که نه؟حال دا چې بل ځائې د اودس دپاره نۀ وی او د دې جمات په دې کچه خاوره کښې اوبۀ جذب کیږی هم. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په جمات کښې اودس کول روا نۀ دی، ځکه چې د اودس اوبه د یو روایت مطابق پلیتې دی، او د مفتی به قول مطابق اګرچې پلیتې نۀ دی لیکن خبیثې ضرور دی، او ددې نه علاوه د اودس په وخت کښې به خلق لاړې، بلغم او د پوزې رطوبت وغیره غورځوی، په لوړ ځائې باندې په ناسته په داسې طریقه باندې اودس کولې شی چې اوبه ئې د جمات نه بهر غورځیږی ، د پیزار سره په جمات کښې تګ د ضرورت په وخت کښې روا دې. والله تعالی اعلم.

۱۸ صفر ۱۳۹۲ هجری

## د جمات قرآن مجید طالبانو ته ورکول

**سوال:**- نن صبا خلق په جماتونو کښې په عامه توګه قرآن مجید دومره په کثرت سره کیږدی چې د قرآن مجید ډیری جوړشی، او بیا دا قرآن مجیدونه هم داسې په مودو مودو پراتۀ وی، دا قرآن مجیدونه، نۀ څوك را اخلی او نۀ په کښې تلاوت کوی، آخر دا چې دا هم داسې وراسته اوزاړه شی او بیا دفن کولو باندې ئې سړې مجبوره شی، که چیرې دا قرآن مجیدونه هغه غریبانانو ماشومانو ته ورکړې شی کوم چې په مکتب یا مدرسه کښې سبق وائی نو دا روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د چا په ملك کښې ددې ورکول روا نۀ دی او نۀ ئې چرته په یو مدرسه کښې ورکولې شی، البته په حالت د استغناء کښې ئې نزدې جمات ارخ ته د منتقلولو اجازت شته دې.

که د جمات نه بهر دا تختئ ولګولې شی چې دې جمات کښې بې د اجازت نه قرآن مجید اېښودل منع دی، که چا کېښودل نو هغۀ قرآن مجید به چا مسکین یا مدرسې ته ورکولې شی، که بیا ددې باوجود هم دا چا کېښودل نو منتظم ته ددې اختیار شته دې چې دا چا مسکین یا مدرسې

له ور کړي۔ والله تعالیٰ اعلم. ۱۸ صفر ۱۳۹۲ هجری

## زوړ جمات نه مکتب جوړول

**سوال:**- د زوړ جمات نه مکتب جوړول روا دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هرکله چې په یو ځائې باندې جمات جوړ شو نو بیا به هغه د همیشه همیشه د پاره جمات وي، برابره خبره ده که خلق په هغې کښې مونځ کوي او که نه کوي، لهذا د دې نه مکتب جوړول روا نهٔ دي، البته که دا خبره وي چې دا دې هم جمات وي او ددې د ادب او احترام خیال دې وساتلې شي نو په دې کښې بیا د دین تعلیم ددې شرطونو سره روا دې:

۱ - معلم دې په اجرت باندې په کښې درس نهٔ ورکوي، په قدر د ضرورت وظیفه اخستې شي،

۲ - واړه ناپوهه ماشومان دې جمات ته نشي راپریښودلې.

۳ - د جمات د احکامو او د ادابو او د احترام دې ښهٔ پوره اهتمام وکړې شي.

قال فی التنویر: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ولا یجوز نقله ونقل ماله الی مسجد آخر سواء کانوا یصلون فیه اولا وهو الفتوی حاوی القدسی واکثر المشائخ علیه مجتبی وهو الاوجه فتح اهـ بحر (ردالمحتار ص۳۸۲ ج۳) والله تعالیٰ اعلم.

۶ جمادی الاخرة ۱۳۹۲ هجری

## په جمات کښې د دنیا خبرې کول

**سوال:**- په جمات کښې د دنیا خبرې کول څنګه دي؟ بله دا چې د دنیوی علم حاصلولو د پاره په جمات کښې مطالعه کول روا دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جمات صرف او صرف د الله تعالی دعبادت د پاره دې، په دې کښې څه دنیاوی کار کول او یا بې د ضرورت نه دنیاوی خبرې کول او یا په دې کښې فضول خبرې اترې کول د جمات سخته بې عزتی ده، ددې وجې نه دا ناروا دي، البته د ضرورت د پاره د معمولی غوندې خبرې کولو اجازت په کښې شته دې۔ والله تعالیٰ اعلم. ۲۶ جمادی الاخرة ۱۳۹۲ هجری

## په جمات کښې روژه ماتې کول

**سوال:**- په روژه کښې د روژه دارو دپاره په جمات کښې روژه ماتې کول روا دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نن صبا چې په جماتونو کښې د روژه ماتی کولو څنګه رواج دې، په دې کښې جمات سخا کیږي او بې عزتی ئې هم کیږي، لهذا دا روا نهٔ دي، د جمات د انتظامیه د

پاره دا ضروري دي چې د اذان نه پس دې دومره وقفه ورکړی چې د محلې مونځ ګذار په کورونو کښې ښه په آرام سره روژه ماتې وکړی او بیا جمات ته هم ر ورسیږ. والله تعالی اعلم.

۱۵ رجب ۱۳۹۲ هجری

## په جمات کښې د ځان دپاره ځائې نیول

**سوال:-** آیا په جمات کښې په څه ځائې باندې ټوپۍ یا رومال اینښودلو باندې سړې د دغه ځائې مستحق کیږی؟ او بل سړی ته په دغه ځائې باندې ناسته روا ده او که نه؟د مؤذن د پاره عموماً ځائې نیولو دپاره د امام نه وروستو جانماز خورولې شی،او په دغه ځائې باندې بل یو سړی ته د ناستې اجازه نهٔ وی،ددې شرعی حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې یو سړې په جمات کښې په یو ځائې کښې څه عبادت وکړی او بیا د څه ضرورت د وجې نه لګ وخت دپاره ځی او په دغه ځائې باندې رومال وغیره کیږدی او دغه ځائې حصار کړی نو دا روا دی،په څه ځائې کښې د وخت تیرولو نه بغیر په هغه ځائې باندې د رومال په اینښودلو باندې دې د دغه ځائې نهٔ مستحق کیږی.

همدا حکم د مؤذن دپاره دې هغهٔ د پاره ځائې مخصوصول او د بیلې مصلی خورولو رسم صحیح نهٔ دې، جمات ته چې کوم سړې رومبې ورسیدلو او په کوم ځائې باندې کښیناستلو هم هغه ددغه ځائې حقدار دې. والله تعالی اعلم. ۹ رمضان ۱۳۹۲ هجری

## په جمات کښې په اوچت آواز سره تلاوت کول

**سوال:-** د سحر د مونځ نهٔ واخله تر د اشراقه پورې جمات ته مونځ ګذاره راروان وی،او مونځ کوی، په دې دوران کښې چې څوك په جمات کښې دننه په زوره زوره دقرآن مجید تلاوت کوی نو ددې اجازت شته او که نه؟ حال دا چې د تلاوت په آواز باندې مونځ ګذاره په شك کښې واقع کیږی .بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په داسې حالت کښې په مونځ کښې دمخل کیدلو له کبله په زوره زوره تلاوت کول روانهٔ دی.

بله دا چې د یو قول مطابق د قرآن مجید اوریدل واجب دی،او د مونځ په حالت کښې د قرآن مجید اوریدل ممکنه نهٔ دی،لهذا تلاوت کوونکې به په دې ګناهګار وی.

قال فی العلائیة:(فروع) یجب الاستماع للقراءة مطلقا لان العبرة لعموم اللفظ.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ای فی الصلوة وخارجها لان الایة و ان کانت واردة فی الصلوة علی مامر فالعبرة لعموم اللفظ لا لخصوص السبب

وقال بعد سطرین: وفی الفتح عن الخلاصة رجل یکتب الفقه وبجنبه رجل یقرأ القرآن فلا یمکنه استماع القرآن فالاثم علی القاری (ردالمحتار ص۵۰۹ ج۱) والله تعالی اعلم. ۲۲ جمادی الاخرة ۱۳۹۳ هجری

## د تنخوا دار مدرس په جمات کښې درس ورکول

**سوال:** - کوم مدرسین چې په تنخوا باندې د قرآن مجید یا د عربی کتابونو درس ورکوی، آیا د هغوی په یو جمات کښې درس ورکول روا دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د تنخوا داره مدرس په جمات کښې درس ورکول روا نهٔ دی.

صرح به فی الهدیة. وفی العلائیة: و یمنع منه و کذا کل مؤذ ولو بلسانه و کل عقد الا المعتکف بشرط (ردالمحتار ص۶۱۹ ج۱)

که د جمات نه بهرڅه ځائې نه وی نو په جمات کښې بیا درس ورکول په دې شرطونو سره روا دی چه:

۱- مدرس دې د تنخوا د لالچ په ځائې د وخت تیرولو دپاره په قدر د ضرورت وظیفه باندې اکتفاء اوکړی.

۲- دا درس په مونځ، ذکر، او قرآن مجید په تلاوت وغیره کښې مخل نهٔ وی.

۳- د جمات د پاکئ او د ادب او احترام دې ښه پوره پوره خیال وساتلې شی.

۴- وړهٔ او ناپوهه ماشومان دې جمات ته نهٔ راولی. والله تعالی اعلم.

۲۲ جمادی الاخرة ۱۳۹۳ هجری

## د جمات په حجره کښې د انګریزئ درس ورکول

**سوال:** - په جمات کښې مؤذن ته د اوسیدلو دپاره کمره ورکړې شوې ده، هغهٔ په هغې کښې د انګریزئ تعلیم د یو استاذ نهٔ زده کوی، او بجلی هم استعمالوی آیا شرعا دا روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که د انګریزئ د تعلیم د وجې نه د بجلئ خرچه د عامو ورځو د خرچې څخه نهٔ زیاتیږی نو بیا دا تعلیم په کښې روا دې او که خرچه د عامو ورځو د خرچې نه زیاتیږی نو بیا ناروا دی. والله تعالی اعلم. ۲۷ جمادی الثانیه ۱۳۹۳ هجری

## د جمات په دیوال باندې نقشونه او چاپې کول

**سوال:** - دجمات د آمدن نه د دغه جمات زیب او زینت، نقش او نګار ګنبد چجې وغیره جوړول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جمات په بهرنی دیوال باندې نقش او نګار روا دی او د جمات په دننه حصه کښې په محراب او د قبلې اړخ ته دیوال باندې نقش او نګار مکروه دې،او ښی او چپ اړخ د دیوالونو په حقله هم یو قول د کراهت شته دې، بهر کیف په جمات کښې دننه په شا ته اړخ دیوال باندې او په چت باندې نقش او نګار کول صحیح دی،په مخامخ او ښی او چپ اړخ ته دیوال هم همدومره اوچت نه نقش او نګار شروع کول روا دی چې د مونځ ګذار نظر هلته نۀ رسی، لیکن په دې کښې بیا ددې شرطونو خیال ساتل ضروری دی:

۱- په دې کښې دې ډیر زیات تکلف و نۀ کړې شی.

۲- د وقف مال دې پرې نۀ لګوی،که چا ولګولو نو متولی ئې ضامن دې۔

د دې شرطونو باوجود دا کار صرف روا دې مسنون یا مستحب نۀ دې،که ددې په ځائې باندې دا پیسې په مسکینانو باندې خرچ کړې شی نو ډیره به ښه وی۔

فی حظر الهندیة عن المضرات والصرف الی الفقراء افضل وعلیه الفتوی اھ (ردالمحتار ص ۶۱۶ ج ۱) والله تعالیٰ اعلم. ۲۷ ربیع الاول ۱۳۹۴ هجری

## د جمات د پاره د قادیانی نه چنده اخستل

**سوال**:- د جمات د تعمیر دپاره د قادیانی نه چنده اخستل څنګه دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قادیانی نه چنده اخستل قطعاً حرام دی،قادیانی زندیق دې،د دې وجې نه هغوی سره د هیڅ قسمه څه معامله کول روا نۀ دی۔والله تعالیٰ اعلم. ۲۷ رجب ۱۳۹۵ هجری

## د جمات په زمکه باندې ذاتی کور جوړول

**سوال**:- د یو جمات په غیر آباده زمکه باندې زید یو کور د جمات د پاره تعمیرول غواړی او د دې مکان د تعمیرولو په عوض کښې هم په دغه زمکه باندې یو بل مکان د ځان دپاره هم تعمیرول غواړی، آیا دا فعل روا دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جمات په زمکه باندې خپل کور تعمیرول روا نۀ دی۔ والله تعالیٰ اعلم. ۶ ذی قعده ۱۳۹۵ هجری

## په جمات کښې سوال کول

**سوال**:- کله کله په جمات کښې د سلام د ګرځولو نه پس سمدستی څوک سوال کوونکې سوال کوی د کومې د وجې نه چې په دعا کښې خلل راشی،آیا ددې سوال کوونکې منع کول روا دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم سړی سره چې د یو وخت خوراك وی او یا ئې په ګټه باندې قدرت وی، هغه دپاره سوال کول او هغهٔ له څه ورکول دواړه حرام دی، په جمات کښې سوال کول او یا سوال کوونکی ته څه ورکول دوچنده ګناه ده، لهذا په جمات کښې د سوال کوونکی منع کول فرض دی، که منع نهٔ شی نو د جمات نه دې او ۳ویستلې شی، لیکن دا حکم د جمات د منتظمینو یا د هغه خلقو د پاره دې چې هغوی په دې باندې قادر وی، او دا هم ضروری دی چې دا مسئله دې د ټولو مونځ ګذارو په وړاندې ښهٔ واضحه بیان کړې شی. والله تعالیٰ اعلم. ۱۸ ذی الحجه ۱۳۹۵ هجری

## په زړه عیدګاه باندې مدرسه جوړول

**سوال**:- د نوې عیدګاه د جوړیدلو نه پس زړه عیدګاه بالکل شاړه ده، آیا که دا مفته واخستې شی یا د پیسو په عوض واخستې شی او په مدرسه کښې داخله کړې شی نو دا روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې اختلاف دې چې عید ګاه د جمات په حکم کښې ده او که نه، د داسې ضرورت په موقعو باندې قول ثانی انسب دې، او وقف چې غیر وی د جمات نه، نو ددې بدلون په اذن د قاضی سره روا دی.

قال ابن عابدین رحمه الله: اعلم ان الاستبدال علی ثلاثة وجوه الاول ان یشترط الواقف لنفسه او لغیره او لنفسه وغیره فالاستبدال فیه جائز علی الصحیح وقیل اتفاقا والثانی ان لا یشترط سواء شرط عدمه او سکت لکن صار بحیث لا ینتفع به بالکلیة بان لا یحصل منه شیء اصلا او لا یفی بمؤنته فهو ایضا جائز علی الاصح اذا کان باذن القاضی ورایه المصلحة فیه والثالث لا جوز استبداله علی الاصح المختار کذا حرره العلامة قنالی زاده فی رسالته الموضوعة فی الاستبدال واطنب فیها علیه الاستدلال وهو ماخوذ من الفتح ایضا کما سنذکره عند قول الشارح لا یجوز استبدال العامر الا فی اربع ویأتی بقیة شروط الجواز الخ (ردالمحتار ص ۳۹۹ ج ۳)

د ذکر کړې شوی تحقیق مطابق د پریښودلې شوې عیدګاه په ځائې باندې د مدرسې د جوړولو صورت دا کیدې شی، چې ددې عیدګاه په بدله کښې دې د دې د قیمت برابر یا ددې نه د زیات قیمت زمکه چرته په نزدې ښار کښې د عیدګاه د پاره وقف کړې شی، دا بدلون دې په اذن دقاضی وی، او چې قاضی نهٔ وی نو په دې صورت کښې بیا په اتفاق د د مسلمانانو د جماعت سره دې داسې وکړې شی. والله تعالیٰ اعلم ۷ محرم ۱۳۹۶ هجری

## چې محراب د جمات په مینځ کښې نهٔ وی نو صفونه څنګه جوړول پکار دی

**سوال**:- د یو جمات محراب د قبلې اړخ د دیوال نه بالکل په مینځ کښې نهٔ دې، بلکه یو اړخ ته

شپږ، څته او څلور اینچه زیات دي، ظاهره خبره ده چې په دې سره په صفونو کښې فرق راځي، په دې صورت کښې به مونځ صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دا محراب په آسانۍ سره صحیح کیدلې شي نو ښۀ خبره ده، اوکه نه نو همداسې دې پریښودلې شي، لیکن د امام دپاره دا ضروري دی چې محراب پریږدي او دصف په مینځ کښې دې اودریږي. والله تعالیٰ اعلم ۲ ربیع الاٰخر ۱۳۹۶ هجری

## د معتکف په جمات کښې دننه حجامت (یعني ګیره او خطونه وغیره اخستل) جوړول

**سوال**:- د معتکف په جمات کښې دننه ګیره او بریت جوړول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: خپل ګیره او بریت په خپله جوړول روا دي، او په نائي باندې په جوړولو کښې دا تفصیل دې، چې که هغۀ بې د عوض نه کار کوي نو بیا خو په جمات کښې روا دي، او که په عوض باندې کار کوي نو معتکف دې په جمات کښې دننه وي او نائي دې د جمات نه بهر وي او حجامت دې پرې جوړ کړي، په جمات کښې دننه په اجرت باندې کار کول روا نۀ دي. والله تعالیٰ اعلم. ۲۷ ذی قعده ۱۳۹۶ هجری

## د جمات په چت باندې مونځ کول

**سوال**:- د جمات په چت باندې جمع کول څنګه دي؟ چې د ګرمۍ یا د بل څه عذر د وجې نه وي. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جمات په چت باندې جمع کول مکروه دي، برابره خبره ده که دګرمۍ د وجې نه وي او که د بل څه عذر دوجې نه وي، البته که چیرې جمات وړوکې وي نو زیاتي مونځ ګذاره چت ته ختلې شي.

قال فی الهندیة: الصعود علی سطح کل مسجد مکروه ولهذا اذا اشتد الحر یکره ان یصلوا بالجماعة فوقه الا اذا ضاق المسجد فحینئذ لا یکره الصعود علی سطحه للضرورة کذا فی الغرائب (عالمگیریة ص ۳۲۲ ج ۵) والله تعالیٰ اعلم. ۲۳ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## د جمات پکی د امام په کور کښې لګول

**سوال**:- جمات له چا دوه پکي ورکړل، دا پکي د امام صاحب او د مؤذن د اوسیدلو په کور کښې ولګولې شو، آیا داسې کول روا دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا پکی ئې که جمات کښې د لګولو دپاره ورکړې وی، نو دا د جمات نه بهر په څه کار کښې راوستل روا نهٔ دی،او که مطلقې د جمات په نوم باندې ئې ورکړې وی نو بیا روا دی۔ والله تعالیٰ اعلم. ۲۸ رمضان ۱۳۹۷ هجری

## د جمات پیسې په تجارت کښې لګول

**سوال**:- زید متولی دې او بکر ته یې د جمات پیسې په مضاربت باندې ورکړې، چې کومه آمدن راځی هغه به په جمات باندې خرچ کولې شی آیا داسې کول شرعاً صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که د نفعې توقع په کښې غالبه وی نو بیا روا دی۔ والله تعالیٰ اعلم.
۲۲ صفر ۱۳۹۸ هجری

## که په جمات باندې د غلا ګاډر ولګولې شو

**سوال**:- د فرنګی حکومت ګاډر یو سړی د هغوی د اقتدار په وخت کښې پټ کړې وو، دهغهٔ د وفات نه پس د هغهٔ وارثانو دا ګاډر په جمات واچول ، په داسې جمات کښې مونځ روا دې او که نه؟ او که همدغه شان دا صورت د ریل د محکمې په ګاډر کښې راپیښ شی نو د هغې څه حکم دې؟ یعنی د برطانیې د حکومت په وخت کښې یو سړی د ریل د محکمې یو ګاډر راپټ کړو او د هغه د وفات نه پس د هغه وارثانو دا په جمات باندې واچولو ،نو آیا په دې جمات کښې مونځ کول روا دی او که نه؟

آیا په دې صورت کښې داسې وئیل صحیح دی چې ګاډر خو په چت کښې دې،لاندې په زمکه باندې خو د هغې څه اثر نشته دې،لهذا په دې جمات کښې مونځ کول روا دی۔

او آیا دا تاویل هم کیدې شی چې دا ګاډر خو اوس مالك ته نهٔ شی واپس کیدلې ځکه چې حکومت بدل شوې دې،لهذا که اوس دا ګاډر یو فقیرته هبه کړې شی او هغه فقیر ئې جمات ته هبه کړی نو دا روا دی۔ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په داسې جمات کې مونځ کول بلکه د داسې جمات د چت د حصې لاندې داخلیدل هم روا نهٔ دی،د ملك په تقسیمیدلو سره د فرنګی حکومت مال مالِ فئ شو او د پاکستان دحکومت په ملك کښې داخل شو ،لهذا د حکومت نه ددې د اجازت اخستلو نه پس ددې استعمالول روا دی۔ والله تعالیٰ اعلم. ۳ جمادی الاخرة ۱۳۹۸ هجری

## د جمات د جوړولو چنده په غسل خانه وغیر باندې لګول

**سوال**:- یو جمات جوړیږی،د هغې د پاره چنده کیږی،په دغه چنده باندې د جمات د پاره ګودام

یا د امام او مؤذن د پاره کور یا د جمات د پاره غسل خان او د تش اودس ماتی ځایونه وغیره جوړول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غسلخانه او د تش اودس ماتی ځایونه د جمات د مصالحو څخه نهٔ دی، بلکه جمات ته نزدې هم ددې تعمیرول د جمات بې عزتی ده او په عبادت کښې د خلل سبب دې، ددې وجې نه د دې په تعمیر باندې د جمات پیسې لګول روا نهٔ دی،استنجاء خانې هم په حقیقت کښې د تش اودس ماتی ځایونه وی،په دې کښې خلق د استنجاء په بهانه تش اودس ماتی بلکه غټ اودس ماتی پورې هم په کښې وکړی، او د دې بدبوئی بیا جماته پورې رسیږی، ددې وجې نه ددې هم هغه حکم دې کوم چې د تش اودس ماتی د ځایونو ولیکلې شو۔

البته دا باقی څیزونه د جمات په مصالحو کښې داخل دی،ددې وجې نه په دې باندې دجمات د چندې پیسې لګول روا دی،البته دا خبره ده که چا د جمات د پاره د چندې ورکولو په وخت کښې دا تصریح وکړه چې ددې رقم دې صرف په جمات باندې ولګولې شی، نودا بیا په بل مصرف باندې خرچ کول روا نهٔ دی۔ واللہ تعالیٰ اعلم. ۲ شوال ۱۳۹۸ هجری

## نا اهله سړې د انتظامیې مشر جوړول جائز ندی

**سوال**:- د داسې سړی د جمات د انتظامیې صدر جوړول روا دی چې هغهٔ جمات ته د راتلو په ځائې د تانې او قچرئ په مقدمو کښې بند وی، مونځ ګذاره د هغهٔ د دې عمل د وجې نه هغهٔ ته په ښه سترګه نهٔ ګوری، بله دا چې دینی مسئلې په خپل اجتهاد سره د ځانه ځانه جوړوی او بیانوی ئې، امام صاحب په روژه کښې په اعتکاف کښې د ناستې فضائل بیان کړل، لیکن د جمات انتظامیې په جمات کښې اعتکاف دپاره د ناستې څه انتظام و نهٔ کړلو،او دا بهانه ئې وکړه چې دا د محلې جمات نهٔ دې،داسې سړی ته د جمات عهده ورکول،د دهٔ صدر یا سیکرټری جوړول صحیح دی او که نه؟ د عدالتی فیصلې نه وړاندې مونږ شرعی حکم معلومول غواړو۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که عدالت ته د هغهٔ تګ راتګ د څه ناروا معاملې په حقله وی،او د مونځ ګذارو زړهٔ بداوې هم د هغهٔ د بې دینئ یا دجمات نه د بې رغبتئ له کبله دې،نو د داسې سړی د جمات د انتظامیې صدر، ناظم بلکه د انتظامیې رکن جوړول هم روا نهٔ دی،او که دې جوړ شوې وی نو د دهٔ د اصلاح کوشش دې وکړې شی، اوکه نه نو بیا واجب العزل دې۔

قال اللہ تعالیٰ: انما یعمر مساجد اللہ من امن باللہ والیوم الاخر واقام الصلوٰۃ واتی الزکوٰۃ ولم یخش الا اللہ الایۃ. واللہ تعالیٰ اعلم. ۱۳ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د ښځو په جمات کښې مونځ کول مکروه تحریمی دی

**سوال:-** په دې زمانه کښې د ښځو په جمات کښې د جمعې سره مونځ کول څنګه دی؟ په صحیح مسلم کښې په روایت د ابن عمر رضی الله عنهما کښې راغلی دی چې رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو د الله تعالی وینزې جماتونو ته د راتلو نه مه منع کوئ،ددې حدیث نه جواز معلومیږی، لیکن وړاندې هم په صحیح مسلم کښې په روایت د حضرت عائشې رضی الله عنها ممانعت او عدم جواز معلومیږی،په دې دواړو حدیثونو کښې څنګه تطبیق وکړې شی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ښځو جمات ته تګ مکروه تحریمی او منع دی،په دواړو حدیثونو کښې تطبیق ظاهر دې،د حدیث اول نه اباحت لعینه ثابتیږی او د دویم حدیث نه حظر لغیره یعنی د زمانې د فساد د وجې نه په کښې ممانعت دې، هر کله چې د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په دور کښې د ښځو جمات ته تګ منع کړې شو،نو دې د فساد او د فتنې په دور کښې ددې اجازت څنګه ورکړې کیدې شی۔ والله تعالی اعلم۔ ۷ ربیع الاول ۱۳۹۹ هجری

## متولی ته دچندې د نهٔ قبلولو اختیار شته

**سوال:-** یو سړې د جمات په تعمیر کښې د کلی خلقو سره مالی تعاون کوی، لیکن د هغهٔ نه د چندې په اخستلو کښې د امنِ عامه دخرابیدلو اندیښنه ده،آیا د هغه د چندې د اخستلو نه انکار کول روا دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دجمات متولی او منتظم ته دا اختیار شته دې چې د چا چنده د څه دینی مصلحت له کبله قبوله نهٔ کړی۔ والله تعالی اعلم۔ ۹ جمادی اولی ۱۳۹۹ هجری

## د جمات د پاره بیله لاره شرط نهٔ ده

**سوال:-** یو سړی په خپله کارخانه کښې یو جمات تعمیر کړو لیکن دهغې دپاره ئې مستقله لاره وقف نهٔ کړه،آیا دې ځائې ته به شرعی جمات وئیلې شی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا جمات د امام اعظم صاحب او د صاحبینو رحمهم الله ترمینځه مختلف فیه دې، د امام صاحب رحمه الله په نیز د مستقلې لارې متعین کولو نه بغیر وقف نهٔ تمامیږی،او د صاحبینو رحمهما الله تعالی په نیز بیله لاره دوقف د صحت دپاره شرط نهٔ ده،ددې نه بغیر هم وقف صحیح کیږی،او لاره په کښې بې د تصریح کولو نه به په خپله ثابته شی،په قضاء او وقف کښې د امام ابو یوسف رحمه الله قول د فتوی د پاره متعین دې،ددې وجې نه بې د بیلې لارې نه به هم دا ځائې شرعی جمات وګرځی۔

قال فی التنویر وشرحه: ویزول ملکه عن المسجد والمصلی بالفعل وبقوله جعلته مسجدا عند الثانی وشرط

محمد والامام الصلاة فيه بجماعة.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله بالفعل) لكن عنده لا بد من الافراز بطريقه ففي النهر عن القنية جعل وسط داره مسجدا واذن للناس بالدخول والصلوة فيه ان شرط معه الطريق صار مسجدا في قولهم جميعا والا فلا عند ابي حنيفة رحمه الله وقالا يصير مسجدا ويصير الطريق من حقه من غير شرط كما لو اجر ارضه ولم يشترط الطريق اهـ.

وقال تحت (قوله وشرط محمد الخ) وفي الدر المنتقى وقدم في الدرر والوقاية وغيرها قول ابي يوسف رحمه الله وعلمت ارجحيته في الوقف والقضاء اهـ (ردالمحتار ص ۳۸۱ ج ۳) والله تعالى اعلم. ۲۵ جمادى الاخرة ۱۳۹۹ هجرى

## د چندې راوړونکی اجرت هم د دغې چندې نه

**سوال:**- په ډیرو ځایونو کښې داسې کیږی چې د چندې د راوړلو دپاره یو سړې مقرر کړې شی، بیا هم د دغه چندې نه څه مقرره حصه مثلا، څلورمه حصه، دریمه یا د حصې مقرر کولو نه بغیر د حق الخدمة په عنوان سره هغهٔ ته څه ورکړې شی، ددې شرعی حکم څه دې؟ په ظاهره خو دا ناروا معلومیږی، ځکه چې د چندې ورکوونکی خو د جمات د تعمیر او مرمت د پاره چنده ورکوی. لهذا د اجرت یا حق الخدمة د هغوی د منشاء او د رضا خلاف دې، بله دا چې حصه ورله مقررولې شی او ورکولې شی نو دا د قفیز طحان سره مشابه شوه، کومه چې په ټولو کتابونو د فقهې کښې ناروا ښودلې شوې ده، په دې باندې لږه تفصیلي رڼا واچوئ.

او که چیرې چنده د جمات د تعمیر او مرمت د پاره نهٔ وی، یواځې د جمات د مصالحو دپاره وی، نو د سفیر دا اجرت بیا په مصالحو کښې داخیدلې شی او که نه؟

په عالمگیریه کتاب الوقف کښې تصریح ده، چې قیم د جمات مال په مشرف باندې نهٔ شی خرچ کولې، همدغه شان که قیم د حساب کتاب نه عاجز وی، نو د کاتب اجرت هم د جمات د مال نه اخستل صحیح نهٔ دی، ددې نه خو هم دا معلومیږی، چې دا د چندې اجرت هم روا نهٔ دې بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د جمات د پاره د چندې د جمع کولو اجرت برابره خبره ده که هغه مقرر کړې شوې وی او که دحق الخدمة په عنوان سره وی، بهر کیف هغه هم اجرت دې، د نوم په بدلولو باندې د څیز حقیقت نهٔ بدلیږی.

كما ورد في الحديث: انهم يسمون المحرمات بغير اسمها ويستحلونها.

بهر حال: د حق الخدمة په عنوان چې کوم اجرت ورکولې شی، دا په اجرت کښې د جهالت د

وجې نه اجاره فاسده ده ددې وجې نه ناروا دې.

او که په جمع کړې شوې اجرت کښې د هغهٔ اجرت مقرر کړې شي،نو دا هم ناروا دی،ځکه چې اجیر قادر علی العمل نهٔ دې.

البته دا خبره ده چې که مطلقاً د هغهٔ تنخو مقرره کړې شي برابره خبره ده که چنده وشي او که ونهٔ شي او که لږه وشي او که ډیره وشي نو دا صورت بیا روا دې.

د عالمگیریې د کومې جزئیې چې په سوال کښې حواله ورکړې شوې ده،په هغې کښې دا هم تصریح ده چې هغه مال دې وقف لعمارة المسجد وی.

**لیس للقیم ان یتخذ من الوقف علی عمارة المسجد مشرفا من ذلك(۳۶۲ ج ۲)**

په دویمه جزئیه کښې هم د مال المسجد نه مراد هم دا وقف لعمارة المسجد معلومیږی،لهذا د چندې اخستونکی اجرت هم ددې چندې نه ادا کول روا دی په دې شرط چې هم په دې د چندې رقم کښې ئې ورله څه حصه نهٔ وی شرط کړې،اوکه نه نو بیا به دا اجاره فاسده شي، **کمامر والله تعالی اعلم.**

**۲۵ ربیع الثانی ۱۴۰۰ هجری**

## جمات ته تاله اچول

**سوال:**- ۱- جمات ته د مونځ د وختونو نه بغیر تاله اچول روا دی او که نه؟

۲ - که چرې د دوو ډلو(مثلا دیوبندیانو او بریلیانو) جگړه وشي، نو ددې ویرې نه چې دا جگړه نوره زیاته نهٔ شي د حکومت یا د انتظامیې جمات ته تاله اچول روا دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:**

۱ - اصل حکم خو دا دې چې جمات دې ۲۴ ساعته لرې وی، دې د پاره چې که څوك مسلمان څه وخت هم عبادت د پاره راځی چې هغهٔ ته څه تکلیف نهٔ وی، لیکن نن صبا د جمات په هر وختې لرې ساتلو کښې ډیر مفاسد دی: **مثلاً:**

۱ - د جمات سامان غلا شي.

۲ - خلق د جمات نه اوبه ډکوی او وړی ئې.

۳ - ډیر بیکاره بې روز گاره خلق راشي او په جمات کښې ویده شي،او پکی ځان ته ولگوی او څو څو ساعته پورې پراتهٔ وی.

۴ - ډیر خلق فارغ کښینی او د د نیا خبرې شروع کړی.

ددې مفاسدو مخ نیوې ددې نه بغیر ممکنه نهٔ دې چې د مونځونو د وختونو نه علاوه دې په نورو وختونو کښې جمات بند وساتلې شي.

۲- د مجبورئ او د اضطرار په وخت کښې داسې کول روا دی، لیکن په داسې حالاتو کښې د

تولې محلې دا فرض دی چې حالات دې معمول ته راولی او د جمات د لرې کولو کوشش دې وکړی، د جمات داسې شاړ پاتې کیدل د تولې آبادئ د پاره د الله تعالی د خفګان سبب دې . **والله تعالیٰ اعلم** **۲۴ جمادی الاولی ۱۴۰۰ هجری۔**

## په جمات کښې د ورک شوی څیز اعلان کول

**سوال:**- د ورك شوی څیز اعلان په جمات کښې روا دې او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې مسئله کښې څه علماؤ ته اشتباهات را پیښ شوې دی د دې وجې نه د دې مسئلې پوره تفصیل وړاندې کولې شی۔

**د ورک شوی څیز په جمات کښې د اعلان کولو څلور صورته دی:**

۱- د جمات نه بهر ورك شوې وی.

۲- د جمات نه بهر موندلې شوې وی.

۳- په جمات کښې ورك شوې وی.

۴- په جمات کښې موندلې شوې وی.

## نصوص المذاهب الاربعة

**حنفیه رحمهم الله تعالی:-**

۱ – قال الامام المرغینانی رحمه الله: وینبغی ان یعرفها فی الموضع الذی اصابها وفی المجامع فان ذلك اقرب الی الوصول الی صاحبها. (الهداية ص ۶۱۳ ج ۱)

۲ – قال الامام السرخسی رحمه الله: وجد رجل لقطة ایام الحج فسال عنها عبدالله بن عمر رضي الله عنه فقال عرفها فی الموسم (الی) وفی هذا دلیل علی انه ینبغی للملتقط ان یعرفها فی الموضع الذی اصابها فیه و ان یعرفها فی مجمع الناس ولهذا امره بالتعریف فی الموسم وهذا لان المقصود ایصالها الی صاحبها و ذلك بالتعریف فی مجمع الناس فی الموضع الذی اصابها حتی یتحدث الناس بذلك بینهم فیصل الخبر الی صاحبها (الی) و انه ینبغی ان یعرفها فی الموضع الذی وجدها لانه صاحبها یطلبها فی ذلك الموضع (المبسوط ص ۶ ج ۳)

۳ – قال الحافظ العینی رحمه الله: (قوله فی المجامع) ای مجمع الناس كالاسواق وابواب المساجد وفی الشامل و التعریف ان ینادی فی الاسواق والمساجد الخ (البنایة ص ۹۲۷ ج ۲)

۴– قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: قال فی الجوهرة ثم التعریف انما یکون جهرا فی الاسواق و فی ابواب

المساجد وف بالموضع الذی وجدها فیه وفی الجامع (البحر ص ۱۵۲ ج ۵)

۵ - قال العلامة الحموی رحمۃ اللہ علیہ: ثم تعریف اللقطة هو المناداة فی الاسواق والمساجد والشوارع لان المقصود من التعریف وصوله الی المالك والتعریف فی هذه المواضع ابلغ (الاشباه والنظائر ص ۲۹۷ ج ۱)

۶ - قال العلامة الطحطاوی رحمۃ اللہ علیہ: (قوله فی المجامع) ای مجامع الناس کالمساجد والاسواق والشوارع الا انه ینادی علی ابواب المساجد لا فیها (حاشیة الطحطاوی علی الدر ص ۵۰۱ ج ۲)

۷ - قال الشیخ الانور رحمۃ اللہ علیہ: و اما انشاد الضالة فله صورتان احداهما ان ضل شیء فی خارج المسجد و ینشده فی المسجد لاجتماع الناس فهو اقبح و اشنع و اما لو ضل فی المسجد فیجوز الانشاد بلا شغب. (العرف الشذی ص ۱۶۲)

۸ - قال الشیخ محمد زکریا رحمۃ اللہ علیہ: و اما مکانه و هو الاسواق و ابواب المساجد والجوامع فی الوقت الذی یجتمعون فیه کادبار الصلوات فی المساجد و کذلك فی مجامع الناس لان المقصود اشاعة ذکرها و اظهارها لیظهر علیها صاحبها فیجب تحری مجامع الناس و لا ینشدها فی المسجد لان المسجد لم یبن لهذا (اوجز المسالك ص ۲۹۸ ج ۱۳)

۹ - فی المدونة الکبری للامام مالك بن انس رحمۃ اللہ علیہ: (قال) ما سمعت من مالك فیها شیئا ولکنی اری ان تعرف فی الموضع الذی التقطت فیه و حیث یظن ان صاحبها هناك و حدیث عمر بن الخطاب رضی اللہ عنہ ان قال له رجل نزلت منزل قوم بطریق الشام فوجدت صرة فیه ثمانون درهما فذکرتها لعمر بن الخطاب رضی اللہ عنہ فقال له عمر رضی اللہ عنہ عرفها علی ابواب المساجد فاری ان یعرف اللقطة من التقطها علی ابواب المساجد و فی موضعها و حیث یظن ان صاحبها هناك (المدونة الکبری ص ۱۷۳ ج ۱۵)

۱۰ - قال امام المالکیة الشهیر بالحطاب رحمۃ اللہ علیہ: قال فی المدونة و تعرف اللقطة حیث وجدها و علی ابواب المساجد و حیث یظن ان ربها هناك او خبره انتهی و فی سماع اشهب من کتاب اللقطة و سالته یعنی مالکا رضی اللہ عنہ عن تعریف اللقطة فی المساجد فقال لا احب رفع الصوت فی المساجد و قد بلغنی ان عمر بن الخطاب رضی اللہ عنہ امر ان تعرف اللقطة علی ابواب المساجد و احب الی ان لا تعرف فی المساجد و لو مشی هذا الی الخلق فی المساجد یخبرهم بالذی وجد و لا یرفع صوته لم ار بذلك باسا اه قال ابن الحاجب فی الجوامع والمساجد قال فی التوضیح ظاهره ان التعریف یکون فیها و لعل ذلك مع خفض الصوت و یحتمل ان یکون علی حذف مضاف ای باب الجوامع

والمساجد وهو احسن لانه كذلك فى المدونة وغيرها وللحديث انتهى (المواهب الجليل ص ۷۳ ج ۲)

۱۱ - قال العلامة الخرشى رحمۃ اللہ علیہ: ان تعريف اللقطة انما يكون بالمواضع التى يظن بها و يقصد ان يطلبها اربابها فيها كابواب المساجد وما اشبه ذلك واما داخل المسجد فانه لا يعرفها فيه و يجب على الملتقط ان يعرفها الخ (الخرشى ص ۱۲۵ ج ۶)

۱۲ - قال العلامة صالح عبد السميع الابى الازهرى رحمۃ اللہ علیہ: ويكون التعريف بمظان اى المواضع التى يظن ان صاحب اللقطة يطلبها بها بكباب مسجد ومواضع العامة واجتماع الناس (جواهر الاكليل ص ۲۱۸ ج ۲)

۱۳ - قال خاتمة المحققين الشيخ محمد عليش رحمۃ اللہ علیہ: (بكباب مسجد) فيها يعرف اللقطة حيث وجدها و على ابواب المساجد ابن القاسم يعرف حيث يعلم ان صاحبها هناك (الى ان قال) فقال ما احب رفع الصوت فى المساجد وانما امر عمر رضی اللہ عنہ ان تعرف على باب المسجد ولو مشى هذا الذى وجدها الى الخلق فى المسجد يخبرهم بها ولا يرفع صوته لم اربه باسا وفى التمهيد التعريف عند جماعة الفقهاء فيما علمت لا يكون الا فى الاسواق وابواب المساجد ومواضع العامة واجتماع الناس. (شرح منح الجليل ص ۱۲۱ ج ۴)

**شافعيه رحمهم الله تعالى:-**

۱۴ - قال العلامة القسطلانى رحمۃ اللہ علیہ: ويكون فى الاسواق و مجامع الناس و ابواب المساجد عند خروجهم من الجماعة ونحوها لان ذلك اقرب الى وجود صاحبها لا فى المساجد كما لا تطلب اللقطة فيها، نعم يجوز تعريفها فى المسجد الحرام اعتبارا بالعرف و لانه مجمع الناس و قضية التعليل ان مسجد المدينة والاقصى كذلك و قضية كلام النووى فى الروضة تحريم التعريف فى بقية المساجد (الى ان قال) اما لو سال الجماعة فى المسجد بدون ذلك فلا تحريم ولا كراهة ويجب التعريف فى محل اللقطة (شرح القسطلانى ص ۲۴۰ ج ۴)

۱۵ - قال العلامة الرملى الشهير بالشافعى الصغير رحمۃ اللہ علیہ: ثم يعرفها فى الاسواق وابواب المساجد عند خروج الناس منها لانه اقرب الى وجدانها ويكره تنزيها كما فى المجموع لا تحريما خلافا لجمع مع رفع الصوت بمسجد كانشادها فيه الا المسجد الحرام. (نهاية المحتاج الى شرح المنهاج ص ۴۳۷ ج ۵)

**حنابله رحمهم الله تعالى:-**

۱۶ - قال العلامة ابن قدامة رحمۃ اللہ علیہ: فى مكانه وهو الاسواق وابواب المساجد والجوامع مع الوقت الذى يجتمعون فيه كادبار الصلوات فى المساجد و كذلك فى مجامع الناس لان المقصود اشاعة ذكرها و اظهارها ليظهر عليها صاحبها فيجب تحرى مجامع الناس و لا ينشدها فى المسجد لان المسجد لم يبن لهذا و قد روى

ابوهریرة ﷺ عن النبی ﷺ انه قال (من سمع رجلا ینشد ضالة فی المسجد فلیقل لا ردها الله الیك فان المساجد لم تبن لهذا) وامر عمر ﷺ واجد اللقطة بتعریفها علی باب المسجد (المغنی ص۵۰ ج۶)

۱۷- قال الامام برهان الدین ابراهیم بن محمد رحمه الله: تحت قول المقنع (بالنداء علیه فی مجامع الناس کالاسواق وابواب المساجد فی اوقات الصلوات) وروی عن عمر ﷺ انه امر واجد اللقطة لتعریفها علی ابواب المساجد وعلم منه ان لا یفعل ذلك فی المسجد وان کان مجمع الناس بل یکره وفی عیون المسائل لا یجوز (المبدع شرح المقنع ص۱۸۱ ج۵)

۱۸- قال شیخ الاسلام موسی الحجاوی المقدسی رحمه الله: وتعریفه علی الفور حیوانا کان او غیره بالنداء علیه بنفسه او بنائبه فی مجامع الناس کالاسواق والحمامات وابواب المساجد ادبار الصلوات ویکره فیها ویکثر منه فی موضع وجدانها (الاقناع ص۴۰۰ ج۲)

۱۹- وقال ایضا (وطریقه التعریف) ویکون التعریف بالنداء علیه ای الملتقط بنفسه ای الملتقط بنائبه ویکون النداء فی مجامع الناس کالاسواق والحمامات وابواب المساجد ادبار الصلوات لان المقصود اشاعة ذکرها ویکره النداء علیها فیها ای فی المساجد لحدیث ابی هریرة ﷺ مرفوعا من سمع ینشد ضالة الخ والانشاد دون التعریف فهو اولی ویکثر منه ای التعریف فی موضع وجدانها لانه مظنة طلبها (کشاف القناع من متن الاقناع ص۲۱۶ ج۴)

۲۰ - قال البهوتی رحمه الله: وانشاد الضالة ای تعریفها ونشدانها ای طلبها ویسن لسامعه ای سامع نشدان الضالة ان یقول لا وجدتها ولا ردها الله علیك لحدیث ابی هریرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من سمع رجلا ینشد ضالة فی المسجد فلیقل لا ردها الله علیك ان المساجد لم تبن لهذا رواه مسلم (کشاف القناع ص۳۶۹ ج۲)

د پورته نصونو نه د اولنی او د دویم صورت عدم جواز واضحه دې، د دریم او د څلورم صورت په حقله مې څه حتمی فیصله د نظر لاندې تیره نهٔ شوله، د کتابونو د مراجعې او د رسول الله ﷺ د فرمائیلې شوی تعلیل (ان المساجد لم تبن لهذا) نه معلومیږی چې د دې اعلان دې هم د جمات په دروازه باندې وکړې شی۔

د پورته عبارتونو نه د کومو نه چې د بازارونو او د مجامعو سره سره د جماتونو ذکر هم دې، د هغې نه د جواز شبه کیږی، لیکن دا د لاندې وجوهو له کبله صحیح نهٔ دی:

۱- دا د ممانعت د نورو تصریحاتو نه خلاف دی.

۲- بعضو په خپله ددې نه د جماتونو د دروازو د مرادیدلو تصریح فرمائیلې ده لکه څنګه چې

طحطاوی علی الدر او په اوجز المسالك کښې دی.

۳ - علامه خطاب رحمه الله د (توضیح) نه ددې توجیه دا نقل فرمائیلې ده،چې دا عبارتونه په حذف د مضاف باندې محمول دی،او ددې نه هم ابواب المساجد مراد دی.

البته بې د اعلان کولو نه انفراداً د خلقو نه پښتنه کول،یا د لقطې د وجدان خبر ورکول بې د څه شك شبې نه روا دی، کما مر عن مواهب الجلیل نص الامام مالك رحمه الله و کذا عن شرح القسطلانی والعرف الشذی، هسې هم دا د دنیاوی کلام کښې راځی،او دنیاوی خبرې ضرورتاً په جمات کښې روا دی.

## خبرداری

په ذکر کړې شوې روایتونو کښې په بعضو کښې په مساجدِ ثلاثه کښې ضرورتاً د انشاد جواز لیکلې شوې دې، لیکن اوس د حکومت له اړخه د معقول انتظام کیدلو له کبله دا ضرورت نه پاتې کیږی ، لهذا په دې کښې هم روا نهٔ دی.

په نورو جماتونو کښې هم داسې انتظام کول لازمی دی،چې د ورك شوی څیز د رسولو او د اخستلو د پاره څه متعین کړې شی،د دې تدبیر په اختیارولو به جماتونه د هر وختې د اعلانونو د شور زوږ نه محفوظ پاتې شی، په تانه کښې همداسې کیږی، هلته څه اعلان نهٔ کیږی،افسوس دې چې د نن زمانې د مسلمانانو په زړونو کښې د الله تعالی د کور عظمت د پولیس د تانې هومره هم پاتې نهٔ شو ، والله الهادی الی سبیل الرشاد ۱۹ صفر ۱۴۱۴ هجری

# کتاب البیوع

﴿ فِي بُيُوتٍ أَذِنَ ٱللَّهُ أَن تُرْفَعَ وَيُذْكَرَ فِيهَا ٱسْمُهُۥ يُسَبِّحُ لَهُۥ فِيهَا بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْآصَالِ ﴿٣٦﴾ رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ وَإِقَامِ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءِ ٱلزَّكَوٰةِ يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ ٱلْقُلُوبُ وَٱلْأَبْصَٰرُ ﴿٣٧﴾ لِيَجْزِيَهُمُ ٱللَّهُ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا۟ وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٨﴾ ﴾ (۲۴ : ۳۶ نه تر ۳۸)

# کتاب البیوع

## زمکه داسې خرڅول چې مشتري به ددې په عوض کښې بائع له سرکاري زمکه په بیعه اخلي او ورکوي به ئې

**سوال:**- د یو سړي څه زمکه ده، هغه یو سړي ته اووئیل چې فلانئ سرکاري زمکه واخله او ما له ئې راکړه، د دې په مقابله کښې به زه خپله زمکه تاله درکړم یا درمې کړه، دې دویم سړي دا خبره قبوله کړه، او سرکاري زمکه ئې هغهٔ له ورکړه، د دې نه پس دواړه په بدله کړې شوې زمکه باندې قابض وو، اوس په دې کښې یو سړې د دې معاملې نه واړیدلو. آیا دا اوړیدل د معاملې نه شرعا روا دی او که نه؟ او دا بیع شرعا روا شوې ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په دې کښې دا تفصیل دې چې که لفظ د (درکړم) ئې وئیلې وو، نو دا بیع نهٔ شوه. بلکه فقط د بیعې وعده شوه، هر کله چې هغهٔ دا زمکه واخستله او دې بل له ئې ورکړه او د هغهٔ په زمکه ئې په خپله قبضهٔ وکړه نو بیعه بالتعاطی وشوله.

قال فی التنویر: ویکون بقول اوفعل (الی ان قال) اما الفعل فالتعاطی فی نفیس وخسیس (ردالمحتار ص ۵ ج ۴)

او که (در مې کړه) ئې وئیلې وی، نو دا بیعه باطله شوه، وروستو په تعاطی سره هم نهٔ صحیح کیږي.

قال فی الشامية: فی فصل فی الفضولی تحت (قوله الا فی هذه الخمسة) قلت ویزاد ما فی جامع الفصولین باع ملك غیره فشراه من مالکه وسلم الی المشتري و البیع باطل لا فاسد وانما یجوز اذا تقدم سبب سبب ملکه علی بیعه حتی ان الغاسب لو باع المغصوب ثم ضمنه المالك جاز بیعه اما لو شراه الغاصب من مالکه او وهبه له

اوورثه منه لا ینفذ بیعه قبله (الی قوله) فهاتان مسالتان الخ (ردالمحتار ص۱۵۳ ج۴)

وقال الرافعی رحمۃ اللہ علیہ (قوله فهاتان مسالتان الخ) فیه ان هاتین المسالتین لیستا مما نحن فیه اذهو فی بطلان بیعه ابتداءً والبطلان فیهما بطریق الطرو للبات علی الموقوف (التحریر المختار ص۱۳۷ ج۲)

وایضا فی الشامیة فی مطلب اذا طرا ملك بات علی موقوف ابطله. واما عدم نفاذ البیع فلبطلانه بالاجازة لانه یثبت بها الملك للمشتری باتا والملك البات اذا ورد علی الموقوف ابطله وکذا لو وهبه مولاه للغاصب او تصدق به علیه او مات فورثه فهذا کله یبطل الملك الموقوف واورد علیه ان بیع الغاصب ینفذ باداء الضمان مع انه طرا ملك بات للغاصب علی ملك المشتری الموقوف واجیب بان ملك الغاصب ضروری ضرورة اذا الضمان فلم یظهر فی ابطال ملك المشتری بحر واجاب فی حواشی مسکین بان هذا غیر وارد لان الاصل المذکور لیس علی اطلاقه لما فی البزازیة عن القاعدی ونصه الاصل ان من باشر عقدا فی ملك الغیر ثم ملك ینفذ لزوال المانع کالغاصب باع المغصوب ثم ملك وکذا لو باع ملك ابیه ثم ورثه نفذ وطرو البات انما یبطل الموقوف اذا حدث لغیر من باشر الموقوف کما اذا باع المالك ما باعه الفضولی من غیر الفضولی ولو ممن اشتری من الفضولی اما ان باعه من الفضولی فلا اهـ (ردالمحتار ص۱۵۹ ج۴)

وقال الرافعی رحمۃ اللہ علیہ : (قوله واجاب فی حواشی مسکین الخ) ما فی حواشی مسکین لا یوافق ما مشی علیه فی الفصولین من التفصیل وهو جواز بیع الغاصب بالاجازة له وبتقدیم سبب ملکه علی بیعه وعدم جوازه اذا تاخر ومقتضی ما فی حواشی مسکین ایضا جواز البیع الثانی باجازة المالك الاول لان البات حدث لمن باشر الثانی الذی هو المشتری الاول ومخالف لما فی المصنف من عدم جواز الثانی باجازة الاول ومقتضاه ایضا انه لو ضمن الغاصب نفذ البیع الاول وهو موافق لما فی الفصولین ومخالف لکلام المصنف وانه لو ضمن المشتری منه ینفذ الثانی لطرو الملك البات لمباشرة وهو غیر سلم لمخالفة للمصنف فالظاهر الجواب الذی فی البحر العدم مخالفته ما فی المتون الخ (التحریر المختار ص۱۳۹ ج۲)

د بیعې باطلې یا فاسدې نه پس په تعاطی سره بیعه نهٔ صحیح کیږی.

قال فی العلائیة: (وصرح فی البحر بان ایجاب والقبول بعد عقد لا ینعقد بهما البیع قبل متارکة الفاسد ففی بیع التعاطی بالاولی.

وفی الشامیة: (قوله کما لو کان) ای البیع بالتعاطی بعد عقد فاسد وعبارة الخلاصة اشتری رجل (الی قوله) لا یصیر هذا بیعا بالتعاطی لانهما یسلمان بحکم ذلك البیع السابق وانه وقع باطلا اهـ وعبارة البزازیة والتعاطی

انما یکون بیعا اذا لم یکن بناءً علی بیع فاسد او باطل سابق اما اذ کان بناءً علیه فلا اه (در المحتار ص ۱۲ ج ۴)
والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳ رجب ۱۳۷۲ هجری

## د احتکار تحقیق

دا په کتاب الحظر والاباحة کښې شته دې.

## په دې شرط باندې ئې زمکه خرڅه کړه چې د مشتری په نوم د انتقال کیدلو د وخته پورې به ددې زمکې فصل بائع اخلی

**سوال:-** شاه محمد په حاجی نور محمد باندې په دې شرط دولس جیربه زمکه خرڅه کړه چې تر څو پورې د زمکې د انتقال منظوری نۀ وی راغلې، نو تر هغه وخته پورې به د پیداوار حق دار شاه محمد وی، آیا دا بیع صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب:** په دې صورت کښې د فاسد شرط د راوستلو د وجې نه دا بیع فاسده شوه.

قال فی التنویر فی بیان البیع الفاسد: وبیع بشرط لا یقتضیه العقد ولا یلائمه وفیه نفع لاحدهما او لمبیع من اهل الاستحقاق ولم یجر العرف به ولم یرد الشرع بجوازه کشرط ان یقطعه ویخیطه قباء او یستخدمه شهرا او یعتقه الخ

وفی الشامیة: (قوله مثال لما فیه نفع للبائع) ومنه ما لو شرط البائع ان یهبه المشتری شیئا او یقرضه او یسکن الدار الخ (ردالمحتار ص ۱۳۶ ج ۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۵ محرم ۱۳۷۳ هجری

## په ټیکې باندې د ورکړې شوې زمکې بیع موقوفه ده

دا مسئله په کتاب الاجاره کښې شته.

## د مکیلاتو او موزوناتو بیع بالجنس کول

دا مسئله له باب الربا والقمار کښې شته.

## د آزادې ښځې خرڅول حرام دی

**سوال:-** نن صبا د سنده په علاقه کښې عموما ښځې په بیعه اخستلې شی او بیا ورسره نکاح کولې شی، آیا شرعاً دا اخستل او خرڅول صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب:**

د آزاد سړی او ښځې بیعه ناروا ده او د دې په عوض کښې څه حاصلول حرام دی.

قال رسول الله ﷺ قال الله ثلاثة انا خصمهم یوم القیامة رجل اعطی بی ثم غدر و رجل باع حرا فاکل ثمنه و رجل استاجر اجیرا فاستوفی منه ولم یعط اجره (بخاری)

وفی الشامیة: وشرط المعقود علیه ستة کونه موجودا مالا متقوما مملوکا فی نفسه و کون الملک للبائع فیما یبیعه لنفسه و کونه مقدورا التسلیم فلم ینعقد بیع المعدوم و ماله خطر العدم کالحمل و اللبن فی الضرع والثمر قبل ظهوره و هذا العبد فاذا هو جاریة و لا بیع الحر والمدبر و ام الولد والمکاتب و معتق البعض الخ (ردالمحتار ص۲ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۹ ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## قبل الدباغ د مردار ځناور د څرمنې بیعه باطله ده

**سوال:**- د مردار ځناور نه چې څرمن وه ویستلې شی او لا نۀ وی رنګ کړې شوې نو ددې څرمنې خرڅول او ددې ثمن اخستل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: قبل الدباغ د مردار ځناور د څرمنې خرڅول روا نۀ دی، دا بیعه باطله ده او ددې نه حاصلې کړې شوې پیسې حرامې دی.

قال فی شرح التنویر فی باب البیع الفاسد: وجلد میتة قبل الدبغ لو بالعرض ولو بالثمن فباطل الخ

وفی الشامیة: (قوله لو بالعرض الخ) ای ان بیعه فاسد لو بیع بالعرض و ذکر فی شرح المجمع قولین فی فساد البیع و بطلانه قلت وما ذکره الشارح من التفصیل یصلح توفیقا بین القولین لکنه یتوقف علی ثبوت کونه مالا فی الجملة کالخمر و المیتة لا بحتف انفها مع ان الزیلعی علل عدم بیعه بان نجاسته من الرطوبة المتصلة به باصل الخلقة فصار فی حکم المیتة زاد فی الفتح فیکون نجس العین بخالف الثوب او الدهن المتنجس حیث جاز بیعه لعروض نجاسة و هذا یفید بطلان بیعه مطلقا و لذا ذکر فی الشرنبلالیة عن البرهان ان الاظهر البطلان تامل (ردالمحتار ص۱۲۷ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶ جمادی الآخر ۱۳۷۴ هجری

## د حکومت له اړخه د ټاکلی نرخ نه په زیات باندې اخستل خرڅول

دا په کتاب الحظر والاباحة کښې شته.

## حرام مال سره اخستلې شوې سامان هم حرام دې

دا په کتاب الحظر والاباحة کښې شته.

## په تالاب کښې د مهی بیع جائزه نه ده

**سوال:**- په تالاب کښې د مهیانو بیعه روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب ومنه الصدق والصواب:** که چرې دا تالاب د اول نه مهیانو د پاره نۀ وی جوړ کړې شوې، یا مالك په خپله په دې کښې مهیان نۀ وی پریښودې، نو دا مهیان د تالاب د مالك ملکیت نۀ دې او د غیر مملوك څیز بیعه باطله ده۔

او که د اول نه دا تالاب د مهیانو د نیولو د پاره تیار کړې شوې وی، یا په دې کښې دا مهیان په خپله مالك پریښودلی وی یا د نهر وغیره نه دا مهیان تالاب ته راغلل او د تالاب مالك د دې تالاب لاره بنده کړه او مهیان ئې محبوس کړل نو دا مهیان بیا د دۀ ملکیت وګرځیدل، لیکن د غیر مقدور التسلیم کیدلو له کبله دا بیعه فاسده ده۔ البته که تالاب دومره وړوکې وی چې بې د څه تکلیف او حیلې د دې نه مهیان نیولې کیدې شی او د مهیانو مقدار هم معلوم وی نو بیا بیعه صحیح ده۔

قال فی الشرح التنویر: وبیع ما لیس فی ملکه لبطلان بیع المعدوم وماله خطر العدم لا بطریق السلم فانه صحیح.

وایضا فیه: وفسد بیع سمك لم یصد (الی قوله) او صید ثم القی فی مکان لا یؤخذ منه الا بحیلة للعجز عن التسلیم وان اخذ بدونها صح وله خیار الرؤیة الا اذا دخل بنفسه ولم یسد مدخله فلو سده ملکه (الی قوله) و بیع طیر فی الهواء ولا یرجع بعد ارساله من یده اما قبل صیده فباطل اصلاً لعدم الملك.

وفی الشامیة تحت (قوله وفسد بیع سمك لم یصد الخ) وفیه ان بیع ما لیس فی ملکه باطل کما تقدم لانه بیع المعدوم والمعدوم لیس بمال فینبغی ان یکون بیعه باطلا.

وایضا فیها: (قوله فو سده ملکه) ای فیصح بیعه ان امکن اخذه بلا حیلة و الا فلا لعدم القدرة علی التسلیم والحاصل کما فی الفتح انه اذا دخل السمك فی حظیرة فاما ان یعدها لذلك اولا ففی الاول یملکه ولیس لاحد اخذه ثم ان امکن اخذه بلا حیلة جاز بیعه لانه مملوك مقدور التسلیم و الا لم یجز لعدم القدرة علی التسلیم وفی الثانی لا یملکه فلا یجوز بیعه لعدم الملك الا ان یسد الحظیرة اذا دخل فحینئذ یملکه ثم ان امکن اخذه بلا حیلة جاز بیعه و الا فلا وان لم یعدها لذلك لکنه اخذه و ارسله فیها ملکه فان امکن اخذه بلا حیلة جاز بیعه لانه مقدور التسلیم او بحیلة لم یجز لانه و ان کان مملوکا فلیس مقدور التسلیم اه (رد المحتار ص۱۱۸ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۲ جمادی الاولی ۱۳۷۵ هجری

## د مسلم فیه د ورکولو نه د عجز حکم

**سوال**:- یو سړی بیع سلم یوه روپۍ د یوې کاسې په حساب سره وکړه.اوس په ټاکلی شوی وخت باندې د غریبۍ د وجې نه د مبیع په ورکولو باندې قادر نهٔ دې.نو رب السلم د دهٔ نه دوه روپۍ د یوې کاسې په حساب سره ثمن اخستل غواړی.آیا شرعا د دهٔ د پاره دا فعل روا دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: که د ټاکلی شوی وخته پورې مسلم الیه مسلم فیه ادا نهٔ کړې شو، نو ددې په عوض کښې څه بل څه څیز اخستل یا د ثمن نه زیات اخستل روا نهٔ دی.لهذا مشتری له پکار دی چې د یسر پورې بائع له مهلت ورکړی او یا دې ترې نه خپل ثمن واپس واخلی. د بائع په رضا سره هم استبدال یا د ثمن نه زیات اخستل روا نهٔ دی.

قال فی الهندیة: ولا یجوز الاستبدال بالمسلم فیه (عالمگیریة ص۱۸۶ ج۳)

وقال فی شرح التنویر: ولو انقطع بعد الاستحقاق خیر رب السلم بین انتظار وجوده والفسخ واخذ راس ماله. (در المحتار ص۲۳۸ ج۴)

وایضا فیه: ولا یجوز التصرف للمسلم الیه فی راس المال ولا لرب السلم فی المسلم فیه قبل قبضه بنحو بیع وشرکة ومرابحة وتولیة ولو ممن علیه (الی قوله) لقوله علیه الصلوة والسلام لا تأخذ الا سلمك او راس مالك ای الا سلمك حال قیام العقد او راس مالك حال انفساخه فامتنع الاستبدال.

وقال ابن عابدین رحمه الله: وتقدم اول فصل التصرف فی المبیع ان بیع المنقول من بائعه قبل قبضه لا یصح ولا ینتقض به البیع الاول بخلاف هبته منه لانها مجاز عن الاقالة (ردالمحتار ص۲۳۳ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۸ **شوال ۱۳۷۳ هجری.**

## د بیع سلم ځینی شرطونه

**سوال**:- یو سړی خپل فصل په دې طریقه باندې خرڅ کړو چې د دې نه څومره غنم ترلاسه شی نو هغهٔ یو من به د شلو روپو په حساب سره وی.مشتری په وخت باندې ثمن ادا نهٔ کړې شو.آیا دا بیعه صحیح ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: دا بیع سلم ده او په دې کښې د بیعې مقدار،او د ادا کولو د وخت ټاکل. ورسره دا چې ټول ثمن په مجلس د عقد کښې ادا کول شرط دی.کوم سوال چې پوښتلې شوی دې په هغې کښې دا درې واړه شرطونه نشته دې.لهذا دا بیع صحیح نهٔ شوه، بلکه دا چې په بیع سلم کښې مبیع د یو خاصې زمکې سره او فصل سره مقیّد کول روا نهٔ دی.

قال فی التنویر: وشرطه بیان جنس ونوع وصفة وقدر واجل واقله شهر (الی ان قال) وقبض راس المال

قبل الافتراق وهو شرط بقائه على الصحة لا شرط انعقاده بوصفها.

وفي الشرح: فينعقد صحيحا ثم يبطل بالافتراق بلا قبض (ردالمحتار ص۲۲۰ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۹ ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## د مردار خناور د بد بوئی کوونکی هډوکی بیع روا ده

**سوال:** د مردار خناور د هډوکو بیع کول بالخصوص د داسې هډوکی بیع کول چې په هغې کښې بدبوئی او وګم وی روا ده او که ناروا؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا بیع روا ده.

قال الامام قاضیخان رحمه الله: وبیع جلود المیتات باطل اذا لم تکن مذبوحة او مدبوغة ویجوز عظامها وعصبها وصوفها وظلفها وشعرها وقرنها (خانیة بهامش الهندیة ص۱۳۳ ج۲) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۳ ذی الحجه ۱۳۸۷ هجری

## په باغ باندې د میوو بیع کول په شرط د وزن

**سوال:** زمونږ په علاقه کښې یوه مسئله د علماؤ ترمینځه متنازع فیها ګرځیدلې شوې ده. د فریقینو دلائل ستاسو په خدمت کښې وړاندې کولې شی تاسو ئې وګورئ.

د مسئلې صورت دا دې چې د زید په ملك کښې د منو باغ دې. هر کله چې پرې منې رانیکاره شی نو زید ددې کچه میوو بیع د عمرو سره داسې کوی. چې ته دا باغ د سل روپئ د یو من په حساب سره واخله. د پخیدلو نه پس به زۀ دا وتلم او تا ته بۀ ئې وسپارم. عمرو دا خبره قبوله کړه او څه پیسې ئې هم په هغه وخت زید ته ورکړلې. او د باقی پیسو په حقله دا وټاکلې شو چې د منو دتللو نه پس به دا ورکړې کیږی.

څنې مقامی علماء دې بیعې ته روا وائی. ځکه چې دا بیعه د دې لاندې ورکړې شوو بیعو په شان ده کومې چې فقهاء کرامو رحمهم الله روا ګرځولې دی.

رجل قال لغیره بعت منك عنب هذا الکرم کل وقر بکذا قالوا ان کان وقر العنب معلوما عندهم والعنب جنس واحد ینبغی ان یجوز البیع فی وقر واحد عند ابی حنیفة رحمه الله وعند صاحبیه رحمهما الله تعالى یجوز البیع فی الکل وجعلوا هذه المسألة فرعا لرجل باع صبرة حنطة فقال بعت منك هذه الصبرة کل قفیز بدرهم عند ابی حنیفة رحمه الله یجوز فی قفیز واحد وعندهما یجوز فی الکل وان کان عنب الکرم اجناسا قالوا ینبغی ان لا یجوز البیع فی شیء فی قول ابی حنیفة رحمه الله وان کان الوقر معروفا وعندهما یجوز فی الکل کما لو قال بعت منك هذا القطیع من الغنم کل شاة بکذا عند ابی حنیفة رحمه الله لا یجوز البیع اصلا وعندهما یجوز البیع فی الکل والفتوی

علی قولهما (خانیة بهامش الهندیة ص۲۵۰ ج۲)

دا حضرات فرمائی چې اګرچې په دې کښې د تسلیم المبیع وخت مجهول وی، خو ولې دا جهالت یسیره وی۔

نور علماء دې ته د لاندینو وجوهو په وجه باندې بیعه فاسده وائی۔

۱ - په دې کښې دمبیع مقدار مجهول دې، معلومه نۀ ده چې څومره منې به په کښې راټوکیږی

۲- په ثمن کښې جهالت دې.

۳- د مبیعې د سپارلو په وخت کښې جهالت دې۔ ځکه چې د موسم د تود سوړ کیدلو د وجې نه د مبیع په سپارلو کښې هم پس وپیش کیدلې شی.

۴ - تبعیض د ثمن۔

۵ - د مبیعې د تاجیل شرط، اګرچې په وخت د عقد کښې ددې ذکر نۀ دې کړې شوې خو ولې په دې کښې ضمنا تاجیل موجود دې، ځکه چې تر څو پورې منې پخې نۀ شی، نو نۀ بائع ددې د شوکولو اجازت ورکوی او نۀ ترې نه مشترې څه منې شوکوی۔

۶ - که زړۀ ئې وی او که نۀ وی خو په نۀ غوښتلو کښې هم بیع الکالی بالکالی لازمیږی، ځکه چې باقی ثمن او مکمل مبیع د درې څلورو میاشتو نه پس یو بل ته سپارلې کیږی.

۷ - مبیع مقدور التسلیم نۀ دې، ممکنه ده چې په څه وخت کښې ضائع شی،

د اولنی فریق د دلائلو دا دویم فریق دا جوابونه ورکوی، چې دا ټول صورتونه د عقد د مجلس سره مقید دی، یعنی که چرې په مجلس د عقد کښې بائع ټوله صبره یا انګور وتلل او مشتری ته ئې ورکړل نو دا روا دی، **وکذا فی نظائرهما.**

که چرې په مجلس د عقد کښې ئې مبیعه اونۀ تلله نو مونږ دا صورتونه هم ناروا ګڼو، او دلته خو مکمله مبیعه درې څلور میاشتې پس به تللې کیږی۔

په مجلس دعقد کښې د مبیعې د تعیین د ضروری کیدلو دا دلائل دی:

۱ - **(ولهما ان هذه جهالة بیدهما ازالتها) بان یکیله فی المجلس.(فتح القدیر ص۸۹ ج۵)**

۲ - **ومن باع صبرة طعام کل قفیز بدرهم الخ**

د دې د لاندې په فتح القدیر کښې دا لیکلې شوې دی۔

**ولا جهالة فی القفیز فلزم فیه واذا زالت بالتسمیة او الکیل فی المجلس یثبت الخیار کما اذا ارتفعت بعد العقد بالرؤیة اذا لمؤثر فی الاصل ارتفاع الجهالة بعد لفظ العقد و کونه بالرؤیة ملغی بخلاف ما اذا علم ذلک بعد المجلس لتقرر المفسد (فتح القدیر ص۸۸ ج۵)**

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د عقد فاسدیدلو د قائلینو قول صحیح دې، کومې وجې د فساد چې ذکر کړې شوې دی هغه هم صحیح دی، البته تبعیض الثمن بمعنی تعجیل البعض وتأجیل البعض لره د مفسداتو نه شمارل صحیح نهٔ دی، همدغه شان د هلاکت د احتمال له کبله مبیعه غیر مقدور التسلیم گرځول هم صحیح نهٔ دی، دا احتمال خو په هره مبیعه کښې موجوده دې، بالخصوص په حیواناتو کښې. والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۱۰ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## د باغ باندې د میوو د بیعې مختلف صورتونه

**سوال**:- د باغونو د میوو بیعه په کومو صورتونو کښې روا ده او کومو کښې ناروا ده؟ په تفصیل سره راته جواب ولیکئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قال فی التنویر وشرحه: ومن باع ثمرة بارزة اما قبل الظهور فلا یصح اتفاقا ظهر صلاحها اولا صح فی الاصح ولو برز بعضها دون بعض لا یصح فی ظاهر المذهب وصححه السرخسی وافتی الحلوانی بالجواز لو الخارج اکثر زیلعی ویقطعها المشتری فی الحال جبراً علیه وان شرط ترکها علی الاشجار فسد البیع کشرط القطع علی البائع حاوی.

وقیل قائله محمد رحمه الله لا یفسد اذا تناهت الثمرة للتعارف فکان شرطا یقتضیه العقد وبه یفتی بحر عن الاسرار لکن فی القهستانی عن المضمرات انه علی قولهما الفتوی فتنبه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله : (قوله ظهر صلاحها اولا) قال فی الفتح لا خلاف فی عدم جواز بیع الثمار قبل ان تظهر ولا فی عدم جوازه بعد الظهور قبل بدو الصلاح بشرط الترک ولا فی جوازه قبل بدو الصلاح بشرط القطع فیما ینتفع به ولا فی الجواز بعد بدو الصلاح لکن بدو الصلاح عندنا ان تؤمن العاهة والفساد وعند الشافعی رحمه الله هو ظهور النضج وبدو الحلاوة والخلاف انما هو فی بیعها قبل بدو الصلاح علی الخلاف فی معناه لا بشرط القطع فعند الشافعی ومالک واحمد رحمهم الله لا یجوز وعندنا ان کان بحال لا ینتفع به فی الاکل ولا فی علف الدواب فیه خلاف بین المشائخ قیل لا یجوز ونسبه قاضیخان لعامة مشایخنا والصحیح انه یجوز لانه مال منتفع به فی ثانی الحال ان لم یکن منتفعا به فی الحال والحیلة فی جوازه باتفاق المشایخ ان یبیع الکمثری اول ما تخرج مع اوراق الشجر فیجوز فیها طبعا للاوراق کانه ورق کله وان کان بحیث ینتفع به ولو علفا للدواب فالبیع جائز باتفاق اهل المذهب اذا باع بشرط القطع او مطلقا اھ (قوله لو الخارج اکثر) ذکر فی البحر عن الفتح ان ما نقله شمس الائمة عن الامام الفضلی لم یقیده عنه بکون الموجود وقت العقد اکثر بل قال عنه اجعل

الموجود اصلا و ما يحدث بعد ذلك تبعا (قوله و يقطعها المشتري) اى اذا طلب البائع تفريغ ملكه (قوله و به يفتى) قال فى الفتح و يجوز عند محمد رحمه الله استحسانا و هو قول الائمة الثلاثة رحمهم الله و اختاره الطحاوى لعموم البلوى. (قوله فتنبه) اشار به الى اختلاف التصحيح و تخيير المفتى فى الافتاء بأيهما شاء لكن حيث كان قول محمد رحمه الله هو الاستحسان يترجح على قولهما تامل (ردالمحتار ص ۳۲ ج ۴)

ددې تفصيل نه دا لاندې احکام معلوم شو:

۱ - ځوپورې چې ګلونه د ميوو شکل اختيار نهٔ کړی نو د هغې بيع په اتفاق سره ناروا ده. علامه ابن عابدين رحمه الله د بروز البعض نه پس بيعه د سخت ضرورت او عموم بلوی د وجې نه د سلم سره ملحقه ګرځولې او روا ئې ليکلې ده، زمونږ په زمانه کښې هم قبل البروز د بيعې عام رواج دې، هم هغه سخت ضرورت او عموم بلوی دلته هم ده د کومې د وجې نه چې د سلم سره ملحقه کړې شوه. فليتامل.

۲ - د ميوې د راتلو نه پس که د انسان يا د حيوان د پاره د انتفاع قابل هم شو نو په اتفاق سره بيعه روا ده.

۳ - چې د حيوان د پاره هم قابل د انتفاع نهٔ وی نو د هغې په بيعه کښې اختلاف دې، د جواز قول راجح دې.

۴ - څه ميوه ښکاره شوه او څه لا نهٔ ده ښکاره شوې نو په دې کښې هم اختلاف دې د جواز قول راجح دې.

۵ - د بيعې د صحيح کيدلو نه پس بائع مشتری ته په ونو باندې د ميوې د پريښودلو اجازت صراحتاً يا دلالةً ورکړو، نو ميوه به ئې حلاله وی.

په دې کښې دا شبه کيدې شی، چې نن صبا د ميوې د پخيدلو پورې په وونو باندې د پريښودل متعارف دی، نو دالمعروف کالمشروط د لاندې دا بيعه فاسديدل پکار دی.

د دې جواب دا دې، چې د ابقاء کوم شرط دې د دې عقد لره د فاسد کيدلو علت افضاء الى المنازعة دې، او د ابقاء د تعامل په صورت کښې د منازعې احتمال نشته دې.

وهذا ما صرحت به الفقهاء رحمهم الله فى اجارة الصباغ وغيرها من المسائل و يؤيده ما مر عن نص محمد رحمه الله بانه لا يفسد اذا تناهت الثمرة للتعارف الخ والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۰ ذی قعده ۱۳۸۸ هجری

## بيعه د ثمر قبل الظهور

**سوال:** - د باغونو د ميوو بيعه هر کله چې په بور کښې ميوه د تور مرچ يا د چنې د دانې هومره

راښکاره شوې وی نو دې ته قابل د انتفاع وئیلې کیدې شی او که نه؟ او په داسې وخت کښې ددې بیعه صحیح ده او که نه؟ بله دا چې بعضې میوې په یو خل نۀ راوځی لکه کیله شوه چې دا لړه لړه راوځی، ددې بیعه به کله صحیح کیږی؟ که چرې روا نۀ وی نو د روا والی د پاره څه حیله په کار راتلې شی او که نه؟ ددې نه وړاندې مونږ ستاسو نه استفتاء کړې وه.خو ولې د جواز د اختصار د وجې نه زما خلجان لرې نه شو.په مقامی علماؤ کښې د دې مسئلې په جواز او عدم جواز کښې اختلاف روان دې. زر ده چې د فریقینو دلائل به تاسو ته هم راورسی.ستاسو نه دا طمع لرو چې لږ په تفصیل سره به راته جواب ولیکئ.بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې معامله کښې د عام ابتلاء او د دې نه په احتراز کولو کښې د تعسر بلکه د تعذر له کبله په اهل فتوی باندې لازم دی چې ددې اړخ ته خصوصی توجه وکړی.او ددې څه حل راوباسی.

ځینی د تقوی خاوندان د آم د خوراك نه پرهیز کوی. لیکن د دې پرهیز د پاره د عامو مسلمانانو د پاره د څه لارې د راوتلو خو څه کوې،په خپله دا پرهیز کول د هغوی هم په کار رانغلو ځکه چې دا معامله صرف د آم سره خاصه نۀ ده،چې د دې په پریښودلو دې تقوی محفوظ پاتې شی.ب لکه د ټولو میوو په بیعه کښې هم دا دستور او رواج دې،په خاص توګه د کیلې معامله خو نوره هم ګرانه ده.ځکه چې ددې خو ډیر بوټی داسې وی چې هغه د بیعې نه پس پیدا کیږی.

د داسې سخت ضرورت په وخت کښې د عمل بالمرجوح بلکه دعمل بمذهب الغیر ګنجائش هم ورکولې شی.بلکه په بعضو ځایونو کښې عمل بمذهب الغیر واجب شی.حضرات فقهاء کرام رحمهم الله د داسې ضرورت په موقعو باندې د یو بعید نه بعید تاویل په ذریعه ذا د یوې شرعی کلیې لاندې راولی او د ګنجائش روایستلو کوشش ترې نه کوی.

لهذا د علامه ابن عابدین رحمه الله د بیع د ثمار د ګنجائش راویستلو په اهمیت او ضرورت باندې ډیر زور راوړې دې.او اوږد بحث ئې فرمائیلې دې،په آخره کښې ئې دا د بیع سلم سره پیوسته کړې دې او ددې د جواز فتوی ئې لیکلې ده.

په التحریر المختار کښې علامه رافعی رحمه الله هم د علامه ابن عابدین رحمه الله په دې تحقیق باندې څه اعتراض نۀ دې کړې،خو ولې حضرت حکیم الامة رحمه الله په امداد الفتاوی کښې په دې باندې دا لاندینی اشکالات لیکلې دی:

۱- په وخت د عقد کښې د مسلم فیه وجود ضروری دې.

۲- د ثمار مقدار متعین نۀ دې.

۳- څه نیته ئې معینه نۀ ده.

۴- په اجل باندې مشتری د بائع نه مطالبه نۀ کوی.

۵ - اکثر ثمار عددی متقارب یا وزنی متماثل نۀ دی.
۶ - اکثر تول ثمن د وړاندې نه یك مشت نۀ سپارلې کیږی.
د اولنی اشکال جواب خو حضرت حکیم الامة قدس سره په خپله ولیکلو چې د امام شافعی رحمه الله په نیز په وخت د عقد کنبې د مسلم فیه وجود شرط نۀ دې.
د دویم اشکال نه د پنځمه پورې د اشکالاتو جواب دا کیدې شی، چې د ذکر کړې شوې امورو د اشتراط د مفسد کیدلو علت **جهالة مفضية الى المنازعة** دې، لیکن په سبب د تعارف د نزاع احتمال منقطع شو.

**فارتفع الفساد لارتفاع العلة كما قالوا فی اشتراط الالة على الاجير والصبغ على الصباغ والخيط على الخياط**

د شپږم اشکال حل دا دې، چې د امام مالك رحمه الله په نیز **تاخیر الثمن بالاشتراط** درې ورځو پورې او بې د اشتراط نه دزیاتې مودې پورې هم روا دی. (**بداية المجتهد ص ۲۰۲ ج ۲، اقرب المسالك مع الشرح الصغير ص ۲۶۲ ج ۳**)
ائمه ثلاثه رحمهم الله په دې باندې متفق دی، چې په وخت د عقد وجود د مسلم فیه شرط نۀ دې، د دې وجې نه په دې زیر بحث مسئله کنبې د امام مالك رحمه الله قول اختیارول پکار دی، **للزوم التلفيق على اختيار قول الشافعي رحمه الله**.
متعاقدین د ضرورت په وخت کنبې د درې ورځو نه زیات د ثمن د تاخیر چې کوم شرط دې د هغې د فساد نه د احتراز کولو د پاره دا تدبیر اختیارولې شی، چې مشتری تول ثمن په وخت باندې په ادا کولو باندې قادره نۀ دې، نو هم د بائع نه دې قرض واخلی او هغۀ ته دې د ثمن په توګه واپس ورکړی.
دا تدبیر د متعاقدینو د فائدې د پاره ولیکلې شو، اوکه نه نو په عوامو باندې دا تجسس او تحقیق لازم نۀ دې بلکه دا تعمق ورله بیخی روا نۀ دې چې د باغ بیعه مطلقه وشوه او که په شرط د تاخیر د ثمن؟ بیا دا چې شرط د تاخیر د درې ورځو پورې دې او که نه د زیاتو پورې دې؟
البته دا خبره ده چې په کوم ځائې کنبې بې د تجسس نه د درې ورځو نه زیات شرط د تاخیر محقق شی یا د هغې عام رواج شی نو هلته احترام لازم دې.
**فائده**:- علامه ابن عابدین رحمه الله د عامې ابتلاء او د سخت ضرورت له کبله د الحاق بالمسلم بحث د بروز البعض په بیان کنبې لیکلې دې، لیکن ددې تول بحث نه دا خبره ښکاره ده چې قبل د بروز الثمار نه بلکه قبل د بروز الازهار نه هم همدا حکم دې، په کوم ځائې کنبې چې په دې کنبې د ابتلاء عام له کبله د سخت ضرورت تحقق راشی، هلته به دا د امام مالك رحمه الله د مذهب مطابق په بیع

سلم کښې داخلولې شی او روا به گرځولې شی۔
په غورو کولو باندې دا خبره معلومه شوه چې د دې مسئلې حل په خپله په فقه حنفی کښې موجود دې، لهذا نورو مذاهبو ته د رجوع کولو ضرورت نشته دې۔
چنانچه د آم او دغه شان د نورو میوو بیعه په وونو باندې د گلونو د راتلو نه پس کیږی، که چرې بعضې میوه هم ښکاره شوې وی نو بیا خو بیخی څه اشکال پاتې نۀ شو، او که میوه پرې بالکل ظاهره شوې نۀ وی نو دا بیعه بالاثمار نۀ ده بلکه بیعه بالازهار ده، او دا ازهار **مال متقوم منتفع به للدواب بل لبعض حاجات الناس** هم دی، فرض کړه که فی الحال منتفع به هم نه وی، نو **فی ثانی الحال** منتفع به دی، **کما نقل العلامة ابن عابدین رحمه الله عن الامام ابن الهمام رحمه الله فی صحة بیع الثمار بعد البروز قبل ان تکون منتفعا بها (ردالمحتار ص ۴۲ ج ۴)**

حضرات فقهاء کرامو ﷺ **بیع الثمر قبل انفراك الزهر** ته په اتفاق سره ناروا وئیلې دی، لیکن په خپله د **بیع الزهر** د عدم جواز څه وجه نشته دې، البته د بیع قبل ظهور الازهار په صورت کښې د امام مالك رحمه الله په مذهب باندې د عمل کولو نه علاوه بله څه لاره نشته دې، او دا به هله روا وی چې کله اهل بصیرت په دې کښې د عامې ابتلاء او سخت ضرورت فیصله اوفرمائی۔
د کیلې د باغ بیعه د دې وجې نه روا ده چې دا بیع الاشجار مع الاصول وی، لهذا د بیعې نه پس پیدا کیدونکی ونې د مشتری ملك دې، که په دې بیعه کښې ترك الاصول للبائع مشروط وی، نو دا بیعه به فاسده وی۔

**وهو یثبت ملك المشتری بعد القبض فیحل اکله للمشتری الثانی.**
ددې نه هم ښۀ حل دا دې، چې دا بیع الاشجار بدون الاصول ده، د موجودو اشجارو په بیعه کښې څه کلام نشته دې، او د اشجارو غیر موجودو بیعه بیع الاشجار الموجوده صحیح ده۔
**وله نظائر فی کتب المذهب خصوصا فی مبحث بیع الاثمار و الازهار من ردالمحتار.**
**شبهه**:- بعضې خلقو ته شبهه شوې ده چې بیع بشرط التبقیة فاسده ده، او په معامله معهوده کښې اګرچې بیعه مطلقاً ده، لیکن عرفا تبقیه لازمه ده، **والمعروف کالمشروط.**
**جواب**:- په مذکوره بحث کښې د دې شبهې جواب شوې دې، یعنی دا شرط د **مفضی الی النزاع** کیدلو د وجې نه مفسد وو، لیکن د عرف عام د وجې نه د نزاع احتمال منقطع شو، **فارتفع الفساد وانظر تفصیله فی اجارات کتب المذهب، فاغتنم هذا التحریر الفرید وتشکر و ایاك والتعمق فی الدین واقتحام المضایق ولن یشاد الدین احد الا غلبه. والله سبحانه وتعالی اعلم.**
**۲۳ ذی الحجه ۱۳۹۹ هجری**

## د پورتنی په شان یو بل سوال

**سوال**:- د علماء هند دوه متضادې فتوې ستاسو خدمت ته درلیګم.دواړو فریقو د خپل موقف د اثبات د پاره د احنافو د معروفو او متداول کتابونو بحر،عالمګیریه،شامیه وغیره نه استدلال کړې دې،حضرت والا(یعنی تاسو) دې د خپلې عالی رائې نه مونږ خبر کړی-

په دواړو فتوو کښې ئې د کیلې د باغ د بیعې په حقله د جواز حیله دا وړاندې کړې شوې ده، چې په وخت د بیعې دې دا زمکه په ټیکه واخلی، لیکن ستاسو په یو فتوی کښې چې په ۱۳۹۷ هجری کښې د دارالافتاء نه جاری شوې ده دا حیله د جواز لیکلې شوې ده،چې د زمکې هغه حصه په کومه حصه کښې چې کیلې کرل غواړی د څو کالو د پاره دې په ټیکه واخلی-

په دواړو کښې فرق دا دې،چې د علماء هند په فتوی کښې په وخت د بیعې د دې حیلې د اختیارولو حکم کړې شوې دې،او ستاسو په فتوی کښې د کیلې د کرلو نه وړاندې د دې حیلې د اختیارولو حکم دې،تاسو نه امید لرو چې په قولِ فیصل سره به زمونږ تشفی اوفرمایئ - بینوا توجروا -

**الجواب باسم ملهم الصواب** د دې زیرِ بحث مسئله په حقلې بنده(یعنی مفتی صاحب) په ۲۳ ذی الحجه ۱۳۹۹ هجرئ کښې یو مفصل جواب لیکلې وو،د کومې فوټو کاپی چې ستاسو په خدمت کښې درلیګم، ورسره ستاسو په رالیګلې شوې فتوی کښې د دوو عبارتونو په حقله بحث لیکلې شی:

۱- واما البیع مطلقاً فذکر فی الهدیة جوازه واعترض ابن عابدین رحمه الله بأن المعروف بالعرف کالمشروط بالشرط فلا یصح البیع مطلقاً و کنت مترددا فی هذا حتی ان وجدت فی فتاوی ابن تیمیة عن ابی حنیفة والثوری رحمهما الله تعالی انهما اجازا البیع مطلقاً اذا اجاز البائع الترک علی الاشجار فاذن لما وجدت عن ابی حنیفة رحمه الله فلا ابالی فالحاصل اذا لم یشترط الابقاء فی صلب العقد یصح البیع وان کان معروفاً بالعرف هذا ما حصل لی والله اعلم وعلمه اتم.

(العرف الشذی ص ۳۸۸)

د دې نه استدلال کول صحیح نهٔ دی ځکه چې په دې کښې د عرف سره څه سرو کار نشته دې، غالب ظن دا دې چې د امام صاحب رحمه الله په زمانه کښې دا عرف نهٔ وو،که دا عرف وې نو صراحةً د بائع د اجازت ضرورت نهٔ وو،ځکه چې د عرف د وجې نه دلالةً د بائع اذن موجود دې،ورسره دا چې د عرف د موجود والی په صورت کښې به د امام رحمه الله نه ددې وضاحت منقول وې،ددې نه ثابتیږی چې په هغه زمانه کښې د دې عرف نهٔ وو،سره ددې هم که څوك د عدمِ عرف په ثبوت کښې کلام کوی، نو کم از کم د دې احتمال خو یقینی دې،فاذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال.

۲ - ولو اراد ان یترك فی الارض ویکون له الولایة الشرعیة فالحیلة ان یشتری الحشیش واشجار البطیخ ببعض الثمن ویستاجر الارض ببعض الثمن من صاحب الارض ایاما معلومة وینبغی ان یقدم بیع الاشجار او الثمار والحشیش ویؤخر الاجارة فانه لو قدم الاجارة لا یجوز كذا فی مختار الفتاوی ولو باع اشجار البطاطیخ و اعار الارض یجوز ایضا الا ان الاعارة لا تكون لازمة ویکون له ان یرجع كذا فی فتاوی قاضیخان (عالمگیریة ص۱۳۹ ج۳)

په دې کښې دا اشکال دې، چې دا صفقة فی صفقة ده، په وخت د بیعه کښې د اجارې د شرط اگر که تصریح نۀ وی کړې شوې، لیکن د جانبینو ترمینځه د معهود کیدلو له کبله په منزله د تصریح ده. او هر کله چې د دې عرف شی نو بیا المعروف کالمشروط مسلم دې، که چیرې تعامل ته د دې مخلص اووئیلې شی، نو بیا د داسې حیلو څه ضرورت دې، چې تعامل ته وګورې نو دا معامله بې د څه حیلې نه روا ده. کما حررنا مفصلا، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۷ ربیع الثانی ۱۴۰۳ هجری

## بیع بشرط البراءة من کل عیب

**سوال:-** زید سره یوه بلاربه میښه ده. او دا میښه د بچی رواړو نه پس پنځه سیره شودۀ ورکوی. اوس زید دا میښه خرڅول غواړی، لیکن که د شودو ورکولو دا مقدار ښکاره کړی نو هیڅ یو سوداګر هم د دې میښې په اخستو نۀ شی راضی کیدلې، آیا ددې خبرې د ښودلو نه بغیر دې دا میښه خرڅولې شی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زید که چیرې د میښې خرڅولو په وخت کښې مشتری ته دا اووائی چې زۀ ددې د هر قسمه عیب نه بری یم، که خوښه دې وی واخله او که خوښه دې نۀ وی نو مۀ ئې اخله. نو دا بیعه به صحیح شی، اګرکه دې ورته ټول عیبونه ونۀ شماری، وروستو که په کښې څه عیب راوتلو نو زید به د هغې ذمه وار نۀ وی.

قال فی التنویر: وصح البیع بشرط البراءة من کل عیب وان لم یسم.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی علیه تحت هذا القول: بان قال بعتك هذا العبد علی انی بریء من کل عیب. (ردالمحتار ص۱۰۲ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶ شعبان ۱۳۸۷ هجری

## په مبیعه کښې د عیب ظهور

**سوال:-** زمونږ په علاقه کښې د څناورو د سوداګرو دا رواج دې چې که بائع په وخت د بیعې کښې د خپل څاروی عیب ښکاره نۀ کړی نو وروستو د عیب په ښکاره کیدلو باندې مشتری ددې

څاروی پیسي لړې ورکوی.لکه د میښې په یو تی کښې که نیم سیر شودهٔ کم وی.یعنی د دې څلور واړه تیونه برابر نهٔ وی. نو سل روپئ به په کښې ددې د قیمت نه کمولې شی، برابره خبره ده که بائع په دې باندې راضی وی او که نه؟ په دې طریقې سره پیسې کمول او ورکول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په عیب باندې د خبر کیدلو نه پس مشتری ته اختیار دې، که خوښه ئی شی نو د کل ثمن په بدله کښې دې دا د ځان سره وستاتی، او که خوښه یې وی نو واپس دې کړی، دا روا نهٔ دی چې معیب ځناور د ځان سره وساتلې شی او رجوع بالنقصان وکړی. البته که د مشتری په لاس کښې د راتلو نه پس په دې ځناور کښې څه نوې عیب هم پیدا شو نو مشتری رجوع بالنقصان کولې شی، او د بائع په رضا سره واپس کولې هم شی، په واپس کولو باندې د بائع د رضا نه پس که چیرې مشتری مبیع د ځان سره ایښودل غواړی نو بیا دې رجوع بالنقصان نهٔ شی کولې.

قال فی التنویر: من وجد بمشریه ما ینقض الثمن اخذه بکل الثمن اورده.(ردالمحتار ص۸۰ ج۴)

وقال: حدث عیب اخر عند المشتری رجع بنقصانه وله الرد برضا البائع.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: الا ان یرضی بالضرر فیخیر المشتری حینئذ بین الرد والامساك من غیر رجوع بنقصان. (ردالمحتار ص۸۹ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳ ذی الحجه ۱۳۸۷ هجری

## د مبیعې عیب پټول حرام دی

**سوال**:- زید یو دکاندار دې، د هغهٔ په دکان کښې یو قسم غنم په یوویشت روپئ من او بل قسم غنم په نولس (۱۹) روپئ من خرڅیږی، هغهٔ د غنمو د دواړه قسمه یوځائې کوی او په شل روپئ من ئې خرڅوی، آیا د هغهٔ دا کار صحیح دې؟ او دا دواړه قسمه غنم بیل بیل هم ساتی، نو مطلب دا شو چې د هغهٔ په دکان کښې درې قسمه غنم خرڅیږی، نولس روپئ من، شل روپئ من او یوویشت روپئ من، زید اخستونکی ته درې واړه قسمه وښائی دې د پاره چې د اخستونکی کوم قسم خوښ وی نو وائی خلی، او ددې دوو قسمو غنمو د یو ځائې کولو نه د هغهٔ مقصد دهوکه ورکول نهٔ دی، بلکه مقصد ئې دا دې چې د نولس روپو کوم غنم دی د هغه غنمو روټئ دومره ښائسته نهٔ وی لکه څنګه چې د دواړو اوړو د یو ځائې کولو نه پس روټئ ښائسته وی، آیا د زید داسې کول صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د هغهٔ دا فعل روا دې، څکه چې دکاندار د مبیعې څه عیب نهٔ دې پټ کړې. عیب پټول حرام دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: لا یحل کتمان العیب فی مبیع او ثمن لان الغش حرام اهـ(ردالمحتار ص۱۰۹ ج۴)

والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۳ ربيع الثانى ۱۳۸۹ هجرى

## د عيب په ظاهريدلو باندې مشترى ته د فسخې خيار شته دې

**سوال:**- زيد خپله څه زمكه چې په هغې باندې څه آبادى هم وه،په عمرو باندې په اتلس زره خرڅه كړه،دا خبره وتاكلې شوه چې لس زره به نقدې وركوى،او اتۀ زره به د نيتې د ختميدلو نه پس، لهذا زيد شپږ زره نقدې وصول كړلې،او څلور زره ئې د عمرو سره امانت پريښودلې، څو ورځې تيريدلو نه پس د زيد يو رشته دار بكر ددې زمكې په څه حصه باندې د ملكيت دعوى اوكړه، وروستو بيا زيد د مشترى عمرو نه خپلې پيسې وغوښتلې نو هغۀ ورته اووئيل چې اول د بكر سره دا معامله حل كړه اوكه نه ماته بيا د جنګ جګړې دا معامله منظوره نۀ ده،ما له بيا خپلې پيسې راكړه، دا خبره هم داسې روانه وه،اوس د څو مياشتو په تيريدلو باندې دا خبره معلومه شوه چې زيد دا زمكه په بل يو سړى باندې خرڅوى، پوښتنه دا كول دى چې شرعا دا زمكه اوس د چا ملكيت دې؟ د زيد او كه د عمرو،او د زيد دا تصرف كول صحيح دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په مبيعه كښې د نزاع واقع كيدل يو عيب دې، لهذا د عمرو په نۀ منظورلو باندې دا بيعه فسخ شوه. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۷ رجب ۱۳۹۸ هجرى

## د افيومو كرونده او بيعه جائزه ده

**سوال:**- د افيومو كر او بيعه شرعا روا ده او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تيره زمانه كښې به افيوم په دوايانو كښې په كثرت سره نۀ استعماليدل، بلكه عموما د لهوې د پاره به استعماليدل،د دې وجې نه بعضې فقهاء كرامو رحمهم الله ددې بيعې ته مكروه وئيلې دى، ليكن نن صبا افيوم د دوا په توګه په كثرت سره استعماليږى،او په علاج كښې ئې لوئې اهميت او شهرت حاصل كړې دې،بلكه د سخت ضرورت د حده پورې رسيدلې دى، لهذا ددې بيعه بې د څه كراهت نه روا ده، البته چې د كوم سړى په حقله دا غالب ظن وى چې هغۀ به دا د لهو لعب د پاره استعمالوى،نو په هغه باندې د دې خرڅول مكروه تحريمى دى . والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۶ جمادى الاولى ۱۳۸۷ هجرى

## د سګريټو تجارت كول جائز دى

**سوال:**- د سګريټو تجارت كول روا دى او كه ناروا دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا تجارت روا دې. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۹ جمادى الاولى ۱۳۹۸ هجرى

## د میښې د تازه پیدا شوي بچي بیعه

**سوال**:- د ځناورو ساتونکو خلقو کښې دا عام رواج دې، چې د غوا یا د میښې بچې چې څنګه پیدا شي نو دا په قصاب باندې خرڅ کړي، او ددې نه ددوی مقصد شودهٔ بچ کول او د دې بچو په ساتلو باندې چې کوم وخت لګی هغهٔ بچ کول دی، نتیجه ئې دا وی چې دا غوا میښه د بچي په فراق کښې درې څلور ورځو پورې چغې وهی، آیا ددې خلقو دا طریقه کول روا دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې کول ظلم دې۔

قال النبی ﷺ: من فرق بین والدة وولدها فرق الله بینه وبین احبته یوم القیمة. (ترمذی، مستدرك)

وقال العلامة البابرتی رحمه الله: فلا یدخل محرم غیر قریب ولا قریب غیر محرم ولا مالا محرمیة بینهما اصلا حتی لو کان احدهما اخا رضاعیا للآخر او کان امة والاخر ابنها رضاعا او کان احدهما ولد عم او خال او کان احدهما زوج الاخر جاز التفریق بینهما لان النص النافی ورد بخلاف القیاس لان القیاس یقتضی جواز التفریق لوجود الملك المطلق للتصرف من الجمع والتفریق کما فی الکبیرین وکل ما ورد من النص بخلاف القیاس یقتصر علی مورده ومورده الوالدة وولدها والاخوان. (عنایة بهامش فتح القدیر ص۱۰۹ ج۶)

اګرچې دا حکم د بنیادمو سره خاص دې او د حیوان د بچي بیعه واجب الرد نهٔ ده. لیکن د قباحت او د زړه د قساوت نه خالی نهٔ ده، د عمر په کښې هیڅ قید نشته دې، تر څو پورې چې په کښې د سخت غم احتمال وی نو تر هغه وخته پورې دې نهٔ خرڅوی۔ والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۱ شوال ۱۳۸۶ هجری

## د جهینګې

(یو قسم سمندری چینجې دې خو اختلاف په کښې دې چې چینجې دې او که مهې)

## بیعه روا ده

**سوال**:- یو مسلمان په کراچې کښې د غټې کشتئ په ذریعه مهیان او جهینګې نیسی او ددې تجارت کوی، آیا دا تجارت روا دې؟ په عامه توګه ددې جهینګو بولی په کراچئ کښې کیږی، ددې نه پس دا اروپا او امریکې وغیره ته لیګلې کیږی، غالبا د شوافعو په نیز خو کونی کبر (پنجه پاو) او جهینګه وغیره ټول سمندری ځناور حلال دی، نو آیا دا تجارت به روا وی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نورو امامانو په نیز جهینګا حلاله ده د دې وجې نه ددې تجارت روا دې۔ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۳ شوال ۱۳۹۷ هجری

## د بعض الحیوان بیع جائزه ده

**سوال:**- زید د خپلې غوا شپږ حصې په شپږو کسانو باندې د قربانۍ د پاره خرڅې کړې، او اوومه حصه ئې د خپل ځان د پاره وساتله، آیا د دې شپږو حصو بیعه روا ده؟ ظاهره خو دا ده چې دا بیعه روا نۀ ده ځکه چې دا بیعه د بعض د حیوان ده، بلکه دا چې د زید د خپل شرکت شرط لګول هم مفسد د بیعې معلومیږي، بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بعض الحیوان بیعه روا ده، د ناروا کیدلو ئې څه وجه نشته دې، لهذا د داسې ځناور بیعه بې د څه کراهته روا ده۔ **واللہ سبحانه وتعالیٰ اعلم۔** ۲۹ ذی الحجه ۱۳۹۴ هجری

## د ځناور د مثانې بیعه

**سوال:**- د ځناور د مثانې (په کوم ځائې کښې چې وارۀ بول پراته وی) اخستل او خرڅول روا دی او که ناروا دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا بیعه او شری روا ده۔ **واللہ سبحانه وتعالیٰ اعلم۔** ۲۹ رجب ۱۳۹۵ هجری

## د ژوندۍ چرګې بیعه وزناً جائزه ده

**سوال:**- نن صبا ژوندۍ چرګې په تول خرڅیږی، آیا دا روا دی؟ حال دادې چې په هدایة کښې تصریح ده چه: **ولا یمکن معرفة ثقلة بالوزن لانه یخفف نفسه مرة ویثقل اخری۔**
د دې نه دا خبره معلومیږی چې د وزن د معرفت د عدمِ امکان د وجې دا بیعه صحیح نۀ ده۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د چرګې د سا اخستلو د وجې نه ددې په وزن کښې څه **معتدبه** فرق نۀ راځی، لهذا دا جهالت یسیره دې، **مفضیة الی النزاع** نۀ دې، بلکه دا چې د چرګو په عرف عام کښې د داسې اخستلو خرڅولو د وجې نه په دې کښې د نزاع هغه احتمال هم نشته دې، د دې وجې نه دا بیعه روا ده۔ **واللہ سبحانه وتعالیٰ اعلم** ۲۹ صفر ۱۳۹۹ هجری

## په مروجه بیعو کښې په مشتری باندې د بیا وزن کولو تحقق

**سوال:**- د یو شودو والا نه همیشه په یو متعین مقدار کښې شودۀ اخستلې کیږی، هغه دا شودۀ په خپله دکان ته رارسوی، لیکن زمونږ د وړاندې هغۀ دا وزن نۀ کوی، بلکه چې راوړی ئې نو هلته ئې وزن کړې وی او راوړی ئې او زمونږ لوښی کښې ئې واچوی، زمونږ دهغۀ په وزن باندې باور دې، مونږ دغه شودۀ بیا نۀ تلو. یو مولوی صاحب فرمائی چې بې د وزن کولو نه دا شودۀ په

استعمال كښي روا استل روا نه دی، آيا دا خبره صحيح ده؟

دويم تپوس دا دي، چي هر كله بائع د مبيعي وزن وكړي نو په دي موقع باندي د مشتري وجود او ليدل شرط دی او كه نه دومره هم كافي دی چي هغه خپل لوښي پريږدی او يا چا بل چا لره خپل وكيل جوړ كړی؟ نن صبا د ډيرو كارونو د وجي نه د ښار اوسيدونكو خلقو دا طريقه اختيار كړي ده چي دوكاندار ته ښيلي فون وكړی او ورته اووائی چي فلاني څيز دومره دومره مقدار كښي وتله اوخانه سره ئي كيږده، بيا په څه ذريعي سره هغه تللي شوی څيزونه راوغواړی، يا ئي ورته دا دكاندار په خپله راورسوی، او مشتری ئي په دويم ځل بيا تلل ضروری نه ګڼی، آيا دا طريقه شرعا صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دي دواړو صورتونو كښي بيع بالتعاطی ده د دي وجي نه په اخستونكی باندي بيا تلل ضروری نه دی، برابره خبره ده كه ددي څيزونو قيمت بيا وروستو د مياشت په تيريدلو باندي ادا كوی نو هم ئي دا حكم دي، او مخامخ په مخامخه بيعه او شری هم عموما بالتعاطی وی.

قال فی التنوير: اشترى مكيلا بشرط الكيل حرم بيعه و اكله حتى يكيله ومثله الموزون و المعدود غير الدراهم والدنانير.

وفی الشرح: لجواز التصرف فيهما بعد القبض قبل الوزن كبيع التعاطی فانه لا يحتاج فی الموزونات الی وزن المشتری ثانيا لانه صار بيعا بالقبض بعد الوزن قنية وعليه الفتوى

وفی الحاشية: (قوله كبيع التعاطی الخ) عبارة البحر وهذا كله فی غير بيع التعاطی اما هو فقال فی القنية ولا يحتاج الخ وظاهر قوله وهذا كله انه لا يتقيد بالموزونات بل التعاطی فی المكيلات والمعدودات كذلك وهو مفاد التعليل ايضا بانه صار بيعا بالقبض فانه لا يخص الموزونات لكن فيه ان مقتضى هذا انه لا يصير بيعا قبل القبض ولعله مبنی علی القول بانه لا بد فيه من القبض من الجانبين والاصح خلافه وعليه فلو دفع الثمن ولم يقبض صح وقدمنا فی اول البيوع عن القنية دفع الی بائع الحنطة خمسة دنانير ليأخذ منه حنطة وقال له بكم تبيعها فقال مائة بدينار فسكت المشتری ثم طلب منه الحنطة ليأخذها فقال البائع غداً ادفع لك و لم يجر بينهما بيع وذهب المشتری فجاء غداً ليأخذ الحنطة وقد تغير السعر فعلى البائع ان يدفعها بالسعر الاول اهـ وتمامه هناك فتامل. (رد المحتار ص۱۸۳ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم.

## د متعين وزن د ډبو بيعه

**سوال:-** په بهشتي زيور کښې دی چې که چا څه غله، غوړي، تيل وغيره د څه نرخ وغيره د مقررولو نه پس واخستل نو ددې درې صورته دي:

۱- دکاندار د اخستونکی یا دهغهٔ د راليږلی شوی سړی په وړاندې وتلل او ورئې کړل.

۲- د اخستونکی یا د هغهٔ د راليږلی شوی سړی په وړاندې ئې نهٔ دی تللې،بلکه اخستونکی یا د هغهٔ راليږلی شوی سړی ته ئې اووئيل چې تهٔ لاړ شه زهٔ به ئې تاسو کره در ورسوم.

۳- ددې نه وړاندې ئې د اول نه تللې ايښودې وو،دکاندار هم داسې راوخستلو او ورئې کړلو په دويم ځل ئې ونهٔ تللو.

په وړومبی صورت کښې کور ته په راوړلو باندې په دويم ځل تلل ضروری نهٔ دی، بې د تللو نه د دې خوړل، څښل،او خرڅول هر څه صحيح دی.

په دويم او دريم صورت کښې چې ئې اخستونکې په خپله ونهٔ تلی نو د هغې خوړل، څښل، او خرڅول وغيره هيڅ څه صحيح نهٔ دی،که بې د تللو نه ئې خرڅ کړلو نو دا به بيعه فاسده وی،که بيا ئې هم تلی نو بيا هم دا بيعه نهٔ صحيح کيږی انتهی.

نن صبا ډير څيزونه د مختلفو وزنونو په ډبو کښې،او په پيکټونو کښې پيک کړې شوې پراتهٔ وی،اخستونکی دکاندار ته وائی فلانې څيز يو کلو راکړه،دکاندار ورله د يو سير ډبې يا پيکټ ورکړی، نهٔ خو ئې دکاندار په خپله تلی او ورکوی ئې او نهٔ ئې هغه دغه وخت کښې تلی، اخستونکی لره داسې په ډبو او پيکټونو کښې مال اخستل او خرڅول روا دی که نه؟بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بائع او د مشتری د دواړو مقصد هغه خاص ډبې او پيکټ وی،په هغې کښې ليکلې شوې وزن په بيعه کښې مشروط نهٔ وی،د دې وجې نه بې د وزن د کولو نه په دې کښې تصرف کول روا دی.واللہ سبحانہ وتعالی اعلم. **۲۷ جمادی الاولی ۱۴۰۰ هجری**

## د واورې بيعه تخمينًا

**سوال:-** که څوك د دکاندار نه مثلاً واوره يو سير غواړی،چې په اتهٔ انې باندې سير دې. هغهٔ دکاندار له اته انې ورکړی،دکاندار د تللو په ځائې هم داسې په اندازه باندې اخستونکی له واوره ورکړی، آيا دا اخستل او خرڅول روا دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چرې واوره ئې په شرط د وزن اخستې وی نو بې د وزن کولو نه په دې کښې تصرف کول روا نهٔ دی،د داسې ضرورت په وخت کښې که د وزن په ځائې همداسې د واورې د ټوټې بيعه وکړې شی نو بيا به بې د وزن کولو نه هم په دې کښې تصرف کول روا شی.**والله**

سبحانه وتعالی اعلم. ۲۷ جمادی الاولی ۱۴۰۰ هجری

## د عددي څیزونو د هغې د جنس سره مبادله

**سوال**: ۱ - چی می فرمائند علماء دین و مفتیان شرع متین درین مسئله که شگوفه درخت نر خر مارا بعوض جنس خود قرض دادن جائز ست یا نه؟

۲ - و ایضا همیش شگوفه را یعنی خوشه خرما را بعوض خرما آجل یا عاجل بعدد یا بوزن معین دادن جائز ست یا نه؟

۳ - بوته هر درخت را بعوض بوته جنس خود یا ببوته درخت دیگر دست بدست یا بقرض یا ببدل دادن جائز ست یا نه؟ بینوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ - این شگوفه از اعداد متفاوته است لهذا استقراض جائز نیست ۔

۲ - جائز ست زیرا که تبدیل خوشه بغیر جنس ست ۔

۳ - بوته هر درخت بجنس خود ببیع عاجل دادن جائز ست،قرض جائز نیست ۔ والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ ربیع الآخر ۱۳۸۳ هجری

## که مشتری د مبیعې د اخستلو نه انکار وکړو نو بیعانه واپس کول ضروری دی

**سوال**:- زید د بکر نه د لسو زرو پلاټ واخستلو ،د سودا د پخیدلو نه وروستو زید بکر له سل روپئ ورکړې،او ورته ئې اووئیل چې باقی رقم به درله په یو میاشت کښې درکړم او په پلاټ به بیا قبضه وکړم،یو میاشت پس هر کله چې بکر د زید نه د پیسو مطالبه وکړه نو زید انکار وکړو او وې وئیل چې زهٔ پلاټ نهٔ اخلم،ما له خپلې سل روپئ واپس راکړه، لیکن بکرورله دسلو روپود ورکولو نه انکار وکړو ،آیا شرعاً بکر ددې سلو روپو د واپس ورکولو پابند دې او که نه؟ بینوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بکر د رضا نه بغیر زید ته د بیعې د فسخ کولو اختیار نشته دې، بکر زید لره په بیعه باندې د قائم ساتلو دپاره او د هغهٔ نه د باقی رقم اخستلو دپاره هر قسمه قوت استعمالولې شی،که چیرې بکر زید لره په بیعه باندې د قائم ساتلو نه عاجزه شو نو بیا بکر له زید ته بیعانه واپس کول ضروری دی ۔

د زمانې د فساد د وجې نه داسې ظلمونه ډیر زیات شروع دی او واقع کیږی،د دې وجې نه د ظلم او د نقصان نه د بچ کیدلو د پاره یو څو تدبیرونه لیکلې شی:

۱- مشتری دې ټول قیمت ادا کړی او په مبیعه دې قبضه وکړی بیا بائع دې په قدر د بیعانې په

کم قیمت باندې د مشترى نه واپس واخلى.

۲. بائع دې د مشترى په اجازت دا مبیعه بل ځائې کښې خرڅه کړى، که د وړومبى قیمت نه په کم باندې خرڅ شو نو دا قیمت دې د بیعانې نه واخلى او که د وړومبى قیمت نه په زیات باندې خرڅ شو نو زیاتې پیسې دې مشترى اول ته بیرته ورکړى.

۳. که مشترى په یو طریقه هم په لاس نۀ راځى نو بائع دې مسلمان حاکم ته درخواست ورکړى، هغه دې مبیعه خرڅه کړى، اودویم نمبرکښې چې کوم تفصیل ذکر شوې دې د هغې مطابق دې فیصله وکړى.

**قال الامام النسفى رحمه الله: ومن اشترى عبدا فغاب فبرهن البائع على بیعه وغیبته معروفة لم یبع بدین البائع والا بیع بدینه. (کنز الدقائق ص۲۴۱)**

که چیرې د یو مسلمان حاکم نه دا کار نۀ شى اخستلې کیدې، نو دعلماؤ په مجلس کښې دا مسئله وړاندې کولې شى او د ذکر کړې شوى تفصیل مطابق ترې نه فیصله اخستلې شى. **والله سبحانه وتعالى اعلم**

**۱۰ ربیع الثانی ۱۳۸۸ هجرى**

## بیع بلا اذن شریک

**سوال**:- زید د شپږو کسانو مشترکه زمکه بې د اجازته په عمرو باندې خرڅه کړه،دوو کالو پورې خو هغوى ته خبر هم نۀ وو چې زمونږ زمکه خرڅه شوې ده،شپږ کاله پس په دغه کسانو کښې دوو کسانو په عمرو مشترى باندې دعوى وکړه،حال دا چې زید یعنى بائع وفات شوې وو،او څلور کسانو په کښې باوجود د علم نه دعوى ونۀ کړه.

آیا په پورته ذکر کړې شوى صورت کښې د زید دا بیعه شرعا صحیح ده که نه؟ که چرې دا بیعه صحیح نۀ وى نو چې اتو(۸) کالو پورې مشترى ددې نه کوم پیداوار حاصل کړې دې هغه به د چا نه اخستلې شى؟ د زید بائع نه یا د عمرو مشترى نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا بیعه د نورو شریکانو په اذن باندې موقوفه ده،که چیرې بعضې شریکان اجازه ورکړى او بعضې ور نۀ کړى نو بیا صرف د اجازت ورکوونکو شریکانو د حصې بیعه نافذیږى، لیکن په دې صورت کښې به مشترى ته د قبول او د رد اختیار وى.

**قال فى التنویر: وقف بیع مال الغیر (ردالمحتار ص۱۵۲ ج۴)**

**وفى الشرح: وفى المجمع لو اجاز احد المالکین خیر المشترى فى حصته والزمه محمد رحمه الله بها (ردالمحتار ص۱۵۸ ج۴)**

د اتو(۸) کالو د پیداوار مالك عمرو مشترى دې، لیکن د غیر په ملك کښې د تصرف کولو د وجې نه په پیداوار کښې خبث دې، لهذا قضاءً خو به دعمرو نه څه نۀ شى اخستلې،البته دیانةً په

عمرو باندې واجب دی چې د تخم او د نورو مصارفو نه زیات پیداوار دې نورو شریکانو ته رد کړی که داسې ونۀ کړی نو ګناه ګار به وی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۹ رمضان ۱۳۸۸ هجری

## د ضرورت په وخت کښې ارزان خرخول

**سوال**: یو سړې د ضرورت له کبله خپل څه څیز خرخول غواړی، او اخستونکې د هغۀ د مجبورئ نه غلطه فائده اخلی او ډیر کم قیمت ورته لګوی، لکه یو ساعت دې چې اصل قیمت ئې دوه سوه روپئ دې او په موجوده حالت کښې په سل روپئ خرخول کیږی ، لیکن اخستونکې ئې د پنځه ویشتو نه په زیاتو باندې اخستلو ته تیار نۀ دې، آیا د مشتری دا عمل روا دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** داعمل روا دې، لیکن که اخستونکې صاحب د استطاعت وی وس ئې کیږی، او خرڅونکې واقعی مجبوره وی نو اخستونکی له خاطر کول پکار دی، او چې څومره وس ئې رسیږی نو بائع ته صحیح قیمت ورکول پکار دی، غرض دا چې بیعه خو په هر صورت صحیح ده، لیکن د چا د څه مجبورئ نه غلطه فائده اخستل د اخلاقو او د مروت نه خلافه خبره ده . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵ ذی الحجه ۱۳۸۸ هجری

## د شودو په اخستو کښې د کهویې (پیروی) د متعین مقدار شرط

**سوال**:- زید شودۀ اخلی او کهویه ترې نه جوړوی، د شودو نرخ په ښار کښې په دې وخت کښې په ۳۵ روپئ من دې، زید ئې هم په دې قیمت اخلی لیکن د دغه خلقو سره دا شرط لګوی چې که په یو سیر شودو کښې پاو کهویا اووتله نو بیا به درله د پنځه دیرشو روپو د یو من په حساب سره پیسې درکوم او که د سیر شودو نه یو پاو ونۀ وتلو او کم ترې نه اووتلو نو بیا درله هم په هغه تناسب سره پیسې کمې درکوم، برابره خبره ده که ستا شودۀ خالص وی او که غیر خالص، آیا دا شرط صحیح دې؟ حال دا چې ددې خبرې هم امکان شته دې چې کیدې شی چې د سیر سوچه او خالصو شودو نه هم یو پاو کهویا راونۀ وځی، شرعاً ددې بیعې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په شودو کښې د کهویې خاص مقدار یو وصف مرغوب فیه دې، لهذا ددې د اشتراط عند العقد نه به ددې استحقاق ثابتیږی، او په وخت د فقدان کښې به د بیعې د فسخې او د رد د مبیعې اختیار وی، لیکن د کهویې د جوړیدلو نه پس د مبیعې د واپس کولو د متعذر کیدو له کبله به په کښې رجوع بالنقصان کیږی، لهذا د زید د شودو کم قیمت ورکول روا دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۸ جمادی الاولی ۱۳۸۹ هجری

## په بيع مؤجل کښې د اجل تعيين ضروري دې

**سوال**:- چی می فرمایند دربارة مسئله ذیل که فی بلادنا اکثر بیع و شراء بدون تعیین مدت منعقد می شود، درمتون همچنین بیوع رافاسد قرار دا ده شده اند. اما در مجلة الاحکام فی بیان المسائل المتعلقة بالبیع بالنسئیة والتاجیل ص ۳۷ مرقوم ست: اذاباع نسیئة بدون بیان مدة تنصرف المدة الی شهر واحد فقط.

آیا ماده مذکوره قول مفتی به است وعمل بر همین ست یا نه؟ و در صورت عرف اگر رائج باشد بدون از تعیین مدت آیا عرف رابصحة عقد اعتباری ست ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې بیع مطلق وی،د اجل په کښې څه ذکر نهٔ وی نو ثمن به پرې سمدستی واجبیږی،البته که بائع فورا مطالبه ونهٔ کړی نو بیا په کښې تاخیر روا وی ، په دې کښې بیا د مودې د تعیین ضرورت نشته .

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (وصح بثمن حال) وهو الاصل

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله وهو الاصل) لان الحلول مقتضى العقد وموجبه والاجل لا يثبت الا بالشرط بحر عن السراج. (ردالمحتار ص۲۵ ج۴)

او که چرې بيع مؤجل وی نو بيا په کښې تعيين د اجل ضروری دې،البته که د عاقدينو تر مينځه د درې ورځو يا د يوې مياشتې موده معهوده او معروفه وی نو د عدمِ نزاع د وجې نه روا دی او شرعاً به هم دا موده معتبره وی،که داسې نهٔ وی نو دا بيع به فاسده وی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: (ومؤجل الی معلوم) لئلا يفضی الی النزاع ولو باع مؤجلا صرف لشهر به يفتی.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله به يفتی) وعند البعض لثلاثة ايام بحر عن شرح المجمع قلت ويشکل علی القولين ان شرط صحة التاجيل ان يعرفه العاقدان ولذا لم يصح البيع بثمن مؤجل الی النيروز والمهرجان وصوم النصاری اذا لم يدره العاقدان کما سياتی فی البيع الفاسد وکذا لو عرفه احدهما دون الاخر فتامل

قال العلامة الرافعی رحمه الله: (قوله قلت ويشکل علی القولين الخ) فيه تأمل فانه اذا کان المعهود ان الاجل الشهر او ثلثة ايام شرعا وعرفا يکون ذلك معلوما عند العاقدين حتی لو لم يکن له عهد عرفا کما فی زماننا فالظاهر عدم الصحة. (التحرير المختار ص۱۱۴ ج۲) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳۰ محرم ۱۳۹۳ هجری

## د پورتنی په شان یوبل سوال

**سوال**:- چا یو څیز په بیعه واخستلو او وې وئیل چې پیسې به بیا وروستو درکوم، او وخت ئې و نهٔ ټاکلو نو آیا دا روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د اخستلو نه پس ئې دا الفاظ اووئیل او بائع ورله ښه په خوشحالئ اجازت ورکړو نو روا دی، او که د قرضو په شرط ئې اخستې وی نو بیا د ادا کولو د وخت د تعیین کولو نه بغیر روا نهٔ دی.

قال فی التنویر وشرحه: وصح بثمن حال وهو الاصل او مؤجل الی معلوم لئلا یفضی الی النزاع (ردالمحتار ص۲۵ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۲ ربیع الاول ۱۳۹۵ هجری

## د زمکې د اوبو خرڅول روا نه دی

**سوال**:- د زمکې نه بغیر صرف د هغې د اوبو بیعه روا ده که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا بیعه روا نهٔ ده.

قال الحصکفی رحمه الله: و کذا بیع الشرب وظاهر الروایة فساده الا تبعا خانیة و شرح وهبانیة (ردالمحتار ص۱۱۸ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۳ ربیع الاول ۱۳۹۴ هجری

## د ریډیو او د ټیپ اخستل او خرڅول

**سوال**:- د ریډیو او د ټیپ ریکارډ اخستل او خرڅو روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې دا یقین وی چې د دې ټیپ ریکارډر یا د ریډیو په ذریعه به دا سړې په لوبو، او ټنګ ټکور کښې نه اخته کیږی، نو بیا د دې اخستل او هم په داسې سړې باندې خرڅول روا دی او که داسې نهٔ وی نو ناروا دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳ شعبان ۱۳۹۵ هجری

ددې مفصل حکم په رسالې (القول المبرهن فی بیع الرادیو والتیلیویزن) کښې شته دې.

## بغیر د رضا د متابیعینو د بیعې فسخې ته اعتبار نشته دې

**سوال**:- د الف او د با ترمینځه د زمکې یوه سودا وشوه، د ثمن د ادا کولو موده اول شپږ میاشتې او بیا درې میاشتې وټاکلې شوه، په دې دوران کښې مشتری با، بائع الف ته ښې ډیرې پیسې ورکړې، لیکن باقی پاتې پیسې ئې د نیتې په تیریدلو هم ادا نهٔ کړې شوې، الف ترې نه بیا بیا دا تقاضا کوله. لیکن با ورته اخوا دیخوا کول، تر دې چې شپږ کاله په کښې تیر شو، آخر دا چې الف د جرګې په وړاندې دا اعلان وکړو چې زهٔ دا بیعه فسخه کومه، د دې نه وروستو با د باقی پاتې پیسو په ورکولو باندې راضی شو. لیکن الف ونهٔ منل او په دې دوران کښې ئې زمکه په بو

بل سرې باندې خرڅه کړه، آیا د الف دا فعل صحیح دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که مشتری هم د جرګې فیصله قبوله کړې وه، او بیا جرګې د بیعې د فسخ کولو فیصله وکړه نو دا بیعه فسخه شوه، ددې نه پس د بائع دهر قسمه تصرف صحیح دې، او که چیرې مشترې جرګې لره حکم نۀ وو جوړ کړې، یا جرګې د بیعې د فسخه کولو فیصله نۀ وه کړې، بلکه بائع په خپله د جرګې په وړاندې د بیعې د فسخې فیصله واوروله، نو دا بیعه نۀ ده فسخه شوې، لهذا په دې صورت کښې بیا دا دویمه بیعه هم صحیح نۀ شوه، او دغه د دویمې بیعې ثمن د بائع د پاره حلال نۀ دې۔ **واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم** **۹ شوال ۱۳۹۵ هجری**

## چې مشتری ثمن ادا نۀ کړی نو بائع ته د فسخې حق شته دې

**سوال**:- د بیعې د عقد نه پس بائع د ثمن د ادا کولو پورې مبیعه د ځان سره محبوسه کړه، که مشتری ثمن ادا نۀ کړی او یا غیب شی نو بائع څه وکړی؟ آیا بیعه فسخ کړی او که نه نور انتظار هم وکړی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چې مشتری ثمن ادا نۀ کړی او نۀ اقاله وکړی نو بائع ته د بیعې د فسخ کولو اختیار دې، د مشتری له اړخه د ثمن نۀ ادا کولو به عدم رضا او فسخه ګڼلې شی، لهذا د بائع فسخې سره به فسخه د جانبینو نه متحققه شی۔

د دې نه علاوه په بیعه کښې د طرفینو رضامندی شرط ده، او د مشتری له اړخه د ثمن د استیفاء د متعذر کیدو په حالت کښې د بائع رضا مفقوده ده، د دې وجې نه د مشتری له اړخه که فسخه نۀ وی نو هم بائع ته د فسخې اختیار شته دې.

قال العلامة النسفی رحمه الله علیه: ومن قال لآخر اشتریت منی هذه الامة فانکر للبائع ان یطأها ان ترك الخصومة.

وقال العلامة ابن نجیم رحمه الله علیه: لان المشتری لما جحد کان فسخا من جهته اذ الفسخ یثبت به کما اذا تجاحدا فاذا عزم البائع علی ترك الخصومة تم الفسخ بمجرد العزم و ان کان لا یثبت الفسخ فقد اقترن بالفعل و هو امساك الجاریة و نقلها و ما یضاهیه و لانه لما تعذر استیفاء الثمن من المشتری فات رضا البائع فیستبد بفسخه (البحر الرائق ص۳۶ ج۶)

و کذا قال الامام المرغینانی رحمه الله علیه:

وقال العلامة ابن الهمام رحمه الله علیه: فیستبد بفسخه لفوات شرط البیع و هو التراضی (فتح القدیر ص۵۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۷ صفر ۱۴۰۰ هجری

## بيع الوفاء

**سوال**:- څه څيز د چا نه په دې شرط باندې اخستل چې كه بائع پيسې واپس راكوى نو دا څيز به هغهٔ ته واپس وركولې شى، آيا دا معامله روا ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: كه د بيعې په دوران كښې يا ددې نه وړاندې دا شرط لګولې شوې وى، يا جانبين دا عقد غيرِ لازم ګنى نو دا بيع فاسده ده، او كه د بيعې نه پس ئې د واپس كولو وعده وكړه نو دا بيعه صحيح ده، او ددې وعدې ايفاء لازمه ده.

قال في العلائية: وقيل بيع يفيد الانتفاع به وفي اقالة شرح المجمع عن النهاية وعليه الفتوى وقيل ان بلفظ البيع لم يكن رهنا ثم ان ذكرا الفسخ فيه او قبله اوزعماه غير لازم كان بيعا فاسدا ولو بعده على وجه الميعاد جاز ولزم الوفاء به (ردالمحتار ص۲۷۶ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم ۲ شعبان ۱۳۹۷ هجرى

## لفظ (وركړى) وعده د بيعې ده

**سوال**:- زيد د منو د پخيدو نه دوه درې مياشتې وړاندې عمر له څه پيسې وركړې چې عمر به دهٔ له خپلې منې مثلا د دوه سوه روپئ من په حساب سره وركوى، ليكن د عقد په وخت كښې نهٔ د ثمن د تاجيل شرط وو او نهٔ د مبيعې د تاجيل شرط په كښې وو، د عقد په وخت كښې ئې دا اووئيل چې عمر به زيد له منې په دوه سوه روپئ من وركړى په هغه وخت كښې چې كله منې پخې شى، ځكه چې د عقد كولو په وخت كښې منې لا كچه وې، د منې د پخيدلو نه پس عمر د وعدې مطابق دوه سوه روپئ من زيد له وركړې او مشترى ورته هم باقى پاتې پيسې وركړې.

آيا دا ذكر كړې شوې صورت د خانيې په دې جزئيې باندې قياس كولو روا كيدې شى؟

رجل قال لغيره بعت منك عنب هذا الكرم كل وقر بكذا قالوا ان كان وقر العنب معلوما عندهم والعنب جنس واحد ينبغي ان يجوز البيع في وقر واحد عند ابي حنيفة رحمه الله عليه وعند صاحبيه رحمهما الله تعالى يجوز البيع في الكل وجعلوا هذه المسالة فرعا لرجل باع صبرة حنطة فقال بعت منك هذه الصبرة كل قفيز بدرهم عند ابي حنيفة رحمه الله عليه يجوز البيع في قفيز واحد وعندهما يجوز في الكل وان كان عنب الكرم اجناسا قالوا ينبغي ان لا يجوز البيع في شيء في قول ابي حنيفة رحمه الله عليه وان كان الوقر معروفا وعندهما يجوز في الكل كما لو قال بعت الخ (خانية فصل بيع الزروع والثمار ص۳۵۰ ج۲) بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: لفظ د (وركړى) بيعه نهٔ ده بلكه وعده د بيعې ده، لهذا كه مالك وړله د منو د پخيدلو نه پس وركړلې نو دا بيع بالتعاطى شوله. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲ جمادى الثانية ۱۳۹۸ هجرى

## د چاندۍ (سپینو زرو) د قیمت په زیاتیدلو باندې د روپو په مالیت کښې څه فرق نۀ راځی

**سوال:-** یو سړی درې کاله وړاندې په زید باندې یو کتاب په سل روپۍ خرڅ کړو، په هغه وخت کښې د چاندۍ قیمت پنځه روپۍ توله وو، زید په کتاب باندې قبضه وکړه، لیکن پیسې ئې لا تر اوسه پورې نۀ دې ادا کړې، کتاب اوس هم زید سره دې، بائع وائی چې زۀ به اوس د کتاب قیمت د سلو په ځائې درې سوه روپۍ اخلم، ځکه چې اوس چاندی په پنځلس روپۍ توله ده، او په تا مې چې کوم کتاب په سل روپۍ خرڅ کړې وو نو په هغه وخت کښې سل روپۍ د شلو تولو چاندۍ قیمت وو، او په دې وخت کښې د شلو تولو چاندۍ قیمت درې سوه روپۍ دې-

د خپلې خبرې د مرستې دپاره د شامیې دا عبارت وړاندې کوی:

**اما اذا غلت قیمتها او انتقصت فالبیع علی حاله ولا یتخیر المشتری ویطالب بالنقد بذلك العیار الذی کان وقت البیع کذا فی فتح القدیر (ص ۳۲ ج ۴)**

نن صبا روپۍ هم د خالصې چاندې نۀ دی غالب الغش دی، د کومو حکم چې په ذکر کړې شوی عبارت کښې ښودلې شوې دې، د بائع د رائې تصحیح یا تغلیط سره د دلائلو راته اوفرمایئ- بینوا توجروا-

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بائع خیال باطل دې، ځکه چې مروجه پیسه **من کل الوجوه** په حکم د فلوسو کښې نۀ ده، اوکه نه نو بیا خو به ددې په مبادله بالجنس کښې تفاضل روا وې، او د کروړونو په تعداد کښې د لوټونو په ملك کښې د کیدلو باوجود به په دې باندې زکوة نۀ فرض کیدلو، **وهو باطل والقول المستلزم للباطل باطل**.

د قدیمې زمانې په فلوسو او ددې وخت په رواج شوې سکې کښې دا فرق دې، چې هغه فلوس بۀ په خپله معیار او مقصود نه وو، بلکه د درهم بدل به شمارلې کیدلو، او د دې وخت رواج شوې سکه اگر چې په عالمی منډۍ کښې په خپله معیار نۀ دې بلکه د سرو زرو او د ډالرو بدل دې، لیکن په ملك کښې دننه د روپۍ لوټ په خپله معیار او مقصود دې، او مروجه پیسې ددې بدل دی، لهذا د یوې روپۍ لوټ په حکم د درهم کښې شولو، او ددې بدل سل پیسې په حکم د فلوسو کښې شوې، اصل څیز په کښې نقده روپۍ ده، او د پیسو ذکر د دې اصل نقد د یو مقدار یو تعبیر وی، اول اول روپۍ د ۶۴ پیسو وه وروستو ئې بیا د سلو پیسو کړله، د دې تبدیلۍ نه وړاندې شپاړس پیسې ثمن متعین کړې شو، نو دا پاو د روپۍ یو تعبیر دې، مشتری ته اختیار دې چې هغه شپاړس پیسې ادا کوی یا اتۀ ټکې او یا یو څلور انیز، لیکن هر کله چې پیسې ارزانې شوې یعنې د یوې

روپۍ په مقابله کښې سل پیسې کړې شوې، نو اوس مشتری ته د شپاړسو پیسو د ورکولو اختیار نشته دې. بلکه پنځه ویشت پیسې یا د روپۍ پاو به ادا کوی.ځکه چې په عقد کښې اصل مقصد پاو روپۍ وه،د پیسو ذکر ددې یو تعبیر وو.لهذا د پیسو د ارزانیدلو نه وروستو د تعبیر چې کوم اصل مقصود وو یعنی د روپۍ پاو هغه به واجب وی.

همدې حقیقت ته د نظر کولو د وجې نه د امام ابو یوسف رحمه الله مسلك دا دې چې د فلوسو په قیمت کښې د کمی بیشئ په صورت کښې د درهم په لحاظ به د ثمن اصل معیار واجب الاداء وی، او حضرت امام اعظم رحمه الله په دې صورت کښې هم د متعینو فلوسو ادا کولو لازم ګرځوی.

د دې اختلاف نه ثابتیږی چې د فلوسو اخستل ورکول به په دواړو طریقو سره مروج وی،د درهم د بدل په حیثیت سره هم او د مکیلاتو او د موزوناتو په شان مقصوداً به هم مروج وی.**فاخذ الاول بالثانی والثانی بالاول**.

په اکثرو کتابونو کښې همدغه شان اختلاف نقل کړې شوې دې او د امام ابو یوسف رحمه الله قول ئې مفتی به ګرځولې دې،خو ولې په جوهره کښې ئې د نهایې نه په رد د مثل باندې اتفاق نقل کړې دې.**ویمکن التوفیق بالحمل علی المثل فی الجنس دون العدد**

مروجه کرنسی په اتفاق سره د څه بل څه څیز نه عبارت نۀ ده،بلکه په خپله مقصوده ده،اګرچه لوئې لوټونه د یوې روپۍ د لوټونو د رسید په طور باندې چاپ کولې شی، لیکن د یوې روپۍ لوټ کومې ته چې کرنسی وئیلې شوې دی په خپله مقصود دې،او په دې لحاظ سره په حکم د درهم او د دینار کښې دی.

د همدې وجې نه په عامو اخستلو او خرڅولو کښې او د تاجرانو په عرف کښې د سرو سپینو په نرخ کښې د کمی زیاتی د وجې نه په طور د ثمن یا د قرض چې کومه واجب الذمه مروجه کرنسی ده په هغې څه اثر نۀ غورځیږی، بلکه د مروجې کرنسۍ کوم اصل مقدار چې واجب وو هم هغه ادا کولې شی.

که د بائع باطله خیال تسلیم کړې شی،نو د ربا مروج صورتونه به ټول حلال شی،او صرف حلال به نۀ شی بلکه په مشتری او مستقرض باندې به د ربا ادا شرعاً واجبه وګرځی. ځکه چې د سرو سپینو زرو قیمتونه خو همیشه زیاتیږی، نو که آکلین د ربا به دا صورت اختیار کړی چې په ربا کښې د کرنسۍ د تعیین په ځائې په وخت د ادا کښې د سرو یا د سپینو زرو د نرخ مطابق به یې وصولوی نو د هغوی په کښې څه نقصان دې

«رحمن هم راضی او شیطان هم خوشحاله»

البته په عالمی منډۍ کښې د کرنسۍ اصل معیار ډالر ګرځولې شوې دې.لهذا د ډالر په مقابله کښې د روپۍ په قیمت کښې د کمی زیاتی په صورت کښې به د بیرونی تجارت ثمن یا قرض د ډالر

د قیمت مطابق ادا کولې شی، اګر چې د عقد په وخت کښې د روپئ مقدار ذکر کړې شوې وی.

## حاصل د کلام

۱. په ملك کښې دننه د روپئ لین دین د مستقلې سکې حیثیت لری، د یوې بلې سکې تابع نۀ دی. د دې وجې نه د دې په مالیت کښې د کمی بیشی په صورت کښې به دومره روپئ واجبیږی څومره چې په اصل کښې وې.

۲. که چیرې بالفرض په ملك کښې دننه هم روپئ مستقله سکه ونۀ شمیرلې شی، او په حکم د فلوسو کښې تسلیم کړې شی، نو بیا هم د امام اعظم رحمه الله د قول مطابق د مالیت د اختلاف به څه اثر نۀ وی.

۳. د نهایې د تصریح خلاف که د امام ثانی رحمه الله اختلاف تسلیم هم کړې شی، نو هغه به په دې صورت کښې وی، چې متعاقدینو د فلوس د اصل مقصود کیدلو څه تصریح نۀ وی کړې. که چیرې د دې تصریح سره عقد شوې وی، چې د درهم سره د څه نسبت نه قطع نظر په خپله د فلوسو دا عدد مقصود دې، نو ظاهره ده چې قول ثانی به امام اول رحمهما الله تعالی موافق وی.

عرف عام کښې په ملك کښې دننه د روپئ په لین دین کښې د یو بلې سکې نه قطع نظر په خپله د روپئ عدد مقصود وی. لهذا د **المعروف کالمشروط** د لاندې د امام ثانی رحمه الله د قول مطابق به هم د روپئ په مالیت کښې کمې بیشې ددې په اصل عدد باندې نۀ مؤثر کیږی.

دا بحث مې هسې استطراداً اولیکلو اوکه نه نو حقیقت هم هغه دې چې په ملك کښې دننه روپئ د یوې بلې سکې تابع نۀ ده، په خپله مستقله سکه ده، ددې وجې نه دا اختلاف د مالیت په صورت کښې په حکم د فلوس کښې نۀ دې بلکه په حکم د درهم کښې دې.

په ملك کښې دننه په روپئ کښې د لین دین کولو په حقله عرف عام او د ټولو اجماع او اتفاق دې، چې دا د یوې بلې سکې تابع نۀ ده د کومې د وجې نه چې په اصل واجب روپئ په عدد کښې کمې بیشې راشی، په دې حقیقت باندې ددې حده پورې اتفاق کړې شوې دې چې ددې خلاف چې څوك قائله وی هغۀ ته به خلق لیونې وائی. لهذا د ګیلتو د سکې د جوړیدلو نه پس په دې کښې د کلونو د اوږد تعامل نه پس زمونږ وړاندې صرف داسې دوه سوالونه راغلې دی په کومې کښې چې د اصل واجب نه د زیات عدد مطالبه کړې شوې ده. او دا واقعات هم داسې چې په دې کښې د مدعی هوس ښکاره دې. او دا یقینی خبره ده چې دا مدعی به پخپله هم د دې یوې جزئی واقعې نه علاوه باقی په ټولو معاملو کښې د روپئ هم هغه عدد واجب ګنړی کوم چې ئې په شروع کښې ګنړلو او ددۀ خپل عمل به هم په ټول لین دین کښې هم ددې مطابق وی. **والله سبحانه وتعالی اعلم.**

**۲۰ ذی الحجه ۱۳۹۸ هجری**

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

یوه استفتاء او د هغې جواب ستاسو په خدمت کښې وړاندې کوو.
اصل مسئله خو دبیعې اودقرض په حقله ده.د شفعې صورت په دې باندې قیاس کړې شوې دې ، ځکه چې شفعه هم یو قسمه بیعه ده،هم په هغه ثمن باندې ده په کوم ثمن چې مشتری ته پیروتې وه، صرف تحویل د صفقې شوې دې، دا تحقیق مطلوب دې چې په بیعه،قرض او شفعه کښې به د زړو ثمنو او د قرضو مالیت واجب وی او که نه رد مثل به په کښې واجب وی،حال دا چې معامله وړاندې شوې وی او د روپئ په قیمت کښې کمې بیا وروستو د قبض نه وړاندې واقع شوې وی.
**بنده عبدالستار عفا الله عنه خیر المدارس ملتان ۲۵ رجب ۱۳۹۹ هجری**

**سوال:**- ستمبر ۱۹۷۴ ء کښې مشتری ۲۳ کناله او ۱۳ مرلې زمکه په عوض ۱۵۰،۰۰۰ یونیم لاکه روپو دخپلو خپلوانو او د خاندان د خلقو د کورونو د جوړولو دپاره واخستله. په ستمبر ۱۹۷۵ ء کښې مشتری دعوی وکړه، لا تر اوسه پورې فیصله نۀ ده شوې، لیکن اوس د دې ذکر کړې شوی جائداد قیمت ۱۳۰۰۰۰۰ دیارلس لاکهو ته رسیدلې دې، آیا دا زمکه به شفیع ته هم په یو نیم لاکه باندې ورکولې کیږی؟ او مشتری ته به یونیم لاکه روپئ ورکولې کیږی ؟
دا خبره دې واضحه وی چې که مشتری په دغه ځائې کښې اوس زمکه اخستل غواړی نو په دغه پیسو به هغۀ ته اووه ۷ کناله زمکه ملاویږی.

**الجواب:**- (از خیر المدارس ملتان) ، د زمکې د قیمت د زیاتیدلو په وجه به په شفیع باندې زیادت نۀ لازمیږی،ځکه چې د شفعې حقیقت دا دې چه : **قال فی التنویر: هی تملیك البقعة جبراً علی المشتری بما قام علیه.**

البته د روپئ په قیمت کښې چې په سرکاری توګه کوم کمې زیاتې کړې شوې وو هغۀ به د مشترې په حق باندې اثر نۀ غورځوی،یعنی د بیعې په وخت کښې چې کوم مالیت وو،هم د هغې مطابق به اوس دۀ د شفیع نه د پیسو اخستلو حق وی، د روپئ د قیمت غورځیدل به د مشتری حق نۀ کموی، هر کله چې د شفعې حصول د بیعې او د قرض سره مشابه کړې شی .

**وفی الشامیة: وفی البزازیة عن المنتقی غلت الفلوس اورخصت فعند الامام والثانی اولا لیس علیه غیرها و قال الثانی ثانیاً علیه قیمتها من الدارهم یوم البیع و القبض و علیه الفتوی و هکذا فی الذخیرة والخلاصة و نقله فی البحر واقره بحیث صرح بأن الفتوی علیه فی کثیر من المعتبرات فیجب ان یعول علیه افتاءً وقضاءً ولم ار من جعل الفتوی علی قول الامام اه (شامیة ص۲۵ ج۴)**

او په قرضو کښې هم دا حکم دې .

قال الشامی رحمۃ اللہ علیہ: وحاصل ما مر انه علی قول ابی یوسف المفتی به لا فرق بین الکساد والانقطاع والرخص والغلاء فی ان تجب قیمتها یوم وقع البیع او القرض لا مثلها.

لیکن په جوهره کښې د رخص او د غلاء په صورت کښې د نهایې نه اتفاق نقل کړې شوې دې چې رد مثل به وی د مالیت وجوب به په کښې نهٔ وی.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ستاسو جواب صحیح دې. روپئ اګرچې په عالمی منډئ کښې د روپئ تابع ده، لیکن د ملك په اندرونی معاملو کښې یوه مستقله سکه ده، د یوې بلې سکې تابع نهٔ ده، د دې وجې نه د مالیت د اختلاف د نهٔ مؤثر کیدلو په لحاظ به روپئ په حکم د فلوس کښې نهٔ وی بلکه په حکم د درهم کښې به وی.

۲۰ ذوالحجه ۱۳۹۸ هجرئ کښې بنده ددې په حقله د یوې استفتاء جواب په تفصیل سره لیکلې وو، د هغې نقل تاسو ته درلیګو. واللہ سبحانه وتعالی اعلم. **۱۳ شعبان ۱۳۹۹ هجری**

## د پلار د صغیر زمکې لره خرڅول

**سوال**:- پلار د خپل ماشوم څوئی زمکه خرڅولې شی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د پلار په څوئی باندې شفقت معروف وی یا مستور الحال وی نو خرڅولې ئی شی.

قال الامام الحصکفی رحمۃ اللہ علیہ: ولو البائع ابا فان محمودا عند الناس او مستور الحال یجوز ابن کمال.

وقال العلامة ابن عابدین رحمۃ اللہ علیہ: (قوله یجوز) فلیس للصغیر نقضه بعد بلوغه اذ للاب شفقة کاملة و لم یعارض هذا المعنی معنی اخر فکان هذا البیع نظرا للصغیر و ان کان الاب فاسدا لم یجز بیعه العقار فله نقضه بعد بلوغه هو المختار الا اذا باعه بضعف القیمة اذ عارض ذلك المعنی معنی اخر.

تنبیه:- ظاهر کلامهم هنا انه لا یفتقر بیع الاب عقار ولده الی المسوغات المذکورة فی الوصی و نقل الحموی فی حواشی الاشباه من الوصایا ان الاب کالوصی لا یجوز له بیع العقار الا فی المسائل المذکورة کما افتی به الحانوتی اهـ ثم رایت فی مجموعة شیخ مشایخنا منلا علی الترکمانی قد نقل عبارة الحموی المذکورة ثم قال ما نصه وهو مخالف لاطلاق ما فی الفصول وغیره و لم یستند الحانوتی فی ذلك الی نقل صحیح و لکن اذا صارت المسوغات فی بیع الاب ایضا کما فی الوصی صار حسنا مفیدا ایضا لان الاخذ بالاتفاق اوفق هکذا افادنیه شیخنا الشیخ محمد مراد السقامینی رحمۃ اللہ علیہ (رد المحتار ص ۵۰۲ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

**۴ ذوالحجه ۱۳۹۹ هجری**

## د مکې مکرمې د زمکې او د کورونو بیعه او اجارة

**سوال:-** د امام ابو حنیفه رحمه الله په نیز د مکې مکرمې یعنې د حرم د زمکې او د کورونو اخستل خرڅول او په کرایه باندې ورکول روانۀ دی، په تفسیر مظهری وغیره کښې دی:

ومن ههنا قال ابو حنيفة و احمد فی اصح الروايتين عنه لا يجوز بيع رباع مكة ولا اجارة دورها فان ارض الحرم عتيق غير مملوك لاحد (تفسير مظهری ج۶ سورة حج، فی تفسير قوله تعالى: والمسجد الحرام الذی جعلناه سواء العاكف فيه والباد)

د رباع معنی کورونه دی او که زمکه؟ د امام صاحب رحمه الله په نیز صرف د زمکې اخستل خرڅول او اجاره ناروا ده او که نۀ د کورونو اخستل خرڅول او د اجاره هم مراد ده؟

په طحاوی کښې دی: عن عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما ان النبی ﷺ قال لا يحل بيع بيوت مكة ولا اجارتها.

عن علقمة بن نضلة قال توفی رسول الله ﷺ وابو بكر وعمر وعثمان رضی الله عنهم ورباع مكة تدعى السوائب من احتاج سكن ومن استغنى اسكن.

وفی رواية له كانت الدور على عهد رسول الله ﷺ وابی بكر وعمر وعثمان رضی الله عنهم ما تباع ولا تكرى (الحديث)

امام طحاوی رحمه الله بیا وروستو لیکلې دی چې په دې احادیثو باندې عمل کوونکی امام ابو حنیفة، محمد، او ثوری رحمهم الله دی.

د دې نه دا معلومیږی چې د زمکې د اخستلو او خرڅولو او د اجارې نه علاوه د کورونو اخستل خرڅول او اجاره هم د هغوی په نیز ناروا دی، په احادیثو کښې راځی:

قد اشترى عمر بن الخطاب رضی الله عنه من صفوان بن امية رضی الله عنه دارا باربعة الاف درهم.

و كذا روى البيهقی عن ابن الزبير رضی الله تعالى عنهما ان اشترى حجرة سودة رضی الله تعالى عنها (رواه البيهقی ص۳۴ ج۶)

وعن حكيم بن حزام رضی الله عنه انه باع دار الندوة.

وعن عمر رضی الله عنه ان اشترى الدور من اهلها حتى وسع المسجد و كذلك عن عثمان رضی الله عنه

که چیرې د امام صاحب رحمه الله په نیز صرف د زمکې اخستل او خرڅول او اجاره ناروا ده او د کورونو هغه روا ده، نو ددې احادیثو دا جواب کیدې شی، چې دا بیعه او شراء د کورونو وه د زمکې نۀ وه، لیکن که د بناء یعنی د کورونو بیعه او شراء هم ناروا وی نو بیا ددې احادیثو څه جواب کیدې شی؟

که چیرې بیعه اوشراء د بناء یعنی د کورونو ددوی په نیز روا وی، نو بیا د هغې احادیثو څه جواب کیدې شی په کومو کښې د رباع او د کورونو کرایه او بیعه او شراء ناروا ښودلې شوې ده؟ او هغه احادیث د امام صاحب رحمه الله مستدلات ښودلې شوې دی، پورته احادیث او عبارتونه لیکلې شوې دي چې د مکې مکرمې د رباع بیعه او شراء او اجاره د هغوی په نیز ناروا دی، او په دې مستدلات کښې ډیر احادیث د طحاوی نه نقل کړې شوې دی۔

د امام صاحب په مستدلاتو کښې یو دا هم دې چه: **عن مجاهد انه قال مكة مباح لا يحل بيع رباعها و لا اجارة بيوتها.**

مهربانی وکړئ زمونږ ددې پورتنئ شبهې ازاله وکړئ، الله تعالی دې تاسو ته جزاء خیر درکړی۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:**

امام طحاوی رحمه الله د مکې مکرمې د زمکې او د کورونو بیعې او اجارې جواز له ترجیح ورکړې ده، د کراهیت د دلائلو ئې دوه جوابونه ورکړې دی:

۱- روایت د جواز سنداً قوی دې۔

۲- وجه النظر جواز لره مقتضی دې۔

**و نصه:- ولما اختلفا احتيج الى النظر فى ذلك لنستخرج من القولين قولاً صحيحاً و لو صار الى طريق اختيار الاسانيد وصرف القول الى ذلك لكان حديث على بن حسين اصحهما اسناداً ولكنا نحتاج الى كشف ذلك من طريق النظر فاعتبرنا ذلك فرايناالمسجد الحرام الذى كل الناس فيه سواء لا يجوز لاحد ان يبنى فيه بناء و لا يحتجر منه موضعا و كذلك حكم جميع المواضع التى لا يقطع لاحد فيها ملك و جميع الناس فيها سواء الا ترى ان عرفة لو اراد رجل ان يبنى فى المكان الذى يقف فيه الناس فيها بناء لم يكن ذلك له و كذلك منى لو اراد ان يبنى فيها دارا كان من ذلك ممنوعا و كذلك جاء الاثر عن رسول الله ﷺ (طحاوی ص ۱۸۳ ج ۲)**

د امام حصكفی او د علامه ابن عابدين رحمهما الله تعالی تحقيق هم دا دې، البته هغوی صرف د موسم په ورځو کښې د حاجیانو د پاره د کورونو اجاره مکروه ګرځولې ده او د کورونو د اجارې کراهت ئې هم په دې باندې محمول کړې دې۔

**قال العلائى رحمه الله: وجاز بيع بناء بيوت مكة وارضها بلا كراهة وبه قال الشافعى رحمه الله وبه يفتى عينى و قد مر فى الشفعة وفى البرهان فى باب العشر و لا يكره بيع ارضها كبنائها وبه يعمل وفى مختارات النوازل لصاحب الهداية لا باس ببيع بنائها و اجارتها لكن فى الزيلعى وغيره يكره اجارتها و فى اخر الفصل الخامس من التتارخانية واجارة الوهبانية قالا قال ابو حنيفة رحمه الله اكره اجارة بيوت مكة فى ايام الموسم وكان يفتى لهم**

ان ينزلوا عليهم فى دورهم لقوله تعالى سواء العاكف فيه والبادو رخص فيها فى غير ايام الموسم اهـ فليحفظ.قلت و بهذا يظهر الفرق والتوفيق و هكذا كان ينادى عمر بن الخطاب رضي الله عنه ايام الموسم و يقول يا اهل مكة لا تتخذوا البيوتكم ابوابا لينزل البادى حيث شاء ثم يتلوا الاية.فليحفظ.

و قال ابن عابدين رحمه الله : (قوله و ارضها) جزم به فى الكنز و هو قولهما واحدى الروايتين عن الامام لانها مملوكة لاهلها لظهور اثار الملك فيها وهو الاختصاص بها شرعا و تمامه فى المنح و غيرها (قوله و قد مر فى الشفعة) و مر ايضا ان الفتوى على وجوب الشفعة فى دور مكة و هو دليل على ملكية ارضها كما مر بيانه (قوله قال ابو حنيفة) اقول فى غاية البيان ما يدل على انه قولهما ايضا حين نقل عن تقريب الامام الكرخى ما نصه: و روى هشام عن ابى يوسف عن ابى حنيفة رحمه الله انه كره اجارة بيوت مكة فى الموسم ورخص فى غيره و كذا قال ابو يوسف رحمه الله و قال هشام اخبرنى محمد عن ابى حنيفة رحمهما الله تعالى انه كان يكره كراء بيوت مكة فى الموسم و يقول لهم ان ينزلوا عليهم فى دورهم اذا كان فيها فضل وان لم يكن فلا و هو قول محمد رحمه الله اهـ فافاد ان الكراهة فى الاجارة وفاقية و كذا قال فى الدر المنتقى صرحوا بكراهتها من غير ذكر خلاف اهـ (قوله و به يظهر الفرق) اى بحمل الكراهة على ايام الموسم يظهر الفرق بين جواز البيع دون الاجارة و هو جواب عما فى الشرنبلالية حيث نقل كراهة اجارة ارضها عن الزيلعى والكافى والهداية ثم قال فلينظر الفرق بين جواز البيع وبين عدم جواز الاجارة اهـ وحاصله ان كراهة الاجارة لحاجة اهل الموسم (قوله والتوفيق) بين ما فى النوازل و ما فى الزيلعى و غيره بحمل الكراهة على ايام الموسم و عدمها على غيرها (ردالمحتار ص ۲۸ ج ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۰ رجب ۱۴۰۰ هجرى

## په لوټونو سره د سرو زرو او د سپينوزرو بيعه

**سوال**:- نن صبا مروجه لوټونه اوسکې کومې چې د حکومت له اړخه رائج شوې دی،په کومې سره چې خلق بيعه او شراء او لين دين کوی،آيا دا د سرو او سپينو د دواړو يا صرف د سرو زرو يا صرف د سپينو زرو په حکم کښې دی،آيا په دې بآندې د سرو يا د سپينو بيعه **بالفضل والنسيئة** يا صرف **بالفضل** يا صرف **بالنسيئة** روا ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : رائج لوټونه د سرو او د سپينو زرو په حکم کښې نهٔ دی.او نهٔ د سرو يا د سپينو رسيد دې، لهذا په دې باندې بيعه د سرو او د سپينو بهر حال روا ده، تفاضل او نسيئة په کښې هم روا ده،البته حرمت د ربوا به په صورت د تبادل بالجنس سره واقع کيږی،او په

فرضیت د زکوٰة کښې به دا سکه په حکم د فضې کښې وی، کما قالوا فی الفلوس الرائجة، والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۲۷ محرم ۱۴۰۱ هجری

## د قرعه اندازهئ په صورت کښې په قیمت کښې رعایت

**سوال:**- نن صبا د موټر سائیکلو یوې کمپنئ د خپلې مشهورتیا دپاره یوه طریقه اختیار کړې ده، چې په قسطونو باندې موټر سائیکلې خرڅوی، یوویشت قسطونه مقرر کړې شوې دی، او هر یو قسط پنځه سوه او پنځوس روپئ د میاشتې ادا کول وی، که د قسطونو پوره کولو نه وړاندې د یو اخستونکی نوم په قرعه اندازئ کښې راووتلو (هر میاشت په کښې قرعه اندازی کیږی) نو موټر سائیکل هغه ته ورکړې شی، او باقی پاتې نور ټول قسطونه ورته معاف کړې شی، که چیرې شلو میاشتو پورې په قرعه اندازئ کښې د اخستونکی نوم راونهٔ وتلونو د یوویشت میاشتو نه پس موټر سائیکل هغهٔ ته ورکړې شی، او دا د یوویشت قسطونو رقم د موټر سائیکل هغه قیمت دې کوم چې په مارکیټ کښې چلیږی، زیات قیمت نهٔ دې، د اخستلو او خرڅولو دا طریقه روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا په قیمت کښې د کمپنئ له اړخه رعایت دې، او کوم یو اخستونکی چه ته دا رعایت ورکړې شی د دې انتخاب هغوی د قرعه اندازئ په ذریعه کوی، په دې کښې د چا هیڅ نقصان نشته دې، لهذا دا اخستل او خرڅول روا دی۔ والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۲۶ ذی قعده ۱۴۰۲ هجری

# باب البیع الفاسدوالباطل

## که په بیع فاسده کښې مبیعه هلاکه شوه

**سوال:**- په بیع فاسده کښې که چیرې مبیعه هلاکه شی نو ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بائع به د مشتری نه په ذوات القیم کښې د یوم القبض قیمت او په ذوات الامثال کښې به د هغې مثل واخلی او مشتری ته به ثمن واپس کړی.

**قال فی جامع الفصولین: ثم المبیع فاسداً تضمن قیمته یوم قبضه لو قیمیا ومثله لو مثلیا لضمانه بقبضه**

**(جامع الفصولین ص۴۹ ج۲) والله سبحانه وتعالی اعلم** **۲۵ ذی الحجه ۱۳۸۵ هجری**

## په قسطونو باندې اخستل او خرڅول

**سوال:**- مشین، ریډیو، یا پکې وغیره د دکاندار نه په قسطونو باندې اخستل شرعاً روا دی او که نه؟حال دا چې اخستونکی ته په دې کښې اسانی وی، لیکن په قسطونو باندې په قرض اخستلو کښې د نقدو اخستلو په نسبت څه زیاتې پیسې ادا کول غواړی، په دې کښې دا هم شرط دې چې د ټولو قسطونو په نۀ ادا کولو باندې به سابقه ټول قسطونه ضبط کړې شی او مبیعه به ترې واپس واخستې شی۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د قرضو د وجې نه زیات قیمت اخستل روا دی ، لیکن د ټولو قسطونو د نۀ ادا کولو په صورت کښې د مبیعې د واپسئ او د ادا کړې شوو قسطونو د ضبط کولو چې کوم شرط دې نو دا شرطِ فاسد دې، ددې وجې نه دا معامله روا نۀ ده۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم** **۸ ربیع الاول ۱۳۸۷ هجری**

## بیع بالشرط

**سوال:**- زید په بکر باندې یوه میینه خرڅه کړه، په دې شرط باندې چې د دې شودۀ به هم زۀ په بیعه اخلم، اوس ددې شودۀ د زید دپاره اخستل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د میینې بیعه په دې شرط باندې موقوفه وه چې که مشتری دا شرط نۀ قبلولو نو بائع په بیعه باندې نۀ راضی کیدلو نو دا بیعه بیا فاسده ده، د کومې نه چې توبه او استغفار او ددې بیعې فسخ واجبه ده، البته که صرف د مشورې او د وعدې په توګه ئې دا شرط ولګولو بیعه ئې په دې باندې موقوفه ونۀ ګرځوله نو بیا دا بیعه صحیح شوه، د دې شودو لین دین روا دې، بکر ددې پابند نۀ دې چې صرف په زید باندې دې شودۀ خرڅ کړی، لیکن اخلاقاً دۀ له دا

وعده پوره کول پکار دی۔

قال فی التنویر: ولا بیع بشرط.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت هذا القول: ثم ذکر فی البحر انه لو اخرجه مخرج الوعد لم یفسد و صورته کما فی الولوالجیة قال اشتر حتی ابنی الحوائط اه (رد المحتار ص ۱۳۵ ج ۴) والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۵ رجب ۱۳۸۷ هجری

## د بونس واوچر (دمنافعو سند) بیعه روا نهٔ ده

**سوال:**- مال برآمد کوونکې حکومت ته د برآمد ثبوت وړاندې کوی، په کوم باندې چې حکومت هغهٔ ته د بونس (منافع) په نوم باندې څه انعام ورکوی لیکن د انعام دا پیسې ورله نقدې نهٔ ورکوی. بلکه ددې رسید ورکولې شی. کومې ته چې بونس واوچر وئیلې شی، برآمد کوونکې دا په بازار کښې په زیات قیمت باندې خرڅوی. مثلاً لکه د سلو روپو د بونس واوچر (یعنې رسید) تقریبا په یو دوه باندې خرڅوی، حکومت د بعضې څیزونو د درآمد اجازت په بونس واوچر باندې موقوف کړې دی، د دې وجې نه په بازار کښې د بونس واوچر قیمت زیات دې. آیا شرعاً داسې د بونس واوچر اخستل خرڅول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** برآمد کوونکې قبل القبض ددې پیسو مالك نهٔ دې. د دې وجې نه ددې خرید او فروخت کول روا نهٔ دی، بله دا چې د بونس واوچر د اصل رقم نه زیات اخستل د سود کیدلو د وجې نه حرام دی۔ والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۴ شوال ۱۳۸۸ هجری

## د سوتېو او د پاخانې (یعنی د ډکو متیازو) بیعه

**سوال:**- آیا د سوتېو او د پاخانې د بیعې یو حکم دې؟ یعنی د دواړو بیعه روا ده او که ناروا؟ په نجس کیدلو کښې خو دواړه برابر دی، په دې لحاظ سره ددې حکم هم یو کیدل پکار دی. بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د سوتېو بیعه روا ده او د پاخانې بیعه ناروا ده، البته! که چیرې دا پاخانه د خاورو سره ګډه وډه شوې وی او خاوره په دې باندې غالبه شوې وی نو بیا ئې بیعه روا ده.

په دواړو کښې فرق دې، هغهٔ دا چې پاخانه په اتفاق سره نجاست غلیظه دې او په سوتېه کښې اختلاف دې، د امام صاحب رحمه الله په نیز دا نجاست غلیظه دې او د صاحبینو رحمهما الله تعالی په نیز دا نجاست خفیفه دې. اګرچې ترجیح د نجاست غلیظه قول ته ده.

دویم فرق دا دې، چې په پاخانه کښې بدبوئی ډیره زیاته وی او په سوتېو کښې دومره زیاته نهٔ وی

د دې نه علاوه دا خبره هم ده چې د سوتو د استعمال ضرورت شته دې۔

قال فی التنویر و شرحه: وبطل بیع قن ضم الی حر و ذکیة ضمت الی میتة ماتت حتف انفها (الی قوله) ورجیع ادمی لم یغلب علیه التراب فلو مغلوبا به جاز کسر قن و بعر (ردالمحتار ص۱۱۶ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۳۰ ربیع الثانی ۱۳۸۹ هجری

## فنشن (تقاعدی) خرڅول جائز نهٔ دی

**سوال**:- زهٔ د پاکستان نیوی (بحری عسکر) ریټائرډ چیف پی آئی اې افسر یم، حکومت ما له یو سل دوه څلویښت روپئ د میاشتې فنشن راکوی، حکومت دا سهولت ورکړې دې چې که څوك ریټائرډ سړې خپل فنشن په حکومت باندې خرڅول غواړی نو حکومت به هغهٔ ته نیم فنشن په یو ځل ورکړی، عرض د خبرې دا دې چې آیا شرعاً دا بیعه روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: فنشن یو قسم انعام دې،څو پورې چې د نوکر په دې باندې قبضه نهٔ وی راغلې نو هغهٔ د دې نهٔ مالك کیږی،د دې وجې نه ددې بیعه روا نهٔ ده،البته په خپله د حکومت سره د دې بیعه کول په حقیقت کښې بیعه نهٔ ده،صرف د نوم او صورت بیعه ده،د دې حقیقت دا دې چې حکومت چې کوم غټ انعام په قسطونو باندې د ورکولو وعده کړې وه،اوس د هغې نه کم مقدار کښې انعام په یو ځل ورکوی،د دې وجې نه د حکومت سره دا معامله کول روا دی۔ والله سبحانه وتعالی اعلم.　　　۲ جمادی الآخرة ۱۳۹۳ هجری

## د دمِ مسفوح بیعه او شراء حرامه ده

**سوال**:- د حلالو ځناورو هغه وینه کومه چې په وخت د ذبحه کولو کښې وځی،د هغې اخستل او خرڅول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا روا نهٔ دی۔

قال فی التنویر و شرحه: هو مبادلة شئ مرغوب فیه بمثله خرج غیر المرغوب کتراب و میتة و دم (ردالمحتار ص۴ ج۴). والله سبحانه وتعالی اعلم.　۲۹ رجب ۱۳۹۵ هجری

## د شرابو د پیسو حکم

**سوال**:- زید ډیر قرضدارې وو، لیکن هغهٔ سره د شرابو نه علاوه بل څه نهٔ وو،لهذا هغه شراب خرڅ کړل او د خلقو قرض ئې ادا کړو،اوس دا تپوس کول دی چې کومو خلقو ددې پیسو نه خپل قرض اخستلې دې نو دا د هغوی په حق کښې روا دی او که ناروا؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بیعه د خمرو باطله ده،ددې ثمن واجب الرد دې، په بائع او

قرضخواه باندې حرام دې. والله سبحانه وتعالى اعلم

## په عقد سلم کښې قبل القبض په راس المال یا په مبیعه کښې تصرف کول

**سوال:**- زید د بکر نه پنځوس منه مالوچ د شل روپو یو من په حساب سره واخستل،او دا ئې ورته اووئیل چې په فصل باندې کله مالوچ شروع شی نو اخلی به ئې ،بکر هم اقرار وکړو،اوس په فصل راتلو کښې دوه میاشتې پاتې دی، شل روپئ د یو من په حساب سره زید بکر له د پنځوسو منو پیسې ورکړې، تپوس دا کول دی چې که اوس زید هم دا مالوچ په عمرو باندې دیرش روپئ د یو من په حساب سره خرڅ کړی نو دا روا دی او که نه؟ بله دا چې د زید او د بکر تر مینځه چې کومه بیعه سلم وشوه نو هغه روا دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په بیع سلم کښې دا شرط دې چې د وخت د عقد نه واخله د وخت د محل پورې دا مسلم فیه په بازار کښې موجود وی،که چیرې مالوچ دوو میاشتو پورې په بازار کښې موجود وی نو دا بیعه روا ده،او که نۀ وی موجود نو بیا روا نۀ ده.

قال العلامة المرغینانی رحمه الله علیه: ولا یجوز السلم حتی یکون المسلم فیه موجودا من حین العقد الی حین المحل حتی لو کان منقطعا عند العقد موجودا عند المحل او علی العکس او منقطعا فیما بین ذلك لا یجوز.(هدایة ص۹۳ ج۳)

په عقد سلم کښې قبل القبض په راس المال یا په مسلم فیه کښې هیڅ تصرف روا نۀ دې،لهذا د زید خرڅول روا نۀ دی.

قال فی التنویر و شرحه: ولا یجوز التصرف للمسلم الیه فی راس المال ولا لرب السلم فی المسلم فیه قبل قبضه. (ردالمحتار ص۲۳۳ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۴ ربیع الثانی ۱۳۸۸ هجری

## د مهیانو نیولو والا د وړاندې نه (پیشکی) پیسې اخستل

**سوال:** یو مهیانو نیولو والا د خالد نه په دې شرط باندې د وړاندې نه سل روپئ واخستلې چې په راروان ژمی کښې (کوم چې د مهیانو د ښکار موسم وی) به د رواج مطابق د سلو روپو مهیان تاته د شپیتو روپو فی صد په حساب سره درکوم،کوم چې نورو خلقو ته د اتیاو روپو فی صد په حساب سره ورکوم.

یا په دې شرط باندې ئې ترې نه سل روپئ واخستلې چې په راروان ژمی کښې به درله د یو سل څلویښتو روپو مهیان درکوم،کوم چې به د عام نرخ په حساب سره د سلو روپو راځی آیا دا روا دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا بیعه د سلم ده کومه چې د شرطونو د نشتوالی د وجې نه ناروا

ده. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۸ رمضان ۱۳۸۸ هجري

## په زيات قيمت باندې د مبيعې د واپس کولو شرط

**سوال**:- بکر ته د څه پيسو ضرروت راپيښ شو ،هغه عمرو ته اووئيل چې ما نه يو توله سره زر په دوه سوه روپئ واخله. درې مياشتې پس به زۀ تا نه هم دا سرۀ زر په دوه سوه څلويښت روپئ توله واخلم ، عمرو ته په کښې خپله فائده ښکاره شوه لهذا دا سودا ئې منظوره کړه.او درې مياشتې پس ئې همدا يوه توله سرۀ زر په بکر باندې په دوه سوه څلويښت روپئ خرڅ کړل.آيا په دې صورت کښې به دا د څلويښت روپو زياتوالې روا وی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا ښکار سود دې، په بيع بالوفاء کښې د دې وجې نه داخله نۀ ده. چې په هغې کښې په ثمن کښې زياتوالې نۀ کيږی، بله دا چې د مبيع د رد کولو شرط هم په مجلس د بيع کښې نۀ وی بلکه بيا وروستو په کښې وی، لهذا په دې بيع فاسد کښې بې د څه کمی زياتی نه د ثمن او د مبيع رد واجب دې.- والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۸ رمضان ۱۳۸۸ هجري

## په بيع سلم کښې ټول ثمن په مجلس د عقد کښې ورکول شرط دی

**سوال**:- بکر په زيد باندې تيل خرڅول غواړی،د کومې صورت دادې چې د نرخ او د تاريخ د مقررولو نه وروستو به بکر بيا څه بيعانه اخلی،وروستو به بيا د يوې مياشتې په وقفې سره هغه زيدله تيل ورکوی.اودغه تيل لا ددۀ په قبضه کښې نۀ دی.آيا دا بيعه روا ده اوکه نه؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا بيعه روا نۀ ده،ځکه چې دا بيع سلم ده،او په بيع سلم کښې ټول قيمت په مجلس د عقد کښې ادا کول شرط دی او دغه شرط دلته مفقود دې.- والله سبحانه وتعالى اعلم.

۸ صفر ۱۳۹۳ هجري

## د بهر ملک نه د بانک په ذريعه يو څيز اخستل

**سوال**:- نن صبا د بهر ملك نه د مال راغوښتلو په صورت کښې اخستونکې د مال قيمت د بانك په ذريعه ادا کوی. مثلاً د کراچئ يو سوداګر د جاپان د يو سوداګر نه مال راغواړی. نو د جاپان سوداګر به د کراچئ سوداګر ته وائی چې ته په خپل يو مقامی بانك کښې زما په نوم باندې يو : کريډټ ليټر (کاونټ) خلاص کړه. د کراچئ دا بانك به خپل د جاپان شاخ ته د دې ليټر آف کريډټ په ذريعه هدايت کوی چې هغۀ دې د جاپان د تاجر نه مال په جهاز باندې د راروانولو په حقله ضروری کاغذونه وصول کړه او هغۀ ته د مال قيمت ورکړه.

د دې نه علاوه کوم مال چې د بهر ملکونو نه راځی د هغې د راتلو نه وړاندې د انوائس (يعنی

بیچك په کوم باندې چې د مال تفصیل او قیمت وغیره لیکلې شوې وی) یو نقل خریدار ته ولیګلې شی، کله کله د مال د راتلو نه وړاندې صرف د بیچك په ذریعه اصل اخستونکې دویم اخستونکی او دویم اخستونکې په دریم اخستونکی باندې په ګټه دغه مال خرڅ کړی. حال دا چې مال مخامخ نهٔ وی پروت یعنی موجود نهٔ وی.

آیا دا شان د بانك په ذریعه باندې قیمت ادا کول، او چې د بهر ملك مال لا وړاندې راغلې نهٔ وی نو ددې څائې اخستونکی له د هغې اخستل او بیا صرف د بیچك په ښودلو باندې دغه مال په بل سړی باندې خرڅول روا دی او که نه؟

بله دا چې واړهٔ دوکانداران کوم چې د دې غټو دوکاندارانو نه په قرض یا په نقدو مال اخلی او په خپلو دوکانونو باندې ئې خرڅوی، نو ددوی په کاروبارکښې خوڅه خرابې نهٔ راځی. بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بانك د اخستونکی وکیل دې، لهذا چې مال د دې بانك د جاپانی شاخ په قبضه کښې راشی نو بیا دا بیعه روا ده. **فان قبض الوکیل قبض المؤکل. والله سبحانه وتعالی اعلم.**

**۲۵ ذی الحجه ۱۳۸۸ هجری**

## د مال د رارسیدلو نه وړاندې د هغې بیع

**سوال**:- یو تاجر د بهر ملك نه مال راغواړی، او د مال رارسیدلو نه وړاندې وړاندې ئې په ګټه باندې خرڅ کړی، آیا دا ګټه د هغهٔ دپاره حلاله ده او که نه؟ د مال د وړاندې نه د خرڅولو سبب دا دې چې دې ویریږی چې د مال د رارسیدلو نه پس چرته راته نقصان ونهٔ شی. بینواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مال باندې د قبضې کولو نه وړاندې د دې بیعه کول روا نهٔ ده، لهذا دا منافع هم حلاله نهٔ دی، ددې د تصحیح دوه صورتونه دی:

۱- کوم څائې کښې ئې چې مال اخستې دې هلته څوك یا یو مال برداره کمپنی وکیل بالقبض کړی، د دوی د قبضې نه پس بیا روا ده.

۲- دمال دا رارسیدلو نه وړاندې دې بیعه نهٔ کوی بلکه د بیعې وعده دې وکړی، بیعه دې د مال د رارسیدلو نه پس وکړی، په دې صورت کښې که د جانبینو نه څوك انکار وکړی نو صرف د وعده خلافئ ګناه ګار به وی، په بیع باندې هغه نهٔ شی مجبورولې.

که د مال رسولو کرایه خریدار ادا کوی نو د هغه په اذن سره د بائع د کومې یوې مال برداره کمپنئ په قبضه کښې مال ورکول به د مشتری قبض شمارلې کیږی، اګرچې مشتری ورته د یوې خاص کمپنئ تعیین نهٔ وی کړې، د کمپنئ په قبضه کښې د مال د راتلو نه پس دا بیعه روا ده.

قال فی الهندیة: اذا قال المشتری للبائع ابعث الی ابنی واستأجر البائع رجلا یحمله الی ابنه فهذا لیس

بقبض والاجر على البائع الا ان يقول استاجر من يحمله فقبض الاجير يكون قبض المشتري ان صدقه انه استاجره و دفع اليه وان انكره استيجاره والدفع اليه فالقول قوله كما في التتارخانية (عالمگيرية ص ۱۱ ج ۳)

والله سبحانه وتعالى اعلم. ۹ جمادى الاولى ۱۳۹۶ هجرى

## د تجارتی اجازت نامې بيع

**سوال** :- د حکومت له اړخه بعضې خلق د بهر ملکونو نه د مال د راوړلو اجازت نامه حاصلوی، يو فارم ورته ترلاسه شی د کومې په ذريعه چې کله د لکونو روپو د مال راوړلو اجازت وی او کله د زرگونو روپو د مال راوړلو اجازت وی، اوس څوك چې د مال راوړلو طاقت نۀ لری يا هغه په خپله مال راوړل نۀ غواړی، نو هغه د اجازت نامې هغه فارم خرڅ کړی، صرف په نفسِ فارم باندې په زرگونو روپئ وگټی آيا دا روا دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بيعې د پاره د مبيعې مال کيدل شرط دی، او اجازت نامه څه مال نۀ دې ددې وجې نه ددې بيعه کول روا نۀ دی. **والله سبحانه وتعالى اعلم.** **۲۵ ذی الحجه ۱۳۹۲ هجری**

## په ثمن کښې جهالت مفسد د بيع دې

**سوال**:- که چيرې ناشر، کتب فروش ته اووائی چې که يوه سيکړه اخلې نو درې ديرش يا کم از کم که يو درجن کتابونه اخلې نو پينځه ويشت فيصده کميشن به درته درکولې شی، بيا ورته کتب فروش اووائی چې تاسو مونږ له لږ لږ کتابونه راکوئ، او قيمت ئې رانه په يو ځل يا په قسطونو کښې واخلئ، هر کله چې يو سيکړه تعداد مکمل واخستلې شی نو د هغې کميشن بيا مونږ له راکړئ او لين دين پوره کړئ، او د اخستلو موده هم مقرر کړې شی مثلاً درې مياشتو پورې يا يو کاله پورې سيکړه اخستل پوره کول وی، بيا که کتب فروش په مقرره موده کښې پوره سيکړه کتابونه وانخستل، نو د درجن په حساب به ترې نه کميشن کټ کړې شی او حساب به وکړې شی، او که پوره سيکړه ئې واخستله نو پوره کميشن به ورکړې شی، دا معامله به شرعاً روا وی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا بيعه د ثمن د جهالت د وجې نه ناروا ده.

قال الامام ابن الهمام رحمه الله: واما البطلان فيما اذا قال بعتکه بالف حالاً وبالفين الى سنة فلجهالة الثمن. (فتح القدير ص ۸۴ ج ۵). والله سبحانه وتعالى اعلم **۲۴ ربيع الاول ۱۳۹۳ هجری**

## د حکومت ضبط کړې شوې مال په بیعه اخستل روا نهٔ دی

**سوال:**- د سمګلنګ (په غلا د یو ځائې نه بل ځائې ته سامان وړل) سامان حکومت ضبط کړی او بیا ئې نیلام کوی، په دې کښې خوراك څښاك او د اغوستلو وغیره سامان وی، همدغه شان د نهرونو او تالابونو مهیان او د هوا مارغان کوم چې د حکومت د منع کولو باوجود ښکار کړې شی، دا ترې حکومت په زوره واخلی او نیلام کوی ئې، د دې ټولو څیزونو اخستل او استعمالول شرعا څنګه دی ؟ بینوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دغیرد ملك کیدلو د وجې نه داسې مال اخستل او ددې استعمالول روا نهٔ دی۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم ۱۰ جمادی الآخرۃ ۱۳۹۵ هجری

## په پلیتې ښځې باندې څه خرڅول

**سوال:**- په پلیتې ښځې (چې په زنا باندې پیسې پیدا کوی) باندې خپل څیزونه لکه جامه، شودهٔ او شرینی وغیره خرڅول روا دی او که نه؟ حال دا چې د هغې آمدن حرام وی، او که په هغې باندې د څیزونو د نهٔ خرڅولو د وجې نه د فساد اندیښنه وی نو بیا ئې شرعاً څه حکم دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا خرڅول روا نهٔ دی، که د ناقابل تحمل فتنې خطره وی، نو د هغې نه دې قیمت واخستې شی او صدقه دې کړې شی۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم۔

۱۲ جمادی الاخرۃ ۱۳۹۵ هجری

## په دکان وغیره باندې پټکې اخستل او ورکول روا نهٔ دی

**سوال:**- یو سړی سره څه زمکه ده، دویم سړې ورته وائی چې زهٔ به ستا په پلاټ باندې کور جوړ کړم، او د ټولو کمرو پټکې به په خپله اخلم، او بیا به دغه مکان تا ته درکړم، آیا شرعا دا روا دی چې کرایه دې د زمکې مالك اخلی او پټکې دې بل سړې واخلی ؟ بینو اوجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : پټکې اخستل اوورکول روا نهٔ دی۔

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: وفي الاشباه لا يجوز الاعتياض عن الحقوق المجردة كحق الشفعة (ردالمحتار ص۱۵ ج۴)

د دې تفصیل په رساله (ارشاد اولی الابصار الی شرائط حق القرار) کښې شته دې ۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم ۔ ۲۱ ربیع الاول ۱۳۹۶ هجری

## د حق سکنٰی او د تصنیف وغیره بیعه جائزه نهٔ ده

**سوال:**- حضرات علماء کرام د دې مسائلو په حقله څه فرمائی :

۱ - په شامیه کښې ئې د نزول عن الوظائف اجازت ورکړې دې او دا ئې قیاس کړې دې په یوې بلې مسئلې باندې.او بیا ئې یو اصل بیان کړې دې چې کوم حقوق اصالة ثابت وی.د دفعې د ضرر د پاره نۀ وی.د هغې عوض اخستل روا دی.لکه قصاص.حق الرق.حق النکاح.او چې کوم حقوق د دفعې دضرر دپاره وی دهغې عوض اخستل روا ندی.لکه حق د شفعې.حق د قسمت دزوجاتو وغیره

**في الرد:** وقد استخرج شیخ مشایخنا نور الله ابن علی المقدسی صحة الاعتیاض عن ذلك فی شرحه عن نظم الکنز من فرع فی مبسوط السرخسی هو ان العبد الموصی برقبته لشخص وبخدمته لاخر لو قطع طرفه او شج موضحة فادی لارش فان کانت الجنایة تنقص الخدمة یشتری به عبد اخر یخدمه او یضم الیه ثمن العبد بعد بیعه فیشتری به عبد یقوم مقام الاول فان اختلفا فی بیعه لم یبع وان اصطلحا علی قسمة الارش بینهما نصفین فلهما ذلك ولا یکون ما یستوفیه الموصی له بالخدمة من الارش بدلا الخدمة لانه لا یملك الاعتیاض عنها ولکنه اسقاط لحقه به کما لو صالح موصی له بالرقبة علی مال دفعه للموصی له بالخدمة یسلم العبد له اه قال فربما یشهد هذا للنزول عن الوظائف بمال اه قال الحموی فلیحفظ هذا فانه نفیس جدا اه وفیه حاصله ان ثبوت حق الشفعة للشفیع وحق القسم للزوجة فانه یمنع جواز اخذ العوض هنا ثم قال ولقائل ان یقول هذا حق جعله الشرع لدفع الضرر وذلك حق فیه صلة ولا جامع بینهما فافترقا (ص ۱۶ ج ۴)

دا اصول په شرح المجلة کښې هم ذکر کړې شوې دې،او وئیلې ئې دی چې بعضې خلقو الحاق کړې دې.

**ومنهم من استند فی ذلك الی الحاقه بنظائره المنصوص علی جواز اخذ البدل فیها کحق القصاص وحق النکاح وحق الرق فانه قد جاز اخذ البدل فیها مع انها حقوق فالحق بها النزول عن الوظائف ومثلها (ص ۱۲۰ ج ۲)**

آیا نن صبا د نزول عن الوظائف د عوض اخستلو اجازت شته دې؟ د شامې په عبارت باندې عمل کیدلې شی او که نه؟ که چیرې عمل پرې نۀ شی کیدلې نو ددې څه وجوهات دی؟ بیا شامی چې کوم اصول بیان کړې دی چې کوم حقوق اصالةً ثابت وی د هغې عوض اخستل روا دی او چې کوم حقوق د دفعې د ضرر د پاره وی،د هغې عوض اخستل روا نۀ دی.نن که مونږ دا اصول راوخلو نو دا په پټکی او په حق د تصنیف باندې یعنی په موجوده مسائلو باندې جاری کولې شو که نه؟ که چیرې نۀ شو جارې کولې نو ددې څه وجوهات دی؟

۲ - په شرح المجلة کښې یی چې کوم د الحاق اړخ ته اشاره کړې ده، نو آیا نن نور حقوق لکه حق د تصنیف.حق سکنی وغیره هم د حق القصاص.حق النکاح او حق الرق وغیره سره الحاق کیدې شی که نه؟ که چیرې الحاق ئې نۀ شی کیدې نو د دې څه وجوهات دی؟

۳ - د حق المرور په بيعه کښې اختلاف دې، ليکن عامو مشايخو د دې د بيعې اجازت ورکړې دې، دې ته ئې حکم مال وئيلې دی، او يو اصولی خبره ئې هم ښودلې ده:

فی الهداية ووجه الفرق بين احق المرور وحق التعلی علی احدی الروايتين ان حق التعلی يتعلق بعين لا تبقی وهو البناء فاشبه المنافع اما حق المرور يتعلق بعين تبقی وهو الارض فاشبه الاعيان.

دا اصول ترې نه راوه وتل چې کوم حقوق د عين سره متعلق وی کوم چې باقی پاتې وی نو ددغې حقوقو بيعه روا ده، حال دا چې بل څه شرعی قباحت په کښې نۀ وی. آيا دا اصول د نن صبا په مسائلو يعنی په حق د تصنيف، پټکی وغيره باندې جاری کولې شو او که نه؟ او که نۀ شی جاری کولې نو ددې څه وجه ده؟ تاسو نه طمع لروچې دمفصيل جواب نه مو مستفيد کړئ. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د حقِ سکنی او د حق تصنيف مروجه بيعه روا نۀ ده، ځکه چې د مصنف څۀ مخصوص حق د سره نشته، البته صرف مسوده د هغه ملك ده هغه يی خرڅولې شی.

په سکنی کښې دا تفصيل دې چې مالك كله مكان يا دكان په كرايه باندې وركوی، نو د هغۀ حق د سکنی ختم شو، دغه شان چې يو کرايه دار ئې بل کرايه دار ته په کرايه باندې ورکړی نو د ورومبی کرايه دار حق د سکنی باطل شو.

ددې نه علاوه د اجارې د مودې د معيّن کيدلو په صورت کښې به ددې مودې په اختتام باندې او د عدمِ تعيين په صورت کښې د هرې مياشتې په انتهاء باندې به عقد د اجارې ختم شی. لهذا د کرايه دار حق د سکنی باقی پاتې نۀ شو.

(تفصيل په کتاب الاجارة کښې په رساله (ارشاد اولی الابصار) او په تتمه کښې په رساله (القول الصدوق) کښې شته دې

**۲۶ شعبان ۱۴۰۰ هجری**

## د مباح الاصل لرګی بيعه

**سوال**:- يو سړی بل سړی ته اووئيل چې سل روپئ واخله او ما له پنځه ګيډئ لرګی راوړه، د هر يو ګيډی شل روپئ دی. لهذا دغه سړې غرونو ته ځی او لرګی راجمع کوی، او پنځه ګيډی هغۀ ته وسپاری. آيا دا بيعه صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا بيعه فاسده ده، لکون المبيع غير مملوك للبائع ولجهالة قدر المبيع. والله سبحانه وتعالی اعلم.

**۱۰ شعبان ۱۳۹۸ هجری**

## د باطلو مذهبونو کتابونه خرڅول روا نۀ دی

**سوال**:- زۀ ورې ورې کتابچې خرڅوم، څه خريدار راتۀ دا تقاضا کوی چې د احمد رضا خان بريلوی مترجم قرآن مجيد راله راوړه، حال دا چې په هغې کښې د ديوبند د اکابرو علماؤ رحمهم الله په

شان کښې ګستاخانه کلمات بلکه غلط عقائد او نظريات په کښې هم موجود دی،او نور په کښې هم څه نقصونه شته دې،غالباً چې هغه به ستاسو محترم په مطالعه کښې هم راغلې وی،آيا داسې فرمائش به زما د پاره پوره کول روا وی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا روا نهٔ دی.

**قال الله تعالى: وتعاونوا على البر والتقوى ولا تعاونوا على الاثم والعدوان، والله سبحانه وتعالى اعلم.**

**۱۶ ربيع الاول ۱۳۹۹ هجری**

## بيع په شرط د اقالې فاسده ده

**سوال**:- ما د ګل زرين نه په لس زره رکشه واخستله او قيمت مې هغه ته ادا کړو،وروستو ما هم هغه رکشه په ګل زرين باندې په پنځلس زره باندې خرڅه کړه،اته سوه روپۍ د مياشې قسط مې ورسره وټاکلو، ليکن د اخستلو په وخت کښې ما په رکشه باندې قبضه نهٔ وه کړې،حالانکه بائع د قبضې د راکولو نه منکر نهٔ وو،خو معامله په دې شرط باندې وشوه چې بائع راته اووئيل چې رکشه واخله او هم په ما باندې ئې په پنځلس زره روپۍ باندې راخرڅه کړه،ددې بيعې شرعاً څه حکم دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا بيعه فاسده ده،د دې په حکم کښې دا تفصيل دې.

۱ - خرڅونکې او اخستونکې دواړه دې توبه وکړی.

۲ - دا بيعه دې په ثمنِ اول باندې فسخه کړی،يعنی تا چې کومې پنځه زره روپۍ زياتې وصول کړې دی هغه ورته واپس کړه. **والله سبحانه وتعالى اعلم.** **۱۳ شوال ۱۳۹۹ هجری**

## چې په بيعه کښې ئې دا شرط ولګولو چې(که ثمن نهٔ راکوې نو بيعه به نهٔ کيږی)

**سوال**:- په وخت د بيعې کښې بائع دا شرط ولګولو چې که متعينې مودې پورې دې راته ثمن ادا نه کړو نو بيعه به فسخه وی،ددې څه حکم دې؟ آيا په دې شرط سره به بيعه فاسديږی او که نه؟ که چيرې مشتری د متعينې مودې پورې ثمن ادا نه کړو نو آيا بائع ته د بيعې د فسخې حق شته دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: درې ورځې يا د دې نه د کمو شرط لګول روا دی،د درې ورځو نه زيات شرط لګولو کښې اختلاف دې.د امام رحمه الله په نيز دا مفسد د عقد دې.

د امام محمد رحمه الله په نيز د درې ورځو نه د زياتو شرط هم روا دې،خو په دې شرط چې موده ئې معيّنه وی،که چيرې د متعينې مودې پورې مشتری ثمن ادا نهٔ کړو نو بيا به بيعه فسخه شی.

د امام ابو يوسف رحمه الله په قول کښې اضطراب دې.

قال فی شرح التنویر: فان اشتری شخص شيئا علی انه ای المشتری ان لم ینقد ثمنه الی ثلاثة ایام فلا بیع صح استحسانا (الی قوله) وان اشتری کذلك الی اربعة ایام لا یصح خلافا لمحمد رحمه الله فان نقد فی الثلاثة جاز اتفاقا.

وفی الشامیة: (قوله خلافا لمحمد) فانه جوزه الی ما سماه (رد المحتار ص۵۴ ج۴)

وفی الهندیة: اذا باع علی انه ان لم ینقد الثمن الی ثلاثة ایام فلا بیع بینهما فالبیع جائز وکذا الشرط هکذا ذکر محمد رحمه الله فی الاصل وهذه المسألة علی وجوه اما ان لم یبین الوقت اصلاً بان قال علی انك ان لم تنقد الثمن فلا بیع بیننا او بین وقتا مجهولاً بان قال علی انك ان لم تنقد الثمن ایاما وفی هذین الوجهین العقد فاسد وان بین وقتا معلوما ان کان ذلك الوقت مقدرا بثلاثة ایام او دون ذلك فالعقد جائز عند علمائنا الثلاثة رحمهم الله وان بین المدة اکثر من ثلاثة ایام قال ابو حنیفة رحمه الله البیع فاسد وقال محمد رحمه الله البیع جائز کذا فی المحیط. (عالمگیریة ص۳۹ ج۳)

وقال ابن نجیم رحمه الله: (قوله ولو باع علی انه ان لم ینقد الثمن الی ثلاثة ایام فلا بیع صح والی اربعة لا) ای لا یصح یعنی عندهما وقال محمد رحمه الله یجوز الی ما سماه والاصل فیه ان هذا فی معنی اشتراط الخیار اذ الحاجة مست الی الانفساخ عند عدم النقد تحرزاً عن المماطلة فی الفسخ فیکون ملحقا به (الی قوله) وما ذکره من ان ابا یوسف رحمه الله مع الامام رحمه الله قوله الاول وقد رجع عنه والذی رجع الیه انه مع محمد رحمهما الله تعالی کذا فی غایة البیان وفی شرح المجمع الاصح انه مع ابی حنیفة رحمه الله وکثیر من المشائخ حکموا علی قوله بالاضطراب وظاهر هذا الشرط ان المشتری ان لم ینقد الثمن فی المدة فان البیع ینفسخ لقوله فلا بیع بینهما ولذا قال فی المحیط وینفسخ البیع ان لم ینقد (البحر الرائق ص٦ ج٦)

نن صبا د دیانت د فقدان د وجې نه د امام محمد رحمه الله په قول باندې د عمل کولو گنجائش شته دې، بالخصوص چې بیا د امام ابو یوسف رحمه الله یو قول هم د دوی په مرسته کښې شته دې، لهذا که مشتری متعینې مودې پورې ثمن ادا نه کړو نو بیعه به فسخه شی، بلکه بې د شرط نه هم هر کله چې د مشتری نه ثمن اخستل متعذر شی نو بائع ته د بیعې د فسخې حق شته دې.

قال العلامة المرغینانی رحمه الله: لما تعذر استیفاء الثمن من المشتری فات رضاء البائع فیستبد بفسخه. (هدایة ص۱۳۷ ج۳)     والله سبحانه وتعالی اعلم     ۱۶ صفر ۱۴۰۰ هجری

## د حکومت له اړخه د انتقال شوې زمکې حکم

**سوال**- نن صبا د زرعی اصلاحاتو د لاندې کومې زمکې چې د پاکستان حکومت زمیدارانو او

دهقانانو ته په قسطونو باندې ورکوی،د کومې مقرر کړې شوې قسطونه چې به په شل کاله کښې ختمیږی، د ټولو قسطونو د ادا کولو نه پس به زمیدار د زمکې مالك کیږی،د دې مالك کیدلو نه وړاندې به دې صرف د آبادولو حق دار وی،دۀ ته به د خرڅولو یا د هبې وغیره کولو حق نۀ وی حاصل. لیکن اوس دا معامله روانه ده چې د ټولو قسطونو د ادا کولو نه وړاندې صرف په زبانی یا د جعلی کاغذونو په ذریعه د داسې زمکې بیعه او شراء کیږی،آیا دا روا دی؟ او ددې بیعې د وجې نه به مشتری بعد القبض د زمکې مالك کیږی او که نه؟ او بائع د رقم د وصولولو نه پس څو کاله پس د زمکې په خپل نوم باندې د انتقال کیدلو نه پس د مشتری نه زمکه واپس اخستلې شی او که نه، او په داسې زمکه کښې به میراث جاری کیږی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا بیع د بالشرط کیدلو د وجې څخه نده فاسده ده او د مشتری د قبض د وجې نه د هغه ملکیت دې،او بیعه ثانی ئې صحیحه ده، د دویم مشتری د رضا نه بغیر ددې زمکې واپسی روا نۀ ده. **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم** **۲۸ شعبان ۱۴۰۰ هجری**

## د شیعه، قادیانی وغیره زندیقانو سره بیع او شراء او نور معاملات روا نۀ دی

**سوال:-** د شیعه او د قادیانی سره تجارت کښې اشتراك او اخستل او خرڅول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : شیعه او قادیانی زندیقان دی،د دې وجې نه د دوی سره په تجارت کښې اشتراك او بیع او شراء،اجاره او استجاره وغیره د هیڅ قسمه هیڅ یوه معامله هم روا نۀ ده.

هر هغه سړې چې د کفری عقائدو ښۀ په ښکاره اعلان کوی،او هم دې ته اسلام وائی نو داسې سړی ته په اصطلاح د شرع کښې(زندیق)وائی،لکه شیعه،آغاخانی،ذکری، پرویزی،او انجمنِ دینداران وغیره،ددې ټولو همدا حکم دې چې دوی سره د هیڅ قسمه لین دین او هیڅ قسمه څه تعلق ساتل روا نۀ دی۔ **والله هو العاصم من الکفر فی الاسلام.** **۷ ذی الحجه ۱۴۱۴ هجری**

د دې زنادقه احکام په جلد اول کښې په کتاب الایمان والعقائد او په شپږم جلد کښې په باب المرتد والبغاة کښې هم شته دې،او ډیر تفصیل ئې بیا په کتاب الحظر والاباحة کښې دې۔

بسم الله الرحمن الرحیم

﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشۡتَرِي لَهۡوَ ٱلۡحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٖ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًاۚ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٞ مُّهِينٞ ﴾

# القول المبرهن

# فی

# كراهيةبيع الراديو والتلفيزيون

## د ریډیو، ټیلی ویژن اخستل او خرڅول

## او

## د دې د مرمت په عدم جواز باندې مفصل او مدلل لیک

# القول المبرهن

* د ریډیو او ټیلی ویژن بیع او مرمت کول
* بيع الجارية المغنية والكبش النطوح والديک المقاتل والحمامة الطيارة
* بيع الامرد من اللوطي
* بيع الحديد لاهل الحر ب
* بيع السلاح لاهل الفتنة
* بيع العصير لمن يتخذه خمراً
* اجارة البيت للكنيسة
* تفسير مالا تقوم المعصية بعينه

## د ریډیو ، ټیلی ویژن بیعه او مرمت

**سوال:**- د ریډیو، ټیلی ویژن تجارت او د دې د مرمت پیشه اختیارول روا دی او که نه؟ د ریډیو دمرمت په حقله یوه فتوی ستاسو په خدمت کښې درلیګو ،د دې په حقله خپله رائې ولیکئ. بینوا توجروا.

علماء کرام د دې مسئلې په حقله څه فرمائی چې د ریډیو مرمت کول او د دې د سمولو پیشه په طور د ذریعهٔ معاش کول څنګه دی؟

**الجواب** ۶۰۸

فی الهدایة ومن کسر لمسلم بربطا اوطبلا او مزمارا الی قوله فهو ضامن وبیع هذه الاشیاء جائز وهذا عند ابی حنیفة وقال ابو یوسف و محمد لا یضمن ولا یجوز بیعها الی قوله ولابی حنیفة انها اموال لصلاحیتها لما یحل من وجوه الانتفاع وان صلحت لما لا یحل فصار کالامة المغنیة وهذا لان الفساد بفعل فاعل مختار فلا یوجب سقوط التقوم و جواز البیع و التضمین مرتبان علی المالیة و التقوم ثم قال و تجب قیمتها غیر صالحة للهو کما فی الجاریة المغنیة والکبش النطوح والحمامة الطیارة والدیك المقاتل الخ (آخر کتاب الغصب ص ۳۷۲ ج ۳) وفیها من أجر بیتا لیتخذ فیه بیت نار الی قوله اویباع فیه الخمر بالسواد فلا بأس به وهذا عند ابی حنیفة وقالا لا ینبغی ان یکریه بشیء من ذلك لانه اعانة علی المعصیة و له ان الاجارة ترد علی منفعة البیت و لهذا تجب الاجرة بمجرد التسلیم ولا معصیة فیه وانما المعصیة بفعل المستاجر وهو مختار فیه فقطع نسبته عنه اهـ فصل فی البیع.

د ذکر کړې شوو روایتونو په بناء د علت د اتحاد د وجې نه د ریډیو سمول هم مختلف فیه دې،د امام ابوحنیفة رحمه الله په نیز دا پیشه اختیارول روا دی او په قول د صاحبینو دا ناروا او منع دی،لهذا که د دې نه علاوه یو بل صورت د معاش ممکن وی نو هغه دې اختیار کړې شی،او که ممکن نهٔ وی نو د امام ابوحنیفة رحمه الله د قول په بناء دا پیشه اختیارول د معاش د ذریعه دپاره صحیح دی.

فقط حرره احقر عبدالعزیز عفی عنه دار الافتاء مظاهر علوم سهارنپور . ۱۱ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هجری

دا جواب صحیح دې. یحیی غفرله مدرسه مظاهر علوم سهارنپور ۱۲ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هجری

مظفر حسین المظاهری ۱۷ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هجری

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ریډیو او ټیلی ویژن په سمول کښې عام خلق مبتلاء دی ،بله دا چې علماء دې ته روا هم وائی د دې وجې نه بنده د ډیرې مودې په دې تکل کښې وو چې د مذهب په کتابونو کښې د دې کوم ځائې پورې ګنجائش راوتې شی،لهذا په تیر څو کلونو کښې ما د عامو مسلمانانو همدردی او په دې مسئله کښې ابتلاءِ شدید ځان ته وړاندې کیښودل او څو څو ځله مې

پرې غور او فکر وکړو، او د مختلفو مقاماتو نه مې د فقهاء کرامو ﷺ د عبارتونو په غور سره مطالعه وکړه، د دې وجې نه د دې مسئلې لګ په تفصيل سره د ليکلو ضرورت دې، ظاهره خبره ده چې ددې نوې مصنوعاتو صراحةً ذکر خو د فقهاء کرامو ﷺ په عبارتونو کښې نشته دې ليکن ددې نظائر په باب البغاة، کتاب البيوع، کتاب الغصب، او په کتاب الحظر والاباحة کښې موندلې شي، دهغې نه په قدر د ضرورت دلته عبارتونه رانقل کولې شي:

فی العلائية ويکره تحريما بيع السلاح من اهل الفتنة ان علم لانه اعانة على المعصية وبيع ما يتخذ منه کالحديد ونحوه يکره لاهل الحرب البغی لعدم تفرغهم لعمله سلاحاً تقرب زوالهم بخلاف اهل الحرب زيلعی قلت وافاد کلامهم ان ما قامت المعصية بعينه يکره بيعه تحريما والا فتنزيها نهر. وفی الشامية (قوله لانه اعانة على المعصية) لانه يقاتل بعينه بخالف ما لا يقاتل به الا بصنعة تحدث فيه ونظيره کراهة بيع المعازف لانه المعصية تقام بها عينها ولا يکره بيع الخشب المتخذة هی منه وعلى هذا بيع الخمر لا يصح ويصح بيع العنب والفرق فی ذلك کله ما ذکرنا فتح ومثله فی البحر عن البدائع وکذا فی الزيلعی لکنه قال بعده وکذا لا يکره بيع الجارية المغنية والکبش النطوح والديك المقاتل والحمامة الطيارة لانه ليس عينها منکر وانما المنکر فی استعمالها المحظور اه قلت لکن هذه الاشياء تقام العصيته بعينها لکن ليست هی المقصود الاصلی منها فان عين الجارية للخدمة مثلا والغناء عارض فلم تکن عين المنکر بخلاف السلاح فان المقصود الاصلی منه هو المحاربة به فکان عينه منکرا اذا بيع لاهل الفتنة فصار المراد بما تقام المعصية به ما کان عينه منکرا بلا عمل صنعة فيه فخرج نحوا الجارية المغنية لانها ليست عين المنکر ونحو الحديد والعصير لانه وان کان يعمل منه عين المنکر لکنه بصنعة تحدث فلم يکن عينه وبهذا ظهر ان بيع الامرد ممن يلوط به مثل الجارية المغنية فليس مما تقوم المعصية بعينه خلافا لما ذکره المصنف والشارح فی باب الحظر والاباحة ويأتی تمامه قريبا (قوله يکره لاهل الحرب) مقتضی ما نقلناه عن الفتح عدم الکراهة الا ان يقال المنفی کراهة التحريم والمثبت کراهة التحريم والمثبت کراهة التنزيه لان الحديد وان لم تقم المعصيته بعينه لکن اذا کان بيعه ممن يعمله سلاحا کان فيه نوع اعانة تامل (قوله نهر) عبارته وعرف بهذا انه لا يکره بيع ما لم تقم المعصيته به کبيع الجارية المغنية والکبش النطوح والحمامة الطيارة والعصير والخشب الذی يتخذ منه المعازف وما فی بيوع الخانية من انه يکره بيع الامرد من فاسق يعلم ان يعصی به مشکل والذی جزم به فی الحظر والاباحة انه لا يکره بيع جارية ممن يأتيها فی دبرها او بيع الغلام من لوطی وهو الموافق لما مر وعندی ان ما فی الخانية محمول

علی کراهة التنزیه والمنفی هو کراهة التحریم فعلا هذا فیکره فی الکل تنزیها وهو الذی الیه تطمئن النفس لانه تسبب فی الاعانة ولم ار من تعرض لهذا واللہ تعالی الموفق اھ (ردالمحتار باب البغاة ص ۳۲۳ ج ۳)

وقال الرافعی رحمۃ اللہ علیہ (قوله لانه تسبب فی الاعانة ولم ار من تعرض لهذا) قال الحموی وفیه تامل وکانه میل منه الی ان ما فی الخانیة محمول علی کراهة التحریم لانه التسبب بهذه الافعال فظیع قریب من الحرام فلا یکون خلاف الاولی اھ (التحریر المختار ص ۶۳ ج ۲)

ثم ذکر ما حرر ابن عابدین رحمۃ اللہ علیہ فی الحظر والاباحة من رد هذا التوفیق وسنذکره ان شاء اللہ تعالی۔

وفی بیوع العلائیة من عادته شراء المردان یجبر علی بیعه دفعا للفساد نهر وغیره وفی الشامیة عبارة النهر عن المحیط الفاسق المسلم اذا اشتری عبدا امرد وکان من عادته اتباع المرد اجبر علی بیعه دفعا للفساد اهـ وعن هذا افتی المولی ابو السعود بانه لا تسمع دعواه علی امرد وبه افتی الخیر الرملی والمصنف ایضا (ردالمحتار ص ۲۴۰ ج ۴)

وفی غصب التنویر وضمن بکسر معزف صالحا لغیر اللهو وباراقة سکر ومصنف وصح بیعها کالامة المغنیة ونحوها، وقال الشارح تحت (قوله وصح بیعها) کلها وقالا لا یضمن ولا یصح بیعها وعلیه الفتوی ملتقی ودرر وزیلعی وغیرها واقره المصنف (ردالمحتار ص ۱۳۹ ج ۵)

وفی حظر العلائیة وجاز بیع عصیر عنب ممن یعلم انه یتخذه خمرا لانه المعصیة لا تقوم بعینه بل بعد تغیره وقیل یکره لاعانته علی المعصیة (الی قوله) بخلاف بیع امرد ممن یلوط به وبیع سلاح من اهل الفتنة لانه المعصیة تقوم بعینه ثم الکراهة فی مسالة الامرد مصرح بها فی بیوع الخانیة واعتمده المصنف علی خلاف ما فی الزیلعی والعینی وان اقره المصنف فی باب البغاة قلت وقدمنا ثمة معزیا للنهر ان ما قامت المعصیة بعینه یکره بیعه تحریما والا فتنزیها فلیحفظ توفیقا، وفی الشامیة (قوله لا تقوم بعینه) یؤخذ منه ان المراد بما لا تقوم المعصیة بعینه ما یحدث له بعد البیع وصف اخر یکون فیه قیام المعصیة وان ما تقوم المعصیة بعینه ما توجد فیه علی وصفه الموجود حالة البیع کالامرد والسلاح ویاتی تمام الکلام علیه (قوله علی خلاف ما فی الزیلعی والعینی) ومثله فی النهایة والکفایة عن اجارات الامام السرخسی، وقال تحت (قوله معزیا للنهر) وفی حاشیة الشلبی علی المحیط اشتری المسلم الفاسق عبدا امرد وکان ممن یعتاد اتیان الامرد یجبر علی بیعه (قوله فلیحفظ توفیقا) بان یحمل ما فی الخانیة من اثبات الکراهة علی التنزیه وما فی الزیلعی وغیره من نفیها علی التحریم فلا مخالفة واقول هذا التوفیق غیر ظاهر لانه قدم ان الامرد مما تقوم المعصیة بعینه وعلی مقتضی

ما ذکره هنا یتعین ان تکون الکراهة فیه للتحریم فلا یصح حمل کلام الزیلعی و غیره علی التنزیه و انما مبنی کلام الزیلعی و غیره علی ان الامرد لیس مما تقوم المعصیة بعینه کما یظهر من عبارته قریبا عند قوله و جاز اجارة بیت،

و فی التنویر و جاز اجارة بیت بسواد الکوفة لا بغیرها علی الاصح لیتخذ بیت نار او کنیسة او بیعة او یباع فیه الخمر. و فی الشرح و قالا لا ینبغی ذلک لانه اعانة علی المعصیة و به قالت الثلاثة زیلعی. و فی الحاشیة (قوله و جاز اجارة بیت الخ) هذا عنده ایضا لان الاجارة علی منفعة البیت و لهذا یجب الاجر بمجرد التسلیم و لا معصیة فیه و انما المعصیة بفعل المستاجر و هو مختار فینقطع نسبته عنه فصار کبیع الجاریة ممن لا یستبرءها او یاتیها من دبر و بیع الغلام من لوطی و الدلیل علیه انه لو اجره للسکنی جاز و هو لا بد له من عبادته فیه اه زیلعی و عینی و مثله فی النهایة و الکفایة قال فی المنح و هو صریح فی جواز بیع الغلام من اللوطی و المنقول فی کثیر من الفتاوی انه یکره و هو الذی عولنا علیه فی المختصر اه اقول هو صریح ایضا فی انه لیس مما تقوم المعصیة بعینه و لذا کان ما فی الفتاوی مشکلا کما مر عن النهر اذ لا فرق بین الغلام و بین البیت و العصیر فکان ینبغی للمصنف التعویل علی ما ذکره الشراح فانه مقدم علی ما فی الفتاوی نعم علی هذا التعلیل الذی ذکره الزیلعی یشکل الفرق بین ما تقوم المعصیة بعینه و بین ما لا تقوم بعینه فان المعصیة فی السلاح و المکعب المفضض و نحوه انما هو بفعل الشاری فلیتامل وجه الفرق فانه لم یظهر لی و لم ار من نبه علیه نعم یظهر الفرق علی ما قدمه الشارح تبعا لغیره من التعلیل لجواز بیع العصیر بانه لا تقوم المعصیة بعینه بل بعد تغیره فهو کبیع الحدید من اهل الفتنة لانه و ان کان یعمل منه السلاح لکن بعد تغیره ایضا الی صفة اخری و علیه یظهر کون الامرد مما تقوم المعصیة بعینه کما قدمناه فلیتامل. (ردالمحتار ص۲۷۸ ج۵)

د دې عبارتونو نه دا ذکر کړې شوې امور ثاتیږی:

۱ - د مزامیر وغیره د آلاتو د لهو او لعب د بیعې په حقله مشایخو ﷺ په اتفاق سره د صاحبینو رحمهما الله تعالی د قول مطابق د حرمت فتوی ورکړې ده، په سوال کښې چې د مظاهر علوم کومه فتوی وړاندې کړې شوې ده، په هغې کښې دا نقص دې، چې په دې کښې د حرمت د قول مفتی به کیدل نهٔ دی بیان کړې شوې.

۲ - د باغیانو په لاس د وسلې د بیعې په حقله هم په اتفاق سره د حرمت قول مفتی به کیدل پکار دی.

۳ - لوطی به د امرد په بیع باندې مجبورولې شې، په دې کښې د چا اختلاف هم نهٔ دې نقل کړې

شوې، د دې نه دا ثابتيږي چې د لوطی سره د امرد بيعه کول ناروا دی.هر کله چې ابقاء او اقرار د ملك روا نۀ دې نو احداث او اثباتِ ملك خو به په کښې په طريقۀ اولی سره ناروا وی.

۴ - **بيع الجارية المغنية وبيع الامرد من اللوطی** ته اکثرو فقهاء کرامو رحمهم الله مکروه تحريمی وئيلې دی، البته د زيلعی،عينی،او د سرخسی رحمهم الله د کلام نه کراهت تنزيهی ثابتيږی.

۵ - **اجارة البيت لكنيسة** کښې قول د جواز ته ترجيح معلوميږی.

۶ - د بيعې او د اجارې د جواز او د عدم جواز بناء **ما تقوم العصية بعينه و ما لا تقوم بعينه** ګرځولې شوې دې.

۷ - د **ما لا تقوم المعصية بعينه** مطلب دا دې،چې د معصيت نه وړاندې په دې څيز کښې د صنعت وغيره په ذريعه څه تغير راغلې وی، **كمبيع الحديد من اهل الفتنة و بيع العصير.** او د **ما تقوم المعصية بعينه** نه مراد دا دې،چې بې د تغير کولو نه هم په دې حالت کښې دا په معصيت کښې استعمالولې شی، **كمبيع السلاح من اهل البغی.**

په پورتنيو امورو کښې صرف په جاريه مغنيه اود امرد په بيع کښې اختلاف دې، ليکن اکثريت او د دليل قوت د حرمت د قائلينو سره دې،په دې حقله لاندينی امور قابل د غور او فکر دی:

۱ - لوطی لره د امرد په بيع باندې مجبورول ددې امر دليل دې چې په هغۀ باندې خرڅول په طريقۀ اولی سره ناروا کيدل پکار دی.

۲ - په قول د نهر **لانه تسبب فی الاعانة.** باندې د حموی رحمه الله ارشاد **كانه ميل معه الی ان ما فی الخانية محمول علی كراهة التحريم لان التسبب بهذه الافعال فظيع قريب من الحرام فلا يكون خلاف الاولی اهـ ذكره الرافعی رحمه الله كما قدمنا.**

۳ - جاريه مغنيه او امرد لره په **ما لا تقوم به المعصية** کښې داخلول ډير بعيد دی،پورته په اووم نمبر کښې چې د **ما تقوم به العصية** کومه تشريح کړې شوې ده په هغې کښې ددې دخول بديهی دې، د **ما تقوم به المعصية** دا تفسير کول چې د شراء نه مقصود صرف په معصيت کښې استعمالول وی، نو دا تفسير د چا نه هم نۀ دې منقول،صرف علامه شامی رحمه الله په زيلعی باندې د وارد کيدونکی اشکال د حل په خاطر په باب البغاة کښې دا تفسير کړې دې، ليکن دا تفسير په هيڅ شان له هم قرينِ قياس نۀ ده،د دې وجې نه په پخپله علامه شامی رحمه الله هم په دې باندې مطمئن نۀ دې،لهذا په کتاب الحظر والاباحة کښې ئې په خپل د ټولو نه آخری تحقيق کښې د دې خلاف واضحه فيصله کړې ده او دې څيزونو ته ئې **مما تقوم المعصية بعينه** وئيلې دی.

اوس پاتې شو د علامه شامی رحمه الله دا اشکال چې په جاريه مغنيه او اجارة البيت کښې وجه د فرق بالکل ښکاره نۀ ده.

د بنده په خيال په دې دواړو کښې وجه د فرق دا ده، چې بيت آله د معصيت نۀ ده بلکه صرف ظرف د معصيت دې، بيت په ګناه کښې نۀ استعماليږی بلکه په بيت کښې ګناه کيږی، لکه څنګه چې په فاسق باندې جامې خرڅول ددې وجې نه روا دی چې لباس په ګناه کښې نۀ استعماليږی، بلکه په لباس کښې دننه ګناه کولې شی، لباس خو د زينت او د خفاظت دپاره استعمالولې شی، په دې کښې ګناه کول يو امرِ مجاور دې، د دې وجې نه د بيت استعمال هم د زينت او د حفاظت د پاره دې، په دې کښې معصيت کول يو امرِ زائد دې، که د بيت په **ما تقوم المعصية بعينه** کښې دخول تسليم هم کړې شی نو بيا هم په دې کې يو فرق موجود دې هغه دا چې صورت د مسئلې د **اجارة البيت من الکافر** دې، او هغه د شرعی احکامو مکلف نۀ دې.

غرض د خبرې دا چې په جاريه مغنيه کښې راجح قول د کراهت تحريميه دې، خو سره ددې هم ددې د بيعې حرمت د مزامير او د وسلې د بيعې د حرمت په نسبت خفيف دې، ځکه چې مزامير مصنوعه للهو دی، او باغيانو ته په وسلې ورکولو کښې د ملك تباهی ده، په خلاف د جارېې چې هغه مصنوعه للهو نۀ ده، او د هغې په بيعه کښې د ملك هم څه دومره عظيم نقصان نشته دې.

د ذکر کړې شوی تفصيل نه پس اوس دا کتل دی چې د ريډيو او د ټيلی ويژن مشابهت په ذکر کړې شوی څيزونو کښې د څه سره دې، آيا دا د مزاميرو او د وسلې نظير دی يا د جارېې مغنيې او د امرد يا د بيت نظير دې.

نو په غور کولو سره دا خبره مخې ته راځی چې د بيت سره خو ددې هيڅ مشابهت نشته دې، **لما ماانه ظرف**، دغه شان د مزامير سره ئې هم پوره مشابهت نشته دې، **لانها مصنوعة للهو بخلاف الراديو والتلويژن**، وسلې سره ئې اګرچې مشابهت شته دې، ليکن د دې په بيعه کښې د وسلې د بيعې په شان نقصانِ عظيم نشته دې، پس ددې پوره مشابهت د جارېې مغنيې سره دې، بلکه دا خو دی جوارېې مغنيې، لهذا د ريډيو او د ټيلی ويژن مرمت د راجح قول مطابق مکروه تحريمی دې، او که د کراهت تنزيهيه مرجوح قول هم واخستې شی، نو بيا هم دا پيشه اختيارول مکروه تحريمی دی، ځکه چې په کراهت تنزيهيه باندې دوام مفضی الی الکراهة التحريميه وی، علاوه د دې نه په وخت د بيع او د مرمت کښې د لوبو د اوريدلو نه خلاصې نشته دې، د کومې په حرمت کښې چې هيڅ شبه نشته دې، دا مې علی سبيل التنزل وليکلو او که نه نو حقيقت هم هغه دې، چې د جارېې مغنيې او د امرد بيعې ته مکروه تنزيهی وئيل هرګز قبول نه دی.

## د معاشرې رنګ داری

د دې نوې دور په معاشره کښې د لوئې نه لویه بې حیائی هنر او کمال ګڼلی کیږی،د دې نه علاوه که چیرې نن هم یو لوطی قوم چرته اوسیږی،او د هغوی د پاره څوك مستقل د امردانو د راوستلو کاروبار کوی. نو آیا هغه څوك چې هغه لړ هم د سلامتِ طبع یا د قلبِ حساس خاوند وی هغه به د دغه سړی دې شنیع فعل ته صرف مکروه تنزیهی او خلافِ اولی اووائی او ددې نه به چشم پوشی وکړی؟ د ټنګ ټکور په حرمت باندې د دنیوی او اخروی قهر او عذاب وعیدونه څه کم دی؟ لیکن دا د معاشرې رنګینئ دی، چې کله ئې خوښه شی نو حرام ته دې حلال اووائی،ذلت ته دې عزت اووائی، پستئ ته دې بلندی اووائی،تنزل ته دې ترقی اووائی،او داسې بی شرمی او بی حیائی چې د هغې نه څناور هم وشرمیږی هغې ته دې د انسان معراج اووائی، لیکن تر کومې پورې؟ که په طور د استدراج د دنیا د عذاب نه بچ هم شی،نو د حساب ورځ څه لرې نۀ ده.

## یو درد مند درخواست

نن صبا عوام خو څه کوې د ډیرو علماؤ نه دا په اوریدل کیږی چې په احکامو د شرعه کښې د توسیع نه کار اخستل پکار دی،دا نظریه دې حده پورې خو بې د شبهې نه صحیح ده چې د شرعې په حدودو او د مذهب په اصولو کښې دننه څومره ګنجائش ممکنه وی تلاش دې کړې شی، لیکن ددې مطلب دا بالکل نۀ دې چې د شریعت حدود او مذهب قواعد دې یو خوا ته کیښودلې شی او د نفس پرستئ د پاره دې لاره ښۀ ازاده کړې شی،چې د نفس خواهشاتو ته د ضرورت او د ابتلاء نوم ورکړې شی او د دې په ذریعه د اسلام قوانینو سره لوبې ټوقې وکړې شی نو ددې هرګز اجازت نۀ شی ورکړې کیدې،بعضې خلق په کور کښې په ناسته ناسته په خپل زعم او ګمان کښې په خپله محققین جوړ شو،او هغوی د شریعت محرماتو باندې د عموم بلوی مهر لګوی او حلال ترې جوړوی ، دې د خپل ځان نه جوړ شوو محققینو ته دا هم معلومه نۀ ده،چې د عموم بلوی قانون صرف د طهارت او د نجاست په حقله دې،په حلت او حرمت باندې دا مؤثر نۀ دې، نن صبا د بانك او د بیمې غوندې د ملعونو ادارو په نوکرو باندې فخر،د تصویر سازئ او د تصویر اینښودلو د لعنت بې دریغه او علانیه ارتکاب او دغه شان د نورو فواحشو او د منکراتو شیوع او په دې کښې په برق رفتارئ سره په ترقئ کولو کښې د زمانې د علماؤ د خانه زاد وسعتِ نظرئ ډیر لوئې دخل دې، خدائې دې نۀ کړی که دا جذبه د وسعتِ نظرئ هم دغه شان په خپل کار کښې اخته وه نو (التسافد الحمر) او (التزاوالعير على العير) غوندې د نظارې د پاره تیار اوسئ،او د فانتظر الساعة غوندې د قدرت د قانون مطابق د وسعت نظر د حساب او د کتاب انتظار کوئ. وفقنا الله الجميع لما يحب و يرضى وعصمنا من جميع السيئات الظاهرة والباطنة امين.

## ستاسو د فائدې خبره

چې څومره وس مو کيږی نو د ريډيو او د ټيلی ويژن د تجارت او د مرمت د پيشې اختيارولو نه ځان اوساتئ، خدائې دې نۀ کړی که د څه مجبورئ د وجې نه تاسو په دې کښې مبتلا يئ، نو د خپل مالك په وړاندې توبه او استغفار کوئ او د خپل جرم اعتراف کوئ، او د دې په ځائې د څه جائزې پيشې د پاره دعا او کوشش جاری ساتئ. فقط والله الموفق.

## الحاق

د پورتنی ليك د پوره کيدلو نه پس مې دا خيال راغئ، چې د دې مسئلې په حقله د استاذ محترم حضرت مفتی محمد شفيع صاحب رحمه الله د رسالې (تفصيل الکلام فی مسالة الاعانة علی الحرام) نه هم استفاده وکړې شی، لهذا د هغې نه دا لاندينی جزئيات وړاندې کولې شی:

۱ - فی الفن الاول عن الاشباه والنظائر تحت مباحث النية ان بيع العصير ممن يتخذ خمرا ان قصد به التجارة فلا تحرم وان قصد لاجل التخمير حرم اه (جواهر الفقه ص ۴۴۲ ج ۲)

۲ - فی اجارات المبسوط للسرخسی و اذا استاجر الذمی من المسلم بيتا ليبيع فيه الخمر لم يجز لانه معصية فلا ينعقد العقد عليه ولا اجر له عندهما وعند ابی حنيفة رحمه الله يجوز والشافعی رحمه الله يجوز هذا العقد لان العقد يرد علی منفعة البيت ولا يتعين عليه بيع الخمر فله ان يبيع فيه شيئا اخر، يجوز العقد لهذا، ولكنا نقول تصريحهما بالمقصود لا يجوز اعتبار معنی اخر فيه وما صرحا به معصية (مبسوط ص ۳۸ ج ۱۶ جواهر الفقه ص ۴۴۷ ج ۲)

۳ - وان لم يكن السبب محركا وداعيا بل موصلا محضا وهو مع ذلك سبب قريب بحيث لا يحتاج فی اقامة المعصية به الی احداث صنعة من الفاعل كبيع السلاح من اهل الفتنة وبيع [] لعله عن سبق القلم لانه يحتاج فی اقامة المعصية به الی احداث صنعة ۱۲ رشيد احمد، العصير ممن يتخذه خمرا وبيع الامرد ممن يعصی به واجارة البيت ممن يبيع فيه الخمر او يتخذها كنيسة او بيت نار وامثالها فكله مكروه تحريما بشرط ان يعلم به البائع والاجر الخ (جواهر الفقه ص ۴۵۳ ج ۲)

۴ - فان من قال بكراهة بيع الجارية المغنية والامرد ممن يعصی به وامثاله فقد اصاب (الی قوله) ومن قا بجوازها اراد جواز العقد بمعنی الصحة لا الجواز بمعنی رفع الاثم (الی قوله) ومن صرح برفع الثم ايضا كما فی عبارة المبسوط المذكورة اولا فهو مقيد بما اذا لم يعلم ان شرائه واستيجاره لفعل المعصية قصدا كاجارة

البيت من الذمي والفاسق فان الجارة وقعت على نفس السكنى قصداً ولا اثم فيه الخ (جواهر الفقه ص ۴۵۳ ج ۲)

د دې عبارتونو نه دا لاندینی امور مستفاد شو:

۱ - بيع العصير بقصد التخمير حرامه ده.

حضرت مفتی صاحب رحمه الله د **ماتقام المعصية بعينه** په خپله یو تفسیر فرمائیلې دې، او په هغې کښې ئې دا هم داخل کړې دې، لیکن د **ماتقام المعصية بعينه** د عام مشهور او د مذهب په عبارتونو کښې لیکلې شوې تعریف کښې مذکوره صورت داخل نۀ دې، لیکن سره ددې هم د معصیت د قصد د وجې نه حرام دې.

۲ - د حضرت مفتی صاحب رحمه الله د تحقیق مطابق هم بيع الجارية المغنية مکروه تحریمی ده، او مونږ پورته اووئیل چې ریډیو او ټیلی ویژن هم جاریه مغنیه ده.

۳ - د حضرت مفتی صاحب رحمه الله په رائې کښې اجارة البيت هم مکروه تحریمی ده، لیکن هم ددې رسالې د اردو خلاصې په آخره کښې د بینکارۍ د پاره مکان په کرایه باندې د ورکولو په حقله فرمائی، (په دې کښې ما ته تر اوسه پورې تردد دې، چې دې ته مکروه تحریمی اووئیلې شی او که تنزیهی، د نورو علماؤ نه هم ددې استصواب وکړئ) **(جواهر الفقه ص ۴۶۲ ج ۲)**

د بنده په خیال کښې په اجاره من الكافر او په اجاره من المسلم کښې فرق دې، عبارات د فقهاء کرامو رحمهم الله د اجارې من الكافر په حقله دی، او په دې کښې درایةً او روایةً کراهت تنزیهیه ته ترجیح معلومیږی او په اجاره من المسلم کښې کراهت تحریمیه راجح معلومیږی، والله اعلم.

دا امر ظاهر، مسلم او د فقې په کتابونو کښې مصرح دې چې پورتنی امور په دې صورت کښې ناروا دی چې بائع او آجر ته د دې د **استعمال فی المعصية** علم وی، په موجوده معاشره کښې د عام اخستونکی په حقله د **استعمال فی المعصية** ظن غالب وی، البته که د يو سړی د تدین او د تقوی علم وی نو هغه سره د ریډیو بیعه او د هغۀ د ریډیو مرمت کول روا دی، د ټیلی ویژن د روا استعمال خو بیخی څه صورت د سره نشته، د حرمت د وجوهو تفصیل ئې په احسن الفتاوی کښې په کتاب الحظر والاباحة کښې شته دې، **فقط والله تعالى اعلم.**

**رشید احمد**
**۲۱ جمادی الاولی ۱۳۹۷ هجری**

د ټی وی په حرمت باندې مفصله رساله (د ټی وی زهر د ټی بی نه هم زیات مهلك دې) احسن الفتاوی جلد ۸ کتاب الحظر والاباحة کښې شته دې او مستقل د رسالې په شکل کښې هم چاپ شوی دی.

# متفرقات البیوع

## اولاد ته زمکه ورکول او په هغې کښې تصرف کول

**سوال:**- یو سړی په خپل ژوندې کښې خپله د کرکروندې زمکه حصې حصې کړه او د خپلو لونو په نوم باندې یې ستامپ ولیکلو چې د څلورو زرو روپو په عوض کښې ما دا زمکه په خپلو بالغو لونو باندې خرڅه کړه، بیا ئې ثمن هم په خپله قبضه کښې وانخستل ،بلکه لونو ته ئې اوبخښل،او ذکر کړې شوې زمکه ئې هم په خپله قبضه کښې اوساتله،تر دې چې د دې زمکې نه ئې څه حصه په آخره کښې د جمات په نوم باندې وقف کړه،لونو ته ئې د دې خبرې علم وو او ددې باوجود ئې په پلار باندې څه اعتراض ونهٔ کړو،او نهٔ هغه ددې رقم لونړو ته حواله کړو، نو آیا شرعا د دې سړی دا زمکه داسې په بالغو لونو باندې خرڅول،په خپله قبضه کښې ساتل،او تصرف په کښې کول،او ددې نه پس په بل سړی باندې خرڅول او د وصیت په ذریعه باندې وقف کول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که لونو ته ئې ددې بیعې علم نهٔ وو بلکه پلار ئې د خپله اړخه داسې وکړل،یا هغوی ته د دې بیعې علم وو هغوی دا قبوله کړې نهٔ وه،یا قبوله کړې ئې وه خو د شروع نه ئې پلار هغوی ته دا خبره کړې وه چې دا هسې یو صورت د بیعې دې، په حقیقت کښې زهٔ ستاسو نه څه رقم وغیره اخستل نهٔ غواړم،نو په دې صورتونو کښې دا بیعه ونهٔ شوه.لهذا د پلار تصرفات ئې شرعا صحیح شو ،البته که په دغه وخت کښې واقعةً هم بیعه مقصود وه او لونو ئې دا قبوله کړې هم وه، لیکن وروستو ورته پلار بیا قیمت معاف کړې وی، نو دا زمکه د لونو ملکیت دې، په دې کښې به ئې بیا د پلار تصرف بې د هغوی د اجازت نه معتبر نهٔ وی،البته دا خبره ده که پلار ئې حاجت مند وی نو هغه په قدر د ضرورت د اولاد د مال نه څه اخستې شی۔ **واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم**

**۱۴ جمادی الثانیة ۱۳۸۸ هجری**

## مبیعه د کتلو په وخت کښې د مشتری د لاس نه ضائع شوه

**سوال:**- زید د عمرو دکان کښې گومنځ اخستلو دپاره ورغئ،د یوې گومنځې اړخ ته ئې اشاره وکړه چې دا په څو ده، عمرو ورته اووئیل چې یوه نیمه روپئ، زید ورته اووئیل چې اوخو ئې بنایه کنه. قیمت سره به ئې بیا وروستو گورو ، عمرو ورله گومنځ راواخستله او ورئې کړه د گومنځې د غاښونو په خوزولو کښې اتفاقا د دې څه غاښونه مات شو ،اوس عمرو د دې قیمت غواړی،خو زید وائی چې بیعه خو لا شوې نهٔ ده،تپوس دا کول دی چې ددې قیمت په زید باندې لازمیږی او که نه؟

بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مشتری د جملې (اوخو ئې ښايه کنه) نه معلومیږی چې هغه لا د ګومنځې په اخستلو باندې راضی شوې نهٔ وو، بلکه د کتلو نه پس به هغه لا د اخستلو او د نهٔ اخستلو فیصله کوله، لهذا په زید باندې به ضمان نهٔ لازمیږی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: قلت و بيان ذلك ان المساوم انما يلزمه الضمان اذا رضى بأخذه بالثمن المسمى على وجه الشراء فاذا سمى الثمن البائع وتسلم المساوم الثوب على وجه الشراء يكون راضيا بذلك كما انه اذا سمى هو الثمن و سلم البائع يكون راضيا بذلك فكان التسمية صدرت منهما معا بخلاف ما اذا اخذه على وجه النظر لانه لا يكون ذلك رضا بالشراء بالثمن المسمى قال فى القنية سم عن ابى حنيفة رحمه الله قال له هذا الثوب لك بعشرة دراهم فقال هاته حتى انظر فيه او قال حتى اريه غيرى فاخذه على هذا وضاع لا شئ عليه ولو قال هاته فان رضيته اخذته فضاع فهو على ذلك الثمن اهـ. قلت ففى هذا وجدت التسمية من البائع فقط لكن لما قبضه المساوم على وجه الشراء فى الصورة الاخيرة صار راضيا بتسمية البائع فكانها وجدت منهما اما فى الصورة الاولى والثانية فلم يوجد القبض على وجه الشراء بل على وجه النظر منه او من غيره فكان امانة عنده فلم يضمنه ثم قال فى القنية ط اخذ منه ثوب و قال ان رضيته اشتريته فضاع فلا شئ عليه و ان قال ان رضيته اخذته بعشرة فعليه قيمته ولو قال صاحب الثوب هو بعشرة فقال المساوم هاته حتى انظر اليه وقبضه على ذلك ضاع لا يلزمه شىء اهـ قلت و وجهه انه فى الاول لم يذكر الثمن من احد الطرفين فلم يصح كونه مقبوضا على وجه الشراء وان صرح المساوم بالشراء و فى الثانى لما صرح بالثمن على وجه الشراء صار مضمونا و فى الثالث و ان صرح البائع بالثمن لكن المساوم قبضه على وجه النظر لا على وجه لاشراء فلم يكن مضمونا و بهذا ظهر الفرق بين المقبوض على سوم الشراء والمقبوض على سوم النظر فافهم واغتنم تحقيق هذا المحل (ردالمحتار ص۵۵ ج۴)

لیکن دا حکم په هغه صورت کښې دې چې زید ښه په خیال سره ګومنځې ته لاس وروړې وی، یا ئې په محتاط طریقې سره استعمال کړې او کتلې ئې وی، او بیا هم دا ماته شوه، او که چیرې زید د ګومنځ په استعمالولو کښې احتیاط ونهٔ کړو، د هغه د احتیاط نهٔ کولو د وجې نه ګومنځ ماته شوه نو په هغهٔ باندې به بیا ضمان راځی. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۴ ذی قعده ۱۳۸۹ هجری

## د ډیپو خاوند د مقرر کړې شوی قیمت خاوند دې

**سوال**:- د ډیپو خاوند د مقرر کړې شوی قیمت پابندول ضروری دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ډیپو د خاوند د حکومت سره عهد وی چې هغه به په مقرر کړې شوې قیمت باندې څیز خرڅوی، ددې وجې نه حکومت هغهٔ ته رعایت ورکوی، لهذا د دغې عهد خلاف کول روا نهٔ دی. والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۹ ذی قعده ۱۳۹۵ هجری

## یو شریک د ثمن د ادا کولو نه انکار وکړو

**سوال:-** زید او بکر معاهده وکړه چې هغوی به یو ځائې د فلانئ کمپنئ نه زمکه اخلی. لهذا دواړو د معاهدې مطابق څه پیسې راجمع کړې، او په قسطونو باندې ئې زمکه واخستله. صرف دوه قسطه ادا کړې شوې وو چې بکر د نورو پیسو ورکولو نه انکار وکړو، آیا په دې صورت کښې زید ددې خبرې پابند دې چې هغه د بکر ورکړې شوې پیسې (کومې چې هم زید د خپلو پیسو سره یوځائې کړې وې او کمپنئ له ئې ورکړې وې) د خپله اړخه ادا کړی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې پیسو واپسی د زید په ذمه نۀ ده. البته که زید ټوله زمکه واخستله او د بکر ورکړې شوې پیسې ئې هم په خپل حساب کښې کمپنئ ته ادا کړې نو په زید باندې به دا پیسې قرض وی، لهذا هغه به ددې پابند وی چې دا پیسې هغه بکر ته واپس کړی.

زید ته دا هم اختیار شته دې، چې د بکر د حصې پیسې ادا کړی او ټوله زمکه په خپله قبضه کښې واخلی او بیا بکر ته د هغۀ حصه تر هغه وخته پورې ورنۀ کړی تر څو پورې چې د. هغۀ نه د هغه د حصې پوره قیمت وانخلی.

قال الامام النسفی رحمه الله: ولو غاب احد المشتریین فللحاضر دفع کل الثمن و قبضه و حبسه حتی ینقد شریکه. (کنز الدقائق ص۲۴۱) والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۰ رجب ۱۳۹۸ هجری

## د بیعې نه په مخ گرځولو باندې جرمانه

**سوال:-** د بیعانې روپئ ضبط کول روا دی او که نه؟ دلته دا رواج دې مثلا د یو زمکې یا د کور د اخستلو معاهده په یولاك روپئ باندې وشوه، نو اخستونکی بائع له دوه یا څلور زره روپئ په توگه د بیعانې د وړاندې نه ورکړی، د کومې په ذریعې سره چې د دې سودا خبره پخه شی، ددې نه څو ورځې پس رجسټری وشی، وروستو که چیرې اخستونکې ددې معاهدې نه وگرځی، او باقی پیسې ورته ادا نۀ کړی، نو د بیعانې پیسې ترې نه ضبط کړې شی، او که چیرې بائع د دې معاهدې نه واوړی نو هغه اخستونکی ته د بیعانې پیسې دوچنده کړی او ورته ئې ورکړی، آیا دا رواج شرعاً روا دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د معاهدې پابندی کول په فریقینو باندې ضروری دی. د معاهدې نه بیرته گرځیدونکې فریق په ایفاء د عهد باندې مجبورولې شی، لیکن بیعانه ضبط کول یا د بائع نه دوه چنده پیسې اخستل روا نۀ دی. ددې مسئلې تفصیل په رساله (تحریر المقال فی التعزیر بالمال) کښې شته دې، دا رساله په احسن الفتاوی په تیروشوو بحثونو کښې ده. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۶ رمضان ۱۳۹۹ هجری

# باب الربا والقمار

## په مکیلاتو او موزوناتو کښې په بیع بالجنس کښې د نساء تفصیل

**سوال:** په مکیلاتو او موزوناتو کښې دبیع بالجنس په کومو صورتونو کښې نساء حرامه ده ؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب:** د مکیلاتو او موزوناتو په بیع کښې د اتحاد الجنس یا اتحاد القدر په وقت کښې نساء حرامه ده، البته قبض فی المجلس شرط ندې، فقط تعیین فی المجلس کافی دې، احضار فی المجلس هم ضروری نه دې، البته په ملك کښې کیدل ضروری دی، قبض فی المجلس صرف په بیع الصرف کښې لازم دی، په مکیل اوموزون کښې بیع الدین بالعین جائز نده اګرچه په هغه مجلس کښې یی په دین باندې قبل الافتراق قبضه کړې وی اوبیع العین بالدین په دې شرط سره جائزه ده چه قبل الافتراق په دین باندې قبضه وشی په دې صورت کښې تعیین کافی ندې بلکه قبض علی الدین ضروری دې.

قال فی التنویر: وعلته القدر مع الجنس فان وجدا حرم الفضل والنساء وان عدما حلا وان وجد احدهما حل الفضل وحرم النساء.

وفی الشرح: ولو مع التساوی حتی لوباع عبدًا بعبد الی اجل لم یجز لوجود الجنسیة. وفی الشامیة تحت (قوله واحدهما نساء) ثم اعلم ان ذکر النساء للاحتراز عن التأجیل لان القبض فی المجلس لایشترط الا فی الصرف وهو بیع الاثمان بعضها ببعض اما ما عداهما فانما یشترط فیه التعیین دون التقابض کما یأتی (رد المحتار، ص۱۹۹، ج۴).

وایضًا فی العلائیة: والمعتبر تعیین الربوی فی غیر الصرف ومصوغ ذهب وفضة بلا شرط تقابض حتی لوباع برا ببر بعینهما وتفرقا قبل القبض جاز خلافًا للشافعی رحمه الله تعالی فی بیع الطعام ولو احدهما دینًا فان هالثمن وقبضه قبل التفرق جاز والالا کبیعه مالیس عنده سراج.

وفی الشامیة: (قوله والمعتبر تعیین الربوی فی غیر الصرف) لان غیر الصرف یتعین بالتعیین ویتمکن من التصرف فیه فلا یشترط قبضه کالثیاب ای اذا بیع ثوب بثوب بخلاف الصرف لان القبض شرط فیه للتعیین فانه لایتعین بدون القبض ـ الخ.

وایضًا فیها: (قوله حتی لوباع ـ الخ) قال فی البحر بیان کما ذکره الاسبیجابی بقول واذا تبایعا کیلیًا بکیلی اووزنیًا بوزنی کلاهما من جنس واحد اومن جنسین مختلفین فان البیع لایجوز حتی یکون کلاهما عینا اضیف الیه العقد وهو حاضر اوغائب بعد ان یکون موجودًا فی ملکه والتقابض قبل الافتراق بالابدان لیس بشرط

لجوازه الا فی الذهب والفضة ولو كان احدهما عينًا اضيف اليه العقد والأخر دينًا موصوفاً فی الذمة فانه ينظر ان جعل الدين منهما ثمنًا والعين مبيعًا جاز البيع (الی قوله) وبيانه اذا قال بعتك هذه الحنطة علی انها قفيز بقفيز حنطة جيدة (الی قوله) وبيانه اذا قال بعتك هذه الحنطة علی انها قفيز بقفيز حنطة جيدة (الی قوله) فالبيع جائز لانه جعل العين منهما مبيعًا والدين الموصوف ثمنًا ولكن قبض الدين منهما قبل التفرق بالابدان شرط لان من شرط جواز هذا البيع ان يجعل الافتراق عن عين بعين وما كان دينًا لا يتعين الا بالقبض ولو قبض الدين منهما ثم تفرقا جاز البيع قبض العين اولم يقبض ولو قال اشتريت منك قفيز حنطة جيدة بهذا القفيز من الحنطة (الی قوله) فانه لا يجوز وان احضر الدين فی المجلس لانه جعل الدين مبيعًا فصار بائعًا ما ليس عنده وهو لا يجوز حينئذٍ (رد المحتار، صـ۲۰۴، جـ۴)، والله سبحانه وتعالی اعلم ۳۰/ذی قعدة سنه: ۷۲ھ.

## د مكيلاتو او موزوناتو قرض اخستل جائز دی

دا مسئله په باب القرض والدين كښې ده .

## د حفاظت په غرض په بانک كښې خپلې پيسې كيښودل

**سوال** : د حفاظت په غرض په بانک كښې خپلې (پيسې) كيښودل جائز دی او كه نه ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په بانک كښې د پيسو د جمع كولو درې صورتونه دی :

۱ – په سودی طريقې سره (سيونگ اكاونټ).

۲ – په غير سودی طريقې سره (كرنټ اكاونټ).

۳ – لاكر .

په سودی طريقې سره په بانک كښې پيسې كيښودل حرام دی ، په دې كښې د سود اخستلو گناه ده، چه په هغې د الله تعالی او د رسول الله صلی الله عليه وسلم له طرفه سخت ترين وعيدونه دی .

۱ – قرآن كريم كښې الله تعالی او دهغه د رسول صلی الله عليه وسلم له طرفه د سود خورو لپار د جنگ اعلان دی :

۱ - ﴿ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾

۲ - عن جابر رضی الله تعالی عنه قال : لعن رسول الله صلی الله عليه وسلم آكل الربوا وموكله وكاتبه وشاهديه وقال هم سواء، رواه مسلم (مشكوة، صـ۲۴۴) .

۳ - عن عبدالله بن حنظلة غسيل الملائكة رضی الله تعالی عنه قال : قال رسول الله صلی الله عليه وسلم

درهم ربوا يأكل الرجل وهو يعلم اشد من ستة وثلاثين زنية -رواه احمد والدارقطني (مشكوٰة، ص۲۴۶، ج۱).

۴ - عن ابي هريرة رضي الله تعالى عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: الربوا سبعون جزءًا ايسرها ان ينكح الرجل امه -رواه احمد (مشكوٰة، ص۲۴۶، ج:۱).

۵ - وعن عمر بن الخطاب رضي الله تعالى عنه ان اٰخر ما نزلت آية الربوا وان رسول الله صلى الله عليه وسلم قبض ولم يفسرها لنا فدعوا الربوا والريبة، رواه ابن ماجة والدارمي.

قال الطيبي رحمه الله تعالى: اي الآية التي نزلت في تحريم الربوا وهو قوله تعالى: (الذين يأكلون الربوا الآيه)- الى قوله- (لاتظلمون ولا تظلمون) ثابتة غير منسوخة صريحة غير مشتبهة فلذلك لم يفسرها النبي صلى الله عليه وسلم فاجروها على ماهي عليه فلا ترتابوا فيها واتركوا الحيلة في حلها (مرقاة، ص۶۹، ج۹).

ددې نه علاوه په دې کښې تعاون على الاثم دې، داپيسې په سودی کاروبار کښې استعماليږی قال الله تبارك وتعالى: ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾

په کرنټ اکاونټ کښې هم پیسې جمع کول جائز ندی ځکه چه په دې کښې اګرچه د سود اخستلو ګناه نشته ليکن دتعاون على الاثم ګناه پکښې شته.

په لاکر کښې پیسې داخلول هم جائز ندی ځکه چه په دې کښې اګرچه د سود اخستلو او تعاون على الاثم ګناه نشته ليکن په بانك کښې دحرامو پیسونه د جوړې شوې خانې د استعمال ګناه خو شته، د سختې مجبورئ په وخت په دې کښې پیسې جمع کولې شی ځکه چه د ړومبنی دوه صورتونو په مقابل کښې په دې کښې ګناه کمه ده، ليکن بيا هم استغفار وئيل لازم دی، والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲ / جمادی الاولى، سنه: ۸۲ هـ.

## په بانک کښې سود پريښودل جائز ندی

**سوال**: که چيرته چا په سودی کهاته کښې پیسې کيښودلې اوس که هغه سرې هغه د سود پیسې په بانك کښې پريږدی نو بانك والا هغه پیسې د اسلام خلاف کارونو کښې خرچ کوی، نو که چيرته د سود دهغه پیسې په مسکينانو باندې د صدقه کولو په نيت واخستلې شی نو آيا پدې صورت کښې به د سود اخستلو ګناه وی او که نه؟ که چيرته ګناه وی نو بيا څه صورت اختيار کړې شی؟ بينو توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: د بانك په سوی کهاته کښې پیسې کيښودل جائز ندی، که چيرته چا د غفلت يا د ناپوهئ له کبله کيښودلې، اوبيا وروسته په دې خبر شو اوپه دې خپل کار پښيمانه شو نو په هغه واجب دی چه توبه او استغفار وکړی او زرترزره خپلې ټولې پیسې د سود له

بانك نه راوباسی او هغه د سود پیسې دې هم ترینه واخلی اوبغیر له نیت د ثواب څخه دې په مسکینانو باندې تقسیم کړی.

سود اوهر قسم حرام مال اوفاسده بیعه (حرامه گټه) د لقطی په حکم کښې دی. او لقطه اوچتول د ویرې په وخت کښې واجب دی، بیا مالك ته واپس کول او د مالك د نه پیدا کیدو په صورت کښې دهغه د طرف نه بغیر له نیت د ثواب نه په مسکینانو باندې صدقه کول واجب دی

قال الامام المرغینانی رحمه الله تعالی: فیکون سبیله التصدق فی روایة یرده علیه فی روایة لان الخبث لحقه وهذا اصح (هدایه، کتاب الکفالة، ص۱۲۳، ج۳).

وفی الباب الخامس عشر من کراهیة الهندیه: والسبیل فی المعاصی ردها وذلك ههنا برد المأخوذ ان تمکن من رده بأن عرف صاحبه وبالتصدق به ان لم یعرفه لیصل الیه نفع ماله ان کان لایصل الیه عین ماله (عالمگیریه، ص۳۴۹، ج۵).

وفی العشرین من بیوعها: وانما طاب للمساکین علی قیاس اللقطة (عالمگیریه، ص: ۲۱۲، ج:۳).

وفی التنویر وشرحه: (علیه دیون ومظالم جهل اربابها وایس) من علیه ذلك (من معرفتهم فعلیه التصدق بقدرها من ماله وان استغرقت جمیع ماله (ردالمحتار ص۳۳۳، ج۳).

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: ان الذی یصرف فی مصالح المسلمین هو الثالث (الخراج العشور) کما مر واما الرابع (الضوائع واللقط) فمصرفه المشهور هو اللقیط الفقیر والفقراء الذین لا اولیاء لهم (الی ان قال) وحاصله ان مصرفه العاجزون الفقراء (ردالمحتار، کتاب الزکوة، ص۶۳، ج۲).

وفی التنویر وشرحه: (ندب رفعها لصاحبها) ان امن علی نفسه تعریفها والا فالترك اولی وفی البدائع وان اخذها لنفسه حرم لانها کالغصب (و وجب) ای فرض فتح وغیره (عند خوف ضیاعها) کما مر لان لمال المسلم حرمة کما لنفسه فلوترکها حتی ضاعت اثم (ردالمحتار، ص۳۲۸، ج۳).

په بانك کښې د سود پریښودلو په صورت کښې دا خبره یقینی ده چه دا پیسې د هغې په صحیح مصرف باندې نه خرچ کیږی، بلکه د دې نه هم زیاته دا خبره ده چه پدې کښې د سود خورو اعانت او امداد دې، نو له همدې کبله دغه پیسې د تصدق په غرض اخستل واجب دی او په بانك کښې یې پریښودل گناه ده، لکه څنګه چه د ضایع کیدو د ویرې په صورت کښې د لقطی اوچتول واجب دی، بعضې خلقو ته پدې خبره باندې اشکال پیدا شوې دې چه په بانك کښې د سود پریښودل خو څه د امر محرم ارتکاب ندې، زیات نه زیات د امر محرم تسبیب دې او په اخستلو کښې د اخذ ربوا ارتکاب او مباشرت دې نو د دې وجه نه جائز کیدل ندی پکار

د دې خبرې جواب دا دې چه د ربوا د اخستلو مباشرت به هلته وی که په نیت د تملك سره یی واخلی، اوکه چیرته یی په نیت د تصدق او ایصال الحق الی المستحق سره واخلی نو په دې کښې اخذ د ربوا نه راځی، لکه څنګه چه التقاط د لقطی په نیت د تملك سره حرام دې او په نیت د ایصال الحق الی المستحق سره جائز دې بلکه په وخت د خوف د ضائع کیدلو کښې واجب دې.

او د دې نه علاوه له بانك نه په تحقیق سره دا معلومه شوې ده چه د سود پیسې په هر حال کښې د مالك په حساب کښې جمع کیږی او دغه پیسې بغیر له مالك نه بل هیڅوك نشی اخستلې، نو له همدې کبله دغه پیسې حکمًا د مالك په قبضه کښې حسابیږی، اوهغې له بانك نه د راویستلونه وړاندې سود حاصل کړې دې چه دهغې د وبال نه د بچ کیدلو همدا یو صورت دې چه دغه پیسې په مسکینانو باندې بغیر د نیت د ثواب نه صدقه کړې شی ، والله تعالی اعلم .

۳ / ذی القعده ، سنه : ۱۳۷۱ هـ.

## په غیر مسلم بانک کښې سود پریښودل

**سوال** : په غیر مسلم بانك کښې یا چه د کومو بانکونو بعضې مالکان غیر مسلم وی، مثلاً عیسائی، مرزائی، غالی، سبی، شیعه وغیره په دې بانك کښې شریکان وی نو په دغه بانکونو کښې که چیرته یو سړې د خپلې دینی ادارې پیسې کیږدی او دا ولیکی چه زه به په دې پیسو باندې سود نه اخلم، اودغه سړی ته دا هم معلومه وی چه که چیرته زه د هغې سود وانخلم نو زما د پیسو سود د کفر په نشر او اشاعت (خورولو) کښې مصرف کیږی، ځکه چه د بانك څښتن به هغه پیسې په عیسوی ماشین آلاتو کښې مصرف کړی او یا به یی د شیعه ګانو اومیرزایانو ادارو ته ورکړی، نو آیا په دې صورت کښې په دغه بانکونو کښې خپلې پیسې بغیر له سود اخستلو نه کیښودل جائز دی اوکه نه ؟ اوبله دا چه که چیرته د خپلو پیسو سودواخلی او په مسکینانو باندې یی صدقه کړی نو د دې څه حکم دې ؟ ، د شریعت مطابق په دې دواړو صورتونو کښې اهون (سپك) صورت کوم یو دې ؟ که چیرته اکثره حصه د بانك د یو مسلمان وی او دغیر مسلمان حصه کمه وی نو آیا پدې مسئله کښې بیا څه فرق پریوځی اوکه نه ؟ مدلل یی ولیکئ ، بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دبانك مالك برابره خبره ده که مسلمان وی او که کافر، په هر صورت کښې په بانك کښې پیسې کیښودل جائز ندی، اوکه چا د ناخبرتیا او یا د سخت ضرورت له وجه نه په بانك کښې پیسې کیښودلې نو دهغې سود په بانك کښې پریښودل جائز ندی ځکه چه په بانك کښې د مختلفو خلقو د پیسو نه خلاف شرع حاصل کړې شوی منافع ارباح فاسده دی چه هغه په حکم د لقطې کښې دی، اوچونکه د هغې مالك معلوم ندې نو له همدې کبله له بانك نه د سود پیسې اخستل اوبیا دهغې صدقه کول په فقیرانو باندې واجب دی .

وفی الباب الخامس عشر من کراهیة الهندیة: والسبیل فی المعاصی ردها وذلک ههنا برد المأخوذان تمکن من رده بأن عرف صاحبه وبالتصدق به ان لم یعرفه لیصل الیه نفع ماله ان کان لایصل الیه عین ماله (عالمگیریه،ص۳۴۹ج۵).

له دې نه علاوه په دې کښې په سودی کاروبار کښې د تعاون گناه هم ده.

**تنبیه**: قادیانیان، شیعه گان او هرهغه فرقه یا شخص چه د کافر کیدلو با وجود د اسلام دعوه کوی دهغه حکم له عامو کفارونه جدا دې، دغه خلق زندیقان دی له دوئ سره هیڅ قسم معامله جائز نده، له دوئ سره بیعه، شراء، اجاره، استجاره وغیره د معاملاتو تفصیل دې په کتاب الحظر والاباحة کښې وکتلې شی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۱/ صفر، سنه: ۱۳۸۲ هـ.

## د یتیم مال په بانک کښې کیښودل او دهغې سود اخستل

**سوال**: یو سړې مړ شو او دهغه واړه واړه بچی پاتې شول، اودغه سړی یوڅه پیسې په میراث کښې پریښودلې نودهغه خپلوانو دغه د میراث پیسې په بانک کښې داخلې کړې چه په هغې یی فائده اونفع اخستله. بل سړی ورته اووئیل چه دا نفع نده بلکه سود دې، نوډې خلقو په جواب کښې ورته وه وئیل چه د بانک له خلقو سره دا خبره شوې ده چه که په بانک کښې څه نقصان وشی مثلاً اور ولگیږی نو ددې یتیمانو دغه پیسې به تلف گڼلې شی اوکه نقصان نه وی نو نفع به یی هغوئ ته ورکولې شی نو له همدې کبله دا گټه حلاله ده ځکه چه که چیرته نقصان وشی نو مونږ یی منو، د دې معاملې شرعی حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا سود دې چه په هر حال کښې حرام دې او په دې باندې لعنت راغلې دې. په دنیا او آخرت کښې د دې وبال او عذاب په هغه خلقو باندې دې چه چا دغه پیسې په بانک کښې داخلې کړی وی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۸/ ذی قعده، سنه: ۹۹ هـ.

## د مسکینانو د گټې لپاره سود اخستل

**سوال** (۱): یو سړې د مدرسې مهتمم ددې، د مدرسې پیسې له هغه سره وی، دغه مهتمم دا پیسې په بانک کښې داخلوی اودهغه دا نظریه ده چه د دې فائده (سود) واخستلې شی لپاره د دې چه د ضرورت په وقت کښې مسکینانو ته ورکړې شی.

آیا د دې سړی دغه نظریه صحیح ده اوکه د دې پیسو فائده په بانک کښې پریښودل پکار دی او یا یی په یوه داسې سلسله داخلې کړی چه په هغې کښې بیخې نفع نه وی.

خلاصه دا چه د مسکینانو کتل پکار دی اوکه د سود نه د ځان بچ کولو ته ترجیح ورکړې شی، بله خبره دا ده چه د ذکر شوی مصلحت په بناء باندې د عدم جواز په صورت کښې نفع اخستل حرام

دی اوکه مکروه دی ؟

سوال (۲) همدارنګه خپلې شخصی پیسې د مسکینانو د مصلحت لپاره په بانك کښې د کیښودلو څه حکم دې؟ بنوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که صرف د حفاظت په خاطر په بانك کښې پیسې کیښودل ضروری وی نو (لاکر)کښې دې کیږدی . د مسکینانو د مصلحت لپاره له بانك څخه سود اخستل جائز ندی. سودی کاروبار په هر صورت حرام دې . والله سبحانه تعالی اعلم .

۲ / شوال. سنه ۱۳۹۲ هـ

## په دارالحرب کښې له کفارو نه سود اخستل

**سوال** : آیا په دارالحرب کښې له کفارو نه سود اخستل حلال دی اوکه حرام دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دارالحرب کښې له کفارو نه سود اخستل د جمهورو علماؤ په نزد حرام دی، درې امامان او له احنافو څخه امام ابویوسف رحمهم الله تعالی د دې دحرمت قائل دی. البته امام اعظم امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله تعالی نه په دارالحرب کښې د سود د اخستلو جواز منقول دې .

د د امام صاحب رحمه الله تعالی دقول هم بعضې علماؤ دا مطلب بیان کړې دې چه د جمهورو علماؤ خلاف نه پاتې کیږی، یعنی دهغه په نزد هم دا سود اخستل حرام دی .

په قرآن کریم کښې د الله تعالی او دهغه د رسول صلی الله علیه وسلم له طرف نه دجنګ اعلان دې په احادیثو کښې هم دسود په هکله سخت وعیدونه راغلی دی چه هغې ته په کتو سره یو مسلمان د سود په شبهې باندې هم جرئت نشی کولې.

په یو روایت کښې راغلی دی چه د سود په کاروبار کښې ډیر ګناهونه دی چه په هغې کښې تر ټولو کوچنی ګناه له مور سره د زنا کولو برابره ده. په یوبل حدیث کښې راغلی دی چه د سود یو درهم اخستل د شپږ دیرش زناګانونه زیات سخت دی (مشکوة).

د حضرت عمر رضی الله تعای عنه ارشاد دې چه ((فدعوا الربوا والریبة))

په کنزالعمال کښې یې د حضرت عمر رضی الله تعالی عنه د قول مطلب داسې نقل کړې دې ((ترکنا تسعة اعشار الحلال خشیة الربوا)).

نو له همدې کبله د محققینو علماؤ دا فتوی ده چه په هندوستان کښې له کفارونه سود اخستل حرام دی . والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۲ / محرم . سنه ۱۳۷۳ هـ

## د بانک له سود نه د انکم ټیکس (حکومتی مالیه) اداء کول

**سوال** د سود هغه پیسې چه په بانك کښې د حفاظت دپاره د کیښودلې شوی پیسو څخه

حاصلې شی، آیا له همدې پیسو نه د حکومت لخوا څخه په مقرر شوی ټیکس یا مالیه کښې ورکول او د دې غیر شرعی پیسو په ذریعې سره د غیر شرعی ټیکس نه برائت حاصلول جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له بانك نه چه کوم سود لاسته راځی هغه دحکومت له خزانې څخه نه وی نو له همدې کبله له هغې څخه ټیکس یا مالیه اداء کول صحیح نه دی بلکه د مالك د مجهول والی له جهته یې په مسکینانو باندې صدقه کول واجب دی، البته له نورو حکومتی محکمو نه چه څنګه ممکن وی داداء کړې شوی ټیکس مقدار د ده لپاره حلال او طیب دې. ځکه چه د انکم ټیکس مروجه طریقه محض یو ظلم دې اومظلوم خپل حق د غلا په ذریعه هم اخستلې شی.

**قال ابن عابدین رحمه الله تعالی فی باب حد السرقة: فاذا ظفر بمال مدیونه له الاخذ دیانة بل له الاخذ من خلاف الجنس علی ماذکرناقریبًا.(ردالمحتار،ص:(۲۰٦)،ج:(۳)،والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۴/ رجب . سنه: ۱۳۷۳ ه.

## د بانک د څوکیدار تنخواه حرامه ده

**سوال**: که چیرته څوك په بانك کښې څوکیداری کوی نو دهغه د تنخواه څه حکم دې؟ ځکه چه دهغه دکار د سود له کاروبار سره هیڅ تعلق نشته دې، صرف له بانك نه دتنخواه اخستلو مسئله ده چه ظاهراً هغه جائزه معلومیږی ځکه چه د بانك په سرمایه کښې حلال غالب دی، د سود وغیره په نسبت د نورو کهاتو لرونکو پیسې زیاتې دی، بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بانك پیسې په دوه قسمه دی: یو اصل سرمایه او دویم منافع یا آمدنی. په اصل سرمایه کښې حلال غالب دی. له همدې وجه نه په بانك کښې کیښودلې شوې خپلې پیسې واپس اخستل جائز دی. اودا پیسې حلالې هم دی.

او دویم قسم یعنی د بانك په آمدن کښې د سود او نورو فاسدو منافعوا غلبه ده. او عقلاً او عرفًا دا قاعده ده چه په هرقسم کاروبار کښې د نوکرانو تنخواه ګانې اونور مصارف له آمدن سره تعلق لری. مصارف د اصل سرمایې په ځائ له آمدن څخه اخستل کیږی. له همدې کبله د بانك هر قسم تنخواه حرامه ده برابره خبره ده که د هغې له سودی کاروبار سره تعلق وی اوکه نه. والله سبحانه وتعالی اعلم.    ۱۵/ ذی الحجه. سنه: ۱۳۱۱ ه

## نوټ په کم قیمت سره ورکول

**سوال**: آیا نوټ په کم قیمت سره چلول جائز دی اوکه نه. خصوصًا په داسې حال کښې چه هغه وشلیږی اوبانك یې هم نه اخلی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه؛ دا جائز ندی، بانك خو قانونًا د پوره قیمت ورکولو ضامن دي، که چیرته مجبوری وی نو بیا دجواز دا صورت کیدې شی چه یونوټ په بل نوټ باندې د بدلولو په ځای په هغې باندې یوبل شې واخستلې شی، که په دې صورت کښې بائع او مشتری د مبیعې په کم مقدار باندې هم راضی شول نو جائز دی، مقصد دا چه که د نقدو بیعه په نقدو سره وی نو په دې کښې کموالې اوزیاتوالې جائز ندې، اوکه په بل شی سره وی نو جائزه ده. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵ / شوال ، سنه: ۸۲ هـ.

## د تیر شوی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**: بعضې خلق خپل نوټونه بانك ته نشی رسولې اوهغوی د سلو روپو نوټ په اتیا (۸۰) روپئ او د پنځو سوو (۵۰۰) نوټ په څلور سوه (۴۰۰) روپو باندې خرڅ کړو، آیا دا خریداو فروخت په دغه رنګه اضطراری حالت کښې جائز دې اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا بیعه د ربوا کیدلو په وجه حرامه ده، په اضطراری حالت کښې دا صورت هم اختیار کیدلې شو چه د سلو روپو دنوټ په عوض کښې یی د اتیا روپو دمالیت سامان اخستلې وای ، دویم صورت دا کیدې شو چه د سلو روپو په بانك کښې د داخلولو لپاره یی شل روپئ (۲۰) په أجرت (مزدوری) کښې ورکړې وای. والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۴ / جمادی الاولی ، سنه: ۹۱ هـ.

## د یو ټاکلې شوی لوښې په ذریعې سره دقرض اخستل او ورکول

**سوال**: زید له عمر نه یوه پیاله چینی (بوره) قرض واخستله، آیا دا معامله جائزه ده اوکه نه؟ په داسې حال کښې چه په معین لوښی سره فقهاء کرامو قرض اخستل جائز کړی دی او له دې نه علاوه بوره (چینی) وزنی ده نو د دې استقراض کیلاً د ربوا د احتمال له وجهې نه ناجائز کیدل پکار دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هوا! دا جائز دی ځکه چه په معین لوښی سره د استقراض د ناجائز کیدلو وجه دلته مفقوده ده ځکه چه د ضائع کیدلو په صورت کښې بعینه دهغې په شان پیاله راتلې شی. اوبالفرض که چیرته څه تفاوت هم وی نوهغه غیر معتبر دې . لان العرف علی اهداره.

---
پرسیره پر دې دا د معیار مسوی لاندې نه راځی . لان اقل المعیار فی الکیل نصف الصاع وفی الوزن الرطل وما لا یدخل تحت المعیار المسوی لایتحقق فیه ربوا کما فی بیع الحفنة بالحفنتین والتفاحة بالتفاحتین

والله سبحانه وتعالی اعلم . ۱۴ / صفر ، سنه : ۱۴۰۷ هـ .

## د بیمې حکم

**سوال:** زما یو ملګرې دې چه د بیمې د کمپنئ نماینده دې، هغه له ما نه د دې خبرې مطالبه کوی چه زه خپل ژوند بیمه کړم، اوهغه دا وایی چه د بیمې شرکتونه او کمپنیانې مطلقًا سودی کاروبار نه کوی نوځکه دا کار جائز دې ، تاسو مهربانې وکړئ چه آیا دا بیمه جائزه ده اوکه نه ؟ اوکه جائزه نه وی نو له کومې وجهې نه جائزه نده، زه له یو عالم دین نه د دې دوجهِ پوښتنه بې ادبی ګڼم لیکن د دې لپاره چه په دې موجوده وخت کښې هغه خپل دوست ته جواب ورکړې شم ، الله تعالی دې تاسو ته جزاء خیر درکړی . بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د بیمې ډیر اقسام دی په هغې کښې د ژوند د بیمې د ناجائز کیدلو دا لاندې وجوهات دی :

(۱) چه کومې پیسې په قسطونو سره اداء کیږی هغه د بیمې د کمپنئ په ذمه قرض دی او په هغې باندې چه کومې زیاتې پیسې ورکولې کیږی له هغې نه په منافعو سره تعبیر کول کیږی، او هغه سود دې **(کل قرض جر نفعًا فهو ربوا)** نو له همدې کبله د ژوند بیمه قطعًا جائز نده .

(۲) د بیمې کاروبار مشروط بالشرط وی اومشروط قرض حرام دې .

**قال الامام طاهر بن عبدالرشید البخاری رحمه الله تعالی : وفی کفالة الاصل فی الباب الاخیر القرض بالشرط حرام والشرط لیس بلازم. (خلاصة الفتاوی، ص: ۵۳، ج: ۳).**

(۳) بیمه مؤجله وی او په قرض کښې تاجیل صحیح ندې .

**قال الامام المرغینانی رحمه الله تعالی : فان تأجیله لایصح (الی قوله) وعلی اعتبار الانتهاء لایصح لانه یصیر بیع الدراهم بالدراهم نسیئة وهو ربوا. (هدایه، ص: ۷۶، ج: ۳).**

(۴) د شرکت خاوند په دې پیسو باندې له خلقو سره سودی معامله کوی نو د بیمې په کولو سره تعاون علی الاثم دې

قال الله تعالی: ﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾

## ګیتی وارډ (دلوبو یو قسم دې) لوبه قمار دې

**سوال:** آیا د مروجه ګیتی وارډ لوبې څخه چه کومې پیسې لاسته راځی هغه حلالې دی اوکه نه؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ګیتی وارډ د قماریو قسم دې نو له همدې کبله له دې لوبې څخه

لاسته راغلي پيسې حرامې دی ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ / رجب ، سنه : ۱۳۹۱ ھ

## د علاج لپاره بیمه

**سوال** : په امريكا كښې كښې دعلاج اومعالجې سهولتونه اوآسانتياوې د شخصی ادارو په ذمه دی ، دحکومتِ وقت له طرفه د خلقو د علاج لپاره دشفاخانو انتظام د نشت برابر دې ، دحکومت وینا ده چه د مریض لپاره تر ټولو بهتر علاج اوهغه ته د ډیرې پاملرنې ضرورت دې، او شخصی ادارې په ډیرې بهترې طریقې سره د علاج سهولیات مریضانو ته ورکولې شی، عام خلق د علاج لپاره په شخصی ادارو کښې بیمه کوی او د ضرورت په وقت کښې د مریض د دوایانو ټول مصارف انشورنس د شرکت لخوا نه شفاخانې ته ورکول کیږی ، دغه انشورنس شرکت له بیمه کونکی نه هره میاشت يوڅه پيسې اخلی، نو آیا د امریکې په شان ملك اوماحول په دغه صورت حال کښې د همدې مقصد لپاره انشورنس کول جائز دی اوکه نه ؟بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نه ! دا جائز ندی ، والله سبحانه وتعالی اعلم . ۱۹ / ذی قعده سنه : ۱۳۹۸ ھ

## د ګاډی بیمه کول روا نه دی

**سوال** : په امريكا کښې دهر موټر خاوند قانوناً مجبور دې چه د خپل موټر کم نه کم د دې خبرې خامخا انشورنس وکړی چه که چیرته دهغه موټر ته څه حادثه پیښې شی اوپه حادثه کښې د ده غلطی وی نوهغه به د بل سړی د موټر نقصان او د متاثر شوی خلقو دعلاج پوره ذمه وار وی، او د خپلې انشورنس کمپنئ په تعاون سره به هغه بل سړ ته پوره تاوان ورکوی ، نو آیا په دې صورت کښې د ضرورت مطابق د موټر انشورنس جائز دې اوکه نه ؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هرکله چه د موټر د خاوند له طرفه د بیمې معاهده په خپلې خوښې سره نده بلکه دا دحکومت له طرفه يو جبر او ظلم دې نو له همدې کبله د ضرورت په وخت کښې د دې ګنجائش شته. لیکن که دحادثې په صورت کښې د ده له جمع کړې شوو پیسو نه زیاتې ورکړې شوې نو دهغې صدقه کول واجب دی ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۹ / ذی قعده ، سنه : ۱۳۹۸ ھ

## د هلال احمر ټکټونه اخستل

هلال احمر يوه پاکستانی اداره ده چه د پنځو روپو او د دریو روپو ټیکټونه خرڅوی او د لاسته راوړل شوو پیسو نه هره میاشت درې لاکهـ او یا یونیم لاکهـ روپئ د انعام په صورت کښې په همدغه خلقو باندې تقسیموی اوباقی پیسې د وینې په عطیه ، امبولانس، شفاخانو، ایکسرې ، معاینه خانو او د مریضانو په علاج باندې مصرف کوی اوهمدارنګه د ناګهانی آفتونو څخه متاثر

شوی خلقو امداد هم کوی، نو آیا د دې ټکټونو اخستل اوبیا په هغې باندې دغه انعام اخستل جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا دسود او قمار مجموعه ده . نو له همدې کبله حرامه ده . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶/ رجب، سنه: ۱۴۰۰ هـ.

## انعامی بانډ اخستل

**سوال**: آیا انعامی بانډ اخستل جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه! د دې اخستل جائز ندی، او داهم د سود او قمار مجموعه ده او د حرام لپاسه حرام دې . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۳/ شوال، سنه: ۱۴۰۰ هـ.

## د سود پیسې په بیمه کښې ورکول جائز ندی

**سوال**: د څو ځیزونو بیمه په موجوده نظام کښې ډیره ضروری ده لکه د صحت بیمه ، د موټر بیمه، د هغه قیمتی ځیزونو بیمه چه د ډاکخانو په ذریعه سره لیږل کیږی ، نو سوال دا دې چه آیا له بانك نه اخستل شوې سود په دغه رنګه بیمه کښې ورکول جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه! دا جائز ندی ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲/ ذی الحجه، سنه: ۱۴۰۰ هـ.

## د ایل سی حکم

**سوال**: الف له انګلستان نه د یو لاکه روپو سامان راوړل غواړی . د انګلستان والا مال ورکونکې (ب) له الف نه مطالبه کوی چه ماته د دې خبرې ضمانت راکړه چه د مال قیمت په هر صورت کښې اداء کړې شی. الف د پاکستانی بانك (ج) ته راځی او له هغه نه ضمانت غواړی، بانك (ج) هغه د انګلستان مال ورکونکی ته د الف له طرف ه مطلوبه ضمانت په دې شرط ورکوی چه الف به (ج) ته په مقرر شوی شرط باندې د پیسو د مقدار په مناسبت سره کمیشن ورکوی، نو آیا د الف لپاره د داسې کمیشن ورکول جائز دی اوکه نه او (ج) لره د داسې کمیشن اخستل جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ضامن جوړیدلو اجرت جائز ندې، د ذکر شوې مسئلې د جواز آسان صورت خو دا وؤ چه الف (ج) لره د پیسو د اداء کولو وکیل بالاجر جوړ کړی ، نو (ج) چه څومره پیسې د ضامن جوړیدلو په بدل کښې اخلی نو هغه دې د پیسو د اداء کولو د اُجرت په حیث سره واخلی. لیکن له تحقیق نه دا معلومه شوه چه (ج) د پیسو د رسیدلو اجرت له (ب) نه جدا اخلی، نو له همدې کبله کله چه په دې باندې نور هم غور وشو نو د جواز دوه صورتونه په نظر راغلل:

(۱) (ج) چه کله ضمانت کوی نو له دې سره هغه یو څو کارونه نور هم کوی ، مثلاً د الف د حالاتو تحقیق او حساب ساتل وغیره، نو د ضمانت عوض اخستل د دې کار په بدل کښې کیدې شی.
(۲) اوهمدارنګه چونکه د (ج) له ضمانت نه بغیر (ب) په بیعه باندې راضی هم ندې نو فلهذا د ده لپاره د (ج) ضمانت سعی فی ارضاء البائع ده، لهذا دې په حکم د سمسار کښې دې . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲/ رجب ، سنه: ۱۴۰۰ هـ.

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**: مونږ د پاکستان مال په بیرونی ملکونو کښې خرڅه وؤ ، په همدې سلسله کښې بهرنی ګاهك (خریدار) زمونږ په نوم باندې په بانك کښې (ایل سی) خلاصوی ، دا ایل سی د بانك له طرفه یو قسم ضمانت وی چه که مونږ کله هم مال ولیږو نو بانك به د ګاهك (خریدار) له طرف نه پیسې ضروری مونږ ته راکوی، په دې سلسله کښې عرض دا دې چه بعضې خریداران ایل سی داسې خلاصوی چه بانك مونږ ته پیسې د مال له لیږلو نه وروسته سمدستی ادا کوی، لیکن بعضې خریداران د خپلې مجبورئ له کبله خپله ایل سی داسې خلاصوی چه په هغې کښې دا شرط وی چه پیسې به د مال له لیږلو نه (۱۸۰) ورځې ورسته ورکوی، په دې صورت کښې له مونږ سره دوه لارې دی: اول دا چه مونږ (۱۸۰) ورځې انتظار وکړو او له هغې نه وروسته له بانك څخه پیسې واخلو، دویم دا چه که مونږ فوراً پیسې اخستل غواړو نو بانك له هغې نه یوڅه پیسې کموی اوباقی پیسې فوراً مونږ ته راکوی، د دې پیسود کمولو صورت داسې وی چه په بانك کښې د جمع شوو پیسو نه د (۱۸۰) ورځو په اندازه پیسې کموی، په بل عبارت سره داسې ویلې شو چه دا د قرض معامله ده ، یعنی که (۱۸۰) ورځې وروسته مونږ پیسې اخلو نو مونږ ته به یوه روپئ راکوی اوکه فوراً یې اخلو نو مونږ ته بیا دولس آنې راکوی، د ایل سی په وجه له (۱۸۰) ورځو نه وروسته پیسې راکول یقینی وی ، بانك چه یوڅه پیسې له مونږ څخه حصاروی نو باقی پیسې له خپل طرف نه مونږ ته راکوی او په خپله یې (۱۸۰) ورځې وروسته له هغه خریدار څخه اخلی . آیا دا معامله شرعًا جائز ده اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې معاملې حقیقت دا دې چه په خریدار باندې ستا څومره قرض دې هغه د کمو پیسو په عوض کښې ته په بانك باندې خرڅوې . فلهذا دا معامله سود دې نو له همدې کبله جائزه نده. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳/ جمادی الاولی ، سنه: ۱۴۰۲ هـ.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿وَمَا تَوۡفِيۡقِيۡٓ إِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَإِلَيۡهِ أُنِيۡبُ﴾

# زيادة البدل لاجل الاجل

((د قرض په وجه د قيمت د زياتوالی حکم))

## د قرض له کبله په ثمن کښې زياتوالې

**سوال**: يو سړې يو څيز په دې طريقې سره خرڅوی چه که چيرې پيسې دې اوس راکړې نو دا څيز په پنځلس روپۍ دې اوکه پيسې وروسته راکوې نو بيا به يی په شل روپۍ درکوم . نو آيا دا صورت د سود دې اوکه نه ؟ بينوا توجزوا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې سود نشته . البته دا خبره ضروری ده چه په همدغه مجلس کښې دا فيصله وکړی چه مشتری به يی په نقدو اخلی اوکه په قرض . د دې لپاره چه ثمن معين کړې شی (چه پنځلس روپۍ دی اويا شل روپۍ دی) که چيرته څه فيصله ونکړی بلکه همدارنګه بيعه وکړی چه که نقدې روپۍ دې راکړې نو په پنځلس روپۍ دې اوکه نه نو بيا په شل روپۍ دې نو په دې صورت کښې د ثمن د جهالت له وجهې نه دا بيعه فاسده شوه.

قال العلامة المرغينانی رحمه الله تعالیٰ: الا ترى انه يزاد فی الثمن لاجل الاجل (هدايه: ج:۳).

وفی الهندية عن الفتح واما البطلان فيما اذا قال بعتك بالف حالاً بالفين الی سنة فلجهالة الثمن (عالمگيرية ،ج:۳). فقط والله تعالیٰ اعلم. ۲۱ / ذی الحجه . سنة ۱۳۷۱ ه گز

## د تير شوی په شان يو بل سوال

**سوال**: يوڅه وخت وشو چه تاسو د قرض له وجهې نه په ثمن کښې د زيادت د جواز فتوی ورکړې ده ليکن دلته يو مولانا صاحب د عدم جواز فتوی ورکوی او په دليل کښې دا لاندې عبارتونه پيش کوی:

د هدايه د کتاب الصلح په اول کښې راغلی دی چه (الاعتياض عن الاجل حرام).

په عالمگيری باب العاشر کښې دی چه (رجل باع علی انه بالنقد بكذا او بالنسيئة بكذا او الی شهر بكذا والی شهرين بكذا لم يجز، كذا فی الخلاصة (عالمگيرية، جلد:۳، ص:۴۲).

په قاضی خان کښې دی چه (لایجوز بیع الحنطة بثمن النسیئة اقل من سعر البلد فانه فاسد واخذ ثمنه حرام ایضًا. فی الایضاح ان بیع الحنطة بنقصان حکم البلدة فاسد وان اخذ الثمن بعد مضی المدة حرام لان الثمن متفاضل بالحکم وهو الربوا.

همدارنګه په هدایه کښې دی چه: (لان الاجل لایقابله شیء من الثمن).

امید دې چه د پورتنیو عباراتو په نظر کښې نیولو سره به د دې مسئلې تحقیق بیان کړئ ، مهربانی وکړئ جواب مونږ ته زرترزره راولیږئ ، له تاسو نه یو جهان مننه ، بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ذکر شوی صورت جواز له حدیث نه ثابت دې ، په احادیثو کښې په ربوی اموالو کښې نساء ته حرام ویلې شوی دی، چه له دې نه دا خبره څرګندیږی چه په دې کښې فضل حکمی دې. د (مثلاً بمثلٍ ، یداً بیدٍ) دواړو په مقابل کښې یی اوفرمائیل چه (والفضل ربا) که چیرته اجل لره د ثمن په کموالی او زیاتوالی کښې دخل نه وای نو له (یداً بیدٍ) سره به د (والفضل) مقابل کیدل صحیح نه وؤ ، په اموال ربویه کښې د حرمت نساء سبب صرف همدا دې چه د مؤجل نه په معجل کښې فضل حکمی دې .

د فقهې په ټولو کتابونو کښې هم د زیادة الثمن للاجل دجواز تصریح شوې ده .

فی باب المرابحة والتولیة من الهدایة یقوم بثمن حال وبثمن مؤجل فیرجع بفضل ما بینهما.

وایضًا فیها لان للاجل شبها بالمبیع الا تری انه یزاد فی الثمن لاجل الاجل (هدایه،ص:۷۶، ج:۳).

و کذا فی البحر والفتح وشرح التنویر والشامیة وغیرها.

وزاد فی البحر (بعد اسطر) الاجل فی نفسه لیس بمال ولایقابله شیء من الثمن حقیقةً اذا لم یشترط زیادة الثمن بمقابلة قصدًا ویزاد فی الثمن لاجله اذا ذکر الاجل بمقابلة زیادة الثمن قصدًا.

وفی مرابحة شرح الوقایة فی النسیئة یزاد الثمن لاجل الاجل.

وفی النهر الفائق شرح الکنز الا تری انه یزاد فی الثمن لاجله.

وفی حواشی الشلبی علی شرح الوقایة یجوز ان یقدر الثمن فی المبیع بالمؤجل اکثر مما فی المعجل بحیث تقابل کثرة المؤجل تعجیل القلیل.

وفی کتاب الحجة قال محمد رحمه الله تعالی قال ابو حنیفة رحمه الله تعالی فی رجل یکون له علی رجل مائة دینار الی اجل فاذا حلت قال له الذی علیه الدین یعنی سلعة یکون ثمنها مائة دینار نقدًا بمائة وخمسین الی اجل، ان هذا جائز لانهما لم یشترطا شیئًا ولم یذکا امرا یفسد به الشراء (کتاب الحجة،ص: ۶۹۳، ج:۲).

وفيه ايضًا هكذا يتبايع الناس لانهم ذاخروا ازدادوا ما بأس بهذا. (كتاب الحجة. ص: ۲۹۵. ج: ۲).

وفى الشامية ان الاجل يقابله قسط من الثمن.

وفى الفوائد السمية للعلامة الكواكبى مفتى الحلب لان المؤجل والاطول اجلاً انقص مالية من الحال ومن الاقصر اجلاً (الفوائد السمية باب المرابحة. ص: ۳۸. ج: ۲).

اوس په سوال کښې د راوړل شوی عباراتو جوابونه ليکل کيږی:

اول او څلورم عبارت د هدايې دې، د دې دواړو عبارتونو جواب دا دې چه اجل په حکم د صفت کښې دې لکه څنګه چه د اول عبارت په حاشيه کښې دی چه: (لان الاجل صفة كالجودة-الخ-الهدايه ص: ۲۵۰. ج: ۳).

او د صفت حکم دا دې چه د دې له وجهې نه په قيمت کښې کمې، زياتې واقع کيدې شی، دا د ثمن د زياتوالی باعث وی، ليکن وروسته له بيعې نه د صفت (عيب) د نشتوالی د ظهور له وجهې نه رجوع بالنقصان جائزه نده، ځکه چه صفت تابع دې او ځان له د دې په نقصان کښې د دې استقلال لازم وی، مقصد دا چه په موصوف کښې د صفت په وجه قيمت زياتيږی، ليکن دا په خپله مستقلاً د صفت قيمت نه وی الا ان يفرد بالذكر كما سيجيئ، دغه رنګه په اموال ربويه کښې د مبادلة الجنس په وقت کښې صفت ته اعتبار نه وی، حاصل د خبرې دا شو چه د صفت د وجهې نه د ثمن زياتوالې راځی ليکن په دوه صورتونو کښې د دې عوض جائز ندې: (۱) رجوع بالنقصان (۲) مبادله بالجنس.

په دې دواړو صورتونو کښې دصفت عوض اخستل صحيح ندی، د صفت دا حکم معلوم دې لهذا په دې باندې يو څو عبارتونه پيش کيږی:

والوصف لا يقابله شئ من الثمن كاطراف الحيوان (هدايه. ص: ۲۸. ج: ۳) لان الاوصاف لا يقابلها شئ من الثمن فى مجرد العقد (الى قوله) وكل ما اوجب نقصان الثمن فى عادة التجار فهو عيب لان التضرر بنقصان المالية -الخ. (هداية. ج: ۳. ص: ۴۴-۴۵).

لان الوصف وان كان تابعًا لكنه صار اصلاً بافراده بذكر الثمن (هدايه، ج: ۳. ص: ۲۸) لانه (الوصف) صار مقصودًا بالاتلاف فيقابلها (العين) من الثمن (هدايه. ۳. ص: ۴۶).

وقال رسول الله صلى الله عليه وسلم فى الاموال الربوية جيدها ورديها سواء.

له دغه فقهی عباراتو څخه دا څرګنده شوه چه د رجوع بالنقصان په وقت کښې د صفت عوض اخستل جائز ندی، اګرچه د صفت له وجهې نه په ثمن کښې زيادت راځی. او په حديث کښې

تصریح ده چه د جودت د صفت عوض په ربویاتو کښې جائز ندې.

د هدایې په اول عبارت کښې د اخستلو د عدم جواز دواړه موانع موجود دی . اصل عبارت په کتاب الصلح کښې داسې دې چه : (ولو کانت له الف مؤجلة ..... الخ).

په دې کښې د حرمت یو سبب خو دا دې چه قرض انتهاءً مبادله ده او اجل د صفت په حکم سره ګرځی اودهغې په مقابله کښې نیم قرض یعنی پنځه سوه روپئ مقروض ته ورکول کیږی نو دا د صفت عوض شو ، عند مقابلة الربویات.

قال العلامة جلال الدین الخوارزمی رحمه الله تعالی: (قوله اعتیاض عن الاجل وهو حرام) وهذا لان الاجل صفة کالجودة والاعتیاض عن الجودة لایجوز فکذا عن الاجل، الاتری ان الشرع حرم ربا النسیئة ولیس فیه الا مقابلة المال بالاجل شبهة فلان یکون مقابلة المال بالاجل حقیقة حرامًا اولی (کفایة بهاش تکملة الفتح، ص: ۳۹۷ ، ج: ۷).

د حرمت دویم سبب دا دې چه مقروض ته دین ورکړې شوې وؤ سره له اصلی صفت نه. اوس دهغې دصفت اجل د فقدان له کبله په قرض غوښتونکې باندې په پنځو سوو (۵۰۰) کښې رجوع کوی. لهذا دا به جائز نه وی.

د هدایې په دویم عبارت کښې د عدم جواز فقط دویم سبب دې چه هغه په پوره عبارت کتلو سره پوره واضح کیږی. اوهغه عبارت دا دې چه :

ومن اشتری غلامًا بألف درهم نسیئة فباعه بربح مائة ولم یبین فعلم المشتری فان شاء رده وان شاء قبل لان للاجل شبها بالمبیع الایری انه یزاد فی الثمن لاجل الاجل (الی قوله) وان استهلکه ثم علم لزمه بألف ومائة لان الاجل لایقابله شئ من الثمن (هدایه، باب المرابحة والتولیة، ج:۳، ص:۲٦).

له دې ځخه دا څرګنده شوه چه داجل حکم بعینه د صفت دې ، په پورته ذکر شوی عبارت کښې دصفت په باره کښې بعینه دا الفاظ (لایقابله شئ من الثمن) تیر شوې دې . البته په ربویاتو کښې د صفت جودت فرق غیر معتبر دې او د اجل د صفت فرق پکښې معتبر دې ، په دې حکم کښې اجل د صفت په حکم کښې ندې ځکه چه دا فرق منصوص دې.

دویم عبارت چه په عالمګیری کښې له خلاصة الفتاوی ځخه نقل شوې دې دا په هغه صورت کښې دې چه په مجلس کښې هیڅ هم نوی مقرر شوی بلکه مبهم پریښودل شوی وی ، دا صورت واقعةً د جهالت د ثمن له وجهې نه ناجائز دې.

قال فی الفتح فی اوائل البیوع تحت (قوله ویجوز البیع بثمن حال ومؤجل) واما البطلان فیما اذا قال بعتکه بالف حالاً وبالفین الی سنة فلجهالة الثمن (فتح القدیر ، ج: ۵ ، ص: ۸۴).

نو که چیرته په همدې مجلس کښې دا خبره وشوه چه نقدو به یې اخلی اوکه په قرض باندې، نو پدې وقت کښې د عدم جواز هیڅ وجه نشته

په سوال کښې چه دخانیه (فتاوی قاضی خان) طرف ته کومه جزئیه منسوب شوې ده هغه جزئیه اول دلته د دارالافتاء کارکنانو کتله لیکن هغوئ ته په نظر رانغله بیا د مختلفو ادارو یوشمیر علماؤ ته وسپارلې شوه خوبیا هم د هیچا په نظر رانغله.

که چیرته بالفرض په کوم کتاب کښې دا جزئیه پیدا هم شی نو دا به ځکه قابل قبول نه وی چه دا د امام ابوحنیفه رحمه الله له هغه تصریح نه خلاف ده چه کومه د امام محمد رحمه الله له کتاب الحجة نه پورته نقل کړې شوه . فقط والله سبحانه وتعالی اعلم . ۱۹ / ربیع الاول ، سنه : ۱۳۷۲ هـ.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿وَمَا تَوۡفِيۡقِيۡۤ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَاِلَيۡهِ اُنِيۡبُ﴾

# په پراويډنټ فنډ باندې

(دحکومتي مامورينو يو فنډ دې)

# د زکوة او سود حکم

★ اول نقش: مفتی اعظم حضرت مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله تعالی.

★ تصدیق: د جدیدو مسائلو دتحقیق مجلس.

★ نظر ثانی: حضرت فقیه العصر دامت برکاتهم.

## د عصري او جديدو مسائلو د تحقيق مجلس

**سرپرستان:** ۱ - حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب مدظله.

۲ - حضرت مولانا محمد یوسف بنوری صاحب مد ظله

**ارکان:** ۱ - مولانا مفتی رشید احمد صاحب رئیس دارالافتاء والارشاد.

۲ - حضرت مولانا مفتی ولی حسن صاحب مفتی جامعه اسلامیه بنوری ټاون.

۳ - حضرت مولانا عاشق الهی صاحب استاذ دارالعلوم کراچی

۴ - حضرت مولانا محمد رفیع عثمانی صاحب استاذ دارالعلوم کراچی

۵ - حضرت مولانا محمد تقی عثمانی صاحب استاذ دارالعلوم کراچی

## په پراویډنټ فنډ

(دحکومتی مامورینو د یوفنډ نوم دئ)

## باندې د زکوة او سود حکم

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سُبْحَانَكَ لَا عِلْمَ لَنَا إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا إِنَّكَ أَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ

د پراویډنټ فنډ رساله چه مؤلف یی حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله وؤ او تصدیق کونکی یی د جدیدو مسائلو د تحقیق مجلس وؤ چه په تحقیق کښې یی بنده هم شامل وؤ . د دغې رسالې له خپریدو نه وروسته په هغې باندې د نظر ثانی ضرورت پیدا شو مونږ په مختلفو وقتونو کښې څو څو وارې د دې رسالې په ژور نظر سره مطالعه وکړه مونږ په دغه رساله کښې دا لاندې احکام بعینه صحیح وموندل چه دهغې خلاصه داده :

۱ - د پراویډنټ فنډ په پیسو باندې مخکښې له اخستلو نه زکوة فرض ندې، او وروسته له اخستلو نه هم دهغې په تیرو شوو کلونو باندې زکوة فرض نده، او د آینده کلونو د زکوة تفصیل یی په لاندې ډول دې :

که چیرته دغه سړې له پخواڅخه د نصاب خاوند وؤ نو په دغه نصاب باندې په کال تیریدلو سره پدې پیسو هم زکوة فرض دې او که پخوا دغه سړې صاحب د نصاب نه وؤ او د دې پراویډنټ فنډ په اخستلو سره د نصاب مالك شو نو د قمری میاشتې په کوم تاریخ باندې چه ورته دغه پیسې ورکړې شوی دی له هماغه تاریخ نه په یو کال تیریدلو سره پرې زکوة واجب کیږی.

۲ - په پراویډنټ فنډ کښې د مامور له جمع شوې تنخواه نه اضافه پیسې هم د ده لپاره حلالې دی یعنی کومې چه د هغه له تنخواه څخه هره میاشت کټ کولې شی. اوهغه پیسې هم کومې چه په دغه مجموعې باندې د سود په نوم اضافه کولې شی ځکه چه دغه شرعًا سود ندې

۳ - که چیرته د پراویډنټ فنډ پیسې د بیمې یو شرکت ته ورکړې شوې نو پدې باندې به زکوة فرض کړې شی. د هغه تفصیل مطابق چه پورته په اول نمبر کښې د فنډ د اخستلو نه وروسته دهغې مطابق لیکل شوې دې

په دې صورت کښې د بیمې د شرکت لخوا نه ورکړې شوی سود حرام دې .

په رساله باندې د نظر ثانی په نتیجه کښې خو ذکر شوی احکام په خپل ځائ باندې درست دی . لیکن دهغې په بناء او دهغې په لیکل شوو دلائلو کښې یو څه کلام شته چه تفصیل یی دادې

د زکوة او دسود دواړو مسائلو بناء پدې باندې ایښودلې شوې ده چه :

په پراویډنټ فنډ کښې جمع شوې تنخواه له اخستلو نه مخکښې د مامور په ملکیت کښې

داخله نده او په هغې کښې دهغه هيڅ قسم تصرف صحيح ندې.

دا دعوى صحيح نده ځکه چه دا پيسې د مامور په ملکيت کښې راتلل او په هغې کښې دهغه د تصرفاتو نافذ کول د فقهاء کرامو له نصوصو نه ثابت دى.

برسيره پر دې په هغه نصوصو کښې د دې خبرې هم تصريح شوې ده چه په بعضو کتابونو کښې د «تستحق» لفظ ليکل شوې دې له هغې نه تملك مراد دې ، استحقاق په معنى د ملك سره يا په معنى د ظهور ملك سره د فقهاء کرامو په کلام کښې په کثرت سره استعماليږى ، لکه استحقاق د مبيعې وغيره.

دفقهې کتابونو ته په لږ غوندې مراجعې کولو سره چه کوم نصوص په آسانتيا سره زمونږ مخې ته راغلل هغه دلته نقل کولې شى

(۱) قال الامام احمد رحمه الله تعالى في الجامع: ان الاجرة لاتملك بالعقد (عنايه بهامش تكملة، فتح القدير، ص: ۱۵۲، ج: ۷).

(۲) وذكره ايضًا الحافظ العيني رحمه الله تعالى (بنايه، ص: ۶۲۷، ج: ۳).

(۳) والعلامة قاضى زاده رحمه الله تعالى (تكملة فتح القدير، ص: ۱۵۳، ج: ۷).

(۴) والعلامة الطورى رحمه الله تعالى (تكملة البحرى، ص: ۵، ج: ۸).

ومفهومه ان الاجرة تملك باحد معان اربعة كما فى النصوص الآتية.

(۵) وقال ايضًا فى الجامع: ومن له على آخر الف درهم فامره بان يشترى بها هذا العبد فاشتراه جاز (هدايه، ص: ۱۸۶، ج: ۳).

(۶) وفى شرح الطحاوى رحمه الله تعالى: ثم الاجرة تستحق باحد معان ثلاثة اما بشرط التعجيل او بالتعجيل او باستيفاء المعقود عليه فان وجد احد هذه الاشياء الثلاثة فانه يملكها (هنديه، ص: ۴۱۳، ج: ۴).

(۷) وقال الامام طاهر بن عبدالرشيد رحمه الله تعالى: ثم الاجرة انما يستحق بالتعجيل او اشتراط التعجيل او باستيفاء المعقود عليه ولا يملك بمجرد العقد عندنا (خلاصة الفتاوى، ص: ۱۰۳، ج: ۳).

(۸) وقال الامام الكاسانى رحمه الله تعالى: فى شرائط فرضية الزكوة ومنها الملك المطلق وهو ان يكون مملوكا له رقبة ويدًا (ثم قال) وقال ابويوسف ومحمد رحمهما الله تعالى الديون كلها سواء وكلها قوية تجب الزكوة فيها قبل القبض الا الدية على العاقلة ومال الكتابة فانه لا تجب الزكوة فيها اصلاً ما لم تقبض ويحول عليها الحول وجه قولهما ان ما سوى بدل الكتابة والدية على العاقلة ملك صاحب الدين ملكًا مطلقًا رقبة ويدا لتمكنه من

القبض بقبض بدله وهو العين فتجب فيه الزكوة كسائر الاعيان المملوكة ملكاً مطلقاً الا انه لا يخاطب بالاداء للحال لانه ليس في يده حقيقةً فاذا حصل في يده يخاطب باداء الزكوة قدر المقبوض كما هو مذهبهما في العين فيما زاد على النصاب بخلاف الدية وبدل الكتابة لان ذلك ليس بملك مطلق بل هو ملك ناقص على ما بينا والله اعلم. ولابي حنيفة رحمه الله تعالى وجهان: احدهما ان الدين ليس بمال بل هو فعل واجب وهو فعل تمليك المال وتسليمه الى صاحب الدين والزكوة انما تجب في المال فاذا لم يكن مالاً لا تجب فيه الزكوة ودليل كون الدين فعلاً من وجوه ذكرناها في الكفالة بالدين عن ميت مفلس في الخلافيات كان ينبغي ان لا تجب الزكوة في دين ما لم يقبض ويحول عليه الحول الا ان ما وجب له بدلاً عن مال التجارة اعطى له حكم المال لان بدل الشئ قائم مقامه كأنه هو فصار كأن المبدل قائم في يده وانه مال التجارة وقد حال عليه الحول في يده والثاني ان كان الدين مالاً مملوكاً ايضاً لكنه مال لا يحتمل القبض لانه ليس بمال حقيقة بل هو مال حكمي في الذمة وما في الذمة لا يمكن قبضه فلم يكن مالاً مملوكاً رقبة ويداً فلا تجب الزكوة فيه كمال الضمار فقياس هذا ان لا تجب الزكوة في الديون كلها لنقصان الملك بفوات اليد الا ان الدين الذي هو بدل مال التجارة التحق بالعين في احتمال القبض لكونه بدل مال التجارة قابل للقبض والبدل يقام مقام المبدل والمبدل عين قائمة قابلة للقبض فكذا ما يقوم مقامه وهذا المعنى لا يوجد فيما ليس ببدل رأساً ولا فيما هو بدل عما ليس بمال وكذا في بدل مال ليس للتجارة على الرواية الصحيحة انه لا تجب فيه الزكوة ما لم يقبض قدر النصاب ويحول عليه الحول بعد القبض لان الثمن بدل مال ليس للتجارة فيقوم مقام المبدل ولو كان المبدل قائماً في يده حقيقةً لا تجب الزكوة فيه فكذا في بدله بخلاف بدل مال التجارة (بدائع، ص:۱۰۹، ج:۲).

دحرمت د حکم لپاره د ربا شبهه هم کافی ده نو د ملك ناقص نه په طریق اولی سره حرمت د ربا ثابتیږی بالخصوص چه کله د اُجرت په دین کښې هم ملك کامل دې.

(۹) وقال الامام قاضیخان رحمه الله تعالى: رجل أجر داره سنة بعبد بعينه ثم ان الأجر اعتق العبد من ساعته لم يجز اعتقاه الا ان يكون تعجيل الاجر شرطاً في الاجارة اولم يكن شرطاً في الاجارة لكنه عجل (خانيه بهامش الهنديه، ص:۳۰۳، ج:۲).

(۱۰) وقال ايضاً: وفي الاجارة المضافة الأجرة لا يملك الاجر بالتعجيل ولا باشتراط التعجيل (الى قوله) فيؤخذ بالرواية التي تثبت الملك في الاجارة لمكان الحاجة (خانيه بهامش الهنديه، ص:۳۰۲، ج:۲).

(۱۱) وقال ايضاً: واذا ملك المستأجر العين المستأجرة بميراث اوهبة او نحو ذلك بطلت الاجارة ولو كانت

الاجرة عينًا فوهبه من المستأجر قبل القبض بطلت فى قول محمد رحمه الله تعالى ولو كانت الاجرة دينًا فوهبها من المستأجر قبل القبض او ابرأه جازت الهبة والابراء ولا تبطل الاجارة وقال ابو يوسف رحمه الله تعالى الابراء باطل فى الوجوه كله والاجارة باقية (خانيه بهامش الهنديه، ص: ۳۵۶، ج: ۲).

(۱۲) وقال الامام برهان الدين رحمه الله تعالى فى المحيط : فان كانت هذه التصرفات (الابراء والهبة للمستأجر) من المؤجر بعد استيفاء المنفعة جازت بلا خلاف (هنديه، ص: ۴۱۷، ج: ۴).

(۱۳) وقال ايضًا : واذا تصارف الأجر والمستأجر الاجرة فاخذ بالدراهم دنانير فان كان ذلك بعد استيفاء المنفعة او كانا شرطا التعجيل فى الاجرة حتى وجبت الاجرة جازت المصارفة اجماعًا (تیره شوی حواله)

(۱۴) وقال ايضًا : وان كانت الاجرة شيئًا من المكيل والموزون بغير عينه موصوف فلا بأس بان يبيعه من المستأجر قبل ان يقبضه وهذا اذا وجبت بالاستيفاء او باشتراط التعجيل (هنديه، ص: ۴۱۸، ج: ۴).

(۱۵) وقال الامام المذكور رحمه الله تعالى فى الذخيرة : ولو اشترى المؤجر من المستأجر عينًا من الاعيان جاز فى قولهم جميعًا ويتعلق العقد بمثل الاجرة دينًا فى الذمة وتقع المقاصة بين الثمن وبين الاجرة (هنديه ص: ۴۱۷، ج: ۴).

(۱۶) وقال الامام المرغينانى رحمه الله تعالى فى شرح قول الامام القدورى رحمه الله تعالى (الاجرة لا تجب بالعقد وتستحق باحدى معانى ثلاثة ـ الخ) وقال الشافعى رحمه الله تعالى تملك بنفس العقد (الى قوله) اذا استوفى المنفعة يثبت الملك فى الاجرة لتحقق التسوية و كذا اذا اشترط التعجيل او عجل من غير شرط لان المساواة يثبت حقا له وقد ابطله (هدايه، ص: ۲۹۳، ج: ۳).

(۱۷) وقال الامام البابرتى رحمه الله تعالى تحت قول الامام القدورى رحمه الله تعالى (الاجرة لا تجب بالعقد ـ الخ) قال صاحب النهاية : الاجرة لا تجب بالعقد معناه لا يجب تسليمها واداؤها بمجرد العقد وليس بواضح لان نفى وجوب التسليم لا يستلزم نفى التملك كالمبيع فانه يملكه المشترى بمجرد العقد ولا يجب تسليمه مالم يقبض الثمن والصواب ان يقال معناه لا تملك لان محمدًا رحمه الله تعالى ذكر فى الجامع ان الاجرة لا تملك وما لا يملك لا يجب ايفاؤه (وبعد اسطر) وعلى هذا كان قوله يستحق بمعنى يملك دل على هذا كله قوله وقال الشافعى رحمه الله تعالى تملك بنفس العقد والا لم يكن محل الخلاف متحدًا (عناية بهامش تكملة فتح القدير، ص: ۱۵۲، ج: ۷).

(۱۸) و كذا نقل عنه العلامة قاضى زاده (تكملة فتح القدير، ص: ۱۵۳، ج: ۳).

(۱۹) و کذا قال العلامة سعدی جلبی رحمه الله تعالی فی حاشیته علی العنایة (تکملة فتح القدیر، ص:۱۵، ج:۷).

(۲۰) و کذا اقرر الحافظ العینی رحمه الله تعالی ما حرر العلامة البابرتی رحمه الله تعالی (بنایة، ص:۶۲۷، ج:۳).

(۲۱) وقال ایضًا: (فثبت الحکم فیما یقابله من البدل) ولهذا صح الابراء عن الاجرة قبل استیفاء المنفعة بالاجماع وصح الارتهان به بالاجماع وبه قال احمد رحمه الله تعالی فان قیل الثابت بالضرورة لایتعدی موضوعها فلایتعدی من صحة العقد الی افادة الملك، فالجواب ان الضروری اذا ثبت لیستتبع لوازمه وافادة الملك من لوازم الوجود عند العقد (تیره شوی حواله).

(۲۲) وقال ایضًا: قد ذکر علاؤ الدین فی طریقة الخلاف ان فائدته هی انه لایثبت للمؤجر ولایة المطالبة بتسلیمها فی الحال ولو کانت الاجرة عبدًا وهو قریبه لایعتق علیه فی الحال وعنده له ولایة المطالبة فی الحال ویعتق علیه فی الحال (بنایة، ص:۶۲۸، ج:۳).

(۲۳) وقال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی: الخامسة لایملك المؤجر الاجرة بنفس العقد وانما یملکها بالاستیفاء او بالتمکن منه او بالتعجیل او بشرطه فلو کانت عبدًا فاعتقه الموجر قبل وجود واحد مما ذکرنا لم ینفذ عتقه لعدم الملك (الاشباه والنظائر، ص:۲۰۳).

(۲۴) وقال ایضًا: واشار المصنف رحمه الله تعالی الی ان المستأجر لو باع المؤجر بالاجر شیئًا وسلم جاز لتضمنه اشتراط التعجیل فتقع المقاصة بینهما (البحر الرائق، ص:۳۰۰، ج:۷).

(۲۵) وقال العلامة الطوری رحمه الله تعالی: قال رحمه الله تعالی (والاجرة لاتملك بالعقد بل بالتعجیل او بشرطه او بالاستیفاء او بالتمکن منه) یعنی الاجرة لاتملك بنفس العقد سواء کانت عینًا او دینًا وانما تملك بالتعجیل او بشرطه او باستیفاء المعقود علیه وهی المنفعة او بالتمکن من الاستیفاء بتسلیم العین المستأجرة فی المدة - اه - کلام الشارح والظاهر من اطلاق الماتن والشارح ان الاجرة تملك بالتمکن من الاستیفاء فی المدة سواء استعملها فی المدة اولا - الخ - (تکملة البحر الرائق، ص:۳، ج:۸).

(۲۶) وقال ایضًا وعبر المؤلف بقوله لاتملك لان لفظ محمد رحمه الله تعالی فی الجامع: الاجرة لاتملك بنفس العقد قال صاحب النهایة الاجرة لاتجب بالعقد معناه لایجب تسلیمها واداؤها بمجرد العقد ولیس بواضح لان نفی وجوب التسلیم لایستلزم نفی الملك کالمبیع فانه یملکه المشتری بمجرد العقد ولایجب تسلیمه ما لم یقبض الثمن والصواب ان یقال معناه لاتملك لان محمدًا رحمه الله تعالی ذکر فی الجامع الصغیر ان الاجرة لاتملك

وما لایملک لا یجب ایفاؤہ (تکملة البحر، ص: ۵، ج: ۸)۔

(۲۷) وقال ایضًا: وفی المحیط لو طالبه بالاجرة عینًا وقبض جاز لتضمینه تعجیل الاجرة (تیرہ شوی حوالہ)

(۲۸) و کذا نقل عنه العلامة الطحطاوی رحمه الله تعالی (حاشیة الطحطاوی علی العلائیة، ص: ۶، ج: ۴)۔

(۲۹) و کذا نقل عنه العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی وقال: لو باعه بالاجرة - الخ. (رد المحتار، ص: ۱۰، ج: ۶)۔

(۳۰) وقال الامام شیخ الاسلام ابوبکر بن علی رحمه الله تعالی تحت قول الامام القدوری رحمه الله تعالی (والاجرة لا تجب بالعقد) واذا استوفی المنفعة ثبت الملک فی الاجرة لتحقق التسویة و کذا اذا شرط التعجیل او عجل من غیر شرط (الجوهرة النیرة، ص: ۳۲۴، ج: ۱)۔

(۳۱) وقال الامام النسفی رحمه الله تعالی: والاجرة لا تملک بالعقد بل بالتعجیل او بشرطه او بالاستیفاء او بالتمکن منه (کنز الدقائق، ص: ۳۱۴)۔

(۳۲) وقال الامام الزیلعی رحمه الله تعالی: لا تملک الاجرة بنفس العقد سواء کانت الاجرة عینًا او دینًا وانما تملک بالتعجیل او بشرط التعجیل او باستیفاء المعقود علیه وهی المنفعة او بالتمکن من استیفائه بتسلیم العین المستأجرة فی المدة وقال الشافعی رحمه الله تعالی تملک بنفس العقد - الخ. (تبیین الحقائق، ص: ۱۰۷، ج: ۵)

(۳۳) وقال العلامة احمد الشلبی رحمه الله تعالی فی حاشیته علی التبیین: (قوله وقال الشافعی تملک بنفس العقد) قال الاتقانی وفائدة هذا الخلاف ما ذکره علاؤ الدین العالم فی طریقة الخلاف وهو ان لا یثبت للمؤجر ولایة المطالبة بتسلیمها فی الحال ولو کانت الاجرة عبدًا وهو قریبه لا یعتق علیه فی الحال - آه (تیرہ شوی حوالہ)

(۳۴) وقال العلامة منلا مسکین رحمه الله تعالی: (والاجرة لا تملک بالعقد) ولا یجب تسلیمه به عندنا عینًا کان او دینًا (بل) تملک الاجرة (بالتعجیل) من طرف المستأجر من غیر شرط (او بشرطه) ای بشرط التعجیل (او بالاستیفاء) ای باستیفاء المعقود علیه (او بالتمکن منه) ای من استیفاء المعقود علیه (منلا مسکین بهامش فتح المعین، ص: ۲۳۲، ج: ۳)۔

(۳۵) وقال العلامة ابو السعود رحمه الله تعالی: (قوله عینًا کان او دینًا) وقیل ان کانت الاجرة عینًا لا تملک بنفس العقد وان کانت دینًا تملک بنفس العقد ویکون بمنزلة الدین المؤجل وعامة المشائخ رحمهم الله تعالی علی ان الصحیح الاول حموی عن الذخیرة (قوله او بشرطه) والمراد انه یستحقها بذلک ولکن لا یملکها الا بالقبض کذا قیل واقول فی الدر عن شرح الوهبانیة للشرنبلالی انه یفتی بروایة تملکها بشرط التعجیل للحاجة

(فتح المعین، ص: ۲۳۲، ج ۳).

(۲۶) وقال الامام ابن البزاز الکردری رحمه الله تعالی فی بحث الاجرة الطویلة: لوجعلت عقودا یلزم ان لاتملك الاجرة لان الاجرة لاتملك بالتعجیل ولابشرطه فی المضافة قال الصدر رحمه الله تعالی تجعل عقودًا الا فی هذا الحکم للحاجة وقال غیره تجعل عقودًا فی کل الاحکام لان فی ملك الاجرة بالتعجیل اوشرطه فی المضافة روایتین فیفتی بروایة یملك فیها للحاجة (بزازیة بهامش الهندیه، ص: ۱۹، ج: ۵).

(۲۷) وقال العلامة علی القاری رحمه الله تعالی: (قوله ولاتجب الاجرة) ای لاتملك (بالعقد) سواء کانت عینًا اودینًا کذاذکر محمد رحمه الله تعالی فی الجامع وذکر فی الاجارة ان کانت عینًا لاتملك بالعقد وان کانت دینًا تملك به وتکون بمنزلة الدین المؤجل عامة المشائخ علی مافی الجامع وقال الشافعی واحمد رحمهما الله تعالی تملك بنفس العقد (بل) تملك الاجرة (بتعجیلها اوبشرطه اوباستیفاء النفع اوالتمکن منه). (شرح النقایة، ص: ۱۰۳، ج: ۲).

(۲۸) وقال العلامة الیاس رحمه الله تعالی فی حاشیته علی شرح النقایة: (ولایجب) تسلیم (الاجرة بالعقد) ای بنفس العقد عینًا کانت اودینًا وقال الشافعی رحمه الله تعالی یملك بنفس العقد ویجب تسلیمها عند تسلیم الدار والدابة الی المستأجر لانها عقد معاوضة فمطلقه یوجب ملکیة البدل بنفسه کعقد البیع، قلنا: عقد المعاوضة یقتضی تقابل البدلین فی الملك والتسلیم ای یثبت الملك فی البدلین معًا کالبیع واحد البدلین وهو المنفعة لم تصر مملوکة بنفس العقد بل تراخی الملك فیها الی حین وجودها فکذا الاجرة (تیره شوی حواله).

(۲۹) وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: (والاجرة لاتستحق بالعقد) ای بنفس العقد فلایجب تسلیمه به (بل بالتعجیل) فلیس له الاسترداد (اوبشرطه) فی العقد ای لومنجزة فلو مضافة لم تملك بشرط التعجیل اجماعًا وقیل تجعل عقودًا فی کل الاحکام فیفتی بروایة تملکها بشرط التعجیل للحاجة کما فی شرح الوهبانیة للشرنبلالی (اوباستیفاء المعقود علیه) من المنفعة (اوالتمکن منه). (الدر المنتقی بهامش مجمع الانهر، ص: ۳۸۰، ج: ۲).

(۳۰) وقال العلامة شیخ زاده رحمه الله تعالی: (بل) تستحق (بالتعجیل) هو (اوبشرطه) ای بشرط التعجیل لان امتناع ثبوت الملك بنفس العقد لتحقق المساواة فاذا عجل اوشرط التعجیل فقد ابطل المساواة التی هی حقه بخلاف الاجازة المضافة بشرط تعجیل الاجرة فان الشرط باطل لامتناع ثبوت الملك من التمدل للتصریح بالاضافة الی وقت فی المستقبل المضاف الی وقت لایکون موجودًا قبله ولایتغیر هذا المعنی (اوباستیفاء المعقود علیه) لتحقق المساواة بینهما اذ العقد عقد معاوضة (اوالتمکن منه) ای من استیفاء

النفع اقامة للتمكن من الشئ مقام ذلك الشئ (مجمع الانهر، ص: ۳۷۱، ج: ۲).

(۳۱) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: (والاجر لايلزم بالعقد فلايجب تسليمه به) بل بتعجيله اوشرطه في الاجارة) المنجزة، اما المضافة فلاتملك فيها الاجرة بشرط التعجيل اجماعًا، وقيل تجعل عقودا في كل الاحكام فيفتى برواية تملكها بشرط التعجيل للحاجة شرح وهبانية للشرنبلالي (اوالاستيفاء) للمنفعة (اوتمكنه منه) الا في ثلاث مذكورة في الاشباه (ردالمحتار، ص: ۱۰، ج: ۶).

(۳۲) وقال العلامة الطحطاوي رحمه الله تعالى: وقول المصنف لايلزم بالعقد معناه لايملك فان محمدًا رحمه الله تعالى ذكر في الجامع الصغير ان الاجرة لاتملك ومالايملك لايجب ايفاؤه.

وفي المحيط لوطالبه بالاجرة عينًا وقبض جاز لتضمنه تعجيل الاجرة والاجارة المضافة لاتملك فيها الاجرة بالتعجيل ولا بالشرط والغرض من هذه الاجارة تملك الاجرة. قال صدر الاسلام الاجل الشهيد رحمه الله تعالى: الصحيح عندي انها تعتبر عقودًا في حق سائر الاحكام وعقدًا واحدًا في حق ملك الاجرة بالتعجيل اوبشرط التعجيل-آه. (حاشية الطحطاوي على الدر، ج: ۶، ج: ۴).

(۳۳) وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لايلزم بالعقد) اي لايملك به كما عبر في الكنز (رد المحتار، ص: ۱۰، ج: ۶).

(۳۴) وقال ايضًا وفي المحيط: لوباعه بالاجرة عينًا وقبض جاز لتضمنه تعجيل الاجرة طوري (تیرہ شوی حوالہ)

(۳۵) وقال ايضًا: وان عقودًا فلا تملك بالتعجيل ولا باشتراطه لانها مضافة فيفوت الغرض، واجيب انما اختاره الصدر الشهيد من انها تجعل عقدا واحدًا في حق ملك الاجرة بالتعجيل اواشتراطه وعقودًا في حق سائر الاحكام (ردالمحتار، ص: ۱۱، ج: ۶).

(۳۶) وقال العلامة التمرتاشي رحمه الله تالى: وجاز التصرف في الثمن قبل قبضه تعين بالتعيين اولا وكذا الحكم في كل دين قبل قبضه كمهر واجرة وضمان متلف سوى صرف وسلم (ردالمحتار، ص: ۱۵۲، ج: ۵).

(۳۷) وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى في شرح قول التمرتاشي (وجاز التصرف في الثمن) بهبة اوبيع اوغيرهما لوعينًا اي مشارًا اليه ولودينًا فالتصرف فيه تمليك ممن عليه الدين ولوبعوض ولايجوز من غيره ابن ملك (وكذا الحكم في كل دين كمهر واجرة وضمان متلف) وبدل خلع وعتق بمال وموروث وموصى به.

والحاصل: جواز التصرف في الاثمان والديون كلها قبل قبضها عيني (سوى صرف وسلم) فلايجوز الخ

طلاق جنسه لفوات شرطه (تیره شوی حواله).

(۴۸) وقرره العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى (تيره شوی حواله).

(۴۹) وكذا قال العلامة الطحطاوي رحمه الله تعالى (حاشية الطحطاوي على الدر، ص: ۱۰۱، ج: ۳).

(۵۰) وكذا قال الامام ابو الليث السمرقندي رحمه الله تعالى (فتاوى النوازل، ص: ۲۶۶).

(۵۱) والامام طاهر بن عبد الرشيد رحمه الله تعالى (خلاصة الفتاوى، ص: ۴۳، ج: ۳).

(۵۲) والامام المرغيناني رحمه الله تعالى (هدايه، ص: ۷۵، ج: ۳).

(۵۳) والامام البابرتي رحمه الله تعالى (عنايه بهامش فتح القدير، ص: ۲۶۹، ج: ۵).

(۵۴) والامام ابن الهمام رحمه الله تعالى (فتح القدير، ص: ۲۹، ج: ۵).

(۵۵) والحافظ العيني رحمه الله تعالى (بنايه، ص: ۱۴۰، ج: ۳).

(۵۶) والامام النسفي رحمه الله تعالى (كنز الدقائق، ص: ۲۳۳).

(۵۷) والامام الزيلعي رحمه الله تعالى (تبيين الحقائق، ص: ۸۲، ج: ۴).

(۵۸) والعلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى (البحر الرائق، ص: ۱۱۹، ج: ۶).

(۵۹) والعلامة منلا مسكين رحمه الله تعالى (منلا مسكين بهامش فتح المعين، ص: ۵۹۵، ج: ۲)

(۶۰) والعلامة ابو السعود رحمه الله تعالى (فتح المعين، ص: ۵۹۵، ج: ۲).

(۶۱) والامام ابن البزاز رحمه الله تعالى (بزازيه بهامش الهنديه، ص: ۳۹۶، ج: ۴).

(۶۲) وصدر الشريعة الثاني رحمه الله تعالى (شرح الوقاية، ص: ۶۱، ج: ۳).

(۶۳) وكذا في الهندية عن الذخيرة (هندية، ص: ۱۳، ج: ۳).

(۶۴) جواز تمليك الدين ممن عليه الدين ومن غير من عليه الدين بشرط التوكيل بالقبض ولو ضمنًا.
دا مسئله په ټولو کتابونو کښې ده، د تیرې شوې لیکنې په شان که هر عبارت نقل کړې شی نو د دې مضمون شمیره به ډیره زیاته شی.

(۶۵) د میراث جاری کیدل د ملکیت دلیل دې، (وسيجيئ ما يخالفه عن الشامية والجواب عنه) دا مسئله هم په هر کتاب کښې شده، دا مسئله په ټولو کتابونو کښې شته، که چیرې د هر کتاب عبارت نقل کړې شی نو د عددونو شمیر به ډیر زیات شی

(۶۶) مهر معجل په شرط د یسر دزوج سره د مفتی به قول مطابق موجب د تضحیه دې، حال دا

چه دا ضعیف دین دې، د دې متعلق هم که چیرې د ټولو کتابونو عبارات را نقل کړې شی نو د فقهی نصوصو د عباراتو تعداد به تقریباً دوه سوه پورې ورسیږی.

## ادلة عدم الملك

(۱) قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی: یعنی لایملك الاجرة الا بواحد من هذه الاربعة والمراد انه لایستحقها المؤجر الا بذلك کما اشار الیه القدوری رحمه الله تعالی فی مختصره لانها لو کانت دینًا لایقال انه ملکه المؤجر قبل قبضه (الی قوله) لیس له بیعها قبل قبضها (البحر الرائق، ص:۳۰۰، ج:۷).

(۲) وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی فی بیع الاستجرار: اما بیع حظ الاما فالوجه ما ذکره من عدم صحة بیعه، ولاینافی ذلك انه لومت یورث عنه لانه اجرة استحقها ولایلزم من الاستحقاق املك، کما قالوا فی الغنیمة بعد احرازها بدار الاسلام فانها حق تأکد بالاحراز، ولایصحل الملك فیها للغانمین الا بعد القسمة والحق المتأکد یورث کحق الرهن والرد بالعیب، بخلاف الضعیف کالشفعة وخیار الشرط کما فی الفتح وعن هذا بحث فی البحر هناك بأنه ینبغی التفصیل فی معلوم المستحق بأنه ان مات بعد خروج الغلة واحراز الناظر لها قبل القسمة یورث نصیبه لتأکد الحق فیه کالغنیمة بعد الاحراز وان مات قبل ذلك لایورث، لکن قدمنا هناك ان معلوم الامام له شبه الصلة وشبه الاجرة والارجح الثانی، وعلیه یتحقق الارث ولو قبل احراز الناظر، ثم لایخفی انها لاتملك قبل قبضها فلا یصح بیعها (رد المحتار، ص:۱۵، ج:۴).

(۳) وقال الامام المرغینانی رحمه الله تعالی تحت قوله من له علی آخر الف درهم فامره - الخ، او یکون امرا بصرف مالا یملکه الا بالقبض قبله وذلك باطل (هدایه، ص:۱۸۶، ج:۳).

## الجواب

په ذکر شوی جزئیاتو کښې نفی الملك المطلق ده ، نفی مطلق الملك نده، د امام صاحب رحمه الله تعالی په نیزد په دیون ثلاثه کښې په یودین کښې هم ملك مطلق ندې، بلکه ملك ناقص دې، او دصاحبینو رحمهما الله په نیزد باندې په هر دین کښې ملك مطلق موندل کیږی، کما مرّ تفصیله عن الامام الکاسانی رحمه الله.

د سود شبه هم محرم ده نو لهذا په ملك ناقص کښې به هم حکم د حرمت وی. خصوصً چه د صاحبینو په نیزد ملك مطلق دې، د شبه ربا دپاره خو دا کافی وه چه دامام شافعی رحمه الله په نیزد نفس عقد هم ثابتونکې دملك مطلق دې، بلکه په خپله امام محمد رحمه الله نه هم یو روایت راغلې دې.

قال العلامة علی القاری رحمه الله (ولا تجب الاجرة) ای لا تملك (بالعقد) سواء کانت عینًا او دینًا کذا ذکر

محمد رحمه الله تعالى فى الجامع وذكر فى الاجارة ان كانت عينًا لا تملك بالعقد وان كانت دينًا تملك به وتكون بمنزلة الدين المؤجل وعامة المشائخ على ما فى الجامع (شرح النقاية ص: ۱۰۲، ج: ۲).

وقال الامام ابو السعود رحمه الله تعالى: وقيل ان كانت الاجرة عينًا لا تملك بنفس العقد وان كانت دينًا تملك بنفس العقد - الخ (فتح المعين ص: ۲۳۲، ج: ۳).

په جزئيات نافيه كښې د ملك مطلق په مراد كيدلو باندې دلائل:

(۱) د ملكيت لپاره د مثبته دلائلو اوړد فهرست.

(۲) د علامه ابن نجيم رحمه الله اوله جزئيه مخكښې ليكل شوې ده اوهغه په خپله په الاشباه كښې د تملك اجرت متعلق ليكلى اوفرمايى، ونصه:

والخامسة لا يملك المؤجر الاجرة بنفس العقد وانما يملكها بالاستيفاء اوبالتمكن منه اوبالتعجيل اوبشرطه فلوكانت عينًا فاعتقه المؤجر قبل وجود واحد مما ذكرنا لم ينفذ عتقه لعدم الملك (الاشباه والنظائر، ص: ۲۰۳).

(۳) وقال هو نفسه فى البحر ايضًا: (قوله والاجرة لا تملك بالعقد) لان العقد ينعقد شيئًا فشيئًا على حسب حدوث المنافع على ما بينا والعقد معاوضة ومن قضيتها المساواة فمن ضرورة التراخى فى جانب المنفعة التراخى فى جانب البدل الأخر (البحر الرائق ص: ۳۰۰، ج: ۷).

(۴) وقال ايضًا: واشار المصنف رحمه الله الى ان المستأجر لو باع المؤجر بالاجر شيئًا وسلم جاز لتضمنه اشتراط التعجيل فتقع المقاصة بينهما فان تعذر ايفاء العمل رجع بالدراهم دون المتاع (تيره شوى حواله).

(۵) د دويمې جزئى قائل علامه ابن عابدين رحمه الله دې، هغوئ چه هم په دې خپل تحرير كښې كوم مثالونه ليكلى دى له هغې نه دا ثابتيږى چه نفى د ملك مطلق ده ، نه د مطلق ملك.

(۶) په خپله علامه ابن عابدين رحمه الله په ثمن او نورو تولو ديونو كښې هرقسم تصرفات جائز كړى دى ، وقد مر نصهٗ (رد المحتار، ص: ۱۵۲، ج: ۵).

(۷) وقال هو نفسه: (قوله لا يلزم بالعقد) اى لا يملك به كما عبر فى الكنز (رد المحتار، ص: ۱۰، ج: ۶).

(۸) وقال ايضًا: وفى المحيط لو باعه بالاجرة عينًا وقبض جاز لتضمنه تعجيل الاجرة طورى (تيره شوى حواله).

(۹) وقال ايضًا: وان عقودا فلا تملك بالتعجيل ولا باشتراطه لانها مضافة فيفوت الغرض، واجيب انما اختاره الصدر الشهيد من انها تجعل عقدا واحدًا فى حق ملك الاجرة بالتعجيل او اشتراطه وعقودا فى حق سائر الاحكام (رد المحتار، ص: ۱۱، ج: ۶).

(۱۰) وقال ايضًا: (قوله اوشرطه) فله المطالبة بها وحبس المستأجر عليها وحبس العين المؤجرة عنه وله حق الفسخ ان لم يعجل له المستأجر كذا فى المحيط لكنه ليس له بيعها قبل قبضها بحر (رد المحتار، ص: ۱۰، ج: ۶).

په ثبوت د ملك باندې د باربار تصريح كولو باوجود له بحر نه د عدم جواز د بيع نقل كول او په دې باندې څه بحث نه كول ، له دې نه دا معلوميږي چه دا په انتفاء د ملك مطلق باندې مبنى دې او اثبات د مطلق ملك دې.

له دې نه علاوه د ابن عابدين د ذكر شوې ليكنې څخه دا څرګنده شوه چه هغه د علامه ابن نجيم د استحقاق او عدم ملك متعلق عبارت له امور اربعه نه صرف (بشرط تعجيل) سره متعلق كوى. او همدارنګه دا هم ظاهره ده چه له امور اربعه نه اول امر يعنى تعجيل يقيناً موجب د ملك دې او حال دا چه د بحر عبارت ديته هم شامل دې ، نو چه څنګه اول امر مستثنى دې همدارنګه دنورو دلائلو په نظر كښې نيولو سره به امرين آخرين هم مستثنى كيږى او دبحر جزئيه به فقط له امر ثانى سره خاصل كولې شى كما فصله ابن عابدين رحمه الله تعالى.

علامه طحطاوى رحمه الله تعالى هم د بحر دغه جزئيه د شرط تعجيل لاندې نقل كړيده، (طحطاوى ، ص: ٦ ، ج: ۴).

امام ابو السعود رحمه الله تعالى خو صراحةً دا له (شرط تعجيل) سره متعلق كړيدې او ثبوت د ملك لره يې ترجيح وركړيده ، ونصه:

**(قوله اوبشرطه) والمراد انه يستحقها بذلك ولكن لايملكها الا بالقبض كذا قيل و اقول فى الدر عن شرح الوهبانية للشرنبلالى انه يفتى برواية تملكها بشرط التعجيل للحاجة (فتح المعين، ص: ٢٣٢، ج: ٣).**

(١١) په دريمه جزئيه كښې دامام مرغينانى رحمه الله له عد تملك سره متعلق ليكنه باندې يې په حاشيه كښې دكفايه نه هم هغه تشريح نقل كړيده چه كومه علامه كاسانى رحمه الله ليكلې ده ، (وقد مر نصه).

## مؤجل اجرت

بعضې علماء كرامو ليكلى دى چه تملك د أجرت صرف له اجرت مطلقه سره خاص دې او په أجرت مؤجله كښې باوجود د استيفاء د منافعو تملك نشى موندلې، او پدې دعوې باندې يې دوه دلائل پيش كړى دى:

(١) په صورت د تاجيل كښې مخكې له نيتې نه حق د طلب نشته.

(٢) دين مؤجل د دائن لپاره مانع د اخذ د زكوة ندې.

د دوئ دا خيال او دلائل صحيح ندى.

اول دليل يې څكه صحيح ندې چه دملك باوجود عدم حق طلب كيدې شى **كما فى الرهن وحبس المبيع لاستيفاء الثمن.**

د بنده د دې جواب نه وروسته د فقهې په كتابونو كښې د دې صراحت وموندل شو چه دين

مؤجل هم د دائن ملك دي.

قال العلامة ابو السعود رحمه الله تعالى: (قوله عينا كان او دينا) وقيل ان كانت الاجرة عينا لاتملك بنفس العقد وان كانت دينا تملك بنفس العقد ويكون بمنزلة الدين المؤجل وعامة المشائخ رحمهم الله تعالى على ان الصحيح الاول حموی عن الذخيرة (فتح المعين، ص: ۲۳۲، ج: ۳).

وقال العلامة على القارى رحمه الله تعالى: (ولا تجب الاجرة) اى لاتملك (بالعقد) سواء كانت عينا او دينا كذا ذكر محمد رحمه الله تعالى فى الجامع وذكر فى الاجارة ان كانت عينا لاتملك بالعقد ان كانت دينا تملك به وتكون بمنزلة الدين المؤجل وعامة المشائخ على ما فى الجامع (شرح النقاية، ص: ۱۰۳، ج: ۲).

په دويم دليل كښې د علائيه دا جزئيه ليكل شوې ده: وابن السبيل وهو كل من له مال لامعه ومنه قالوا من كان له ماله مؤجلاً (ردالمحتار، ص: ۳۴۳، ج: ۲، باب المصارف).

د دې دليل د ابطال لپاره پخپله همدا جزئيه كافى ده، په دې كښې دا وضاحت دې چه جواز د اخستلو د زكوة عدم ملك لره مستلزم ندې، په بعضې صورتونو كښې د نصاب مالك هم دزكوة مصرف جوړيدې شي.

## تحقيق:

له ذكر شوى تفصيل نه دا ثابته شوه چه په پراويډنټ فنډ كښې جمع شوې پيسې د مامور ملكيت دې، اوسره له دې نه دهغې د اخستلو نه مخكې په دې باندې زكوة نشته او په دې باندې چه څومره اضافات او امتيازات وركول كيږى هغه ټول حلال دى او دا د سود په تعريف كښې داخل ندى.

## دزكوة مسئله:

په دين اجرت باندې دزكوة د عدم وجوب وجه اودهغې پوره تفصيل پورته د امام كاسانى رحمه الله نه نقل كړې شوې دې.

## د سود مسئله:

د پراويډنټ فنډ اضافاتو ته سود ځكه نشى ويلې چه دا د اصل تنخواه نه زيات يا بدل اجل اويا اجرت مملوكه باندې زياتى ندى، بلكه له ابتداء د عقد نه په وجه د اجل اونيتى سره په اصل تنخواه كښې اضافه ده اوټول اضافات اومتعلقات په اصل تنخواه كښې شميرل او د دې ټولو مجموعه له ابتداء د عد نه د عمل بدل دې، په وجه د تاجيل د بدل كښې اضافه بيشكه جائزه ده - كما حررت فى رسالتى (زيادة البدل لاجل الاجل)

د دې اضافات تشريح له ابتداء نه متعين شوى وى، له همدې كبله فساد دجهالت هم پدې كښې نشته. والله سبحانه وتعالى اعلم

۲ / ربيع الاخر سنه: ۱۳۹۹ هـ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِاللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾

# دکاغذی نوټ او کرنسی حکم

⊙ **عربی مقاله**: حضرت مولانا محمد تقی صاحب
⊙ **اردو ژباړه**: مولانا محمد عبدالله میمن
⊙ **تبصره**: حضرت فقیه العصر مدّ ظله.

## د بحث سرټکی:

وټونو فقهی حیثیت.
نیا دکرنسې (صرافی) په نظام کښې انقلاب او تبدیلی.
زیر بحث مسئله کښې د مقالې د صاحب نظر.
رنسی نوټ او زکوة.
ټونو په نوټونو سره تبادله.
کی نوټونو په خپل مینځ کښې تبادله.
الې د صاحب په نظر کښې راجح او مفتی به قول.
ختلفو ملکونو د نوټونو اوکرنسی په خپلو مینځونو کښې تبادله.
ه قبض کولو نه د کرنسی د نوټونو تبادله.
صره
ې صحیح طریقه
ک د نوټونو په خپل مینځ کښې تبادله اود همدې نوټونو دنورو ملکونو له نوټونو سره

## د کاغذی نوټونو (پیسو) او د کرنسی (صرافی) حکم

د البلاغ په میاشتنی مجله کښې چه د محرم او ربیع الاول په ۱۴۰۹ هجری کښې شایع شوې وې د کاغذی نوټونو په تحقیق باندې دمحترم مولانا محمد تقی عثمانی صاحب دعربی مقالې ترجمه هم شائع شوه ، ما هغوئ ته په بعضې ځایونو باندې د نظرثانی کولو لپاره وه وئیل ، دهغوئ له طرف نه مونږ ته څه جواب رانغې ، له همدې کبله ما د دې مقالې په آخر کښې د دغو ځایونو متعلق خپله نظریه د (تبصره) تر عنوان لاندې لیکلې ده د دې لپاره چه د علم خاوندان په دې تحقیق باندې یو نظر واچوی نو د نظرونو د اختلاف په نظر کښې نیولو سره به یوه رایه متعینه کړی.

**الحمد لله رب العالمین ، والصّلوة والسلام علی سیّدنا ومولانا محمّد خاتم النبیین ، وعلی آله واصحابه الطاهرین وعلی کلّ من تبعهم باحسان الی یوم الدین.**

### دنوټونو فقهی حیثیت

د کاغذی نوټونو (پیسو) داحکامو بیان اودهغې ټول تفصیلات اوجزئیاتو شروع کولو نه مخکې، د دې نوټونو حقیقت پیژندل ضروری دی چه آیا دا د کوم قرض وثیقې (رسید) دی اوکه عرفی ثمن دی ؟

کوم خلق چه وایی چه دا کاغذی نوټونه مالی دستاویزات او رسیدونه دی دهغوئ په نیزد دا نوټونه دهغه قرض سندونه دی چه کوم د دې دخپرونکی بانك په ذمه واجب دی لهذا د دې خلقو د نظر مطابق دا نوټونه نه ثمن دی اونه مال دی بلکه د دوئ د نظر مطابق نوټ د داسې وثیقې (سند) نه عبارت دې چه کوم سند مدیون دائن ته ولیکی اوهغه ته یی ورکړی ، د دې لپاره چه کله هم هغه وغواړی نو د دې په ذریعه به ورته په خپل قرض (دین) باندې قبضه کول ممکن شی، فلهذا د دوئ د نظر مطابق که چا دا نوټ یوبل شخص ته ورکړو نو د دې به دا مطلب نه وی چه ده هغه ته مال ورکړو بلکه دا دې دخپل مال حواله په هغه مقروض بانك باندې ورکوی چه چا دغه نوټونه د سند په طور شایع کړی دی، نو له همدې کبله پدې فقهي اعتبار سره به پدې باندې هغه حکمونه جاری کیږی کوم چه په حواله باندې جاری کیږی، لهذا د دې نوټونو په ذریعه د بل چا حق اداء کول به په هغه ځائ کښې جاری وی په کوم ځائ کښې چه حواله جائزه وی ، اوکه چیرته دا نوټونه د سروزرو یا سپینو زرو سندونه وی (یعنی د دې تر شا په بانك کښې سرزر یا سپین زر وی) نو په دې صورت کښې ددې نوټونو په ذریعې سره سره زر یا سپین زر اخستل جائز ندی، ځکه چه د سروزرو په سروزرو باندې یا د سپینو زرو په سپینو زروباندې بدلول (بیع صرف) دې، او په بیع صرف کښې مبیعه او ثمن دواړه په مجلس عقد کښې قبض کول شرط دی ، لهذا که د دې نوټونو په ذریعې سره یی سره زر یا سپین زر واخستل نو دا صرف له یو طرف نه قبض وشو اودهغه بل طرف نه قبض

ونشو ځکه چه خريدار خو په زرو باندې قبضه وکړه ليکن دوکاندار دزرو په سند باندې قبضه وکړه اوپه خپله په زرو باندې يې قبضه ونکړه ، پس هرکله چه په (بيع صرف) کښې د جائز کيدلو لپاره په مجلس عقد کښې د دواړو طرفونو نه دقبض کولو شرط په دې کښې موجود نه وۀ نو دا بيعه شرعًا جائزه نده.

همدارنګه که چيرې يومالدار سړې دخپل زکوة د اداء کولو لپاره دا کاغذي نوټونه کوم فقير ته ورکړي نو تر کوم وخته پورې چه دغه فقير د دې نوټونو په بدله کښې هغه سره زر يا سپين زر له بانك نه نوی اخيستی دکومو چه دا نوټونه سندونه دی اويا يې ترکومې پورې چه په دې نوټونو باندې څه سامان نوی اخيستې نو تر هغه وخته پورې د دې مالدار سړی زکوة نه اداء کيږی، اوکه چيرې دغه نوټونه مخکښې له استعمال څخه له دې فقير نه ضائع شول نو دهغه مالداری سړی صرف په نوټونو ورکولو سره فقير ته غاړه نه خلاصيږی بلکه دوباره به زکوة ورکوی.

د دې بالعکس دنورو علماؤ نظر دا دې چه اوس دغه نوټونه په خپل ذات کښې ثمن جوړ شوی دی نو که چيرې څوك دغه نوټونه چاته ورکړی نو دا به داسې ګڼلې کيږی چه ده هغه سړی ته مال او ثمن ورکړو، دغه اداء کول به د دين حواله نه ګڼل کيږی، لهذا د دې علماؤ د نظر مطابق د دې نوټونو په ذريعې سره زکوة فی الفور اداء کيږی، او د دې نوټونو په ذريعې سره سره زر او سپين زر اخستل هم جائز دی.

لهذا د کاغذي نوټونو اومختلفو کرنسی (صرافی) احکامو بيانولو نه مخکښې دنوټونو په باره کښې به له ذکر شوی نظريو نه فقط يوه نظريه متعين کول ضروری وی.

پدې موضوع باندې دفقهې او معاشياتو د کتابونو د مطالعې نه زما په نظر د دې نوټونو په باره کښې دويمه رائيه زياته صحيح ده اوهغه دا چه دا نوټونه اوس عرفی ثمن جوړ شوی دی او اوس دا دحوالې حيثيت نلری.

## د دنيا د کرنسی په نظام کښې انقلابات اوبدلونونه

په پخوا زمانه کښې به خلقو څيزونه په څيزونو (Barter) سره بدلول ، يعنی يو څيز به يې ورکړو اودهغې په بدل کښې به يې بل څيز اخستلو، په دغه قسم تبادله کښې به ډير نقصانات اومشکلات وۀ، او په هرځائ او په هر وقت کښې به په دې طريقې باندې عمل کول ګران وۀ، له همدې کبله د وقت په تيريدو سره ورو ورو دا طريقه پريښودلې شوه[1].

---

١ - مثلاً يوسړی ته د غنمو ضرورت دې اوله هغه سره زياتې وريژې دی نو هغه يوداسې سړې ګوری چه چاته د وريژو ضرورتې وی او زياتی غنم هم ورسره وی، نو د داسې سړی له پيدا کيدلو نه وروسته به دې سړی له هغه سره د غنمو په وريژو باندې تبادله کوله، اود ده لاس ته به غنم راغلل. اوس دا طريقه ترك

له دې نه وروسته یوبل نظام جاری شوچه کوم ته بضاعتی طریقه (Commodity Money Sestem) ویل کیږي، په دې نظام کښې خلقو مختلف خاص څیزونه دثمن په طور د تبادلې ذریعه جوړ کړل اوعمومًا به یی هغه څیزونه د تبادلې ذریعه جوړول چه کوم به ډیر استعمالیدل ، مثلاً کله به یی غنم د تبادلې ذریعه جوړول ، کله مالګه کله څرمن (پوستکی) ، کله اوسپنه وغیره به یی د تبادلې ذریعه جوړول لیکن د دې څیزونو په تبادله کښې به د حمل اونقل ډیر مشکلات مخې ته راتلل، له همدې کبله چه څنګه به آبادی زیاتیدله نوهلته به د خلقو ضرورتونه هم اضافه کیدل او تبادله به هم د مخکې په مقابل کښې زیاتیدله، نو خلقو دا فکر وکړو چه د تبادلې لپاره یوه داسې طریقه پکارده چه په نقل اوحکم کښې یی آسانی وی، اوپه هغې باندې د خلقو اعتماد هم ډیر وی.

بالاخر په دریمه مرحله کښې خلقو سره زر او سپین زر د تبادلې ذریعه جوړ کړل ځکه چه دا قیمتی څیزونه دی ، خواه که دا دګانې په شکل کښې وؤ اوکه د لوښو په شکل کښې په هرحال کښې د دې په خپله ذاتی قیمت وؤ ، او د دې حمل اونقل او ذخیره کول هم آسان وؤ ، تر دې چه دې دواړو قیمتی څیزونو د نورو اشیاء د قیمتونو لپاره د پیمانی حیثیت ختیار کړو او په ټولو ملکونو او ښارونو کښې خلقو په همدې باندې اعتماد شروع کړو، دې نظام ته معدنی طریقه د مبادلې ویل کیږي، په دې نظام باندې هم ډیر تغیرات اوانقلابات تیر شوی دی کوم چه مونږ دلته په اختصار سره ذکر کوو.

۱ - په ابتداء کښې به خلقو داسې سره زر او سپین زر په طور د تبادلې استعمالول چه هغه به دسایز ، ضخامت ، وزن اوصفائی په اعتبار سره مختلف وؤ، بعضی زر به د ټکړو په شکل کښې وؤ اوبعضې به د اوبدلی شوی لوښو او زیوراتو په شکل کښې وؤ لیکن د تبادلې په وخت کښې به فقط وزن معتبر کیدلو .

۲ - له دې نه وروسته د سکو رواج شروع شو ، په بعضې ښارونو کښې به دسرو زرو د سکو او په بعضو ښارونو کښې به د سپینو زرو د سکو رواج وؤ چه کومې به په ضخامت، وزن او خالصوالی کښې برابرې او مساوی وې. اوپه کومو به چه دواړو طرفونو ته مهر لږیدلې وؤ اودغه مهر به د دې خبرې علامت وؤ چه دا صحیح دی او د تبادلې قابلې سکې دی، او د دې سګو ظاهری قیمت (Face Value) چه کوم به په هغې لیکلې شوې وؤ هغه به د سرو زرو اوسپینو زرو له حقیقی قیمت (Gold or Silwer Content) سره برابر وؤ ، ګویا د سکې په شکل به چه کوم سره زر وؤ

---

شوي ده. البته داسې قسم تبادلې اوس هم په بعضو ځایونو کښې شته اوپه نظر رځی، مثلاً تاسې به په کوڅو کښې بعضې کباړیان لیدلی وی چه هغوئ زړې جامې ، زړې چپلې او اخبارونه اخلی اودهغې په بدله کښې پیالې او لوښی وغیره ورکوی (مترجم).

دهغې قیمت به د سرو زرو دهغه خښتې سره برابر وؤ چه کومه به د سکې په وزن وه ، دې نظام ته د تبادلې معیاری سیستم طریقه (Gold Specie Standard) ویل کیږی، دا نظام ترټولو دمخه دچین خلقو قبل المسیح په اومه پیړئ کښې رواج کړې وؤ.

په دې نظام کښې خلقو ت د دې خبرې آزادی وه چه که دوئ غواړی نو په خپل مینځ کښې د تبادلې لپاره سکې هم استعمالولې شی اود سروزرو ټکړې اویا د سرو زرو ګانې وغیره هم استعمالولې شی اوله ملك نه بیرون د وړلو اوراوړلو هم عام اجازت وؤ.

او دحکومت له طرفه دا عام اجازت وؤ چه هرڅوك په څومره مقدار سره سکې جوړول غواړی هغه یی جوړولې شی، چنانچه خلقو به حکومت ته د زرو ټکړې او له هغې نه جوړ شوی نور څیزونه راوړل اوحکومت به له هغې نه سکې جوړې کړې اوبیا به یی هغوئ ته ورکړې اودغه شان چا به چه سکې د ویلې کیدلو لپاره راوړې نوهغه به حکومت ویلې کړې اود ټکړو په شکل کښې به یی هغوئ ته واپس ورکړې.

۳ - بعضې ملکونو د سروزرو او سپینو زرو دواړه سکې رواج کړې او د دې دواړو په مینځ کښې یی د تبادلې لپاره یوخاص قیمت مقرر کړو او سره زر یی د لویی کرنسی په طور باندې او سپین زر یی د وړې کرنسی په طور باندې استعمال کړل، دې نظام ته دوه ګونې (Bi-metalism) نظام ویلې کیږی، لیکن په دې نظام کښې نور مشکلات پیدا شول اوهغه دا چه د سرو زرو او سپینو زرو سکو په مینځ کښې د تبادلې لپاره چه کوم قیمت مقرر شوې وؤ هغه په مختلفو ښارونو کښې مختلف شو، چه له همدې کبله خلقو د صرافی په تجارت کښې دلچسپی اخستل شروع کړل.

مثلاً په امریکه کښې دسرو زرو د یوې سکې قیمت د سپینو زرو پنځلس سکې وؤ ، په همدغه وقت کښې به په اروپا کښې دسرو زرو د یوې سکې قیمت دسپینوزرو دپنځلس نیمو سکو سره برابر وؤ، نو په دې صورت کښې به تاجرانو په امریکه کښې ډیرې سکې واخستلې او په اروپا کښې به یی خرڅې کړې اودهغې په عوض کښې به یی هلته ډیر سپین زر واخستل اوهغه به یی امریکا ته راوړل اودسرو زرو په سکو به یی بدل کړل، بیا به یی دا دسرو زرو سکې دوباره اروپا ته نقل کړې اودهغې په عوض کښې به یی بیا سپین زر راوړل ، نو د دې تجارت په سلسله کښې به د امریکا سره زر مسلسل اروپا ته نقل کیدل بالاخره به د سپینوزرو دسکو په بدله کښې د سرو زرو ټولې سکې له امریکانه اروپا ته لاړې.

۴ - سکې که د سرو زرو وی او که د سپینو زرو وی اګرچه د سامان او اسبابو په مقابل کښې د دې حمل اونقل آسان دې لیکن بل طرفته دهغې غلا کول هم آسان دی . له همدې کبله د مالدارو خلقو لپاره د دې سکو ډیر مقدار ذخیره کول اوپه کور کښې ساتل مشکل شو، فلهذا دغه خلقو به د دې سکو یوزیات مقدار له زرګرانو اوصرافانو سره دامانت په طور کیښودلو اوهغه زرګرانو

اوصرافانو به د دې سکو له خپل ځان سره دکینبودلو په وخت کنبې امانت کینبودونکو ته د وثیقې او سند په طوریو کاغذ یا رسید ورکولو ، د وقت په تیریدلو سره دخلقو په دې زرګرانو باندې اعتبار اوباور زیات شو نو خلقو د دغه رسیدونو (کوم به چه زرګرانو یا صرافانو دوئ ته په طور د سند ورکول) خرڅول او اخستل شروع کړل لکه د ثمن په شان. لهذا یو خریدار به یو دوکاندار ته د خریدارئ په وقت کنبې د نقدو سکو د اداء کولو په ځائ له دغه رسیدونو نه یو رسید ورکړو اوهغه دوکاندار به په زرګرانو باندې داعتماد په خاطر هغه رسید قبلولو.

دا ده د کاغذی نوټونو ابتداء لیکن په ابتداء کنبې نه د دې څه خاص شکل او صورت وؤ اونه د دې څه داسې قانونی حیثیت وؤ چه دکوم له وجهې نه خلق د دې په قبلولو مجبور کړې شی، بلکه د دې د رد کولو اوقبلولو دواړو مدار به په دې خبره باندې وؤ چه د دې قبلولو والا د دې په اصل سړی (زرګر) باندې څومره اعتماد لری.

۵ - کله چه د کال (۱۷۰۰) په ابتداء کنبې په بازارونو کنبې د دې رسیدونو رواج ډیر شو نو دې رسیدونو ترقی وکړه او د یوې ضابطې صورت یې اختیار کړو چه کوم ته بانکی نوټ ویل کیږی، چه له ټولو نه وړاندې د سویډن د استاك هوم بانك دا د کاغذی نوټ په حیث شایع کړو.

په هغه وخت کنبې به له شایع کونکی بانك سره د دې کاغذی نوټونو په عوض کنبې سل فیصده دهمدومره مالیت په اندازه سره زر موجود وؤ اوبانك به همد د دې خبرې التزام کولو چه صرف دومره مقدار نوټونه جاری کړی څومره مقدار چه له هغه سره سره زر وی.

او د دې کاغذی نوټونو لرونکی لره به دا اختیار وؤ چه کله هم وغواړی بانك ته ولاړ شی او د دې په بدل کنبې د سرو زرو خښته واخلی ، له همدې کبله دې نظام ته د سروزرو دسلاخونو معیار (Gold Bullion Standard) ویل کیږی.

۶ - په کال (۱۸۳۳) کنبې چه کله د بانك د نوټ رواج ډیر زیات شو نو حکومتونو دې ته یو قانونی شکل ورکړو اویوه قانونی طریقه یې مقرره کړه، اوپه هر قرض اخستونکی باندې یې دا لازم کړل چه هغه به د خپل قرض په بدل کنبې دا نوټونه داسې ضرور قبلوی لکه څنګه چه په ده باندې د سرو زرو او سپینو زرو قبلول لازم دی ، وروسته له دې نه بیا تجارتی بانکونه د دې نوټونو له شائع کولو نه بند کړې شو اوفقط حکومتی بانکونو ته د دې د شائع کیدلو اجازت وؤ اوبس.

۷ - بیا چه کله حکومتونو ته د جنګ اوامن په دوران کنبې دآمدنی د کموالی له کبله د ترقیاتی کارونو په سرته رسولو کنبې ډیر مشکلات مخې ته راغلل، نو حکومتونه مجبور شول چه هغه کاغذی نوټونه په یو لوئ تعداد سره شایع کړی کوم چه د سروزرو له موجوده مقدار نه زیات دی ، د دې په خاطر چه دخپلو ضرورتونو د پوره کولو لپاره دا استعمال کړی، د دې په

نتيجه کښې د سرو زرو هغه مقدار چه د دې کاغذي نوټونو تر شا وؤ هغه ورو ورو کميدلو تر دې پورې چه په ابتداء کښې د سروزرو اود دې نوټونو تر مينځ چه کوم سل فيصده تناسب وؤ هغه تناسب دوخت په تيريدو سره ډير لږ پاتې شوچه د دې نوټونو شائع کونکو مرکزي بانکونو په دې خبره باندې يقين وؤ چه له مونږ نه به د دې ټولو شائع شوي نوټونو په بدله کښې په يو وخت کښې د سرو زرو مطالبه نشي کيدلې ، نو له همدې کبله د سرو زرو د مقدار نه په زياتونوټونو جاري کولو کښې هيڅ حرج نشته، پل بل عبارت داسې ويلې کيدې شي چه د ډيرونوټونو د شائع کولو په نتيجه کښې په بازار کښې داسې نوټونه رائج شول چه کومو ته د سرو زرو پشت بانه حاصله نه وه ليکن تاجرانو به دغه قسم نوټونه په دې اُميد اخستل چه د دې نوټونوشائع کونکو مرکزي بانکونو ته د دې خبرې قدرت حاصل دې چه هغوئ د تبديلولو د مطالبې په وخت کښې له هغوئ سره د موجودو سروزرو په ذريعه د دوئ مطالبه پوره کولې شي اګرچه له هغوئ سره دموجوده سرو زرو مقدار دهغه شايع شوو نوټونو په مقابله کښې ډير کم دې ، دغه قسم کرنسي نوټونه ته د اعتبار سيستم (Fiduciary Money) ويل کيږي .

له بلې خوا څخه د آمدني د ذکر شوې کمي اوپيسو ته د زيات ضرورت په بناء باندې چه حکومتونو تر اوسه پورې دمعدني سکو په ذريعه معاملات کول دې خبرې ته مجبورشول چه هغوئ خو يا په سکو کښې د دې څيزونو چه څومره مقدار استعماليږي هغه کم کړي اويا په هره سکه کښې د اصلي سروزرو اوسپينو زرو په ځاى ناقص څيزونه استعمال کړي، چنانچه د دې کار په نتيجه کښې دسکې ظاهري قيمت (Face Value) چه کوم په هغې باندې ليکل شوې وؤ هغه د سکې له اصل قيمت نه (Intrinsic Value) څو چنده زيات شو ، دې قسم سکوته علامتي سيستم اوطريقه (Token Money) وئيل کيږي، ځکه چه د دې سکې معدني اصليت دهغې د ظاهري قيمت لپاره محض يوه نشانه وه چه کوم به کله د دې دذاتي قيمت صحيح نمايندګي کوله .

۸ - د اعتباري سيستم دغه رواج زياتيدلو تردې پورې چه په يوملك کښې د شائع شوي نوټونو تعداد دهغه ملك د موجوده سرو زرو د مقدار په مقابله کښې ډير زيات شو حتى چه حکومتونو ته د دې خبرې خطر پيدا شو چه که څوك د نوټونو په ذريعې سره د سونې هغه خپل مقدار وغواړي نو دوئ بې نشي پوره کولې لکه څنګه چه په بعضې ښارونو کښې حقيقتاً دا واقعه پيښه شوه چه مرکزي بانك دنوټونو په مقابل کښې دهغې په مقدار سره سره زر ورنکړې شول

په دغه وقت کښې ډيرو ملکونو دنوټونو په سروزرو بدلونکو باندې ډير شرطونه کيښودل . انګلستان خو په کال (۱۹۱۴) کښې وروسته له جنګ نه دا تبديلي بالکل بنده کړه . البته په کال (۱۹۲۵) کښې بې بيا دې تبديلي ته اجازت پدې شرط سره ورکړو چه له يوزر اوه سوه (۱۷۰۰) پونډونو نه چه له چا سره کم وي هغه د بدلولو مطالبه نشي کولې، نو د دې شرط په نتيجه کښې

خو عام خلق د خپلو نوټونو په سروزرو باندې د بدلولو له مطالبې نه محرومه پاتې شول ،ځکه چه په هغه زمانه کښې دا مقدار دومره زیات وؤ چه ډیر لږ خلق به د دې مقدار مالکان وؤ، لیکن هغوئ د دې قانون ځکه داسې خاص پروا ونکړه چه دې کاغذی نوټونو ته یو قانونی حیثیت حاصل شو، او په ملکی معاملاتو کښې به داسې قبلیدل لکه څنګه چه د دې اصل قبلیدلو، او د دې په ذریعې سره به د ملك په داخل کښې په تجارت کولو سره داسې فائده حاصلیدله لکه څنګه به چه د کلیوالې کرنسی په ذریعه په تجارت کولو سره نفع حاصلیدله.

۹ -بیا په کال (۱۹۳۱) کښې برطانوی حکومت د دې نوټونو په سرو زرو سره بدلول بیخی منع کړل حتی چه هغه شخص یې هم منع کړو چه څوك یو زر اوه سوه (۱۷۰۰) پونډه په سرو زرو سره د بدلولو مطالبه وکړی اوخلق یې دې خبرې ته مجبور کړل چه هغوئ د سرو زرو په ځائ صرف په همدې نوټونو اکتفاء وکړی او په خپلو معاملاتو اوکاروبارونو کښې دې صرف په همدې نوټونو باندې اکتفاء وکړی، لیکن حکومتونو په خپل مینځ کښې یود بل حق ته د احترام لرلو په خاطر له یو بل سره د نوټونو په سروزرو باندې د بدلولو قانون باقی وساتلو، نودیوملك په داخل کښې به د دې نوټونو په سروزرو سره بدلول منع وؤ لیکن هر حکومت دا په ځان لازم کړی وؤ چه که چیرته د ده نوټ بل ملك ته لاړشی اوهغه حکومت د دغه نوټ په بدل کښې د سروزرو مطالبه وکړی نودغه حکومت به د خپل نوټ په بدل کښې هغوئ ته سره زر ورکوی، مثلاً که امریکې ته د برطانیې استرلنګ پاونډونه راغلل اوهغوئ د دې په بدل کښې له برطانیې نه د سروزرو مطالبه وکړه نو د برطانیې په حکومت باندې لازم دی چه هغه به د دې په بدل کښې دامریکې حکومت ته همدومره مقدار سره زر ورکوی ، دې نظام ته (دسروزرو د مبادلې معیار) (Gold Exchange Standard) ویلې کیږی.

په دې اصولو باندې تردیروکلونو پورې عمل کیدلو تردې پورې چه دامریکی متحده آیالاتو ته د ډالرو په قیمت کښې دکمی په وجه سخت مشکلات پیښ شول او په کال (۱۹۷۱) کښې سره زر ډیر کم شول ، نو د امریکی حکومت دې خبرې ته مجبور شو چه هغه له نورو حکموتونو سره د ډالرو په سرو زرو باندې د بدلولو قانون ختم کړی ، لکه چه په پنځلسم (۱۵) اګست کال (۱۹۷۱) کښې امریکی دا قانون نافذ کړو اودغه رنګه دکاغذی نوټونو په سروزرو سره دمستحکم کولو چه کوم آخری شکل وؤ هغه هم د دې قانون نه وروسته ختم شو، وروسته له دې نه په کال (۱۹۷۴) کښې بین الاقوامی فنډ (Internationl Monetary Fund) د سروزرود بدل په طور باندې یو (د مبادلې ویستلو دحق سستم) (Special Drawing Rights) نظریه وړاندې کړه . د دې نظر حاصل دا وؤ چه دبین المللی مالی فنډ غړو ته د دې خبرې اختیار حاصل دې چه هغوئ د مختلفو ملکونو د پیسو یو معین مقدار دغیر ملکی قرضونو د اداء کولو لپاره راویستلې شی، او د مقدار د تعین

لپاره (۲۷۲ ، ۸۸ ، ۸ ) ګرامه سره زر معیار وګرځولې شول، یعنی دومره مقدار سره زر چه د څومره پیسو په مقابل کښې اخستلې شی نو همدومره پیسې یو ملك راویستلې شی ، لهذا اوس صورت حال دا دې چه دمبادلې د راویستلو دا حق چه کوم ته د اختیار په توګه (ایس ، ډی ، آر) ویل کیږی د سروزرو د پشتبانې لپاره مکمل بدل جوړ شوې دې.

دغه رنګی اوس سره زر دکرنسی له دائرې نه بالکل وتلی دی، او ددې له کرنسی سره هیڅ تعلق پاتې نشو، اونوټونه او (زرعلامتی) یعنی کم قیمته سکو کاملاً د سرو زرو ځائ نیولې دې ، نو اوس نوټ نه د سروزرو نمایندګی کوی اونه د سپینو زرو، بلکه د خریداری د یوفرضی قوت نمایندګی کوی لیکن چونکه دکرنسی په دې نظام کښې د یومستقل او ابدی نظام په شان تراوسه پورې مضبوطوالې پیدا نشو له همدې کبله په ټولو ملکونو کښې د دې خبرې تحریك چلیږی چه د پخوا په شان دې سره زر بیا د مالی نظام اساس جوړ کړې شی تردې پورې ه دوباره دسرو زرو د سلاخونو دنظام طرفته دګرځیدلو آوازونه شروع شوی دی ، له همدې کبله د دنیا ټول ملکونه اوس هم خپل ځانونه له سروزرو نه مستغنی نه ګڼی بلکه هرملك اوس هم د احتیاطی تدبیر په طور باندې د سروزرو د ډیروزخیرو جمع کولو کوشش کوی، د دې لپاره چه د زمانې دحالاتو د بدلیدلو اوانقلاباتو په وخت کښې دا سره زر په کار را وستې شی ، لیکن د سرو زرو دا دلوئ مقدار ذخیره صرف د یو احتیاطی تدبیر په خاطر باندې ده اودغې د موجوده دور له مروجه کرنسی سره هیڅ قانونی تعلق نشته برابره خبره ده که هغه کرنسی د نوټ په شکل کښې وی اویا دساده سکو په شکل کښې وی [۱].

په هر حال ، دا د دنیا په کرنسی (پیسو) کښې د انقلاباتو او تغیراتو خلاصه د دې له مطالعې نه دا خبر مخې ته راځی چه دا کرنسی نوټونه په یوحالت او یو کیفیت باندې پاتې شوی ندی بلکه په مختلفو دورونو اومختلفو ژبو کښې د دې حیثیت بدل شوې دې او په دې باندې ډیر انقلابات او تغیرات تیر شوی دی.

په دې کښې هیڅ شك نشته چه په ابتدائی دور کښې دا نوټونه په حقیقت کښې د قرض سندونه او دستاویزات ګڼل کیدل اوپه همدې بنا باندې ډیرو علماؤ کرامو دا فتوی ورکړیده چه دا نوټونه د قرض سندونه دی اودا د مال او ثمن حیثیت نلری، لکه څنګه چه علامه سید احمد بیګ

---

۱ - ا ) An Outline of Money, by Geoffrey Growther.

ب ) Money and Man, by Elgin Groseclose, IVth edition, University Oklahoma press, Norrman ۱۹۷.

ج ) Modern Economic Theory, by k.k. Dewett, New Delhi.

د ) Encyclopaedia Britannica "Bankiny and Credit "money" Currency"

هـ ) حکم التعامل في الذهب والفضة، للدکتور محمد هاشم عوض.

الحسینی رحمه الله تعالی په خپل کتاب «بهجة المشتاق فی بیان حکم زکوة الاوراق» کښې لیکلی دی چه: کله ما د (بانکی نوټ) د ماهیت په باره کښې تحقیق وکړو نوراته معلومه شوه چه دا د فرانسیسی ژبې اصطلاح ده او «لاروس» چه د فرانسیسی ژبې تر ټولو لوئ او مشهور لغت دې په هغې کښې یې د بانك د نوټ په تعریف کښې لیکلی دی چه: «بانکی نوټ یو کرنسی نوټ دې چه د هغې درلودونکی ته به د مطالبې په وخت کښې د دې نوټ حقیقی قیمت ورکول کیږی او دا نوټ په همدې طریقې سره مروج کیږی، البته دا نوټونه مضمون وی یعنی د دی د بدل ضمانت ورکول کیږی د دې لپاره چه خلق د دې په راکړې ورکړې باندې اعتماد وکړی».

لهذا په دې تعریف کښې دا الفاظ چه «د دې درلودونکی ته به د مطالبې په وقت کښې د دې نوټ حقیقی قیمت ورکول کیږی» بغیر له کوم شك نه پدې خبره باندې دلالت کوی چه دا نوټ د قرض سند دې، البته په دې تعریف کښې چه کوم نور الفاظ راغلی دی چه په نوټونو باندې همداسې طریقې سره راکړه ورکړه کیږی کوم چه دعنصر د کرنسی په ذریعه کیږی، نو له دې عبارت نه دې یوڅوك د دې دمال یا ثمنیت کیدلو وهم نکوی، ځکه چه د دې بارت مقصد فقط همدومره دې چه خلق د کرنسئ په ځائ همدا نوټونه په لین دین کښې قبلوی صرف په دې خیال چه د مطالبې په وخت کښې به د دې قیمت د دې نوټ درلودونکی ته ورکول کیږی. اوحکومت د دې نوټ د قیمت د ادا کولو ضامن دې لهذا دا تعریف صراحةً په دې خبره دلالت کوی چه دا نوټ د قرض سند او دستاویز (رسید) دې[1].

له همدې کبله په تیره شوې پیړئ کښې د هندوستان ډیرو علماء کرامو دا فتوی ورکړه چه دا نوټ په حقیقت کښې د قرض سند دې لهذا د دې په ذریعه ترهغه وخته پورې زکوة نه اداء کیږی تر څو پورې چه فقیر دغه نوټ په خپلو ضروریاتو کښې خرچ نکړی اوهمدارنګه د دې نوټونو په ذریعې سره سره زر او سپین زر اخستل جائز ندی[2].

لیکن په همدغه زمانه کښې دعلماء کرامو اوفقهاء عظامو یو لوئ جماعت داسې هم وو چه هغوئ دا نوټونه د ثمن عرفی په طور باندې مال وګڼلو، لکه چه په دې مسئله باندې د مسند احمد مرتب او شارح علامه احمد ساعاتی رحمه الله تعالی تفصیلی بحث کړې دې، هغه فرمائی چه:

**فالذی اراه حقًا وادین الله علیه: ان حکم الورق المالی کحکم النقدین فی الزکوة سواء بسواء لانه یتعامل به کالنقدین تمامًا ولان مالکه یمکنه صرفه وقضاء مصالحه به فی ای وقت شاء فمن ملك النصاب من الورق المالی**

---

۱ - دا عبارت له (بلوغ الامانی) نه نقل کړې شوې دې، بلوغ الامانی شرح فتح الربانی للساعاتی: ۸: ۲۴۸

۲ - امداد الفتاوی، حضرت مولانا شاه محمد اشرف علی تهانوی رحمه الله تعالی علیه، ج: ۲، ص: ۵

ومكث عنده حولاً كاملاً وجب عليه زكوته(۱).

ترجمه: زما په نيزد باندې صحيح خبره داده په كومه خبره به چه زه د الله تعالى په حضور كښې جواب وركوم چه د زكوة د وجوب او دهغې د ادا كولو په مسئله كښې د دې كاغذى نوټونو حكم هم بعينه دسرو زرو اوسپينو زرو حكم دې ځكه چه په خلقو كښې د دې نوټونو د راكړې وركړې رواج داسې دې لكه څنګه چه د سروزرو دې ، اوخلق د همدې په ذريعې سره خپل ضروريات پوره كوى لهذا څوك چه د نصاب په قدر د دې نوټونو مالك جوړ شى اوپه هغې يو كال تير شى نو په هغه باندې به زكوة واجب كيږى.

د هندوستان د ځينې نورو علماؤ هم دا نظر وؤ لكه چه د حضرت مولانا عبدالحى لكهنوى رحمه الله تعالى خصوصى شاګرد د ((عطر هدايه)) او د ((خلاصة التفسير)) مصنف مولانا فتح محمد صاحب لكهنوى رحمة الله عليه هم د نوټ په باره كښې دا نظريه وه ، دهغوئ ځوئ مولانا مفتى سعيد احمد لكهنوى رحمه الله تعالى ((سابقه مفتى او صدر مدرس تكميل العلوم كانپور)) هم د خپل والد صاحب دا نظريه دهغه په كتاب ((عطر هدايه)) په آخر كښې نقل كړيده ، اودا يى هم ليكلى دى چه علامه عبدالحى لكهنوى رحمه الله تعالى هم په دې مسئله كښې د دې نظريى موافق وؤ ، دهغوئ د نظريى خلاصه داده چه د كاغذى نوټ دوه حيثيتونه دى:

يو دا چه په خريد اوفروخت لكه اجارات او ټولومالى معاملاتو كښې د دې نوټونو مروج كيدل اولين دين بعينه د حقيقى ثمن اوسګو په شان دې بلكه حكومتونو په خلقو باندې په قرضونو كښې او دحقوقو په اداء كولو كښې د دې قبلول لازم ګڼلى دى، لهذا په موجوده قانون كښې دقرض غوښتونكى دا حق نشته چه هغه د خپل قرض په بدل كښې د دې نوټونو له قبلولو نه انكار وكړى ، نو په همدې اساس دا كاغذى نوټونه اوس (عرفى ثمن) جوړ شوى دى.

دويم حيثيت دادې چه دانوټ د حكومت له طرف نه شائع شوې يو رسيد دې اوحكومت د دې خبرې ذمه وارى اخستې ده چه د دې نوټ د ضائع كيدلو او هلاك كيدلو په صورت كښې اويا د دې د درلودونكى د مطالبې په وخت كښې به د دې عوض وركوى. نوپدې حيثيت سره هم دا نوټونه د (ثمن عرفى) حيثيت نلرى، ځكه چه دثمن عرفى د هلاكت په وقت كښې حكومت دهغې عوض نه وركوى، د دويم حيثيت په اعتبار سره ظاهراً دا معلوميږى چه دا نوټونه د سند يا د نورو مالى رسيدونو په شان ديو رسيد حيثيت لرى.

ليكن كه دې دويم حيثيت ته په دقيق نظر سره وكتلې شى نو دا خبره څرګنديږى چه د نوټ دا دويم حيثيت دهغه ثمنيت نه باطلوى ځكه چه دحكومت اصل مقصد دا وؤ چه دا نوټونه هم په ثمن

عرفي په شان په خلقو کښې مروج شي ، له همدې کبله حکومت د قرض په اداء کولو کښې د دې قبلول ضروري ګڼلي دي ، ليکن د طبعي ثمن «يعنې د سروزرو يا سپينو زرو سکې» يا د نورو څيزونو نه علامتي سکې چه له پخوا څخه رواج وې دهغې حال خو دا وؤ چه دهغې خپل ذاتي قيمت او حيثيت هم وؤ دهغې د قيمتي ګرځولو لپاره حکومت ته د اعلان ضرورت هم نه وؤ ځکه چه هغه سکې به کله دسروزرو اوسپينو زرو نه جوړيدلې اوکله به له تانبې اوسپنې وغيره نه جوړيدلې ، ظاهر ده چه په دې کښې هريوڅيز مال متقوم دې تردې پورې چه که چيرته ټول حکومتونه د دې سکو د ثمنيت د ختميدلو اعلان هم وکړي نو بيا به هم د مال متقوم کيدلو په اعتبار سره د دې ذاتي قيمت باقي پاتې وي په خلاف د دې کاغذي نوټونو چه د دې خپل ذاتي هيڅ قيمت نشته «صرف د کاغذ يوه ټوټه ده» البته د حکومت له اعلان نه وروسته دې کاغذ ته دغه قيمت ورکړې شوې دې، فلهذا که چيرته حکومت د دې کاغذ ثمنيت باطل کړي نو دهغې به هيڅ قيمت باقي پاتې نشي، ځکه چه دخلقو څومره اعتماد او باور په علامتي اودکلو په سکو باندې وؤ هغومره اعتماد يې په دې نوټونو باندې نه وؤ ، له همدې کبله په حکومت باندې د دې ضمانت لازم شو چه د هلاکيدلو په صورت کښې به حکومت د دې بدل ورکوي، دا ذمه واري حکومت د دې لپار وانخستله چه دحکومت په نظر کښې دا د ثمن عرفي حيثيت نلري لکه حکومت دا ذمه واري دخلقو د اعتماد کولو لپاره په غاړه واخستله چه خلق بغير له کومې ويرې او خطر څخه په دې باندې راکړه ورکړه اولين دين وکړي .

لهذا د دې نوټ د رسيد کيدلو حيثيت داسې ندې چه د دې ثمنيت دې باطل شي ځکه چه د دې حاصل فقط همدومره دې چه حکومت د دې دبدل ورکولو وعده کړيده ليکن دحکومت د دې وعدې د خلقو په مينځ کښې په لين دين باندې کوم اثر نشته، که چيرې حکومت نه غوښتلې چه دا نوټونه دې ثمن عرفي شي نو خلق به يې د دې په قبلولو هيڅکله نه وؤ مجبور کړي ، او د دې نوټونو د قابل تبديل کيدلو دحيثيت په وجه دخلقو په دې باندې اعتماد له حقيقي ثمن نه هم زيات شوې دې ، ځکه چه دحقيقي ثمن د ورك کيدلو اوهلاکيدلو په صورت کښې دهغې بدل نه ورکول کيږي په خلاف د دې کاغذي نوټونو چه د دې دهلاکيدلو په صورت کښې حکومت دهغې بدل ورکوي[1].

## په همدې مسئله کښې زمونږ رايه اونظر

دکاغذي پيسو په باره کښې چه کوم دوه نظرونه ذکر شول ، زمونږ په نيزد باندې دزمانې د اختلاف په لحاظ سره دا دواړه نظرونه صحيح دي ، چه دهغې تشريح مونږه وړاندې دکاغذي

[1] - عطر هدايه للشيخ اللکهنوی ، ص: ۲۱۸ نه تر ۲۲۷ پورې، طبع ديوبند انډيا .

پیسو تاریخ او په هغې باندې دمختلفو تغیراتو په بیان کښې کړیده.

لهذا په دې کښې هیڅ شك نشته چه په ابتداء کښې به دا کاغذی نوټونه دقرض رسیدونه شمیرل کیدل لکه څنګ چه په ((انسایکلوپیډیا برټانیکا)) کښی راغلی دی.

((په دنیا کښې د بانك نوټ (موجوده کاغذی پیسو) رواج دبانکی چیك له رواج نه مخکښې خپرو شوې وؤ اودغه بانکی نوټ به له قرض غوښتونکی سره دهغه قرض سند ګڼل کیدلو چه کوم قرض به دهغه د بانك په ذمه وؤ ، اوکه چیرې دغه نوټ بل چا ته ورکړې شی نو دهغې ټول حقوق به هغه سړی ته منتقل کیږی ، لهذا دا دویم سړې چه د دې نوټ درلودونکې دې په خپله به له بانك نه د قرض غوښتونکې جوړ شی ، له همدې کبله د دې په ذریعه ټول مالی حقوق اداء کول دحقیقی پیسو په ذریعه د اداء کولو په شان دی ، په دې دواړو کښې هیڅ فرق نشته او د پیسو یو لوئ مقدار د سګو په ذریعه اداء کول ډیر سخت اومشکل کار دې ځکه چه د دې د شمیرلو او جید او ردی معلومول ضرور وی، او په بعضې اوقاتو کښې ددې په نقل او حمل کښې هم ډیر تکلیفونه پیښیږی ، نو له همدې جهته د دې کاغذی پیسو استعمالولو دشمیرلو هغه مشقت هم کم کړلو اویو شمیر نور مشکلات یی هم له مینځه یوړل [1].

لیکن لکه څنګه چه مونږ په کاغذی نوټونو باندې د تغیراتو په بیان کښې اووئیل چه په وروستی زمانه کښې د نوټونو پورتنې حالت په خپل حال باقی پاتې شوې نه وؤ ، بلکه په ابتدائی دور کښې به دا نوټ د زرګرانو او صرافانو له طرف نه یو خاص سړی ته دهغه د سرو زرو درسید په طور ورکول کیدلو ، په هغه وقت کښې نه د دې کوم خاص شکل او صورت وؤ اونه به دهغې د شائع کولو کوم خاص شخص وؤ او نه به کوم شخص د خپل حق په اخستلو کښې د دې نوټ په قبلولو باندې مجبور کیدلو ، وروسته کله چه د دې رواج زیات شو نوحکومت دا د تبادلې یو قانون (Legal Tender) مقرر کړو اوغیرحکومتی بانکونه اونور اشخاص یی د دې له شائع کولو نه منع کړل ، نو د حکومتونو له طرفه وروسته له اعلان نه د دې نوټ حیثیت له نورو مالی رسیدونونه په یوځو لاندې ذکر شوو حیثیتونو سره مختلف شو.

۱ - اوس دې نوټونو دتبادلی یوقانونی حیثیت اختیارکړې دې اودنور عرفی ثمن په شان خلق د دې په قبلولو مجبور کړې شوی دی، په داسې حال کښې چه نور مالی سندونه لکه دبانك چیك وغیره باندې دخپل قرض دحاصلولو لپاره په قبلولو باندې هیڅوك هم نه مجبوریږی سره له دې نه چه دبانکی چیك رواج هم عام شوې دې.

۲ - دغه نوټونو ((دقانونی تبادلی غیر محدود سیستم)) (Unlimited Legal Tender)

---

۱ - انسایکلوپیډیا برټانیکا ۱۹۵۰ ، ج: ۳ ، ص: ۴۴ بینکینګ اورکریډټ.

حیثیت اختیار کړې دې په داسې حال کښې چه ساده اوکلیوالې پیسې «د قانونی تبادلې محدد سیستم (Limited Legal Tender) دې، له همدې کبله د دې نوټونو په ذریعې سره دقرض د یولوئ مقدار اداء کول ممکن دی اوقرض غوښتونکې د دې له قبلولو نه انکار نشی کولې په خلاف د ساده پیسو نه چه که چیرې د دې په ذریعې سره یو شخص د قرض یو لوئ مقدار اداء کول وغواړی نو قرض غوښتونکې د دې له قبلولو نه انکار کولې شی، له دې څخه دا معلومه شوه چه د دې کاغذی نوټونو په لین دین کښې د رواج کثرت ، د خلقو په دې باندې ډیر اعتماد او د دې دقانونی حیثیت په وجه په ساده پیسو باندې برې حاصل کړو .

۳ - دقرض رسید هرشخص ته ورکولې شی په دې کښې شرعًا او قانونًا څخه ممانعت نشته چه یو قرض غوښتونکې دا سند د خپل قرض په اداء کولو کښې بل قرض غوښتونکی ته ورکړی اوبل قرض غوښتونکې یې دریم قرض غوښتونکی ته ورکړی لیکن دا نوټونه بغیر له حکومت نه بل څوک نشی شائع کولې لکه څنګه چه ساده پیسې بغیر له حکومت نه بل څوک نشی شائع کولې.

۴ - د دنیا په ټولو ملکونو کښې عرفًا او قانونًا دنوټ لپارهد ثمن او کرنسی لفظ استعمالیږی او له بلې خوا نه د نورو مالی رسیدونو لپاره دا الفاظ نه استعمالیږی .

۵ - خلق په خپل مینځ کښې د دې نوټونو لین دین په هغه اعتماد سره کوی په کوم اعتماد سره یې چه په ساده پیسواوسګو باندې لین دین کولو ، او په دې نوټونو باندې د لین دین په وخت کښې هیڅکله خلقو ته دا سوچ او فکر نه پیدا کیږی چه هغوئ د قرض لین دین کوی، نن سبا هیڅوک داسې نشته چه هغوئ دې دا نوټونه د دې لپاره واخلی چه په دې سره به هغوئ دسره زر یا سپین زر اویا ساده سکی تر لاسه کړی .

۶ - لکه څنګه چه د کاغذی پیسو په ترقی کښې دا خبره وشوه چه اوس د دې کاغذی نوټونو ترشا هیڅ قسم سره زر یا سپین زر موجود ندی او نه د دې په سرو زرو سره بدلول ممکن دی تر دې پورې چه د ملکونو په خپل مینځ کښې په لین دین کښې هم د دې خبرې هیڅ امکان نشته لکه چه جیوفری ګراؤ لیکی :

"The Promise to pay which appears on their face is now utterly meaningless. Not even in amounts of – f ۱, ۷۰۰ can notes now be cnverted into gold. The note is no more Than a piece of paper, of no intrinsic value whatever, and if it were presented for redemption, the Bank of England could honour its (promise to pay one pound) only by giving silver coins or another note but it is accepted as money throughout the British Isles" (۱)

د پیسو په نوټونو باندې چه کوم عبارت لیکلی شوې دې چه «د دې درلودونکې دې د مطالبې

۱ - Geoffrey Growther : An Outline of money. P. ۱۶ .

په وقت کښې دا ورکړي» اوس د دې عبارت کوم مقصد اومعنی پاتې نشوه ځکه چه اوس په موجوده دور کښې د پیسو دنوټونو هیڅ مقدار په سروزرو باندې د بدلولو صورت نشته، برابره خبره ده که د دې نوټونو مقدار اولس سوه (۱۷۰۰) پاونده وی اویا له دې نه زیات وی. اوس په موجوده دور کښې دغه د پیسو نوټونه دکاغذ یوه ټوټه ده چه دهغې هیڅ ذاتی قیمت نشته، اوکه چیرې څوك دا پاونډ د برطانیی مرکزی بانك ته یوسی او ددې په بدل کښې د سرو زرو یا نورو سکو مطالبه وکړی نوهغه بانکونه به یا ورته علامتی سکې ورکوی او به د دې په ځائ نور نوټونه ورکوی، لیکن دا کاغذی پاونډونه دبرطانیی په ټولو جزیرو کښې دکیش او پیسو په شان قبلیږی له همدې کبله اوس د دې د عوض د مطالبې ضرورت هم نشته.

خلاصه دا چه په نوټ باندې دلیکل شوی لیك مطلب فقط همدومره دې چه حکومت د دې نوټ د ظاهری قیمت ضامن دې او د دې ظاهری قیمت هم د دې د قوت خرید دویم نوم دې ، همدا وجه ده چه بانك د دې په بدل کښې د سروزرو یا سپینو زرو اویا د نورو سکو د ورکولو پابند ندې، لکه چه کله ناکله بانك د مطالبې په وقت کښې د دې په بدل کښې د دې دظاهرقیمت برابر نور نوټونه ورکوی، حال داچه د نوټ په بدل کښې نوټ اداء کولو ته د قرض اداء کول نشی وئیلې کیدلې، بلکه داسې وئیل کیږی چه د یوه پیسه یی په بلې پیسې باندې بدله کړه او وریی کړه ، اومرکزی بانك دنوټونو دا تبدیلی فقط د دې مقصد لپاره کوی چه دخلقو په دې نوټونو باندې اعتماد وساتل شی، د دغه تبدیلی هیڅکله دا مقصد نشی کیدې چه دغه نوټونه د کرنسی یا پیسو په تعریف کښې داخل ندی.

په هر صورت له پورتنی بحث څخه څرګنده شوه چه په فقهی اعتبار سره دا نوټونه اوس د قرض حیثیت نلری بلکه د فلوس نافقه (مروّجه سکو) په شان یی د نبنې لرونکو پیسو حیثیت اختیار کړې دې، لکه څنګه چه د فلوس نافقه ظاهری قیمت د هغې له ذاتی قیمت څخه څو چنده زیات وی، او په خلقو کښې د دې نوټونو په ذریعه د راکړې ورکړې رواج هم د فلوس نافقه په شان شوې دې ، بلکه په موجوده دور کښې د ساده سکو وجود هم ډیر کم شوې دې ، لهذا د دې نوټونو په باره کښې دا حکم کول چه د دې په ذریعه زکوة فی الفور نه اداء کیږی یا د یوقسم پیسې نوټ دبل قسم پیسې په نوټ باندې بدلولو ته دا وئیل چه دا بیع الکالئ بالکالئ ده اوناجائزه ده، اویا د دې نوټونو په ذریعه دسرو زرو او سپینو زرو اخستلوته ځکه ناجائز وئیل چه دا بیع الصرف ده او په بیع الصرف کښې د دواړو طرفونو لخوا په مجلس کښې قبض کول ضروری دی چه هغه دلته نشته، په دې ټولو خبرو کښې داسې یو حرج لازمیږی چه قابل د تحمل ندې، حال داچه په داسې قسم معاملاتو کښې شریعت مرجه عام عرف معتبر ګنی او آسانی پیدا کوی اوشریعت اسلامی په داسې فلسفیانه نظریاتو او دقیقو بحثونو کښې دومره ژور نه ځی چه دهغې په عملی زندګی

باندې هيڅ اثر نه وي.
په هرحال له دغه ذکر شوي بحث نه دا خبره ثابته شوه چه دا کاغذي نوټونه دکرنسي او پيسو په حکم کښي دي، اوس مونږ د دغه نوټ متعلق نور فقهي احکام بيانوؤ.

## کرنسي (دپيسو) نوټ او زکوة

کله چه د دغه نوټونو قيمت د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو دقيمت برابر شي او يا له هغې نه زيات شي نو پدې باندې بالاتفاق زکوة واجبيږي اوچونکه اوس دغه نوټونه د رسيد حيثيت نلري نو له همدې کبله په دغسې شخص باندې د قرض دزکوة احکام هم نه جاري کيږي بلکه په دې باندې د مروجه سکو احکام جاري کيږي، د زکوة د وجوب په مسئله کښې د مروجه سکو حکم د تجارت د سامان په شان دې، يعنی لکه څنګه چه د تجارت د سامان ماليت د دوه پنځوس نيمو تولو سپينو زرو قيمت ته ورسيږي نو په هغې بيا زکوة واجبيږي بعينه همدغه حکم دمروجه سکو اودموجوده نوټونو هم دې.

اوڅنګه چه مروجه سکې يوغريب ته د زکوة په طور ورکړې شي نو کوم وخت چه دغه غريب هغه سکې قبض کړي نو همدغه وخت دهغه سړي زکوة اداء کيږي، بعينه همدغه حکم د پيسو د نوټونو دې چه کله يې فقير قبض کړي نو زکوة فوراً اداء کيږي، نودزکوة اداء کيدل د دې نوټونو په بل څيز سره په بدلولو اويا په سرواوسپينو زروباندې په بدلولو پورې موقوف ندې.

## د نوټونو په نوټونو سره تبادله

دنوټونو په نوټونو سره د تبادلې دوه صورتونه کيدې شي:
۱ - يو داچه د يوملك دنوټونو په خپل مينځ کښې تبادله وکړې شي.
۲ - دويم صورت دا چه ديوملك نوټونه د بل ملك په نوټونو باندې بدل کړې شي
د دې دواړو صورتونو احکام جدا جدا بيانيږي:

## د يوملک د پيسو دنوټونو په خپل مينځ کښې تبادله

څنګه چه داخبره بيان شوه چه په ټولو معاملاتو کښې د نوټونو حکم بعينه د سکو په شان دې نو لکه څنګه چه د سکو تبادله په خپل مينځ کښې برابر په برابره جائزه ده همدغه رنګه ديو ملك د نوټونو په خپل مينځ کښې تبادله برابر په برابره بالاتفاق جايزه ده پددې شرط چه دعقد په مجلس کښې له فريقينونه يوفريق په بدلينو کښې په يوه باندې قبضه وکړي . لهذا که چيرته د تبادلې کوونکو کسانو له جملې څخه يوه هم دعقد په مجلس کښې نوټونو باندې قبضه ونکړه تردې چې چه هغه دواړه جدا شول نو په دې صورت کښې د امام ابو حنيفه رحمه الله اوبعضې مالکيانو په نيزد باندې دا عقد فاسد دې، ځکه چه د دوئ په نيزد فلوس په متعين کولو سره نه متعين کيږي

بلکه دهغې تعین فقط په قبض سره کیږي [۱].

لهذا چه په کومو فلوسو باندې عقد وشو لیکن هغه قبض نه شوې نوهغه فلوس متعین نه شول بلکه د هر فریق په ذمه قرض شول اودا بیعه د قرض په قرض سره شوه، چه هغه د (بیع الکالئ بالکالئ) کیدو په وجه ناجائزه ده.

پورتنې حکم په هغه صورت کښې دې چه کله دغه نوټونه یوله بل سره برابر په برابره تبادله کړې شی اوکه چیرې کمې یا زیاتې پکښې وشی مثلاً یوه روپۍ په دوه روپیو سره بدل کړې شی یا یو ریال په دوه ریالونو سره یا یو ډالر په دوه ډالروسره تبادله کړې شی نو د دې صورت د جواز اوعدم جواز په باره کښې دفقهاء کرامو هماغه مشهور اختلاف مخې ته راځی کوم چه د فلوس په کمی اوزیاتی سره د تبادلې په باره کښې مشهور دې اوهغه دا دې چه:

د یو فُلس (روپۍ) تبادله په دوه فلوسو (روپو) سره شرعًا سود دې او دا حرام دی، د امام مالك رحمه الله او په احنافو کښې د امام محمد رحمه الله مسلك دې، اودحنابلؤ مشهور مسلك همدا دې اوکه چیر د دواړو طرفونو نه فلوس غیر متعین وی نو د امام ابوحنیفه اوامام ابو یوسف رحمهما الله په نیزد هم دا تبادله حرامه ده [۲].

دامام مالك رحمه الله په نیزد دا تبادله ځکه حرامه ده چه دهغه په نیزد په معامله کښې دقرض او د کمی اوزیادتی دحرامیدو علت ثمنیت (نقدې پیسې) دی برابره خبره ده که هغه حقیقی ثمنیت وی لکه په سرو زرو او سپینو زرو کښې اوکه عرفی یا اصطلاحی ثمنیت وی لکه له سروزرو او سپینو زرو نه علاوه په نورو سګو اوکاغذی نوټونو کښې، لهذا که چیرته په څه عقد کښې دواړو طرفونو ته یوقسم ثمن وی نو دامام مالك رحمه الله په نیزد نه په دې کښې کمې او زیاتې جائز دې او پکښې قرض جائزدې، لکه چه په مدونة الکبری کښې یې لیکلی دی چه:

**ولو ان الناس اجازوا بينهم الجلود حتى يكون لها سكة وعين لكرهتها ان تباع بالذهب والورق نظرة لان مالكً قال لا يجوز فلس بفلسين ولا تجوز الفلوس بالذهب ولا بالدنانير نظرة [۳].**

ترجمه: که چیرې د خلقو په مینځ کښې د څرمنې په ذریعه دخرید اوفروخت دومره زیات رواج

---

۱ - مطلب دا چه که چیرې عقد په یوڅو معینو روپو باندې شوې وی اوکوم فریق د دې روپو په ځای دهمدومره مالیت په اندازه نورې روپۍ ورکړی نوهغه داسې کولې شی، البته که چیرې دویم فریق په دې باندې قبضه وکړی نوبیا اول فریق له هغه نه مطالبه نشی کولې چه دغه نوټونه ماته واپس راکړه اوزه د دې په بدل کښې نور درکوم.

۲ - الدرالمختار مع رد المحتار، ص: ۱۸۴، ج: ۴.

۳- المدونة الكبرى للامام مالك، جلد: ۶، ص: ۱۰۳.

پیدا شی چه هغه څرمن د ثمن او سګې حیثیت اختیار کړی نو په دې صورت کښې زما په نیزد د سرو اوسپینو زرو په ذریعه داڅرمن په قرض خرڅول جائز ندی. لکه چه امام مالك رحمه الله فرمائی چه د یوفلس په دوه فلسونو سره بیعه اوتبادله جائزه نده دغه رنګې د سرو اوسپینو زرو او درهم او دینار په ذریعه هم د فلوسو قرض بیعه جائزه نده (څکه چه په سرو او سپینو زرو او درهم او دینار کښې حقیقی ثمنیت موجود دې او په سګو کښې اصطلاحی ثمنیت موجود دې اودامام مالك رحمه الله په نیزد له ثمنیت سره سره که چیرې اجناس مختلف وی بیا هم قرض ناجائز دې).

تر کوم [1] ځائ پورې چه داحنافو تعلق دې نو دهغوئ په نیزد د سود دحراموالی علت د ثمنیت په ځائ (وزن) دې ، اوفلوس اګرچه عددی دی څکه چه په دې کښې دا علت موجود ندې لیکن داحنافو فقهاء فرمائی چه دیو قیمت والا فلوس د بازاری اصطلاح مطابق بالکل برابر اوپه قطعی طور باندې مساوی واحد لری ، څکه چه د خلقو اصطلاح دهغې جودت او ردائت (یعنی ښه والې او بدوالې) ختم کړې دې لهذا که چیرې یو واحد په دوه واحدونو باندې خرڅ کړې شی نو په دوه کښې

---

[1] - داحنافو موقف دلته په فقهی اصطلاحاتو کښې بیان کړې شوې دې څکه چه د هغې په یو عام فهم عبارت کښې راوستل مشکل دی . نو خلاصه داه چه د احنافو په نیزد د دوه همجنسو څیزونو په تبادله کښې که چیرې د یو څیز په مقابل کښې کوم عوض نه وی نوهغه سود دې ، په عامو څیزونو کښې خو دا وی چه که یو طرف ته د تعداد اوکمیت زیادت وی نو بل طرف ته د کیفیت او وصف زیادت ته دهغې مقابل ویلې شی مثلاً که چیرې یو لوښې په دوه لوښو باندې خرڅ کړې شی نو داسې ویلې شی چه په دې یو لوښی کښې دوصف یوه داسې خوبی شته چه دهغه بل طرف دیو لوښی په مقابل کښې شمار کیدلې شی . لهذا په دې صورت کښې یو لوښې هم بغیر له عوض څخه نشته. او د دې حقیقت داسې دې چه : اول لوښې د دریم لوښی د اصلیت په مقابل کښې شو اودویم لوښې د دریم لوښی د ښه والی (وصف) په مقابل کښې شو.
لیکن دا صورت په هغه ځائ کښې کیدې شی چه په کوم ځائ کښې دیو څیز اوصاف معتبر وی. اود هغې قیمت لګول کیدې شی، د دې بالعکس کوم ځائ کښې چه اوصافو ته اعتبار نه وی بلکه اعتبار فقط مقدار ته وی نو هلته اوصاف د مقدار په مقابله کښې نشی راوستلې لکه چه یو څیز په پیداشی یا شرعی طور باندې اویا په عرف عام کښې ثمن جوړ شوې وی نو په هغې کښې د اوصافو اعتبار ختم شو. لکه د یوې روپئ سکه که هغه هرڅومره نوې او ځلیدونکې وی نودهغې قیمت هماغه یوه روپئ دې همدارنګه هغه سکه چه زړه وی دهغې قیمت هم یوه روپئ دې ، اګرچه دلته د دواړو په اوصافو کښې فرق شته لیکن دا فرق د بازاری اصطلاح په لحاظ سره کالعدم شوې دې لهذا یوه زړه روپئ د نوې روپئ په مقابل کښې په قیمت کښې برابره ده او د دواړو په قیمت کښې هیڅ فرق نشته نو که چیرې یوه روپئ د دوه روپو په بدل کښې خرڅه کړې شی نو دلته دا نشی ویلې کیدې چه دې یوطرف ته چه کومه روپئ زیاته ده نو دا دهغه بل طرف د روپئ د یو وصف په مقابل کښې ده نو پ همدې اساس دلته دې زیاتی روپئ حتمًا دا ونیل کیږی چه د دې په مقابل کښې عوض نشته لهذا داسود دې

به یو واحد بغیر له کوم عوض څخه پاتې شغ او دا له عوض څخه خالی پاتی کیدل به په عقد کښې مشروط وی نو لدې نه ربا (سود) لازمیږی، لیکن دا حکم تر هغه وخته پورې دې ترڅو پورې چه دهغه فلوسو قیمت باقی پاتې وی او هغه له متعین کولو سره نه متعین کیږی.

اوس امام محمد رحمه الله تعالی دا فرمایی چه کله دا سکې ثمن اصطلاحی شوې او رواج شوی دی نو ترڅو پورې چه ټول خلق د دې ثمنیت باطل نکړی نو تر هغه وخته پورې فقط د متعاقدینو (بائع او مشتری) له باطلولو سره د دې ثمنیت نه باطلیږی، نو هرکله چه ثمنیت باطل نه شو نو هغه له متعین کولو سره نه معین کیږی، نو لهذا د یوې سکې په دوه سکو سره تبادله جائز نده ، اګرکه هغه بائع او مشتری تر خپل حده پورې معین کړی.

لیکن امام ابو حنیفه اوامام ابو یوسف رحمهما الله تعالی فرمایی چه چونکه دا سګه پیدایشی ثمن ندې بلکه اصطلاحی ثمن دې نو له همدې کبله متعاقدینو ته دا اختیار دې چه هغوئ په خپل مینځ کښې دا اصطلاح ختمه کړی او د سکو د تعین په ذریعه د دې ثمنیت باطل کړی، نوپه دې صورت کښې به دغه سګې د عروضو اودسامان په حکم کښې شی، فلهذا نو په دې کښې به سره له کموالی او زیادت نه تبادله جائزه شی[1].

پاتې شو امام احمد رحمه الله تعالی نو دهغه په دې مسئله کښې دوه قولونه دی:

یو قول دا دې چه د یوې سګې په دوه سګو سره تبادله جائزه ده ځکه چه دهغه په نیزد باندې دربا د حرمت علت وزن دې اوسګې عدد دی نو په دې کښې دا علت نشته نوهرکله چه علت پکښې موجود نشو نو دحرمت حکم هم پکښې نه راځی.

دویم دا چه دسکو دغه قسم تبادله جائزه نده ځکه چه داسکې فی الحال اګرچه عددی دی لیکن په اصل کښې د عنصر کیدلو په وجه وزنی دی او دیو اصل عنصر په سکو باندې بدلولو سره دهغې اصلیت نه باطلیږی لکه څنګه چه ډوډئ اګرچه عددی ده لیکن د دې اصل اوړه دې نو په دې اعتبار سره کیلی یا وزنی ده ، لکه چه علامه ابن قدامه لیکی:

ان اختیار القاضی ان ما کان یقصد وزنه بعد عمله کالاسطال ففیه الرّبا وما لا فلا[2].

د یو عنصر نه د یو څیز له جوړولو نه وروسته هم که چیرې پدې کښې د وزن اعتبار وکړې شی نو په دې کښې په کموالی یا زیاتوالی سره بیع کول د سود کیدلو په وجه حرام دی لکه د تانبې، اوسپنې نیکل وغیره لوښی (ځکه چه دا څیزونه په بازار کښې په وزن کولو سره خرڅیږی) اوکه

---

۱ - د تفصیل لپاره وګورئ: العنایه علی هامش ففتح القدیر، جلد: ۵ ، صفحه: ۲۸۷.

۲ - المغنی لابن قدامه مع الشرح الکبیر، جلد: ۴ ، ص: ۱۲۸ - ۱۲۹ وفتاوی ابن تیمیه ، جلد: ۲۹ ، ص: ۴۲.

چيرې وزن ته اعتبار ورنکړې شي نو بيا سود ندې .

له دې اصولو څخه دا څرګنديږي چه دامام احمد رحمه الله په نيزد دکاغذی نوټونو تبادله سره له کموالی او زيادت نه جائزه ده ځکه چه کاغذی نوټونه اصلاً وزنی ندی په خلاف د فلوسو چه هغه اصلاً وزنی دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

د بعضو نورو فقهاؤ په نزد ديوې سکې په دوه سکو سره تبادله مطلقًا جائزه ده بلکه د سکو په تبادله کښې هرقسمه کموالې ، زياتوالې جائز دې، دا د امام شافعی رحمه الله تعالی مسلك دې، دهغوئ په نيزد دربا دحراموالی علت اصلی او طبعی ثمنيت دې، چه هغه فقط په سرواوسپينو زرو کښې وی او په سکو کښې صرف عرفی ثمنيت موجود دې، اوطبعی ثمنيت پکښې نشته، لهذا دهغوئ په نيزد د فلوسو تبادله په خپل مينځ کښې سره له کموالی او زياتوالی نه جائزه ده [1].

اولکه څنګه چه مونږ مخکې دا خبره وکړه چه دامام ابوحنيفه اوامام ابو يوسف رحمهما الله په نيزد هم که چيرته متعاقدين دا سکې متعينې کړی نو له متعين کولو سره به د دې ثمنيت باطل شی او دا به دعروضواو سامان په حکم کښې شی نو بيا په دې صورت کښې د يو فلس تبادله په دوه فلوسو سره جائزه ده .

## په دې مسئله کښې راجح او مفتی به قول

د پورته ذکر شوی اختلاف تعلق له هغه زمانې سره دې چه کله سره زر او سپين زر د ټولو اثمانو معيار ګڼل کيدل او دسرواوسپينو زرو تبادله عام رواج وؤ، او په ټولو معاملاتو کښې به آزادانه دسرو اوسپينو زرو د سکو په ذريعه لين دين کيدلو، او دنورو څيزونو سکې به په لږو اومعمولی قسم تبادلو کښې استعماليدلې، ليکن په موجوده زمانه کښې ليکن په موجوده زمانه کښې د سرو اوسپينو زرو سکې ډيرې کمې شوی دی او په دې وخت کښې په دنيا کښې داسې يوملك يا ښار نشته چه په هغې کښې دسرو اوسپينو هزرو سکې رواج وی، بلکه په ټولو معاملاتو اولين دين کښې دسرو اوسپينو زرو د سکو په ځائ عامې سکې اوکاغذی نوټونه رواج دی لکه څنګه چه مونږ د دې مقالې په شروع کښې دا خبره ذکر کړه .

لهذا زما په نظر سره په موجوده دور کښې دکاغذی نوټ د تبادلې په مسئله کښې دامام مالك يا د امام محمد رحمهما الله قول اختيارول مناسب دی، ځکه چه دامام شافعی يا د امام ابو حنيفه اود امام ابويوسف رحمهم الله مسلك اختيارولو سره به د سود دروازه خلاصه شی .

اوهر سودی کاروبار اولين دين به د دې مسئلې په بناء باندې جائز کړې شی، يعنی که چيرته يو

---

[1] - نهاية المحتاج للرملی ، دريم جلد : ۳ ، ص : ۴۱۸ ، تحفة المحتاج لابن حجر سره له حاشيی نه د الشروانی، نه ، جلد : ۴ ، ص : ۲۷۹ .

قرض ورکونکې د خپل قرض په بدل کښې سود اخستل غواړي نوهغه به يې دغه رنګه په آسانۍ سره اخستلې شي چه په قرض غوښتونکې باندې به خپل کاغذي نوټونه په ډير قيمت سره خرڅ کړي اودغه شان به هغه دخپل قرض په بدل کښې سود لاسته راوړي.

غالب ګمان دا دې چه که چيرته هغه فقهاء کرام کومو چه ديوې سکې په دوه سکو سره تبادله جائزه ګڼلې ده هغوئ زمونږ په دور کښې ژوندي وای او د دې نوټونو د تبادلې مشاهده يې کړې وای نو ضرور به يې د دې معاملې د حرمت فتوی ورکړې وه چه د دې خبرې تائيد د بعضې متقدمينو فقهاؤ له قول نه هم کيږي چنانچه د ماوراء النهر فقهاؤ به په عدالی او غطارفه کښې په کموالی او زياتوالی سره تباده حرامه ګڼله [۱].

د داسې سکوپه باره کښې داحنافو په اصل کښې په کموالی اوزياتوالی سره تبادله جائزه وه، ځکه چه په دغه سګوکښې دکوټه ځيزونو د غالب کيدلو په وجه به په سپينوزرو اوکوټه موادو کښې هريو د مخالف جنس دعوض مقرر کيدلو ګنجايش موجود وؤ «ګويا د سپينو زرو تبادله په کوټه ځيز سره اودکوټه ځيز تبادله په سپينو زرو سره کيدله نو دا تبادله خلاف جنس کيدلو په وجه جائزه وه» ليکن د ما وراء النهر داحنافو مشائخو په دې کوټه سکو کښې هم په کموالی او زياتوالی سره تبادله ناجائزه وګڼله او د دې علت يې دا بيان کړو چه **((انها اعز الاموال دیارنا فلو ابیح التفاضل فیه ینفتح باب الربا))** [۲].

يعنې زمونږ په ښار کښې داسګې هم عزتمند اوقابل قدر مال ګڼل کيږي نو له همدې کبله که د دې په تبادله کښې سره له زياتوالی اوکموالی نه تفاضل مباح وګڼلې شي نو دسود دروازه به خلاصه شي.

بيا که چيرې د امام محمد رحمه الله تعالی قول د امام ابوحنيفه اوامام ابويوسف رحمهما الله له قول سره مقايسه کړې شي نو دامام محمد رحمه الله تعالی دليل ډير مضبوط او راجح معلوميږي ځکه چه د امام ابوحنيفه اوامام ابو يوسف رحمهما الله په نيزد د دې سکو د ثمنيت ختميدلو نه پس سره له کموالی اوزياتوالی نه دهغې تبادلې ته دجواز حکم ورکول کيږي حال داچه د سګو د ثمنيت د ختمولو کوم صحيح مقصد په نظر کښې نه راځي، ځکه چه شاذ او نادر به کوم سړې داسې وی چه دهغه په نيزد به دسګو د اخستلو مقصد دهغې ثمنيت نه وی بلکه مقصد به يې دهغې اصل عنصر لکه تانبه ، اوسپينه وغيره وی، د سګو له اخستلو نه د هر سړی مقصد دهغې

۱ - عدالی او خطارفه يوخاص قسم سګې وې چه په هغې کښې به سره زر ډير لږ وؤ اوباقی به ټوله کوټه اوناچله وه.

۲ - فتح القدير . باب الصرف . جلد : ۵ . ص : ۳۸۲.

ثمنیت وی «د دې لپاره چه هغه د دې په ذریعه خپل ضروریات واخستلې شی نه دا چه هغه دا سکې ویلې کړی او بل څیز ترینه جوړ کړی» لهذا که چیرته متعاقدین (بائع اومشتری) د سکّی په ثمنیت باندې اتفاق اومصالحه وکړی نو دې ته دکموالی اوزیاتوالی دتبادلې جائز کولو لپاره د دروغو یوه مصنوعی حیله ویل کیږی چه هغه شریعت نشی قبلولې. خصوصاً په موجوده زمانه کښې د دې قسم حیلو شرعًا هیڅ گنجائش نشته. بل طرفته د سرو او سپینو زرو دحقیقی او طبعی سکو په ټوله دنیا کښې بالکل وجود نشته. اوسود فقط په همدې مروجه نوټونو کښې وی ځکه چه د سرو اوسپینو زرو پیسې له ټولې دنیا نه ورکې شوی دی.

البته د امام ابوحنیفه اوامام ابویوسف رحمهما الل په قول بادې عمل په هغه فلوسو کښې متصور کېدې شی چه کوم په خپل ذات کښې من حیث ماده مقصود وی لکه چه تاسو گورئ چه د بعضې خلقو دا عادت وی چه هغوئ د مختلفو ملکونو سکې اونوټونه له خپل ځان سره جمع کوی، له دې جمع کولو نه دهغوئ مقصد تبادله یا بیعه او یا د دې په ذریعه منافع حاصلول نه وی بلکه فقط د تاریخی یادگار په طور یی جمع کوی چه په آینده زمانه کښې کله دغه پیسې او سکې بندې شی نو له ده سره به د یادگار په طور پاتې او موجودې وی. ظاهراً په دغه قسم پیسو کښې د دې دواړو حضراتو په نیزد باندې دعمل کولو اوسره له کموالی او زیاتوالی نه د هغې تبادلې ته دجائز وئیلو گنجائش شته. تر کومه ځایه پورې چه د پیسو اوکرنسی تعلق دې دکومو د لاسته راوړلو مقصد چه تبادله او بیعه وی اودهغې ذات مقصد نه وی نو د داسې پیسو اوکرنسی په معامله کښې له نرمی اختیارولو سره به دسود لاره خلاصه شی. فلهذا د داسې پیسو په تبادله کښې کموالې او زیاتوالې درست ندې. والله سبحانه وتعالی اعلم

په هرحال په موجوده زمانه کښې دکاغذی پیسو تبادله په مساوی توگه جائزه ده او په کموالی او زیاتوالی سره جائزه نده.

بیا دغه مساوات دنوټونو دتعداد اوشمار په لحاظ سره معتبر ندې بلکه د دې نوټونو دظاهری قیمت په اعتبار سره معتبر دې چه کوم په هغې باندې لیکل شوې وی. لهذا د پنځوسو روپو د نوټ تبادله د لسو لسو روپو په پنځو نوټونو سره جائزه ده. په دې تبادله کښې اگرچه یوطرف ته صرف یو نوټ دې اوبل طرف ته پنځه نوټونه دی لیکن د ظاهری قیمت په لحاظ سره د دې پنځو نوټونودمجموعې قیمت دپنځوسو روپو د نوټ له قیمت سره برابر دې، ځکه چه دا نوټونه اگرچه عددی دی لیکن د دې نوټونو په خپل مینځ کښې په تبادلې اوبیع کولو سره پخپله هغه نوټونه یا د هغې تعداد مقصود نه وی بلکه فقط دهغې هغه ظاهری قیمت مقصود وی چه دکوم قیمت هغه

**نوټ نمايندګی کوی، لهذا مساوات په همدغه قيمت کښې پکار دې**[1]

دنوټونو په باره کښې دا مسئله بعينه دفلوسو د سګو په شان ده، سګې اصلاً د عنصر کيدلو په وجه وزنی دی ليکن فقهاء کرامو دا عددی ګرځولی دی، د دې وجه همدا ده چه د دې فلوسو له حصول نه د دوئ ذات يا عنصر يا تعداد مقصود نه وی، بلکه هغه قيمت يې مقصود وی چه دکوم قيمت دا سګه نمايندګی کوی. لهذا د يوې داسې غټې سګې چه قيمت يې لس فلسه وی دهغې تبادله په وړولسو سکو باندې جائز دی چه په هغې کښې د هرې يوې سګې قيمت يو فلس وی، او د دې خبرې هغه فقهاء کرام هم دجواز قائل دی چه څوك د يوې سګې په دوه سګو بانې بدلولو ته ناجائز وايی ځکه چه په دې صورت کښې د يوې سګې قيمت بعينه هغه دې کوم چه د لسو سکو دې ، په بل عبارت سره وايو چه د لسو فلسو سکه اګرچه ظاهراً يوه سکه ده ليکن حکماً هغه د يو يو فلس لس سګې دی ، لهذا هغه د لس واقعی سکو سره مساوی دې ، بعينه همدغه حکم دنوټونو هم دې ، پدې کښې هم ظاهری عدد ته اعتبار نشته بلکه دهغه عدد حکمی ته اعتبار دې کوم چه دهغې له قيمت نه څرګنديږی، نومعلومه شوه چه په همدې کښې مساوات ضروری دې .

دمختلفو ملکونو د پيسو د نوټونو په خپل مينځ کښې تبادله

له پوره فکر اوسوچ کولو نه وروسته دا حقيقت واضح کيږی چه د يو ملك مختلفې سګې او نوټونه يوجنس دی اودمختلفو ملکونو پيسې مختلف الاجناس دی، ځکه لکه څنګه چه مونږ مخکې عرض کړې وؤ . په موجوده زمانه کښې چه کومې سګې اونوټونه دی دهغې اصل ماده او ذات مقصود ندې بلکه په اوسنی زمانه کښې پيسې اونوټونه د قوت خريد له يو خاص معيار څخه عبارت دې. اوهرملك چونکه يوجدا معيار مقرر کړې دې مثلاً په پاکستان کښې روپئ . په سعودی عرب کښې ريال. په امريکه کښې ډالر وغيره . لهذا دا معيار دملکونو په اختلاف سره بدليږی . ځکه چه د هرملك د پيسې د حيثيت تعيين دهغه ملك د قيمتونو په اندازه اودهغه ملك د درداتو اوصادراتو وغيره په بناء باندې وی. . بل کوم داسی مادی څيز نشته چه هغه د دې مختلفو معيارونو په مينځ کښې يو پايه دار تناسب قائم کړی ، بلکه د هر ملك د اقتصادی حالاتو دتغير او اختلاف له وجه نه په دې تناسب کښې هره ورځ بلکه هرساعت تبديلی راځی. لهذا د دې مختلفو ممالکو د پيسو ترمينځ کوم داسې مستحکم تعلق نشته چه هغه د دې ټولو پيسو يو جنس

---

۱ . همدا وجه ده چه د يو انسان لپاره چه څومره چه د زرو روپو يو نوټ په زره پورې وی ديوې روپئ سل نوټونه يې هغومره په زره پورې نه وی اګرچه د يوې روپئ سل نوټونه د عدد په اعتبار سره ډير زيات دی ليکن د ظاهری قيمت په لحاظ سره د دې سلو نوټونو مجموعه د زرو د يونوټ نه لس چنده کم دی . لهذا د تبادلې په وخت کښې به دظاهری قيمت برابروالی ته اعتبار وی

جوړ کړی

د دې بالعکس دیوملك په پیسو اوسکو کښې داخبره نشته اګرچه د مقدار په لحاظ سره هغه هم مختلفې وی لیکن دهغه اختلاف نسبت همیشه یو وی اوپه هغې کښې کوم فرق نه وی، مثلاً د پاکستان روپئ او پیسه، اګرچه د دې دواړو قیمت مختلف دې لیکن د دې دواړو ترمینځ یو خاص نسبته شته «چه یوه پیسه د یوې روپئ سلمه حصه کیږی» د روپئ په قیمت پورته کیدو او ښکته کیدو سره په دې نسبت کښې کوم فرق نه راځی، په خلاف د پاکستانی روپئ او سعودی ریال چه د دې دواړو ترمینځ کوم داسې معین نسبت نشته چه په هر حال کښې برقرار وی بلکه د دې دواړو په مینځ کښې نسبت هروقت بدلیږی[۱].

لهذا هرکله چه دهغوئ په مینځ کښې داسې یو معین نسبت چه د جنس د یو والی لپاره ضروری وی پیدا نشو نو د ټولو ملکونو پیسې په خپل مینځ یو د بل په مقابل کښې مختلف الجنس دی، همدا وجه ده چه دهغې نوم ، دهغې پیمانه اودهغې اساسی واحدونه هم مختلف وی .

هرکله چه دمختلفو ملکونو پیسې مختلف الاجناس شوې نودهغوئ ترمینځ سره له کموالی او زیاتوالی نه تبادله جائز ده، نو د یو ریال بدلول په یوې روپئ سره هم جائز دی او په پنځو روپو سره هم، دامام شافعی رحمه الله په نیزد ځکه جائز دی چه دیوملك دسکې تبادله په دوه سکو باندې جائزه ده نو دمختلفو ملکونو دسکو ترمینځ تبادله سره له تفاضل نه په طریق اولی جائزه ده ، او دحنابله وؤ هم همدا مسلك دې ، چه مونږ مخکې بیان کړو . اودامام مالك رحمه الله په نیزد باندې پیسې اګرچه د ربوی اموالو له جملې څخه دی لیکن کله چه په ربوی اموالو کښې جنس بدل شی نو دهغوئ په نیزد هم دهغې بیعه سره له تفاضل نه جائزه ده ، اواحنافو په نیزد دیوفلس بیعه په دوه فلسونو باندې ځکه ناجائزه وه چه هغه سکې په خپل مینځ کښې براپرې اوهم مثل وې، چه په دې بناء باندې د بیعې په وقت کښې یوه سکه بغیر له عوض نه خالی پاتې کیدله، لیکن دمختلفو ملکونو پیسې د مختلف الجنس کیدلو په بناء باندې هم مثل اوبرابرې پاتې نشوې، نو له همدې کبله دهغوئ ترمینځ سره له تفاضل نه د بیعې په وقت کښې د پیسو هیڅ یوې حصې ته خالی عن العوض نشی ویل کیدلې، اوکله چه بیعه خالی عن العوض نشوه نو دهغې بیعه سره له تفاضل نه جایزه ده .

---

۱. په یوه زمانه کښې یې نسبت یو په درې وی ، په دغه وقت کښې یو ریال د درې روپو برابر وی، بیا د ریال دقیمت په پورته کیدو سره دغه نسبت یو په څلور شی، اواوس تقریباً دغه نسبت یو په پنځه دې . له دې نه دا څرګنده شوه چه د دې دواړو پیسو په مینځ کښې کوم معین نسبت موجود ندې چه همیشه په یو حال باندې برقرار وی، همدغه حال د دنیا د نورو ملکونو د پیسو هم دې (ترجم)

لهذا دیو سعودی ریال خرڅول په ډیروپاکستانی روپو باندې جائز دی.

اوس دلته یو بل سوال پیدا کیږی اوهغه دا چه کله کله حکومت دمختلفو پیسو قیمت مقرره وی، مثلاً که چیرته د پاکستان حکومت د یو ریال قیمت څلور روپۍ او د یو ډالر قیمت پنځلس روپۍ مقرر کړی. نوآیا په دې صورت کښې به دحکومت د مقرر شوی قیمت مخالفت کولو سره د پیسو تبادله سره له تفاضل نه جائزه وی؟ مثلاً یو سړی یو ډالر د پنځلسو روپو په ځائ باندې په شل روپۍ واخستلو نو آیا دغه قسم زیادت ته سود ویلی شی اوکه نه؟ زما په نیزد باندې خو په دې صورت کښې سود نه لازمیږی ځکه چه دلته دا دواړو پیسې دجنس په اعتبار سره مختلفې دی او د مختلف الجنس بیعه سره له تفاضل نه جائزه ده، اوشرعی دهغې دکموالی او زیاتوالی کوم معلوم حد نشته بلکه دا د دواړو جانبو (بائع اومشتری) په رضا پورې موقوفه ده چه دهغې تفصیل مونږ مخکې ذکر کړو. البته په دې باندې د تسعیر [۱] (دقیمت د زیاتوالی) احکام جاری کیږی. لهذا دکومو فقهاء کرامو په نیزد باندې چه څیزونو کښې تسعیر جائز دې دهغوئ په نیزد په پیسو کښې هم جائز دې اودخلقو لپاره له دې حکم نه مخالفت کول جائز ندی. یو لدې کبله چه د فقه قاعده ده چه کوم کار چه ګناه نه وی په هغې کښې د حکومت اطاعت واجب دې [۲]. دویم لدې کبله چه کوم شخص په کوم ملك کښې اوسیږی هغه قولاً یا عملاً د دې خبرې اقرار کوی چه ترڅو هغه لره د دې ملك قوانین کومې ګناه ته مجبور نکړی نوهغه به خامخا د دې قوانینو پابندی کوی [۳]. لهذا د دې قواعدو په نظر کښې نیولو سره هغه لره د حکومت له دې قانون نه مخالفت کول ندی پکار. لیکن له بل طرفه دغه زیادت ته سود ویل اوهغه حرام ګرځول هم صحیح ندی

## بغیر له قبض نه د یوې پیسې تبادله یا خرڅول

بیا د یوملك د پیسو د نوټونو په خپل مینځ کښې تبادله اګرچه سره له تفاضل نه جائز نده لیکن دا بیع الصرف هم نده، ځکه چه د پیسو نوټ خلقةً ثمن ندې، بلکه دا ثمن عرفی او اصطلاحی دې، او د بیع الصرف احکام فقط په طبیعی ثمن یعنی سروزرو او سپینو زرو باندې جاری کیږی.. له همدې کبله په مجلس عقد کښې له دواړو طرفونو نه قبض شرط ندې. البته دامام ابوحنیفه اوامام

---

۱ - تسعیر دحکومت له طرف نه د یوڅیز دقیمت مقرر کولو ته ویل کیږی. د دې لپاره چه خلق له هغې نه په زیات قیمت سره څیزونه خرڅ نکړی.

۲ - بعضې فقهاء کرامو د دې قاعدې تصریح کړیده. وګورئ: شرح السیر الکبیر للسرخسی. ص ۹۲. ج: ۱. رد المحتار. باب العیدین. ص: ۷۸۰. ج: ۱. وباب الاستسقاء. ص: ۹۲. ج: ۱. وکتاب الحظر والاباحة. جلد: ۵. ص ۴۰۷

۳ - احکام القرآن. مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله تعالی علیه. جلد: ۵. ص ۴۳

ابو یوسف رحمهما الله په نیزد باندې کم نه کم یو طرف نه قبض کول ضروری دی. بغیر له دې نه دا معامله نه صحیح کیږی ځکه چه د دې دواړو امامانو په نیزد باندې سکّه په متعین کولو سره نه متعین کیږی، اوتعین بغیر له قبض څخه نه کیږی. لهذا که چیرته بغیر له قبض نه بائع او مشتری جدا شول نو دهغوئ دغه جدائی به په داسې حال کښې وی چه دهر فریق په ذمه باندې به دهغه بل قرض وی ((اوبیع الدین بالدین لازمیږی)) چه هغه جائزه نده [۱]. البته د نورې درې واړه امامانو په نیزد باندې چونکه ثمن په متعین کولو سره متعین کیږی نو دهغې د تعین لپاره د قبض ضرورت نشته. له همدې کبله د دوئ په نیزد باندې که چیرته کوم یو فریق نوټ متعین کړو نو معامله به فقط دهغه په نوټونو باندې وی، نوبیا به قبض کول د عقد د صحت لپاره شرط نه وی [۲].

اوس پوښتنه داده چه آیا په پیسو سره د قرض معامله جائزه ده اوکه نه ؟ لکه څنګه چه په تاجرانو او عامو خلقو کښې د دې خبرې رواج دې چه یو سړې د یوملك پیسې بل سړی ته په دې شرط سره ورکوی چه ته به ماته د دې په بدل کښې دومره موده وروسته د فلانی ملك پیسې په فلانی ځائ کښې راکوې. د مثال په توګه زید ، عمرو لره زر (۱۰۰۰) ریال په سعودی عرب کښې ورکړل اوهغه ته یی وه وئیل چه ته به ما ته د دې په بدل کښې په پاکستان کښې څلور زره (۴۰۰۰) پاکستانی روپئ راکوې . نو آیا دا معامله جائزه ده اوکه نه ؟

د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد باندې دا معامله جائزه ده. ځکه چه دهغه په نیزد باندې د ثمن په بیع کښې د بیع وقت اوثمن د عقدکونکی په ملکیت کښې موجود کیدل شرط ندی. لهذا کله چه جنس مختلف شو نو قرض جائز دې . لکه چه امام سرخسی رحمه الله تعالی لیکلی دی:

**واذا اشتری الرجل فلوسًا بدراهم ونقد الثمن ولم تكن الفلوس عند البائع فالبيع جائز لان الفلوس الرائجة ثمن كالنقود وقد بينا ان حكم العقد فى الثمن وجوبها و وجودها معًا ولايشترط قيامها فى ملك بائعها لصحة العقد كما لايشترط ذلك فى الدراهم والدنانير [۳].**

یعنی که چیرې یو سړې د دراهمو په بدل کښې فلوس (پیسې) واخلی، اوهغه بائع ته دراهم ورکړل لیکن له بائع سره په دغه وقت کښې فلوس موجود نه وؤ . نودغه بیعه درسته او صحیح ده ځکه چه مروجه سکې د ثمن په حکم کښې دی. اوموږ داخبره واضحه کړه چه په ثمن باندې د عقد کولو حکم دا دې چه هغه پیسې به (د مشتری په ذمه باندې) واجب هم وی اوموجودې به هم وی لیکن ثمن د بائع په ملکیت کښې موجود کیدل ضروری ندی. لکه څنګه چه د دراهمو او دنانیرو د

---

۱ - الدرالمختار مع رد المحتار . جلد ۴ . ص ۱۸۳ - ۱۸۴ .
۲ - المغنی لابن قدامه باب الصرف . جلد ۴ . ص ۱۲۹ .
۳ - مبسوط السرخسی . جلد ۱۴ . ص ۲۴ .

بیع په وقت کښې دهغې په ملکیت کښې موجود کیدل ضروری ندی.

لهذا په دې صورت کښې به دغه بیعه په ثمن مؤجل سره وی چه د اختلاف الجنس په صورت کښې جائزه ده. اودا معامله په (بیع السلم) کښې هم داخلیدې شی، او اکثر فقهاء کرام په فلوسو کښې (بیع السلم) جائز ګنی، ځکه چه سکې یو داسې غیر عددی متفاوت څیز دې ه د وزن او صفت وغیره په بیانولو سره متعین کیږی، حتی چه امام محمد رحمه الله دیو فلس بیعه په دوه فلسونو بادې جائز ګنی دهغه په نیزد هم په سکو کښې (بیع السلم) جائزه ده [۱]. همدغه راز دامام احمد رحمه الله په نیزد باندې په هغه عددی څیزونو کښې چه په هغې کښې تفاوت او ښکاره فرق نه وی په هغې کښې بیع السلم جائزه ده [۲].

البته د دې عقد په (بیع السلم) کښې د داخل کولو په صورت کښې به دهغه شرائطو لحاظ ساتل ضروری وی چه مختلف فقهاء کرام یی د خپل خپل مسلك مطابق د (بیع السلم) د جواز لپاره تاکی، چه د فقه په کتابونو کښې سره له تفصیل نه موجود دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

**سبحان ربك رب العزة عما يصفون وسلام على المرسلين والحمد لله رب العالمين.**

## تبصره

له حکومتی بانك څخه چه کله مونږ معلومات وکړو نو له هغې څخه دا خبره ثابته شوه چه د دولت د وارداتو او صادراتو مطابق د ټول پیداوار په اندازه د اساسی سکو او یوې روپۍ نوټ اول شائع کیږی، اوبیا دهغې د تعداد مطابق لوئ نوټونه د دستاویز په شکل کښې شائع کیږی.

د یوې روپۍ نوټ د فلوسو په حکم کښې دې اولوئ نوټ دهغې سند اودستاویز دې، پدې خبره باندې دا لاندې دلائل دی:

۱ - دحکومتی بانك دغه ذکر شوې وضاحت.

۲ - په لویو نوټونو باندې د سند کیدلو دغه مضمون لیکل شوې دې.

۳ - که چیرې یو نوټ وسوزیږی اویا وشلیږی نو دهغې نمبر په ښودلو سره له بانك څخه نوې نوټ اخستل کیدې شی، له هیڅ قسم مال سره هیڅکله هم داسې معامله نه کیږی چه د ضائع کیدلو په صورت کښې له حکومت اویا له مال ورکونکی څخه دوباره مطالبه وکړې شی، اګرچه د یوې روپۍ دنوټ زړه ټوټه هم بانك بدلوی مګر دا کار د دې لپاره نه کوی چه دا یو دستاویز دې بلکه ددې لپاره دا کار کوی چه حکومت دغه کاغذ سکه مقرر کړې ده چه د یو څو کالو تر استعمال څخه وروسته شلیدې شی. لهذا بغیر له بدلولو نه د دې سکې باقی پاتې کیدل ناممکن دی.

---

۱ - فتح القدير، جلد: ۵ . ص: ۳۲۷

۲ - المغنى لابن قدامه . جلد: ۴ . ص: ۳۲۷

۴ - د مالی نقودو وروسته له ناچل کیدلو نه اګرچه قیمت کمیږی لیکن بالکل نه ورکیږی، وروسته له ناچل کیدلو نه هم دهغې مالیت برقرار وی چه قبل الکساد سره دومره زیات تفاوت نلری، په خلاف د نوټ سره چه د سلو روپو د نوټ قیمت بالکل وروسته له ناچل کیدلو نه که چیرې بالکل معدوم نشی نو کالعدم خو ضروری وی، دسلو روپو نوټ بیا څوك په یوه روپئ هم نه اخلی.

دایو اساسی بحث وؤ اوس راځو اودمقالې دمتعلقه مقاماتو په ترتیب سره تجزیه او تشریح کوو:

**قوله**: دغه رنګې که چیرته یو مالدار سړې د خپل زکوة د اداء کولو لپاره دغه کاغذی نوټ کوم فقیر ته ورکړی نوتر کومه وقته پورې چه هغه فقیر دهغه نوټونو په بدل کښې هغه سره اویا سپین زر له بانك څخه ترلاسه نکړی چه دغه نوټ د هغې سند دې اویا ترڅو پورې چه هغه د دغه نوټونو په ذریعې سره سامان وانخلی نو ترهغه وقته پورې دهغه مالدار سړی زکوة نه اداء کیږی .... (ص: ۴).

**تبصره**: د یوې روپئ نوټ دستاویز (سند) ندې، بلکه دا د فلوس په حکم کښې دې، فلهذا پدې سره زکوة اداء کیږی. لوئ نوټ د سرو او سپینو زرو سند ندې بلکه د ساده سګو اویا د یوی روپئ د نوټ سند دې ، له همدې کبله که چیرې فقیر ته په زکوة کښې چا لوئ نوټ ورکړو اوهغه دهغې په بدل کښې د یوې روپئ نوټونه واخستل نوهم زکوة اداء کیږی.

فقیر ته په زکوة کښې لوئ نوټ لاسته ورغې، هغه بیا یوبل فقیر یا غنی ته ورکړو، اوهغه په هغې باندې کوم مال واخستلو یا یی د یوې روپئ نوټ واخستلو نوبیا هم زکوة کیږی. **لانّ قبض الوكيل كقبض الموكل**.

**قوله**: له همدې کبله په تیره پیړئ کښې د هندوستان ډیرو علماء کرامو دا فتوا ورکړه چه دا نوټ د قرض دستاویز او سند دې، لهذا د دې په ذریعه ترهغه وقته پورې زکوة نه اداء کیږی چه تر کومه پورې فقیر دغه نوټ په خپلو ضروریاتو کښې مصرف نکړی، اود دغه نوټونو په ذریعه د سرو اوسپینو زرو اخستل هم جائز ندی (ص: ۱۳).

**تبصره**: د زکوة د اداء کیدلو بیان مخکې بیان شو او د نوټونو په ذریعې سره د سرو زرو او سپینو زرو د اخستلو ممانعت لدې کبله وؤ چه روپئ د سپینو زرو وه اونوټ د سپینو زرو د روپئ سند وؤ.

**قوله**: کوم شخص چه د نصاب په انداز د دغه نوټونو مالك شی او په هغې باندې یو کال تیر شی نو په هغې باندې زکوة واجب کیږی (۱۳).

**تبصره**: دزکوة واجب کیدل نوټونو لره د سندونو له حکم څخه نه خارجوی ځکه چه نوټ دومره مستحکمه وثیقه اوپه هغې سره د مال حاصلول دومره آسان دی هرسړې . هر وقت په هغې سره مال

حاصلولې شی. له همدې کبله دزکوة په وجوب کښې دا دقرض په حکم کښې ندې، په بانك کښې کېښودل شوې پیسې هم دزکوة په وجوب کښې په اتفاق سره د قرض په حکم کښې ندی. په داسې حال کښې چه دبانك د رسید حیثیت د نوټ له دستاویز نه څو درجې کم دې. د بانك رسید یا چیك نه د نوټ په شان موثق دې اونه دهغې په ذریعه د پیسو حاصلولو دومره آسان دی.

**قوله**: دویم حیثیت دا دې چه دا نوټ د حکومت له طرف نه یو شائع شوې سند اودستاویز دې اوحکومت دا خبره په خپل ځان لازمه کړې ده چه د دې دهلاکیدلو او ضائع کیدلو په صورت کښې یا د دې د درلودونکی د مطالبې په وقت کښې به د دې بدل اوعوض ورکوی .......

لیکن که چیرې د دې په دویم حیثیت باندې لږ شان ژور فکر وکړې شی نودا خبره په واضحه توګه په نظر راځی چه چه دنوټ دا دویم حیثیت دهغې ثمنیت نه باطلوی، ځکه چه د حکومت اصل مقصد دا وؤ چه دا نوټ هم دثمن عرفی په شان په خلقو کښې رواج شی .....

دخلکو چه څومره اعتماد په طبیعی پیسو باندې دې هغومره اعتماد یی په دې نوټونو باندې نه وؤ. له همدې کبله حکومت د دې ضمانت په غاړه واخستلو چه د دې دهلاکیدلو په صورت کښې به حکومت دهغې عوض او بدل ورکوی، دا ضمانت حکومت د دې لپاره نکوی چه دحکومت په نظر کښې دا د ثمن عرفی حیثیت نلری، بلکه په دې نوټونو باندې دخلکو د اعتماد کولو لپاره دا ضمانت کوی،د دې لپاره چه خلق بغیر له کومې ویرې اوخطر نه په ډاډه توګه په هغې سره لین دین اومعامله وکړی (ص: ۱۴، ۱۵).

**تبصره**: دغه تاویلات د لاندې وجوهاتو له کبله صحیح ندی:

۱ - دغه تاویلات د سټیټ بانك یا حکومتی بانك دهغه وضاحت خلاف دی چه پورته ولیکل شول.

۲ - د ضمانت هغه مضمون چه په لویو نوټونو باندې لیکل شوې دې هغه په وړو روپو باندې هم لیکل پکار وؤ.

۳ - د ضمانت مضمون دارنګه لیکل پکار وؤ چه: ((دناچل کیدو یا ضائع کیدلو په صورت کښې به د دې نوټ پیسې ورکول کیږی)).

په لویونوټونو باندې د ضمانت په لیکنه کښې د مال اداء کول د ناچل کیدلو یا ضائع کیدلو په ځائ ((عندالمطالبه)) سره مشروط ګرځول او د یوې روپئ په نوټونو باندې د دغه شان ضامنت نه لیکل د دې خبرې ښکاره دلیل دې چه لوئ نوټ سند دې او د یوې روپئ نوټ سکه ده چه د فلوس په حکم کښې ده.

**قوله**: اوس دغه نوټ دقانونی تبادلې حیثیت اختیار کړې دې. او دنورو عرفی اثمانو په شان خلق د دې په قبلولو باندې مجبور کولې شی په داسې حال کښې چه د نورو مالی اسنادو لکه د

بانك چيك وغيره دخپل قرض د اخستلو لپاره په قبلولو باندې هيڅوك نه مجبوركول كيږي، سره لدې نه چه د بانك د چيك رواج هم عام دې (۱۷).

**تبصره**: لوئ نوټ هم دبانك د چيك په شان سند دې، سره لدې نه بيا هم په دواړو كښې فرق دا دې چه دبانك چيك دومره موثق او با اعتماده ندې او دهغې په ذريعه د خپلو پيسو اخستل هم دومره آسان ندی لكه څنګه يې چه د نوټ په ذريعه اخستل آسان دی.

**قوله**: د پيسو په نوټونو باندې چه كوم دغه عبارت ليكل شوې دې چه: «د دې درلودونكی له دې د مطالبې په وقت كښې وركړې شی» اوس د دې عبارت كوم مقصد اومعنی باقی پاتې نشوه، ځكه چه په اوسنی وقت كښې د پيسونوټونه چه په هرڅومره مقدار كښې وی په سرو زرو باندې دهغې د بدلولو هيڅ صورت نشته ........ (ص: ۱۸).

**تبصره**: په شرعی اوعقلی لحاظ سره دهرعاقل او بالغ شخص هرقول اوعمل د صحيح ګرځولو كوشش كول ضروری دی، نو دحكومت دليكنې لغو اوعبث ګرځول بلكه دواقع خلاف ګڼل څنګه صحيح كيدې شی؟

د حكومتی بانك د وضاحت مطابق د لويو نوټونو ترشا سره اوسپين زر نشته، بلكه طبعی سګی او د يوې روپئ نوټونه دی، نو چه هرڅوك يوبانك ته نه ورشی او د لويو نوټونو په عوض كښې د يوې روپئ دنوټونو مطالبه وكړی نوبانك هغه ته انكار نكوی.

**قوله**: اوس دغه نوټ د قرض د سند اودستاويز حيثيت نلری، نوځكه په دې نوټونو بانې د قرض دزكوة احكام هم نه جاری كيږی (۱۹).

**تبصره**: د زكوة واجب كيدلو لپاره دا لازم ندی چه لوئ نوټونه دې عرفی ثمن وی، او ددې خبرې تفصيل په تيرو عبارتونو كښې ليكل شوې دې.

**قوله**: اولكه څنګه چه مروّجه سګې كوم غريب ته دزكوة په طور وركړې شی، نو كوم وقت چه هغه فقير هغه سګې قبض كړی نوهمدغه وقت كښې دهغه زكوة اداء كيږی نو عينًا همدغه حكم د پيسو د نوټونو دې ....... (ص: ۱۹).

**تبصره**: د دې خبرې تفصيل هم تير شوې دې.

**قوله**: په ټولو معاملاتو كښې د پيسو د نوټونو حكم بعينه د سكو په شان دې، لكه څنګه چه د سګو په خپل مينځ كښې په مساوی توګه تبادله جائزه ده همدارنګه د يوملك د پيسو د نوټونو هم په خپل مينځ كښې تبادله په مساوی توګه بالاتفاق جائزه ده، پدې شرط چه د عقد په مجلس كښې له فريقينونه يو طرف په يو بدل باندې قبضه وكړی ...... (۲۰).

**وقوله**: بيا د يوملك د پيسو دنوټونو په خپل مينځ كښې د تبادلې په وقت كښې اګرچه تفاضل جائز ندې، ليكن دا «بيع الصرف» هم ندې، ځكه چه د پيسو نوټ طبعی ثمن ندې، بلكه دا عرفی

یا اصطلاحی ثمن دې د بیع الصرف احکام فقط په طبعی ثمن ((سرو او سپینوزرو)) باندې جاري کیږی. له همدې کبله دعقد په مجلس کښې له دواړو طرفونو نه قبض کول شرط ندی، البته د امام ابوحنیفه او امام ابو یوسف رحمهما الله په نیزد باندې لږترلږه له یوطرف نه قبض کول ضروری دی. بغیر له دې نه به د دوئ په نیزد دا معامله صحیح نه وی، ځکه چه د دې دواړو امامانو په نیزد سکې په متعین کولو سره نه متعین کیږی، اوتعین بغیر له قبضې څخه نشی کیدې، فلهذا که چیرې بغیر له قبض کولو نه متعاقدین شجدا شول نو دهغوئ جدایی په په داسې حال کښې وی چه د هر فریق په ذمه به دهغه بل فریق قرض وی ((بیع الدین بالدین لازمیږی)) چه دا جائزه نده. ((الدرالمختار مع رد المحتار، جلد : ۴ ، ص : ۱۸۳ - ۱۸۴ )) ، (ص : ۳۰).

**تبصره** : د فقهې د کتابونو له پلټنې څخه د ذکر شوی صورت عدم جواز ثابتیږی، دا خبره چه : ((د شیخینو رحمهما الله په نیزد باندې سکې له متعین کولو سره نه متعین کیږی)) درسته نده. دا خبره د فقهې د ټولو کتابونو له تصریحاتو څخه دمخالف کیدلو علاوه د دې مقالې دځائ په ځائ ذکر شوی تفصیل سره هم معارضه ده.

د شیخینورحمهما الله په نیزد باندې د فلوسو تعین کیدلې شی. د امام محمد رحمه الله په نیزد باندې صحیح ندې، بنا پر همدې اختلاف دفقهې د کتابونو د ذکر شوو احکامو د تفصیل حاصل دادې چه :

(۱) بیع الفلوس بالفلوس بالتفاضل - د امام محمد رحمه الله په نیزد په هرصورت ناجائزه ده ، او شیخین رحمهما الله یی په شرط د تعیین د بدلینو په مجلس کښې جائز ګڼی ، د دوئ په نیزد باندې تقابض بدون التعین کافی ندې.

(۲) بیع الفلوس بالفلوس بالتساوی : پدې کښې بالاتفاق تقابض فی المجلس شرط دې. د شیخینو رحمهما الله په مذهب کښې یوقول دا هم دې چه صرف تعین د بدلین بغیر له تقابض هم جائز دې. یعنی په تعیین او تقابض کښې د یو وجود شرط دې.

قال الامام الکاسانی رحمه الله تعالی: تبایعا فلسا بعینه بفلس بعینه فالفلسان لایتعینان وان عینا الا ان القبض فی المجلس شرط حتی یبطل بترك التقابض فی المجلس لکونه افتراقا عن دین بدین ولو قبض احد البدلین فی المجلس فافترقا قبل قبض الآخر ذکر الکرخی انه لایبطل العقد لان اشتراط القبض من الجانبین من خصائص الصرف وهذا لیس بصرف فیکتفی فیه بالقبض من احد الجانبین لان به یخرج عن کونه افتراقا عن دین بدین وذکر فی بعض شروح مختصر الطحاوی رحمه الله تعالی انه یبطل لا لکونه صرفا بل لتمکن ربا النساء فیه لوجود احد وصفی علة ربا الفضل وهو الجنس (بدائع، ص: ۲۳۷، ج: ۵).

وقال الامام الطحاوی رحمه الله تعالى: ولابد من التعيين فی بيع الفلوس بمثلها لاتحاد الجنس كما مر فی بيع الفلس بالفلسين (حاشية الطحطاوی علی الدر، ص:۱۱۰، ج:۳).

د مذهب د ذکر شوو نصوصو او دفقه د امامانو د بې شميره تصريحاتو مطابق په بيع الجنس بالجنس کښې د يوجانب د عدم تعين په وجه نساء ده او دا حرامه ده، د تفاضل دحرمت او دنساء دجواز هيڅ مثال نشته، بلکه دا دفقه له نصوص څخه سراسر خلاف دی.

پدې مقام کښې ابن همام رحمه الله تعالى دا اشکال ښکاره کوی چه:

ولايخفى ضعف قوله لان الجنس بانفراده يحرم النساء وانّما يتم لو كان كون المبيع اوالثمن بغير عينه يستلزم النسيئة وليس كذلك، الا ترى ان البيع بالنقود بيع بما ليس بمعين ويكون مع ذلك حالا فلكونه بغير عينه ليس معناه النسيئة (فتح، ص:۲۸۸، ج:۵).

پدې کښې د لږ فکر اونظر کولو څخه دا لاندې حقائق په ښکاره توګه په نظر راځی:

۱ - امام ابن همام رحمه الله د خپل عادت مطابق دا اشکال د بحث په طور فقط د مسئلې په دليل کښې پيش کړې دې، په نفس مسئله کښې کوم اشکال نشته د شيخينو په نيزد باندې بيع الفلس بالفلسين صرف په مجلس کښې د تعين البدلين په شرط سره جائزه ده، له دې نه علاوه نور ټول صورته يې په اتفاق سره ناجائز دی.

۲ - د نقدين په خپل مينځ کښې تبادله لاس په لاس او د نورو ربوياتو په بيع بالجنس کښې دعيناً بعينٍ شرط متفق عليه دې، ديوطرف عدم تعين لره ټول فقهاء کرام نساء وايی.

۳ - قطع نظر له تعليل د فقهاء کرامو نه، رسول الله صلى الله عليه وسلم دلاس په لاس او عيناً بعينٍ شرط لګولې دې اوله دې نه علاوه يی نورو ټولو صورتونو ته ربا ويلی دی، برابره خبره ده که دفقهاء کرامو په اصطلاح کښې هغې ته نساء وه ويل شی او که کوم بل څه.

اوبره داامام محمد رحمه الله مذهب دا ښودل شوې دې چه د فلوس تعين صحيح ندې او دهغې په خپل منځی تبادله کښې تفاضل جائز ندې، ليکن مبسوط او جامع الصغير لدې څخه مخالف دی:

قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى فی بحث الفلس بالفلسين باعيانهما، وفی الذخيرة ذكر محمد رحمه الله تعالى هذه المسئلة فی صرف الاصل ولم يشترط التقابض فهذا دليل على انه ليس بشرط وذكر فی الجامع الصغير ما يدل على انه شرط ومن مشائخنا من لم يصحح ما فی الجامع الصغير لان التقابض مع العينية انّما يشترط فی الصرف وليس به ومنهم من صححه لان لها حكم العروض من وجه وحكم الثمن من وجه فجاز التفاضل للاول واشتراط التقابض للثانی عملاً بالدليلين بقدر الامكان-آه-(بحر ص:۱۳۲، ج:۶).

دا دواړه روايتونه د امام محمد رحمه الله له مشهور مذهب څخه خلاف دی، لهذا يا خو به دا

پدې باندې حمل کولې شی چه دلته دوئ د شیخینو مذهب نقل کړې دې اویا به پدې بادې حمل کولې شی چه له دوئ نه هم یو روایت د دشیخینُ رحمهم الله موافق شوې دې . سره له دې نه دجامع په روایت کښې دتقابض په شرط باندې اشکال باقی پاتې دې، ځکه چه د شیخینو په مذهب کښې تقابض شرط ندې بلکه تعین البدلین شرط دې، له همدې کبله بعض مشائخو دا غیرصحیح ګرځولې دې. اوبعضې نورو د دې دا توجیه کړیده چه له مشهور مذهب څخه خلاف دې.

علامه ابن عابدین رحمه الله فرمایی چه د مبسوط په روایت کښې د احد البدلین قبض شرط دې ځکه چه بغیر له هغې نه افتراق عن دین بدین لازمیږی.

ظاهره خو داده چه دمبسوط روایت د شیخینو د مذهب مطابق دې چه په هغې کښې د دې تاویل ضرورت نشته. ځکه دهغوئ په نیزد د تقابض په ځائ باندې تعین البدلین شرط دې. لکه څنګه چه په مبسوط کښې ذکر دی چه : **كما نص عليه في الذخيرة في بحث بيع فلس بفلسين باعيانهما بقوله: (هذه المسئلة) وبقوله (التقابض مع العينية).**

که چیرې د علامه ابن عابدین رحمه الله مطلب دا وی چه وروسته له تعیین البدلین څخه د یوطرف قبض هم شرط دې نو دا دهغه له افتراق عن دین بدین له تعلیل څخه خلاف دې اوکه دهغه مطلب دا وی چه تعیین البدلین شرط ندې نو دا دحدیث له «عینًا بعین» څخه مخالف دې او له دې نه علاوه د ټولو فقهاء کرامو له منلې شوې قاعدې څخه هم خلاف دې، له نقدینو څخه علاوه دنورو ټولو ربویاتو په بیع بالجنس کښې دتعیین البدلین په شرط کولو اود نساء په حرمت باندې د ټولو اتفاق دې. له دې نه علاوه په مبسوط کښې د تعیین البدلین شرط کول په صراحت سره ذکر دی. **كما قدمنا من نص الذخيرة مرتين.**

د ذخیرې له لیکنې څخه دا هم واضح کیږی چه د فلوسو بیع بالجنس له بیع الصرف نه مطلق نه خارجیږی بلکه د دې خارجیدل له بیع الصرف نه په درې شرطونو سره مقید دی :

۱ - دشیخینو رحمهم الله په نیزد باندې

۲ - د تفاضل په صورت کښې

۳ - په مجلس کښې د بدلینو تعیین

د دې درې واړه شرطونو د موجودکیدلو په صورت کښې دا عقد بیع الصرف ندې. د دې لپاره نه مساوات ضروری دې او نه تقابض. البته د نورو ربویاتو په شان تعیین البدلین فی المجلس پکښې شرط دې . عدم الصرف د تقابض د عدم اشتراط تقاضا کوی، نه د عدم اشتراط تعیین البدلین

له ذکر شوو درې واړو شرطونو څخه که چیرې کوم شرط معدوم شی نودا عقد به د بیع الصرف

وی، نوځکه به بیا تفاضل پکښې حرام وی او تقابض به پکښې لازم وی.

د بدائع په تیر شوی عبارت کښې چه د مختصر الطحاوی له بعضو شروحو څخه کوم وضاحت تیر شوې دې چه بیع دفلس په فلس سره بیع الصرف نده، دهغې مطلب دا دې چه اگرچه دا حقیقةً بیع الصرف نده لیکن بیا هم په هغې باندې د بیع الصرف ټول احکام جاری کیږی. له همدې کبله دا حکمًا بیع الصرف ده. البته که چیرې د فلوسو بیعه په دراهمو یا دنانیرو سره وشی نو په دې کښې د جنس اوقدر د اختلاف له کبله تساوی او تقابض شرط ندې.

د تنویر الابصار یوه جزئیه

په مقاله کښې چه د در مختار له کومې حوالې څخه استدلال شوې دې هغه د تنویر الابصار دا جزئیه ده چه: **باع فلوسًا بمثلها اوبدراهم اوبدنانیر فان نقد احدهما جاز.**

په مبسوط او دمذهب په نورو کتابونو کښې فقط د فلوسو بیعه په دراهمو اودنانیرو سره ذکر شوې ده . لیکن د تنویر مصنف په هغې کښې د «بِمثلها» اضافه کړې ده چه دروایت او درایت دواړو څخه خلاف ده . مصنف په خپله له دغه عبارت څخه وړاندې په بیع بالمثل کښې د بدلینو دعین په مجلس کښې شرط گرځولې دې . په دې قاعده کښې بیعه د فلوسو په خپل مثل باندې هم داخله ده چه دهغې استثناء نه په کوم معتبر روایت کښې نقل شوې ده اونه یې کومه معقوله وجه شته. د دې بالعکس دفقه امامانو رحمهم الله دا جزئیه په ذکر شوې قاعده کښې داخل کړې ده اوصراحةً یې د تعین البدلین شرط لګولې دې . بلکه امام کاسانی رحمه الله خو لدې نه هم وړاندې تللې دې اوله دواړو طرفونو نه یې تقابض فی المجلس شرط گرځولې دې . وقد مرّ نصه.

دبعضې مشائخو مذهب دا دې چه دمساوات په حالت کښې تعیین صحیح ندې. لهذا دا عقد د بیع الصرف په حکم کښې دې په کوم کښې چه تقابض شرط دې.

کیدې شی چه د تنویر د دې مسئلې ماخذ او اساس دامام کرخی هغه قولوی چه په کوم باندې امام کاسانی رحمه الله رد کړې دې ، په بحر کښې یې دا مسئله دمحیط طرفته هم منسوب کړې ده. لیکن له دې څخه په محیط کښې د «بمثلها» دلفظ د زیادت یقین نشی کیدې. که بالفرض دا لفظ هلته موجود هم وی نو دهغه ماخذ اواساس هم دامام کرخی هماغه قول کیدې شی. په هر صورت دا قول روایةً او درایةً په هر لحاظ سره باطل دې.

**قوله** دهغو مختلفو ملکونو د پیسو تر مینځ داسې کوم دوامدار تعلق پیدا نشو چه دهغو ټولو یوجنس جوړ کړی . لهذا هر کله چه دهغوئ په مینځ کښې داسې کوم معین نسبت د دې ټولو د جنس د یووالی لپاره ضروری وی پیدا نکړې شو . نو د ټولو ملکونو پیسې په خپلو مینځونو کښې یوله بل سره مختلف الاجناس دی. همدا وجه ده چه دهغوئ نومونه ، دهغوئ پیمانې اودهغوئ اساسی واحدونه هم مختلف وی

**هرکله چه د مختلفو ملکونو پيسې مختلف الاجناس شوې نودهغوئ تر مينځ تبادله سره له تفاضل نه بالاتفاق جائزه ده (۲۸).**

**تبصره**: په مختلفو ملکونو کښې دکوم څيز د نومونو او قيمتونو اختلاف د جنس داختلاف دليل نشی کيدلې، ديو ملك په مختلفو علاقو کښې ديو څيز مختلف نومونه پيدا کيږی اوپه يو ښار کښې د يوڅيز دمختلفو اقسامو قيمتونه مختلف وی، دمثال په توګه لکه کاغذ، د يو ملك په مختلفو علاقو کښې دهغې نومونه مختلف دی، اوپه يوښار کښې دهغې دمختلفو اقسامو قيمتونه دومره فرق لری چه ديو کاغذ په مقابل کښې دبل قسم کاغذ دوه يا زيات کاغذونه اخستل کيدې شی ، دمختلفو ملکونو دحقيقو فلوسو نومونه او قيمتونه هم مختلف وی ، نوآيا هغه به هم مختلف الاجناس وی ؟

**قوله**: اوس پوښتنه داده چه آيا د پيسو دقرض معامله کول جائز دی اکه نه ؟ لکه څنګه چه په تاجرانو او عامو خلقو کښې دا رواج دې چه هغوئ د يو ملك پيسه يوبل سړی ته پدې شرط سره ورکوی چه ته د دې په بدل کښې دومره موده بعد دفلانی ملك پيسې په فلانی ځائ کښې ماته راکړه. دمثال په توګه زيد ، عمرو لره په سعودی عرب کښې زر (۱۰۰۰) ريال ورکوی اودا ورته وايی چه ته د دې په بدل کښې ماته په پاکستان کښې څلور زره پاکستانئ روپئ راکړه. نو آيا دا معامله جائزه ده اوکه نه ؟

دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد دا معامله جائزه ده ځکه چه دهغه په نيزد د پيسو په بيعه کښې د بيعې په وقت کښې ثمن د عقد کونکی په ملکيت کښې موجود کيدل شرط ندی. لهذا کله چه جنسونه مختلف شول نو قرض کول جائز دی. لکه چه شمس الائمه امام سرخسی رحمه الله ليکی: ........ (ص: ۳۰ . ۳۱).

**تبصره**: په دې کښې دا لاندې مفاسد دی:

۱ - دا عبارت په بيع الفلوس بالفلوس الغير المعينه بدون التقابض دجواز په ثبوت باندې بناء دې. او له تيرو نصوصو نه دهغې عدم جواز ثابت شوې وؤ.

۲ - دا د لويو نوټونو د ثمنيت په ثبوت پورې موقوف دې چه دهغې دستاويز اوسند کيدل په تيروعبارتونو کښې ثابت شول.

۳ - د مختلفو ملکونو په پيسو کښې دجنس د اختلاف په ثبوت پورې موقوف دی. چه هغه نشی ثابتيدلې.

۴ - په نسيئه بيعه کښې تاجيل شرط دې چه هغه دلته موجود ندې.

**قوله**: دا معامله په (بيع السلم) کښې هم داخليدې شی ........ (۳۱).

تبصره: پدې مسئله کښې د سلم د بيعې صحت په دوه څيزونو پورې موقوف دې:

۱ - لوئ نوټونه د فلوسو په حکم کښې کیدل.
۲ - د مختلفو ملکونو په پیسو کښې د جنس اختلاف.
دا دواړه څیزونه ثابت ندی نو ځکه دلته د سلم د بیعې هیڅ امکان نشته.

## د مبادلې یا بیعې صحیح طریقه

**دملکی پیسو په خپل مینځ کښې تبادله**: د یوې روپۍ نوټ دفلوسو په حکم کښې دې له همدې کبله دهغې په خپل مینځ کښې تبادله جائزه ده. البته تفاضل او نساء حرامه ده، که چیرې دنساء ضرورت پیدا شی نو د مبادلې یا بیعې په ځائ دقرض اخستلو معامله کول پکار دی.
د لویونوټونو په بدل کښې دیوې روپۍ نوټونه اخستل د دې معاملې دقرض اخستلو په معامله کښې داخلولې شی.

**دلویو نوټونو په خپل مینځ کښې تبادله**: دا په حقیق کښې دمال په مال سره تبادله نده بلکه د رسید په رسید سره تبادله ده نو ځکه جائزه ده.

**د بل ملک له پیسو سره تبادله**: دیوې روپۍ دنوټونو له یوبل سره تبادله تفاضلاً هم جائزه ده. البته د تفاضل په صورت کښې تعیین د بدلینو په مجلس کښې ضروری دې، دجواز علت یی دجنس اختلاف ندې بلکه دا دبیع الفلوس بالفلوس له قبیلې څخه دې. د مالك په داخل کښې د سود د دروازې د بندیدلو پاره تفاضل ناجائز ګرزول شوې دې، او دخارجی ملك په پیسو کښې د دې علت د نشتوالی اودعام ضرورت په بناء باندې دجواز فتوی ورکول کیږی.
له دې نه بهتره توجیه داده چه د تفاضل جواز پدې باندې موقوف دې چه متعاقدین د تعیین البدلین په ذریعه دفلوسو ثمنیت باطل کړی اودپیسونوټونه چونکه حکومت ثمن ګرځولی دی نو له همدې کبله متعاقدین د هغې ثمنیت نشی باطلولې، لهذا دهغې په داخلی اوخارجی دواړه قسمه بیعه اوتبادله کښې تفاضل جائز ندې، البته په بیرونی تبادله کښې دحکومت د مقرر شوی نرخ نه زیاتوالې یا کموالې تفاضل دې، د نرخ مطابق کموالې یا زیاتوالې فقط صورتً تفاضل دې، حقیقةً تفاضل ندې نوځکه جائز دې.
نساء حرامه ده له جهته د اتحاد دجنس څخه. د ضرورت په وقت کښې به د قرض اخستلو معامله کولې شی.
د لوئ نوټ په عوض کښې د یوې روپۍ نوټونه اخستل د نساء له کبله او د لویو نوټونو په خپل مینځ کښې تبادله دبیع الکالئ بالکالئ له کبله ناجائزه ده. د ضرورت په وقت کښې به د قرض اخستلو معامله کولې شی د مبادلې په ځائ د قرض اخستلو په وحت کښې د تاجیل له قید څخه د آزادیدلو سهولت هم موجود دې.

په دغه قسم قرض اخستلو کښې تفاضل ځکه جائز دې چه دا صورةً تفاضل دې حقیقةً ندې، دواړه طرفونه (بدلين) فقط په تعداد کښې زيات اوکم وی په قيمت کښې برابر وی . له همدې کبله نه مقرض او مستقرض دا انتفاع بالقرض گڼی اونه په عرف عام کښې هغې ته انتفاع بالقرض ويل کيږی.

برسيره پر دې د لويونوټونو د تبادلې دعدم جواز علت تفاضل ندې بلکه علت يې بيع الدين بالدين دې. په هغې کښې د يوې روپۍ د نوټونو په شان تفاضل جائز دې، لهذا څوک چه دبيع حالی په طريقې سره زيادت حاصلولې شی هغه دې دقرض په طريقې سره هغه زيادت حاصل کړی. نو دې ته له قرض نه فائده اخستل نه وئيل کيږی.

**رشيد احمد**

**دارالافتاء والارشاد**

**۳/ ربيع الاول ۱۴۱۲ هـ يوم الجمعة**

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ الْمُقَنطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ۗ ذَٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۖ وَاللَّهُ عِندَهُ حُسْنُ الْمَآبِ ﴿١٤﴾ ۞ قُلْ أَؤُنَبِّئُكُم بِخَيْرٍ مِّن ذَٰلِكُمْ ۚ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَأَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿١٥﴾ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا إِنَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿١٦﴾ الصَّابِرِينَ وَالصَّادِقِينَ وَالْقَانِتِينَ وَالْمُنفِقِينَ وَالْمُسْتَغْفِرِينَ بِالْأَسْحَارِ ﴿١٧﴾ ﴾

«۳ ــ ۱۴ نه تر ۱۷ پورې»

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴾ «۲ ۲۲۹»

# دنوټونو تبادله اوهُنډۍ «حواله»

## په مختلفو دورونو کښې د ځانګړو تحقیقاتو مجموعه

* دا رساله دنوټونو د بیعې او تبادلې اوهُنډۍ «حوالې» له کاروبارسره متعلق دمختلفو فتواګانو مجموعه ده چه په مختلفو ژبو کښې دمختلفو سوالونو په جوابونو کښې لیکل شویده

* له دغو فتوا ګانو څخه هره فتوی په یومهم علمی بحث باندې مشتمله ده له همدې کبله د عادة مطابق دبعضې فتواګانو د انتخاب په ځائ باندې ټولې فتواګانو را اخستل شوی دی. د فتوی د اهمیت په نظر کښې نیولو سره دهیڅ یوې فتوی د ترک کولو ګنجایش په نظر رانغی

* د دغه فتواګانو ترمینځ دبعضو تر مینځ ظاهراً یوڅه فرق په نظر راځی چه دهغې ترمینځ تطبیق یا یوې فتوی ته په بلې باندې ترجیح ورکول دفن خاوندانو لره مشکل دی،

* ترټولو زیات مدلل اومفصل تحقیق قطع نظردلیکنې دتاریخ له ترتیب څخه ترټولو آخر لیکل شوې دې

*د«کاغذی نوټ اوکرنسی» په رساله کښې په همدې مضمون باندې یومهم بحث شته. فلتراجع

## (۱) د مختلفو حکومتونو دنوټونو له یوبل سره تبادله

**سوال**: آیا دایرانی پیسې ((تومان)) بدلول په پاکستانی پیسې ((روپئ)) باندې په نساء سره جائز دی اوکه نه؟ سکه له دواړو طرفونونه د نوټ په صورت کښې ده، سره له دلیل نه یې ولیکئ؛

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نوټ ته اګرچه بعضو مال ویلې دې لیکن صحیح خبره داده چه له یوروپئ نه د زیاتو چه کوم کاغذ دې نو دا په حقیقت کښې مال ندې بلکه د مال رسید یا سند دې. نو لهذا د یو حکومت دنوټونو په خپل مینځ کښې د تبادلې د صحیح کیدلو لپاره دا ویلې شی چه په حقیقت کښې دا مبادله د مال په مال سره نده بلکه دا مبادله درسید په رسید سره ده. لیکن د دوه حکومتونو د پیسو په تبادله کښې دا تاویل نشی کیدلې، نو لهذا د ا د بیع الکالئ بالکالئ کیدلو په وجه په هر حال کښې ناجائزه ده . سواء کان متفاضلاً او متساویًا، یدًا بید او نسیئةً.

البته د یو نوټ بیعه جائزه ده . په دې کښې تفاضل هم جائز دې لیکن نسیئه پکښې حرامه ده له جهته د اتحاد دجنس نه.

د غتو نوټونو د تبادلې جواز د قرض اخستلو په صورت کښې جائز کیدلې شی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ / ربیع الاخر، سن: ۹۰ هـ.

## (۲) د تیر سوال په شان یوبل سوال

**السؤال**: ماتقول العلماء فی رجل باع عشر روبیات بتسعة تومان الی اجل معلوم والحال ان عشرة روبیات تباع بثمان تومان یدًا فی السوق والسعر غیر معین بل یزید وینقص والمراد بالروبیة والتومان القرطاس المسمی فی دیارنا باسکناس (نوت) هل الاسکناس دخل فی حکم الذهب والفضة ام لا؟ وفی الاولی هل التقابض شرط بین الاسکناسین اعنی الایرانی والپاکستانی اذا کان البیع یدًا بید ام لا؟ وقد یفهم من حاشیة شرح الوقایة ان بیع الاسکناس بالفلوس والذهب یجوز کیف ماکان وکذا لایشترط التقابض حیث قال واما (نوت) وهو القرطاس الرائج تحکمًا فیه مکتوب ثمنه ای عشرة او عشرون او الف فهو مهلك فی الروبیة علی الصحیح لانسبة له بالذهب فلایجوز بیعه بالروبیة الا متساویًا لما کتب فیه لکن التقابض لایشترط لان المساواة من حیث الثمنیة والتقابض مختصة بالذهب والفضة وهو لیس من هذا فیجوز بیعه بالفلوس والذهب کیف یشاء-الخ (ص: ۸۷، ج: ۳).

بینوا الصور کلها بالدلائل فانها من اهم المسائل.

## الجواب الاول من نيوتاؤن كراتشي:

فی الحدیث عن النبی صلی الله علیه وسلم اذا اختلف الجنسان فبیعوا کیف شئتم (الحدیث) یفهم من هذا الحدیث ان الجنس اذا اختلف یجوز البیع بالزیادة والنقصان لان التفاضل ممنوع عند اتحاد الجنس والنقود الرائجة بکل بلد تختلف بأخر فیکون فی حکم اختلاف الجنس فیجوز بیعه بالزیادة والنقصان وکذا لایشترط فیه التقابض لانه مختص بالذهب والفضة والنقود الرائجة غیر شاملة فیهما فلیس هو فی معنی بیع الصرف ویؤیده ماذکرتم من حاشیة شرح الوقایة، والله تعالی اعلم.

۱۸/جمادی الاولی، سنه ۱۳۹۰هـ.

## الجواب الثانی من دار العلوم کراتشی:

سکهء ایرانی را به سکهء پاکستانی معاملهء بیع وشراء کردن نسیئةً حرام وناجائز وربا است، البته به طریق استقراض جائز است، صورتش اینک مقدار معین از تومان بدهد وبگوید که بعد از مدت معین آن قدر سکه پاکستانی یا هندی میگیرم که باوقیمت تومان اداء شود.

۲۷ / جمادی الاولی ، سنه : ۱۳۹۱ هـ.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : الجواب الثانی صحیح وقول المجیب الاول ((والنقود الرائجة بکل بلد تختلف بأخر فیکون فی اختلاف الجنس)) قول بلادلیل، کیف ولو کان ذلك کذلك لجاز بیع الذهب بالدنانیر متفاضلاً.

ویشکل علی الجواب الثانی بأن الاستقراض انما یصح فی الوزنی والکیلی والعددی المتقارب والاثمان الرائجة فی الممالك المختلفة غیر متقاربة.

والجواب ان هذا الشرط لرفع الجهالة وهی فی مسئلتنا مرتفعة باصطلاحهما علی قدر معین، نعم ان اشترط المقرض الاداء فی بلد آخر تکون فیه کراهة السفتجة لجره نفع اسقاط الطریق بخلاف اشتراط المستقرض فانه یجوز لانه لیس فیه نفع المقرض ونفع المستقرض غیر ضار بل هو من مقتضیات الاستقراض. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۴/رجب، سنه: ۹۱هـ.

## (۳) د پاکستانی نوټ په ډالر باندې بدلول

**سوال**: کله چه حاجیان حج ته راځي نو حکومت هغوئ د روپئ په عوض کښې ډالر ورکوی. آیا

شرعًا د بیعه ده اوکه په وعدې باندې وفاء ده ؟ ځکه چه حکومت په نوټونو باندې دوعدې د وفاء تصریح کړیده اونوټ په هغه وعده باندې د وفاء حواله وی . دهغې دحقیقت له بیانولو څخه وروسته دا هم بیان کړئ چه آیا دحکومت دغه شان تبادله کول جائز دی اوکه نه ؟ اوآیا پدې کښې خو به د ربا شك او شبهه نه وی ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دحکومت په ذمه باندې پاکستانی روپۍ قرض ده اوهغه به اداء کوی . ډالر چه هغه د امریکا پیسه ده نو فلهذا دا ایفاء نده بلکه بیعه ده او پدې بیعه کښې ربا ځکه نشته چه ډالر د مال رسید ندې بلکه په خپله مال دې لکه څنګه یې چه په هغې باندې لیکلی دی . نو لهذا پدې کښې نساء نشته او تفاضل پکښې ځکه جائز دې چه ډالر او روپۍ وزنی ندی. فصار کبیع الفلس بالفلس . والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۴ صفر . سنه ۱۳۹۸ ھ.

## دهُنډی ((حوالې)) حکم

**سوال** : دحوالی دکاروبار شرعی حیثیت څه شې دې ؟ په فیروز اللغات کښې یی د هُنډی یا حوالې داسې تعریف کړې دې چه ((هغه رقعه یا کاغذ چه حواله کونکې یی د یوځائ نه په بل ځائ کښې د روپۍ ورکولو لپاره ورکوی)) دلته زمونږ له هُنډی ((حوالې)) نه مراد دا دې چه یو سړې دلته روپۍ واخلی اوهغه بیا د خط په ذریعې سره یو خپل سړی ته ولیکی چه هغه په خارجی ملك مثلاً ((برما)) وغیره کښی وی اوهمدا قسم کاروبار کوی. دلیك مطابق د ده هغه خپلوان هلته هغه روپۍ دورکونکی خپلوان ته د برما د ملك روپۍ د فیصلې مطابق چه هغه دلته اخیستونکې تعین کوی. اداء کوی. دلته اخستونکې سړې دا روپۍ هغو خلقو ته ورکوی چه دکومو د اداء کولو لپاره دهغه خپلوان وینا کړیده . هغه خپلوان د یو بل خپلوان روپۍ هلته اخلی چه کوم دلته روپۍ رالیږل غواړی . نو ترکومه ځایه پورې چه زما فکر دې نودا کاروبار خو غیر قانونی دې نو آیا غیر شرعی هم دې اوکه نه ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا کاروبار ناجائز دې . د ضرورت په وقت کښې به داسې تدبیر کیږی چه برما ته تلونکی سړی ته پاکستانی روپۍ په قرض ورکړی چه کله هغه برما ته ورسیږی نو د قرض غوښتونکی په یووکیل باندې به هغه پاکستانی روپی د برما د روپو په عوض کښې خرڅې کړی

## (۵) د پورتنی سوال په شان یو بل سوال

**سوال** : یو سړې په سعودی عرب کښې یو څه روپۍ د سعودی د نوټونو په شکل کښی له چانه قرض واخلی اوبیا چه پاکستان ته راشی نو دهغه سړی خپلوانو ته دهغه قرض په عوض کښې

پاکستانی نوټونه ورکړی، آیا دا صورت شرعًا جائز دې ؟ بله دا چه آیا په دې کبنې په زیاتوالی او کموالی سره لین دین کول سود دې او که نه ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا جائز دې پدې شرط چه په پاکستان کبنې د اداء کولو شرط د قرض غوښتونکی لخوا څخه وی د مقرض له خوا څخه نه وی .

بله دا چه د دې معاملې د جواز لپاره یو شرط دا هم دې چه دحکومت له قانون څخه به خلاف نه ری . کموالې اوزیاتوالې هم جائز دې لیکن دحکومت د مقرر شوی نرخ نه خلاف کول جائز ندی .

## (۲) د پورتنی سوال په شان یو بل سوال

دوه کسان په یو کاروبار کبنې شریك دی یو شریك په چمن کبنې دې اوبل شریك په ایران کبنې دې دهغوئ کاروبار دادې چه عامو خلقو ته د ضرورت مطابق پاکستانی یا ایرانی پیسې حواله کوی . مثلاً یو تاجر دا غواړی چه د ایران یو څه سامان واخلی او چمن ته یی راوړی خو هغه له چمن (پاکستان) نه ایرانی روپی له ځان سره نشې وړې ځکه چه یا به یی حکومت نیسی اویا به یی ترینه غله واخلی. نو له همدې کبله هغه پاکستانی شریك ته ورشی او ورته او وایی چه ته ماته په ایرانی شریك باندې حواله راکړه چه هغه ماته د پاکستان یو لاکهه روپی په ایران کبنې راکړی اوکه له هغه شریك سره دې پاکستانی روپی نوی نو ما ته دې هغې په عوض کبنې ایرانی تومان راکړی. پدې خبره باندې دغه پاکستانې شریك راضی شی اودلته له هغه نه یو لاکهه پاکستانی روپی واخلی اوهمدارنگه له هغه نه دوه سوه یا درې سوه روپی د مزدوری په نوم هم واخلی اوهغه ته د حوالې خط ورکړی اوهغه ملگری ته یی ور ولیږی. نوآیا د حوالې دا صورت جائز دې اوکه نه . اوآیا د مزدوری په نوم دغه دوه سوه یا درې سوه روپی اخستل جائز دی اوکه نه. او همدغه راز له دې دوه سوه یا درې سوه روپونه یوڅه نامعلومې پیسې دحوالې لیکونکی ته هم ورکول کیږی . نو د لیکونکی لپاره د دې پیسو اخستل جائز دی اوکه نه؟ اوکه چیرې کاتب دغه لیکل مفت کړی وی نوبیا به څه حکم وی آیا هغه به گنهگار وی اوکه نه ؟

**دویم صورت** : یو تاجر له ایران څخه پاکستان ته د راتللو اراده لری. هغه ایرانی تومان واخلی او ددې سړی ایرانی شریك ته ورشی اوله هغه نه په پاکستان کبنې د پاکستانی پیسو مطالبه وکړی . هغه شریك له دې سړی نه ایرانی تومان واخلی اوحساب ورته وکړی چه د دې په عوض کبنې ستا دومره پاکستانی روپی جوړیږی او بیا د دې چمن د ملگری په نوم خط ورکړی. کله چه هغه چمن ته راشی نو دچمن والا ملگرې هغه ته هغومره روپی ورکړی . نوآیا د حوالې دا صورت جائز دې اوکه نه او آیا د دې حوالې لیکونکې گنهگار دې اوکه نه ؟

**تنبیه** : د یادونې وړده چه په اول صورت کبنې په یولاکهه روپو باندې دوه یا درې سوه روپی

اخستل کیږی په هغې کښې ایرانی شریك ته حصه نه ورکول کیږی. او په دویم صورت کښې دمنافعو صورت دا دې چه که چیرته په بازار کښې سل ایرانی تومان په پنځوس (۵۰) پاکستانی روپو باندې اخستل کیږی نوحوالې والا دهغې په عوض کښې څلویښت روپۍ ورکوی . او پدې صورت کښې په منافعو کښې دواړه سره شریك دی.

**دریم صورت**: په قندهار کښې یو هندو افغانی پیسې اخلی اوزمونږ په نوم دحوالې خط لیکی ، مونږ د خط په رسیدلو سره دپاکستانی پیسې مطابق هغه ته پیسې ورکوو.

دویم صورت دا دې چه هغه هندو مونږ ته دخط یا ټیلی فون په ذریعه دا امر کوی چه په کویټه یا کراچۍ کښې دومره روپۍ فلانی ته ورکړی ، نوهغه روپۍ مونږ دهغه د اډر مطابق هغه خلقوته لیګو ، نو یوه میاشت وروسته چه مونږ دهغه د اډر اوفرمان مطابق څو لاکهه روپۍ خلقو ته ورکړی وی نوهغه مونږ ته د یو لاکهه په سر دوه سوه روپۍ راکوی او د دې پیسو داخستلو صورت دادې چه کوم خلق افغانستان ته ځی نوهغوئ له مونږ څخه د حوالې مطالبه کوی ، مونږ هغوئ ته دحوالې خط ورکوو او له هغوئ څخه پاکستانی روپۍ اخلو ، اودحوالې په وجه جدا دوه سوه یا درې سوه روپۍ ترینه اخلو ، هغوئ هلته لاړشی اودافغانی پیسو په حساب سره له هغه هندو نه پیسې واخلی ، نو آیا دحوالې دا صورت جائز دې اوکه نه ، اوهغه دوه سوه یا درې سوه روپۍ چه مونږ دحوالې اخلو نو آیا دحواله لیکونکی لپاره له هغې نه پیسې اخستل جائز دی اوکه نه ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا درې واړه صوتونه ناجائز دی. حواله سفتجه ده چه له هغې نه د لارې د خطر ساقط کیدل مقصود دی، نو له همدې کبله دا ربا ده. او د مزدورۍ په نوم چه کومې پیسې اخستلې شی هغه هم ښکاره سود دې. د دې حوالې کتابت برابره خبره ده که هغه په مزدورۍ سره وی اوکه بغیر له مزدورۍ نه وی په هر حالت کښې ناجائز دې.

## د تیرشوی سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: ډیر بنګله دیشیان په پاکستان کښې په مختلفو ادارو او په شخصی شعبو کښې کار کوی اوهر وقت دغه بنګله دیشی مامورین خپل ملك بنګله دیش کښې موجوده خپلوانو ته پیسې لیږی ، د پیسو لیګلو طریقه دا وی چه پیسو لیګلونکی خپلې پیسې د بانك له لارې د یو شمیر وجوهاتو له کبله نشی لیږلې . فلهذا هغه خپلې پیسې یو داسې سړی ته ورکوی چه دهغه کاروبار په بنګله دیش کښې وی . دغه سړې دا پیسې له بانکی نرخ څخه په زیات نرخ سره اخلی اودغه اضافی پیسې د فیس په نوم سره اخلی اوس دغه سړې وروسته د پاکستانې د پیسو له اخستلو نه په بنګله دیش کښې خپل ذمه وار سړی ته د خط یا ټیلی فون په ذریعه اطلاع ورکوی اوهغه ته حکم وکړی چه فلانی سړی ته دومره اندازه بنګله دیش روپۍ ورکړه . نوهغه سړې د ده دحکم

مطابق دغه پیسې هغه سړی ته په بنګله دیش کښې ورکوی ، د دې کار د سرته رسولو لپاره له دغه دوه کسانو څخه علاوه یوبل سړې د دلال په حیث کارکوی ، د دې سړی کار دا وی چه دې داسې خلق لټوی چه هغوئ بنګله دیش ته پیسې لیږل غواړی ، نو دغه دلال داسې قسم خلق راولی اوهغه له حوالې والا سره مخامخ کوی ، نوچه کله د دوئ ترمینځ دحوالې خبره اوتبادله وشی نو له هغې نه وروسته دغه دلال څو فیصده روپې د اجرت په طور اخلی .

اوس دلته دا یوڅو خبرې د وضاحت وړ دی :

۱ - آیا په ذکر شوی صورت کښې پاکستانی پیسې دبنګله دیشی پیسې په مقابل کښې په کموالی اوزیادت سره بدلول جائز دی اوکه نه ؟

۲- بنګله دیش ته پیسو لیږلو والا چه د فیس په نوم کومې پیسې اخلی نو آیا دا جائز دی اوکه نه ؟

۳ - دریم سړې (دلال) چه کومې پیسې دأجرت په طور اخلی نو آیا د ده لپاره دهغې اخستل جائز دی اوکه نه ؟ بینوا توجروا .

تسلی بښونکې جواب سره له دلائلو نه راکړئ او ثواب دارین حاصل کړئ . بینوا تؤجروا .

۲ / ربیع الثانی ، سنه : ۱۴۰۵ هـ .

**الجواب** : ((**د دارالعلوم کراچی لخوا څخه**)) **حامدًاومصلیًا.**

په موجوده حالات کښې نوټ یو ثمن عرفی جوړ شوې دې لهذا د یوملك دنوټونو بدلول د بل ملك په نوټونو باندې سره له تفاضل نه جائز دی، او دا تبادله ربا نده . البته د عقد (سودا) په وقت کښې دا خبره ضروری ده چه په کوم مجلس کښې تبادله کیږی نوباید هلته کم نه کم یوفریق په پیسې قبض وکړی ، د دویم فریق خوښه ده که غواړی نو اوس دې قبض کړی اوکه نه نو وروسته دې قبض کړی. د دې لپاره چه افتراق عن دین بدین لازم نه شی. او د وروسته قبض کولو په صورت کښې دې دا شك نه کوی چه د نسیئة بیع کیدلو په وجه دا ربا ده. ځکه چه نوټ د فلوس په حکم کښې دې و دفلوسو په بیعه او تبادله کښې شرعی مسئله داده چه د عاقدینو له جملې څخه باید یو فریق په فلوسو باندې قبض وکړې شی او د دویم فریق خوښه ده که وروسته یې اداء کوی اویا یې په هر ځائ کښې اداء کوی نو دهغه لپاره د دې خبرې ګنجائش شته، ځکه چه په مبیعه کښې که چیرته ثمن وی برابره خبره ده که هغه عرفی وی او طبعی وی د دې دبیعې په وقت کښې موجود کیدل ضروری ندی. ځکه چه دا د مالایتعین بالتعین له قبیلې څخه دی . بائع د اداء کولو په وقت کښې چه له کوم ځائ نه یې خوښه وی هلته یې لټولې شی او ورکولې یې شی. نو له همدې کبله علامه شمس الائمه سرخسی په مبسوط کښې اوعلامه علاؤ الدین حصکفی په در مختار کښې اوعلامه شامی په رد المحتار کښې د دې خبرې ګنجایش لیکلې دې اوهغه دا دې چه

واذا اشترى الرجل فلوسًا بدراهم ونقد الثمن ولم تكن الفلوس عند البائع جائزٌ لان الفلوس الرائجة ثمن كالنقود وقد بينا ان حكم العقد فى الثمن وجوبها وجودها معًا ولا يشترط قيامها فى ملك بائعها لصحة العقد كم لا يشترط ذلك فى الدراهم والدنانير (المبسوط، ص: ۲۴، ج: ۱۴).

باع فلوسًا بمثلها بدراهم او بدنانير فان نقد احدهما جاز وان تفرقا بلاقبض احدهما لم يجز كما مرّ (الدرّ المختار على هامش ردالمحتار، ص: ۱۸۳، ۱۸۴، ج: ۴).

لان ما فى الاصل لا يمكن حمله على انه لا يشترط التقابض ولو من احد الجانبين لانه لا يكون افتراقًا عن دين بدين وهو غير صحيح فتعين حمله على انه لا يشترط منهم جميعًا بل من احدهما فقط (الشامية، ص: ۱۸۴، ج: ۴).

ترکوم ځایه چه دیوملك دنوټونو د بل ملك له نوټونو سره تفاضلاً د تبادلې کولو قانونی تعلق دې، چونکه د هر اوسیدونکی له حکومت سره معاهده شوې ده چه هغه به دحکومت د قانون پابند وی ترهغه وخته پورې چه ترکومه پورې د شریعت له نصوصو څخه خلاف نه وی. اوچونکه حکومت د خارجی ملك د پیسو په باره کښې د بانك له لارې دلیږلو یو خاص نرخ ټاکلې دې نو لهذا له دې نرخ څخه خلاف کول اوکموالی، زیاتوالی سره تبادله کول قانونی جرم دې او دقانونی جرم مرتکب کیدل او په خطر کښې خپل ځان اچول د هیچا لپاره هم جائز ندی.

یاده دی چه دا د تبادلې عقد دې او پدې عقد کښې د عاقدینو دیوطرف لخوا څخه د فیس په نوم باندې زیاتې پیسې اخستل جائز ندی، البته دلال ته دهغه د کار اومشقت مزدوری شرعًا ورکولې شی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

**الجواب باسم ملهم الصواب** دغه جواب په دې لاند وجوهاتو سره صحیح ندې:

(۱) د یوې روپئ نوټ حقیقةً مال دې لیکن له هغې څخه د لویونوټونه دلاندې دلائلو په بناء باندې مال ندې بلکه د مال رسید دی.

۱- پدې باندې درسید مضمون لیکل شوې دې.

۲- یونوټ چه وسوزیږی یا وشلیږی دهغې د نمبر په ښودلو سره یوسرې له بانك نه نوې نوټ اخستلې شی. له بل هیڅ قسم مال سره هیچرې داسې معامله نه کیږی چه ستا په لاس کښې دې دغه مال زړو شی نو ته له حکومت اویا مال ورکونکی نه د نوی مال مطالبه وکړې. اګرچه بانك د یوې زړې شلیدلې روپئ نوټ هم بدلوی خو د دې لپاره نه چه دا رسید دې بلکه د دې لپاره چه حکومت دغه کاغذ سکه مقرر کړې دې چه هغه یوڅوکاله له استعمالولو څخه وروسته شلیږی نو لهذا بغیر له بدلولو نه د دې سګې بقاء ناممکنه ده.

۳- د نقود مالیه اګرچه وروسته له ناچل کیدلو نه دهغې قیمت کمیږی لیکن بالکل نه معدوم

کیږي، بلکه وروسته له ناچل کیدلو نه هم دهغې مالیت په خپل حال باقي پاتې وی. چه هغه دناچل کیدلو له مخکې حالت څخه ډیر فرق نلري. په خلاف د نوټ چه دسلو روپو دنوټ قیمت که بالکل معدوم نشی نو کالعدم خو ضروري وی. یعني د سلو روپو نوټ بیا په یوه روپۍ هم څوك نه اخلی

۴ - ما په خپله د حکومتی بانك څخه د دې خبرې معلومات وکړو نو په نتیجه کښې دا ثابته شوه چه له یوې روپۍ څخه غټ نوټونه په حقیقت کښې رسید دې. نو ځکه هغه قانونًا په ملك کښې له موجوده مالیت څخه زیات نشی شائع کولې.

۵ - دحضرت مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله په ژوند کښې هم دنوټ همدغه حیثیت وؤ چه کوم اوس دې . د دې باوجود هغوئ د نوټ مال کیدل ندی تسلیم کړی.

نو له همدې کبله دغه بیعه د بیع الکالئ بالکالئ کیدلو په وجه ناجائزه ده.

(۲) دا عقد د عقد البیع مع الشراء کیدلو په وجه فاسد دې ، شرط دا دې چه مشتری به د دې مبیعې عوض په بنګله دیش کښې فلانی سړی ته رسوی اودا شرط د مقتضاء عقل څخه خلاف دې

(۳) که چیرې دې معاملې ته قرض وه وئیل شی نو بیا هم جائزه نده ځکه چه دا سُفتجه ده ، په پاکستان کښې د قرض ورکول اوپه بنګله دیش کښې دهغې بیا اخستلو له شرط څخه مُقرض دلارې له خطر څخه دځان بچ کولو فائده واخستله . والله سبحانه وتعالی اعلم ۵ / جمادی الاولی ، سنه ۱۴۰۵ ه.

د دې مسئلې دنور تحقیق او تفصیل او د دارالعلوم په جواب کښې په ذکر شوو فقهی عباراتو باندې بحث د «کاغذی نوټ اوکرنسی» په رساله کښې شته (مرتب).

## (۷) د تیرشوی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**: سفتجه ته علماء کرام مکروه وایی. نوآیا په موجوده زمانه کښې ډرافټ او منی آرډر په سفتجه کښې داخل دی اوکه نه ؟ په قرض کښې چه سفتجه شرط نکړې شی نو فقهاء کرام ورته جائز وایی. کما فی الشامیه باب الحواله. خو دا هم وایی چه «المعروف کالمشروط» دډرافټ او منی آرډر حقیقت هم همدا دې ، پدې شرط باندې پیسې ورکول کیږی چه په فلانی ښار کښې فلانی سړی ته ورکړې شی. په دې دواړه کښې عموم بلوی ده، آیا د دې کوم حل علماء کرامو را ویستلې دې اوکه نه؟ که چیرې د خپلو اکابرو علماء کرامو په کتابونو کښې د دې تحقیق وی نو د کتاب حواله راته ولیکئ . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دمنی آرډر تفصیلی حکم په امداد الفتاوی دریم جلد ، کتاب الربوا کښې شته. اودهغې خلاصه داده چه:

"دې ته د پیسو رسولو اجاره نشی ویلی کیدلې ، اول د دې په خاطر چه په ډاکخانه کښې بعینه

ورکړې شوې پیسې نه رسیږی، او په اجاره کښې بعینه هماغه څیز رسول ضروری دی . دویم دا چه د ډاکخانې محکمه د دې پیسو ضامنه وی او په اجاره کښې په اجیر باندې ضمان نشته

اوکه چیرې د صاحبینو د قول مطابق د اجیر د تضمین ګنجایش راوستلې شی نو بیاهم د اجارې د عدم صحت لپاره اول دلیل کافی دې. نو په همدې خاطر دا معامله د قرض ده او د منی آرډر فیس ته دلیکلو دخط اودهغې د لیګلو اجرت وئیلې شی . د دې باوجود دا دسفتجې له کراهت نه هم خالی ندې

له دې څخه وروسته د یوې استفتاء په جواب کښې د ذکر شوی تفصیل مطابق دمنی آرډر پیسو ته قرض اودهغې فیس ته دکتابت او لیږلو اجرت وئیلې شوې دې، لیکن په هغې کښې د سفتجه د اشکال څه ذکر ندې شوې، نو له دې څخه دا معلومه شوه چه بالاخره دا اشکال حل شوې دې

د بنده په نظر چه هرکله له قرض څخه مقصود د لارې د خطر ساقط کیدل نه وی بلکه صرف بل مقام ته رسول مقصود وی نو دا په سفتجه مکروه کښې داخل ندی. اګرچه دا دلارې د خطر سقوط لره مستلزم دې. لیکن په مقصود او لازم کښې فرق شته چنانچه په مقامی قرض کښې هم د مال دحفاظت نفع لازمه ده ، د دې باوجود دا په ((**کل قرض جر نفعًا فهو ربا**)) کښې نه داخلیږی اونه ورته حرام وئیل کیږی

په موطاء امام مالك ، کتاب القرض کښې روایت دې چه دحضرت عمر رضی الله تعالی عنه ځامنو عبدالله او عبیدالله رضی الله تعالی عنهما یولښکر ته تشریف یوړو. کله چه راواپس کیدل نو له حضرت ابو موسی اشعری رضی الله تعالی عنه سره مخامخ شول، ابو موسی اشعری رضی الله تعالی عنه په دغه وقت کښې د بصرې امیر وؤ . هغه ورته وه وئیل چه زه تاسوته په دې طریقې سره ګټه رسول غواړم چه تاسې د بیت المال پیسې له ما څخه قرض واخلئ او پدې باندې د تجارت سامان واخلئ اوچه کله مدینې منورې ته لاړشئ نو دغه سامان هلته خرڅ کړئ . ګټه یی تاسې واخلئ اواصل مال بیت المال ته ورکړئ . پدې معامله کښې هم له قرض څخه دلارې د امن فائده حاصله شوه لیکن دلته چونکه دا مقصود نه وؤ بلکه فقط دوئ دواړو ته دتجارت فائده رسول مقصود وؤ نو له همدې کبله دا مکروه سفتجه نده .

نن سبا د ډاکخانې مامور خط نه لیکی بلکه دپیسو ورکونکې په خپله دغه فارم اوخط لیکی ، نو پدې صورت کښې دغه پیسې د آرډر فیس . په رجسټر کښې د درج کولو او د رسید قطع کولو او د فارم یا خط لیګلو اجرت نه ګڼل کیږی. بلکه پدې کښې هم کوم ممانعت په نظر نه راځی چه د منی آرډر فیس دقرض د پیسو له یوځایٔ نه بل ځایٔ ته د رسولو مزدوی وګرځولې شی

د بنده د ذکر شوی رائی تائید د شرح وقایه په حاشیه «تکملة عمدة الرعایة» کتاب الحواله کښې دمولانا محمد صاحب نائب رحمه الله له تحقیق څخه هم کیږی. دغه محشی په دې مقام

کنبې د منی آرډر او دهغوئ د نورو اقسامو تفصیل او دهغې احکام بیان کړی دی، ونصه

ويجب ان يعلم ان التى فى زماننا المسماة فى لساننا ((بهندى منى آردر)) فان قلت علة الكراهة هى الدفع سواء كان لسقوط الخطر اوللوصول قلت بلى ولكن الخطر مما لايجوز الكفالة به ولا اجر عليه لانه ليس فى وسع الانسان الا دفع اللصوص والحفظ انما بفضل الله تعالى واما الايصال تحل الاجرة عليه ويمكن العهدة عليه فلايلزم من النهى عن نفع سقوط الخطر كراهة اجرة الايصال لكن الاشكال فى تصويره وتقريره اعنى فى اى عقد يحسب هى ليأخذ حكمه قلت انها حوالة وانت علم ان الحوالة قد تكون بمعنى الوكالة وقد تكون ان يحتال للدائنو قد يحتال لغير الدائن و كذلك المحتال عليه قديكون مديونًا للمحيل وقد لايكون وقد يعطى المال من عنده ثم يأخذ من المحيل وقد يأخذ من المحيل ثم يؤدى الى المحتال له وقد يربح فى المال الذى اخذ من المحيل ويكون الربح حلالا له كما مرّ فى الكفالة فاذا دفع المحيل مالاً الى المحتال عليه وقال ادفعه الى فلان فى البلد الفلانى ولك اجرة فى ايصاله وحسابه فاى محذور يلزم ليحكم بالمنع ولا رواية ان الوكيل او المحتال عليه حرام عليه الاجرة والاخذ من الموكل والمحيل ان عمل فيه عملاً فلا بأس به ان شاء الله تعالى لاسيمًا فى هذا الزمان ان نجزم بمنعه تعطلت الامور و كسدت التجارات وانقلبت الاحوال من اليسر الى العسر فلا يضاق على الناس ولايفتى بالفتنة بمجرد التاويل والتعبير فيجب ان لايسمع قول قائل بلا امر فاصل ونص ناطق وبعد هذا فاعلم ان الهُندى الذى حصل لنا علمها الى الآن على خمسة اقسام:

الاولى: (منى آردر) وهو ان يدفع الدراهم الى الحكومة ويكتب ان يدفعه فى البلد الفلانى الى الفلانى فاعوانها يأخذون الدراهم هنا وشيئًا زائدًا لاجرتها ثم يدفعون الى المرسل اليه وان لم يأخذ هو او لم يعرف مكانه يردون الى المرسل.

والثانية: هوما يعاملون به الصيارفة ويأخذون الدراهم ههنا مع شئ زائد اجرتهم ثم يعطون سندًا مكتوبًا فيه ذلك الدراهم فيرسل الدافع السند الى من ارسل اليه الدراهم وهو يذهب بالسند الى دار الوكيل الأخذ الذى فى بلده ويأخذ ماله عنه.

والثالثة: ان يدفع درهمًا مؤجلاً الى شهر او شهرين ويكتب مثل ما قلنا. فلا يعطى الا بعد الاجل.

لا بأس بذلك لكن المحذور فيه امران: احدهما ان يرد شيئًا على المحيل للاجل وثانيهما ان يأخذ المحتال عليه عن المحتال له شيئًا ان طلب هو قبل الاجل وكل ذلك، لكنه لايتعلق بالعقد ما لم يشترط.

والرابعة: ان يأخذ رجل مالاً من الأخر واحال به على اٰخر مؤجلاً ويكتب مثل ما قلنا لكن المحيل يدفع الى

**المحتال عليه شيئًا سوى الأخر والمدفوع حرام.**

**والخامسة: ان يكتب رجل حوالة على الأخر ويدفعه الى رجل فيطلب هو من المكتوب اليه واذا قبض منه يعطيه واخذ اجرته لا بأس بكلها الا ما صرحنا بكراهته لكن الاحتيط فى مثل ذلك المعاملات من الربوا واجب -هذا ما ظهر لى فى المقام بالهام الملك العلام فخذها وتشكر (تكملة عمدة الرعاية، ص:۱۱۹، ج:۳).**

په دې دور کښې د رسيد نوټونو دا معامله آسانه کړيده، په منی آرډر کښې پيسې نه ورکول کيږی بلکه د دې ليکلو والاد پيسو رسيد ورکوی او مرسل اليه ته هم دهغه په نوم رسيد ورکولې شی.دلته مال نشته بلکه دا درسيد په عوض کښې د بل رسيد معامله اوبيعه ده، چونکه رسيد په خپله مقصود ندې بلکه دا يوه علامه او وثيقه ده نو له همدې کبله دهغې درسولو په اجاره کښې د رسيد بدل اوعوض مضر ندې، ځکه چه دا مال ندې چه بعينه د همدې رسول دې لازمی شی، د دې داجارې حيثيت داسې دې لکه چه دکوم پيغام په رسولو باندې اجاره وی، بلکه داسې ويل به ډير مناسب وی چه دمنی آرډر ليکل شوې فارم په خپله رسيد دې او د دې مرسل اليه ته په رسولو باندې اجاره مينځ ته راځی . **والتضمن يقع على قول الصاحبين رحمهما الله تعالى.**

مطلب دا چه د رسيدی نوټ د ليږلو په صورت کښې دډاکخانې محکمې ته څوك مال قرض نه ورکوی، بلکه هغه له ابتداء نه په حکومت باندې قرض دې، د دې قرض مرسل اليه ته سپارل مقصود دی. له همدې کبله پدې باندې د سفتجه سوال نه واردیږی.

که چيرې بالفرض دې ته سفتجه وه وئيل شی نو دامام احمد رحمه الله په نيزد باندې سفتجه جائزه ده، د عموم بلوی اوسختو حاجتونو په نظر کښې نيولو سره په بل مذهب باندې د عمل کولو ګنجايش شته.

حضرت حکيم الامت قدس سره ليکی چه: ‹‹که چيرې د سفتجه د جواز طرفته يوامام هم تلل کړی وی نو د ضرورت په خاطر په هغې باندې عمل کولو ته جائز وئيل کيږی››.

امکان لری چه حضرت قدس سرّه ته د امام احمد رحمه الله قول مخې ته راغلې وی له همدې کبله يې د ليکنې په آخر کښې دسفتجه ذکر ندې کړې.

**قال ابن قدامة رحمه الله تعالى: وان شرط ان يعطيه اياه فى بلد آخر وكان لحمله مؤنة لم يجز لانه زيادة وان لم يكن لحمله مؤنة جاز، وحكاه ابن منذر عن على وابن عباس والحسن بن على وابن الزبير وابن سيرين وعبد الرحمن بن الاسود وايوب السختيانى والثورى واحمد واسحاق وكرهه الحسن البصرى وميمون ابن ابى شبيب وعبدة بن ابى لبابة ومالك والاوزاعى والشافعى لانه قد يكون فى ذلك زيادة، وقد نص احمد على ان من شرط ان يكتب له بها سفتجة لم يجز ومعناه اشتراط القضاء فى بلد آخر وروى عنه جوازها لكونها مصلحة لهما جميعًا وقال عطاء كان**

ابن الزبير يأخذ من قوم بمكة دراهم ثم يكتب لهم بها الى مصعب بن الزبير بالعراق فيأخذونها منه فسئل عن ذلك ابن عباس فلم ير به بأسًا و روى عن على انه سئل مثل هذا فلم ير به بأسًا وممن لم ير به بأسًا ابن سيرين والنخعى رواه كله سعيد وذكر القاضى ان للولى قرض مال اليتيم فى بلد ليوفيه فى بلد أُخرى ليربح خطر الطريق والصحيح جوازه لان فيها بل بمشروعيتها ولان هذا ليس بمنصوص على تحريمه ولا فى معنى المنصوص، فوجب القاؤه على الاباحة (المغنى، ص:۲۴۰، ج:۴).

وفى شرح المهذب : ولا يجوز ان يقرضه دراهم على ان يعطيه بدلها فى بلد آخر ويكتب له بها صحيفة (كمبيالة) فيأمن خطر الطريق ومؤنة الحمل وهو مذهبنا وخالفنا احمد وغيره مستدلين بأن عبدالله بن الزبير رضى الله تعالى عنهما كان يقترض ويعطى من اقرضه صحيفة يأخذ قيمتها من مصعب اخيه واليه على العراق (شرح المهذب، ص:۱۷۲، ج:۱۳) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۵ / ربيع الثانى ، سنه : ۱۴۰۰ هـ .

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ﴾

**که چیرې تاسو د سود معامله پرې نښودله د الله پاک اودهغه د رسول له طرف نه دجنګ اعلان واورئ**

# له سود څخه پاک

# بانکی نظام

## دجدیدو مسائل دتحقیق دمجلس دفکر نتیجه

دبانك له سود څخه د پاکولو او له سود څخه دپاکې تجارتی اداري دمینځ ته راوستلو په نظام باندې دسوچ کولو لپاره په شعبان کال ۱۴۱۲ کښې **د جدیدو مسائلو د تحقیق دمجلس** لخوا څخه یو مجلس په دارالعلوم کراچی کښې وشو چه په هغې کښې دموجوده حالاتو په نظر کښې نیولو سره داسلامی قوانینو په رڼا کښې وروسته له ډیر بحث او تحقیق څخه مهم تجویزونه او پیشنهادات ولیکل شول

# دحالاتو هنداره

د پاکستان له استحکام څخه وروسته د دې ملك د سود له لعنت څخه پاکول، مسلمانانو لره د سود له دنیوی او اُخروی عذاب څخه نجات او د سودی لعنت نه دپاك تجارتی نظام قائمولو مسئله د علماء کرامو دتوجه اوفکر مرکز دې.

د سودی نظام زرتر زره بدلول ځکه مهم دی چه یو مسلمان دغه لعنت دیو ساعلت لپاره هم نشی برداشت کولې. او دهغې وجه داده چه په دې باندې په قرآن اوحدیث کښې ډیر سخت وعیدونه راغلی دی چه دهغې تفصیل زما په رساله «بشارة اللظی لآكل الربوا» کښې شته دې. دلته له هغې څخه د مثال په توګه یو څو مثالونه ذکر کیږی:

۱ - قال الله تعالی: ﴿فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ﴾

یعنی که چیرې تاسو د سود معامله پرې نښودله د الله پاك اودهغه د رسول له طرف نه دجنګ اعلان واورئ.

له سود نه علاوه په بله هیڅ یوه لویه ګناه باندې دالله تعالی اودهغه درسول صلی الله علیه وسلم له طرف نه دجنګ اعلان ندې شوې.

۲ - لعن رسول الله صلی الله علیه وسلم آكل الربا وموكله وكاتبه وشاهديه وقال هم سواء (رواه مسلم).

یعنی رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په سود خوړونکی اوپه هغه چا چه په بل چا سود خوری او په سود لیکونکی او دسود په ګواهانو باندې لعنت ویلې دې او فرمایلی یی دی چه دا ټول برابر دی.

۳ - قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: درهم ربا يأكله الرجل وهو يعلم اشد من ستة وثلاثين زنية (رواه احمد).

یعنی د سود یودرهم خوړل له شپږ دیرش زناګانو څخه بدتر دې.

۴ - قال رسول الله صلی الله علیه وسلم الربا سبعون جزءً ايسرها ان ينكح الرجل أمه (رواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان).

یعنی په سود کښې اویا ګناهونه دی، ترټولو سپکه ګناه داده چه څوك له خپلې مور سره زنا وکړی.

علماء کرامو په انفرادی اواجتماعی توګه ټولو دسود ادارو ته له سود څخه پاکې اوجائزه طریقې په دوامداره توګه ښایی اود دغې ادارو مشران دا خبره هم خپروی چه «مونږ خپل سودی نظام د علماء کرامو د پیشنهاداتو مطابق په خالص شرعی نظام سره بدل کړې دې».

لیکن وروسته چه کله حقیقت څرګند شو نودا ډیره د افسوس خبره ده چه داخلق د پخوا پشان هماغه سودی نظام چلوی او دعلماء کرامو د پیشنهاداتو د اشتهار خبره صرف دعوامو د دوکه کولو لپاره کوی.

علماء کرام په انفرادی او اجتماعی توګه امت مسلمه د سود له لعنت نه د بچ کولو اودهغوئ د دنیا اوآخرت له عذاب نه دنجات لپاره د سود د لعنت په ځائ دشرعی نظام د پیشنهاداتو د ترتیب کولو لپاره مسلسل ډیر جدوجهد کوی او خپل ډیر مهم دینی کارونه پریږدی اوپدې هکله خپل قیمتی وقتونه لګوی، اوډیر دماغی مشقتونه برداشت کوی ، او د سودی ادارو مشران د سود د لعنت په ځائ دشرعی نظام د قائم کیدلو په وړاندې قسماقسم خنډونه راپیدا کوی او په ډیرې چالاکۍ سره د علماء کرامو نومونه استعمالوی اوامت مسلمه ته دوکه ورکوی. . د دې خبرې داستان خو ډیر اوږد دی له همدې کبله دلته دیوڅو مثالونو په ذکر کولو سره اکتفاء کوو :

۱ - یو محترم د یو ډیر لوئ بانك رئیس وو هغه له خپلې وظیفې نه استعفاء ورکړه او «له سود څخه دپاك بانکی نظام» چلولو اشتهارات یی ورکړل. د هغې دکارکردګی دصحت او جواز لپاره یی له ما څخه پوښتنه وکړه . ما دهغه د قواعدو او ضوابطو کتابچه را وه غوښتله اوهغه مې وکتله چه . نو معلومه شوه چه هغه هم په سودی اساس باندې جوړه شوې ده ، پوښتنې کوونکی زما جواب هغه ته وښودلو نو هغه زما څخه د خالص شرعی نظام اصول او پیشنهادات طلب کړل. ما د انفرادی لیکلو په ځائ دغه کار دجدیدو مسائلو د تحقیق مجلس ته وړاندې کړو . د دې مقصد لپاره د تحقیق دمجلس څو غونډې وشوې او دمجلس غړو علماء کرامو په ډیر تکلیف سره یوڅه پیشنهادات ترتیب کړل. مونږ به په هره غونډه کښې هغه محترم هم شریك کولو د دې لپاره چه که چیرته کوم پیشنهاد دقبلولو وړ نه وی نو په هغې کښې به په هماغه وقت کښې اصلاح کیږی. هغه دغه ټول پیشنهادات اوتجویزونه دعمل قابل وګڼل او وې منل اوپه ورین تندی اوفراخه سینې سره یی قبول کړل. او دهمدې مطابق یی د بانکی نظام د چلولو وعده هم وکړه. لیکن بیا یی پدې باندې عمل ونکړو . اوهغه سابقه سودی نظام یی خپل حال وساتلو او دهمدغه علماء کرامو له سود نه دپاك بانکی نظام اشتهار به یی کولو .

زما خیال دا وو چه دغه تجویزونه به دتحقیق دمجلس له غړو سره محفوظ وی لیکن افسوس چه له هغوئ سره ونه موندل شول .

۲ - په ۱۲ / اپریل ، کال (۱۹۸۰) کښې د پاکستان دحکومت اسلامی مشاورتی مجلس د بانك د اصلاح په سلسله کښې یوڅه سوالونه راولیږل، مونږ په ۲ دویم د رجب کال ۱۴۰۰ هـ کښې هغوئ ته دهغې جوابونه ولیږل لیکن ددغه اسلامی مشاورتی مجلس دډیروکوششونو باوجود بانك هغه قبول نکړل

ما د دوه وجوهو له کبله د خپلو جوابونو دشائع کول ضرور ونه ګڼل:

اول دا چه په دغه سوالونو کښې جامعیت اوعمومیت نه وو نو په همدې اساس په جوابونو کښې هم د پوره شرعي نظام تفصیل نه وو.

دویم دا چه د دغې لیکنې په وقت کښې دسودی نظام کوم ماهر زمونږ مخې ته نه وو نو په همدې اساس دا فیصله نشوه کیدې چه آیا د سودی نظام سربراهانو ته پدې باندې کوم اشکال شته او که نه؟

۳ـ په شعبان کال (۱۴۱۲) هـ کښې د بانك د اصلاح لپاره دجدیدو مسائلو د تحقیق مجلس هغه غونډه وشوه چه دهغوئ کارکردګی په همدې رساله کښې خپریږی، پدې کښې د پاکستان دبانکداری دکونسل دوه غړی شریك کړې شوی وو، د پیشنهاداتو په لیکلو کښې دهغو تر ډیره حده پورې لحاظ ساتل شوې وو، هغوئ په بعضو امورو کښې په دې خبره ډیر تاکید کولو چه بانك زیات نه زیاته فائده ورسیږی. علماء کرامو فقط دهغوئ دلحاظ په خاطر باندې دهغوئ بعضې نامناسب تجویزونه هم قبول کړل، برسیره پردې له بانك څخه تراوسه پورې دسود د لعنت دختمولو هیڅ اثرات نه ښکاری، الله پاك دې دغې قوم ته هدایت وکړی، **فالیه المشتکی وهو ولی التوفیق ولاحول ولاقوة الا به.**

**رشید احمد**

**۲۴ / ذیقعده، سنه (۱۴۱۳) هجری**

## له شرکت سره متعلق یوڅو نکتې

۱ـ د شرکت له شروع سره متعلق دا اصول وو:

«په ابتداء کښې بانك له خپل عمیل (شریك) سره دا وعده کوی چه د مشارکة په موده مثلاً په شپږو میاشتو کښې به هغه په مجموعی توګه څومره پیسې د شرکت په اساس عمیل ته ورکوی چه دهغې په وجه عمیل ته دا حق حاصل شی چه هغه د مقرر شوی وقت په دوران کښې منظورې شوې پیسې تر یو حده پور وقتاً فوقتاً دشرکت دمختلفو پیسو په اساس اخلی.

دعمیل ددغه حق شروع به له هغه وقت څخه کیږی له کوم وقت نه چه دمعاهدې سندونه ودستاویزات تیاریږی.

البته د نفع اونقصان دتقسیم کولو په اعتبار سره به دعملی مشارکت شروع له هغه وقت څخه کیږی چه کله هغه عملاً په اول ځل دشرکت په اساس باندې خپلې پیسې له بانك څخه راوباسی»

۲ـ په اصل کښې بانك اوعمیل دواړو ته داحق حاصل دې چه کله وغواړی شرکت فسخ کولې شی لیکن بانك په خپله ذمه باندې داخبره لازم کولې شی چه هغه بغیر له کوم معقو عذر نه دکال تر

ختميدلو نه وړاندې به په يو طرفى ډول عقد نه فسخه کوى، ليکن دهرکال په ختميدلو سره به هغه ته دا حق حاصل وى چه هغه د آينده لپاره دغه شرکت فسخ کړى، اگرچه دمعاهدى موده له يو کال نه زياته مقرر شوې وى.

د دې تجويز مقصد دا دې چه که چيرې ديو يا دوه کالو له تجربې څخه دعميل دنا اهلى احساس وشى نو له راتلونکى نقصاناتو څخه به خلاص شى، اوشرکت به فسخ کړى اوهماغه وقت کښې به منافع او سرمايه ټول تقسيم کړى.

۳ - کله چه بانك له يو شرکت يا کمپنۍ سره مشارکت کوى نو د فريقينو د سرمايى دمقدار تعيين کوى، يا خود ارنگه کيږى چه دکمپنۍ يا شرکت په بيلنس شيټ کښې دکمپنۍ چه کومه سرماه ښودلې شوى وى هغه په شرکت کښې دکمپنۍ لګولې شوې سرمايه ګڼل کيږى.

اويا فريقين په خپل مينځ کښې په خوښۍ سره دکمپنۍ د اثاثو دتقويم په بنياد د کمپنۍ د سرمايى مقدار مقرر کړى.

البته د سرمايى دغه تعيين به په هغه صورت کښې وى چه کله بانك د کمپنۍ په پوره کاروبار کښې شريك کيږى، خوکه بانك د کمپنۍ دکاروبار په کومه مخصوصه حصه کښې شريك کيږى نو پدې صورت کښې به د کمپنۍ د سرمايى تعيين دهغه اثاثو د تقويم په بنياد کيږى چه کومې په شرکت کښې شاملې کړې شوى دى.

له بلې خوا دبانك حصه (راس المال) به هغه نقدې پيسې وى چه هغه بانك عميل ته دشرکت په طور سره ورکړى دى.

## په فائده او تاوان کښې د شرکت قاعدې

۴ - د دواړو خواوو ترمينځ دفائدې تقسيم کيدل به د خپل منځى معاهدې مطابق دواقعى حاصلې شوې فائدې د فيصدى په حساب سره وى. اوفريقين به دخپلې خپلې مصرف شوې سرمايى په نسبت سره په نقصان کښې شريك وى.

۵ - البته بانك به له خپلو مختلفو شريکانو سره په نفع کښې مختلفې اندازې ټاکى، دمثال په توگه له چا سره به دحاصلې شوې فائدې لس فيصده ټاکى اوله چا سره به دولس فيصده وغيره.

۶ - په يو وقت کښې حکومتى بانك دخپلو مالى اصولو مطابق په تجارتى بانکونو باندې دا اندازه لازموى چه هغوئ به له کوم قسم شريکانو څخه څو فيصده فائده اخلى.

په غير سودى نظام کښې د شرح سود په ذريعه د دې تعيين نشى کولې. البته هغوئ به خپلو مختلفو شريکانوته زيات نه زياته فائده مقرروى. د مثال په توگه دا پابندى لګولې شى چه بانك له خپل فلانى قسم شريك سره دشرکت د معاملې د طى کولو په وقت کښې له لاسته راوړې شوې

فائدې نه زیات نه زیات لس فیصده فائده دخپل ځان لپاره مقررکولې شي. اوله فلانی قسم شریك نه دلاسته راوړې شوې فائدې دولس یا پنځلس فیصده فائده د خپل ځان لپاره مقرر کولې شي.

البته د نقصان په صورت کښې به دشرکت دغه قاعده دتغییر وړ وی، هرسړې به دخپلې لګول شوې سرمایې په اندازه دنقصان ذمه وار وی.

په دغه قاعده کښې حکومتی بانك هیڅ تغیر نشی کولې.

۷ - په مشارکة کښې دعمیل د کارکردګی له پیچیده کیدلو نه د بچ کیدو لپاره به حتی الامکان دا خبره تاکلې شی چه شرکت به په پوره کاروبار کښې نه وی بلکه دهغې په یوخاص حصه کښې به وی. مثلاً د څیزونو په خرڅولو او اخستلو کښې، او ددغه څیزونو د خرڅولو اواخستلو په نتیجه کښې چه کومه فائده لاسته راځی نوپه هغې کښې چه کومه فیصدی مقرره شوې ده هغه به د دواړو ترمینځ تقسیم کیږی.

۸ - که چیرې په کاروبار کښې نقصان دعمیل د بد دیانتی، له خپل حد څخه دتیری اویا د وعدې دماتولو په نتیجه کښې وشو نو دغه ټول نقصان به په عمیل باندې وی، بانك به پدې کښې د نقصان ذمه وار نه وی، د دغه قسم معاملې صفایی اوفیصله به د دریم سړی په ذریعه کولې شی، که چیرې دریم سړې یعنی ثالث دا فیصله وکړی چه په مشارکت کښې په اصل کښې فائده شوې ده اوهغه عمیل پټه کړې وه نو پدې صورت کښې به بانك دفائدې مقرر شوې فیصدی حقدار وی.

دا خبره دې واضحه وی چه دممکنه ګټې نه کیدل اویا په هغې کښې کمې به نقصان نشی ګڼلې.

۹ - که چیرته بانك ته دا خبره معلومه شوه چه دهغه عمیل یا شریك بد دیانته او زیات غافل او بې پروا دې اویا د معاهدې ماتولو مرتکب کیږی نو بانك د شرکت لپاره له مقرر شوی وخت نه مخکې شرکت فسخ کولې او خپله سرمایه واپس اخستلې ش. په دې صورت کښې به د دریم کړی یا ثالث په ذریعه ترهماغه وخته پورې د نفع او نقصان تعیین وکړې شی او پدې کښې به هم په څلورم نمبر کښې د ذکر شوی تفصیل مطابق حصه دار وی.

۱۰ - د دې خبرې دضمانت داخستلو لپاره چه عمیل یا شریك په حسابونو کښې داسې جعل کاری ونکړی چه دبانك د فائدې څخه خلاف وی. بانك د شراکت په معاهده کښې دا شرط لګولې شی چه هغه د خپلې سرمایه کارئ تر پنځه اویا (۷۵) فیصده حصې پورې خپلې مصرف کړې شوې پیسې دعمیل په یوه ادنی حصه باندې بدلولې شی. د دې تبدیلی قاعده به هم دشراکت د کولو په وقت کښې کولې شی. لیکن بانك به دا تر هغه وخته پورې دغسې نه کوی ترڅو پورې چه شریك د دغې تفصیل ۳/۲ نفع ګټی چه هغه په ابتدائی اندازو کښې ښودلې شوې وه.

۱۱ - دلسم نمبر فقرې مطابق بانك چه کومې حصې حاصلې کړې وی دهغې د اخستلو حق به د عمیل پخوانو حصه لرونکو ته حاصل وی. که چیرته هغوئ دغه حصې واخلی نو داخستلو په وقت

کښې به دبانك او حصه لرونکو شريکانو په خپل منځی اتفاق سره ددغې حصې قيمت مقررکولې شی

## مؤجله مرابحه

۱۲ - چه په کومو معاملاتو کښې په شرکت يا مضاربت عمل ممکن نه وی نو په هغې کښې به په مؤجله مرابحه يا د وروستئ نيټې په ګټه باندې دعمل کولو پيشناد وړاندې کيږی . دهغې طريقه داده چه مثلاً يو دهقان له بانك څخه د ترکتور د اخستل لپاره يوڅه پيسې قرض اخستل غواړی. نوبانك به هغه ته د پيسو د قرض ورکولو په ځائ په خپله ترکتور اخلی او د مؤجلې ګټې په په شکل يې به په هغه باندې خرڅوی چه دکومې منافع هغه د خريدارئ د پيسې مطابق دځان لپاره خاص کوی . دې ته د ((مارك اپ)) په ځائ باندې ((کاسټ پليس)) ويل کيږی.

۱۳ - د ((کاسټ پليس)) د تعين لپاره به هغه د اداء کولو د نيټې کموالې اوزياتوالې به نظر کښې ساتی. يعنی که دپيسو اداء کول په لږه موده کښې وؤ نو د ((کاسټ پليس)) دفائدې اندازه به کمه ساتی اوکه چيرته د اداء کيدلو نيټه اوږده وه نو بيا به دغه ((کاسټ پليس)) زيات مقرر کولې شی. ليکن کوم وقت چه د ده او دهغه عميل تر مينځ بيعه کيږی نو بايد په هماغه وقت کښې د پيسو د اداء کولو ټوله موده او له کاسټ پليس سره مکمل قيمت معين کړې شی.

۱۴ - د بانك لپاره په خپله د ټولو مطلوبه څيزونو په خپله اخستل سخت او مشکل کار دې نو له همدې کبله هغه به د دغه مطلوبه څيزونو د اخستلو لپاره خپل عميل له خپل طرف نه وکيل جوړ کړی اودغه عميل به بيا هغه څيز مثلاً ترکتور دبانك د وکيل په حيث واخلی او قبض به يی کړی او وروسته له خريداری څخه به بانك خبر کړی. چه ما د وکالت په اساس ستاسو لپاره دغه ترکتور واخستلو اوقبض مې کړو . اوس دغه ترکتور له تاسو څخه د خپل ځان لپاره اخستل غواړم[1].

نو بانك به په همدغه ځائ او وقت کښې دغه ترکتور په دې عميل باندې خرڅ کړی.

عميل چه د وکيل په حيث باندې دغه ترکتور د بانك لپاره واخستلو اوبيا يی له بانك څخه د خپل ځان لپاره واخستلو نودغه کار چه په څومره موده کښې وشو نو په دې موده کښې به دغه ترکتور دبانك ملکيت اودوکيل په واسطه به د بانك په تقديری قبضه کښې وی. اود بانك په ضمان کښې به وی. بيا چه کله د عميل او بانك ترمينځ بيعه وشی نو په دغه صورت کښې به د ترکتور ضمان عميل ته منتقل شی.

د وکالت په وقت کښې به عميل د وعدې په طريقې سره د دې خبرې تسلی کوی چه ترکتور د

---

۱ - په مجلس کښې دلته دا اضافه هم شوې وه چه غالبًا سهوًا له ليکنې څخه پاتې شوې ده ((بانك به د عميل د قبض د تصديق کولو لپاره يوخپل نماينده ليږی . دقبضې په ثابت کيدلو باندې به هغه ته يو سند ورکوی)) رشيد احمد.

بانك په ملكيت او ضمان كښې داخل شي نو بيا به دې دغه تركتور له بانك څخه دسابقه مقرر شوی قيمت مطابق واخلي.

۱۶ - چونكه دغه تركتور دې عميل دوكيل په حيث په خپله اخستې دې اودهغې له ټولو اوصافو نه په خپله ښه خبر دې نو له همدې كبله كله چه بانك دغه تركتور په ده باندې خرڅوی نودا به د «څنګه دې اوكوم ځائ دې» په اساس باندې خرڅوی. چه دې ته په فقهی اصطلاح كښې داسې ويلې شي چه دا «بيع بشرط البراءة من كل عيب» ده ، نو لهذا عميل به وروسته له بيعې څخه دڅه عيب په وجه دغه تركتور بانك ته نشي واپس كولې.

۱۷ - د مرابحهء مؤجله تر معاهدې لاندې د قيمت د اداء كولو چه كوم تاريخ مقرر شوې دې په هماغه وقت باندې د پيسو د اداء كولو دضمانت اخستلو لپاره بانك له عميل څخه يو رسيد او وثيقه غوښتلې او طلب كولې شي.

۱۸ - په سودی معاملاتو كښې كه چيرته قرضدار په خپل وقت پيسې ورنكړې نو دهغه سود همدغه شان زياتيږی. لهذا د سود د بوجه كمولو لپاره به هغه په خپل وقت باندې د اداء كولو پوره كوشش كوی، ليكن په غير سودی نظام كښې كه چيرته دغه عميل په خپل وقت پيسې ورنكړی‌نوبيا هم هغه ته د سود د زياتيدلو ويره نه وی.

له دې صورت حال اوكار څخه بد ديانته خلق غلطه فائده اخلي . سره له دې چه د پيسو د اداء كولو توان لری ليكن بيا هم پيسې په خپل وقت نه اداء كوی.

د همدې مشكل له كبله په ابتداء كښې په پاكستان كښې دا طريقه اختيار كړې شوې وه چه د پيسو په خپل وقت باندې د نه اداء كولو په صورت كښې به په «مارك اپ» باندې نوره اضاف وكړې شوه.

ليكن ښكاره خبره ده چه دا شرعًا د سود يو شكل دې چه جائز ندې.

د دې زمانې بعضې علماء كرامو د دې مسئلې د حل لپاره دا پيشناد كړې دې چه : «له عميل څخه د مرابحې دعقد په وقت كښې داسې ليكل واخستلې شي چه كه چيرته هغه د پيسو د اداء كولو د توان با وجود پيسې اداء نكړی نوهغه به په خپله ذمه د واجب الاداء قرض يوڅو فيصده خيراتی فنډ ته د چندې په شكل وركوی».

نو په همدې غرض [1] په بانك كښې يو خيراتی فنډ جوړول كيږی چه هغه به نه د بانك ملكيت وی اونه به دهغې پيسې دبانك په آمدنی كښې شاملې وی بلكه له هغې نه به نادارو اوغريبو خلقو

[1] - دمجلس پيشنهاد خو دا وو چه دغه فنډ بايد د بانك په ځائ ديو ثالث اودريم ګړی په اختيار كښې وی. ليكن بانك د دې په خپل اختيار كښې د ساتلو تاكيد كولو

ته د امداد ورکولو او دغیر سودی قرض ورکولو کار اخستل کیږی
د بعضې مالکی فقهاؤ په نیزد دغه قسم التزام قضاءً هم نافذ کیږی.
د عمیل له طرف نه به په خیراتی فنډ کښې د چندې ورکولو دا التزام په هغه صورت کښې وی چه کله دقرض د اداء کولو د قدرت باوجود قرض په خپل وقت سره اداء نکړی، لیکن که چیرته هغه حقیقةً دخپلې تنګدستئ په بناء باندې د قرض داداء کولو نه عاجز وی نو پدې صورت کښې بیا هغه دې خیراتی فنډ ته دچندې ورکولو پابند ندې.
په دغه راپور کښې د دې طریقې د پیشنهاد په وقت کښې دا هم ویلی شوی وؤ چه: «دعمیل د تنګدستئ تعین به پدې طریقې سره کیږی چه په هغه باندې د افلاس حکم شوې وی».

## د مؤجله مرابحې پیشنهاد شوې طریقه

۱۹ - په راپور کښې دا پیشنهاد شوې دې چه هغه ټولې کمپنیانې اوفرمونه چه خارجی اکاونټونو نه دخپلو حسابونو کلنې حساب او کتاب کوی نوهغوئ ته به بانك بغیر له مشارکت نه په بله طریقه پیسې نه روکوی، البته چه کومې کمپنیانې له خارجی چارټر اکاونټونو نه دخپلو پیسو حسابونه نکوی اویا قانونًا پدې پاندې مجبور نه وی نو هغوئ له بانکونو سره دمؤجله مرابحې معامله هم کولې شی.
۲۰ - په دې وقت کښې د بانکونو د کار طریقه داده چه:
«مختلف شرکتونه چه کله دوئ ته د قرض اخستلو لپاره مراجعه کوی نوبانك دهغوئ لپاره د قرض یوه اندازه منظوره کړی، د مثال په توګه دجنوری له اول تاریخ څخه تر یودریشم ۳۱ تاریخ د دسمبر پورې هغه یو کروړ روپئ له بانك څخه قرض اخستلې شی، اوس د کال په مینځ کښې چه هغه ته د څومره پیسو ضرورت پیښیږی هغه له بانك څخه اخلی او اخستل شوې پیسې په بعضې وقتونو کښې دوباره بانك ته هم ورکوی، نو په یودیرشم ۳۱ دسمبر باندې به دا حساب کیږی چه څومرې پیسې ترکومه وقته پورې له هغه کمپنئ سره وې، نو دهمدې حساب مطابق به هغه سود ورکوی»
چونکه په مؤجله مرابحه کښې وروسته د یو قیمت له تعیین څخه په دې کښې کموالې یا زیاتوالې نشی کیدلې نو له همدې کبله دغه راپور پیشنهاد کړې شو.
دجنوری په اول تاریخ به له عمیل سره دامعامله وکړې شی چه تر یودیرشم ۳۱ دسمبر پورې به د یو کروړ روپو مختلف څیزونه دمختلفو معاملاتو په ذریعه په تاسو خرڅول کیږی چه دهغې مجموعی اوټول قیمت به تر یودیرشم دسمبر پورې تاسو مونږ ته راکوئ، بیا به دهر شی معامله دمؤجل مرابحې په اساس باندې جدا جدا کول کیږی چه دهغې طریقه په تیرو صفحاتو کښې بیان

شوي ده. په هره معامله کښې به دا خبره په نظر کښې نيول کيږي چه کومه معامله د يوديرشم دسمبر نه څومره مخکښې شوې وی نو په هغې کښې به د ګټې اندازه به له هغه معاملې څخه زياته وی يوديرشم دسمبر ته نزدې وی او کومه معامله چه يوديرشم دسمبر ته نزدې وی نو دهغې ګټه به په همدې مقدار کمه وی.

فرض کړه چه د جنوری په اول تاريخ باندې د مالوچو زر (۱۰۰۰) ګانټونه «ګيډئ» دګټې د طريقه، کار مطابق يوعميل يا شريك له بانك څخه واخستلې او په دې باندې يې دمنافعو انداز پنځلس (۱۵) فيصده ولګوله او د دې معاملې دمعاهدې مطابق په عميل باندې مثلاً يولاکه روپئ واجب الاداء شوې ليکن ديوڅه وجوهاتو له مخې عميل دا غواړی چه پنځوس زره (۵۰۰۰۰) روپئ اوس ورکړی، نو دهغه به يو خاص اکاونټ په بانك کښې خلاص شی چه په هغې باندې به ده ته دنورو اکاونټونو لرونکو په شان منافع ورکول کيږی ، بلکه په دغه راپور کښې دا پيشنهاد هم شوې دې چه په دغه رنګه اکاونټ باندې به د فائدې اندازه له نورو نه يوڅه زياته وی.

له دغه اکاونټ نه عميل هروقت خپلې پيسې هم راويستلې شی او طريقه به يې دا وی چه: «هغه دخپلو واجب الاداء پيسو مثلاً ديولاکه روپو د ضمانت لپاره ګرو «رهن» ايښې دې دمثال په توګه دمالوچ ګانټونه وغيره، کله چه هغه دغه مالوچ اويا دمالوچ کومه حصه «دشيندلو لپاره» اخلی نو چه څومره حصه اخستل غواړی نو دهغې دقيمت «يوخصوصی اکاونټ» به خلاصوی.

دا دقيمت جزوی اداء کيدل نه ګڼل کيږی بلکه دا په حقيقت کښې يو نوې اکاونټ خلاصول دی چه په هغې باندې بانك تبرعًا د رهن هغومره حصه واپس کوی، اوس دې له همدې اکاونټ نه دومر پيسې ويستې شی چه دهغې له ويستلونه وروسته په هغه اکاونټ کښې باقی پاتې پيسې دومره وی چه له باقی رهن سره يوځائ شی نو د واجب الاداء قيمت سره برابريږی.

دغه شان تر ۳۱ دسمبر پورې مختلف معاملات کيږی، تر دې پورې چه په يوديرشم ۳۱ دسمبر باندې د ټولو معاملاتو دمجموعی قيمت د اداء کيدلو له اختتام څخه وروسته دغه خصوصی اکاونټ ختميږی.

۲۱ - په راپور کښې يوه بله طريقه د «کرايه داری» هم پيشنهاد شوې ده ، نن سبا په بعضې ملکونو کښې له بانکونو نه قرض اخستونکی د جامدو اثاثو د اخستلو لپاره قرض اخستل کيږی، دمثال په توګه د ماشين وغيره د اخستلو لپاره قرض اخستل کيږی، نو پدې هکله په راپور کښې داسې پيشنهاد شوې دې چه:

«په داسې وقت کښې دې بانك ماشين آلات واخلی اوعميل يا کارکونکی ته دې په کرايه باندې ورکړی، د دې کرايې په ټاکلو کښې به عمومًا د دې خبرې لحاظ ساتلې شی چه په يوه خاصه اومعينه موده کښې به د کرايې په ذريعه د ماشين آلاتو ټول قيمت سره له ګټې نه اخستل کيږی

د کرایې اخستلو په دې موده کښې به دغه ماشین آلات د بانك په ملکیت کښې وی او د دې ذمه داری به په بانك باندې وی))

## دکور اوداسې نورو خریداری او اخستل

۲۲ - دکور وغیره داخستلو لپاره چه کوم قرض ورکول کیږی دهغې په باره کښې په راپور کښې دا پیشنهادونه شوی دی:

(( هغه به هم د مؤجله مرابحې په اساس باندې وی، یعنی اول به بانك کور واخلی او د همدې لپاره به عمیل وکیل جوړ کړی . له هغې نه وروسته چه کله دغه کور د بانك په ملکیت کښې راشی نوهغه به په عمیل باندې د مرابحې په اساس خرڅ کړی ، که چیرې کور جوړولو ته ضروری لری نو چه کله تعمیر مکمل شی نوبیا به یی په عمیل باندې په ګټه خرڅ کړی ، که چیرې عمیل په اخستلو اویا دکور په جوړولو کښې خپله حصه اچول غواړی نو دهغه لګول شوې پیسې به د پیشکی یا بیعانې په طور ګڼل کیږی))

**دویم صورت دا دې چه** : ((دعمیل حصه به دشراکت په طور وی او دکور یا ځائ په ملکیت کښې به دواړه شریك وی، وروسته به بیا بانك خپله حصه عمیل ته دمؤجله مرابحې په طورخرڅه کړی))

په ابتداء کښې به دا صورت دشرکت املاك وی اوپه آخر کښې به مرابحهٔ مؤجله وی.

په سند کښې به د مرابحې ذکر دوعدې په طور وی.

## له عمیل (شریک) څخه اخستل

۲۳ - دهغې صورت دا دې:

((له عمیل څخه به یی قرض واخلی د بانك ((بل آف ایکسچینج)) کښې به یی داخلې کړی اوبیا به بانك دعمیل له خوا څخه وکیل بالاستیفاء جوړ شی له اصل مشتری څخه به پیسې واخلی او د دې وکالة بالاستیفاء دحق الخدمه په طور به دفیصدی په اندازه اُجرت مقرر کړی اوچه کله پیسې واخستل شی له هغې نه به خپل حق الخدمة منفی کړی . اوباقی پیسې به دقرض دنسبت په اساس تقسیم کړی)).

## سروس چارج

۲۴ - په قرض حسنه دسروس چارج اخستلو لپاره د دې خبرې لحاظ ساتل ضرور دی چه دسروس چارج مقدار به دحقیقی اجر مثل نمایندګی کوی . محض حیله به نه وی.

## یوه ضروری خبره

د دې نظام د څارنې لپاره «د شرعی مراقبې شعبه» قائمول ضروری دی. له هغې نه بغیر د شرعی حدودو رعایت نشی کیدلې. دا شعبه باید په داسې شرعی ماهرینو باندې مشتمله وی چه له هغو سره کم نه کم د تدریس او افتاء پنځلس کلنه تجربه وی ، دبانك د ورځنیو معاملو اومعاهدو څارنه له فقهی نقطهٔ نظر څخه وکړی او د باطلو او فاسدو معاملاتو دروازه بنده کړی.

دجدیدو مسائلو دتحقیق دمجلس شریکان

۱ ـ حضرت مولانا مفتی رشید احد صاحب - دارالافتاء والارشاد . ناظم آباد کراچی.
۲ ـ حضرت مولانا مفتی عبدالشکورصاحب ترمذی - جامعه حقانیه ساهیوال، ضلع سرگودها.
۳ ـ حضرت مولانا مفتی محم وجیه صحب - دارالعلوم ٹنڈو الله یار.
۴ ـ حضرت مولانا مفتی سبحان محمود صاحب - ناظم دارالعلوم کراچی.
۵ ـ حضرت مولانا مفتی محمد رفیع عثمانی صاحب - صدر دارالعلوم کراچی.
۶ ـ حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاب - نائب صدر دارالعلوم کراچی.
۷ ـ حضرت مولانا مفتی ڈاکٹر عبدالواحد صاحب - جامعه مدنیه کریم پارك لاهور.
۸ ـ حضرت مولانا مفتی محمد انور صاحب - جامعه خیرالمدارس . ملتان.
۹ ـ حضرت مولانا مفتی عبدالرحیم صاحب - دارالافتاء والارشاد . ناظم آباد کراچی.
۱۰ ـ حضرت مولانا مفتی عزیزالرحمن صاحب - دارالعلوم کراچی.
۱۱ ـ حضرت مولانا مفتی محمود اشرف صاحب - ..............................
۱۲ ـ حضرت مولانا مفتی اصغر علی صاحب ربّانی - ..............................
۱۳ ـ حضرت مولانا مفتی عبدالرؤف صاحب - ..............................
۱۴ ـ حضرت مولانا مفتی محمد عبدالله صاحب - ..............................
۱۵ ـ حضرت مولانا مفتی محمد عبدالمنان صاحب - ..............................
۱۶ ـ حضرت مولانا۳مفتی محمد کمال الدین صاحب - ..............................
۱۷ ـ حضرت مولانا مفتی محمد خالد صاحب - ..............................
۱۸ ـ حضرت مولانا محمد اشرف صاحب - ..............................
۱۹ ـ حضرت مولانا مفتی مسیح الله صاحب - ..............................

## د حضرت مولانا مفتي عبدالواحد صاحب اشكالات

۱ - په لسمه (۱۰) نكته كښې چه كوم پیشنهاد ذكر شوې دې له هغې سره زه تفاق نه كوم. دهغې متعلق زما په ذهن كښې دا خبره راځي چه دغه ذكر شوې شرط د عقد له تقاضا څخه خلاف دې ځكه اګرچه دا دواړه صورتونه د شركت عنان دي ليكن دا دواړه مختلف عقدونه دي، چه كوم عقد دشركت په ابتداء كښې شوې دې دهغې دوه شريكان دي يوه كمپنۍ دهاو دويم بانك دې، د دواړو سرماه هم معلومه ده اونفع اندازه يې هم معلومه ده، وروسته كه چيرې بانك تر پنځه اويا (۷۵) فيصده پورې خپلې سرمايې لره دكمپنۍ په معمولى حصو باندې بدلوى نو قطع نظر له دې نه چه قانون دې ته اجازت وركوى اوكه نه يې وركوى. اوس د كمپنۍ سرمايه زياتيږى اود بانك سرمايه پنځه ويشت (۲۵) فيصده پاتې كيږى. ځكه چه كوم صورت مخې ته راغلې وۀ هغه دا وۀ چه بانك له خپلې پنځه اويا (۷۵) فيصده سرمايې څخه دكمپنۍ نوې حصې پيدا كوى، دا خبره نه وه چه بانك به دكمپنۍ نوې برخې اخلى.

كمپنۍ په پوره ډول يوشخص (PERSON) دې. اوهغه د همدې حيثيت په اعتبار سره بانك خپله پنځه اويا فيصده سرمايه په هغې كښې مدغم كوى. لهذا له كمپنۍ سره چه دهغه كوم شركت وۀ هغه تر پنځه ويشت فيصده سرمايې پورې پاتې شو. بانك چه يو شريك دې دهغه سرمايه پنځه ويشت فيصده پاتې شوه. اوكمپني چه دويم شريك وۀ دهغې سرمايه د بانك له پنځه اويا فيصده سرمايې سره يوځاى شوه او زياته شوه، نو د دواړو شريكانو په راس المال كښې تغير راغې، چه دهغې لازمى نتيجه داده چه منافعو په اندازه كښې به هم فرق راځي.

د دواړو شريكانو په راس المال كښې تغير اوهمداراز په منافعو كښې دتغير خلاصه داده چه دا دشراكت يو نوې عقد شو.

دويم شراكت هغه دې چه دكمپنۍ په داخل كښې دكمپنۍ له نورو شريكانو سره شوې وى، دغه شركت اجارې لره هم متضمن دې، ځكه چه بانك له دې لارې نه په انتظاميه كښې خپل يو ډايركټر يا يو سرې راولى چه كوم ته د نورو ډايركټرانو په شان تنخواه او سهولتونه اوامتيازات (ALLOWANCES) هم حاصل وى. مطلب دا چه په دغه شرط باندې له عمل كولو څخه يو شركت په دوه مختلفو شركتونو باندې بدليږى، اوپخوانې شركت هيڅ قسم باقى نه پاتې كيږى.

له همدې كبله بانك خو به يا په دويم نمبر نكته باندې اكتفاء كوى او يا به بانك اوكمپنۍ په خپل مينځ كښې دا شرط مقرركوى چه دممكنه منافعو دنه حاصليدلو په صورت كښې به بانك خپل يو نماينده ته د داسې كار كولو حق وركوى چه هغه هغه دكمپنۍ په تصرفاتو كښې مداخله كولې شى. د دې لپاره بانك دخپل ځان لپاره د منافعو اندازه له ابتداء نه په مناسبه اندازه يو څه

زیات مقدار مقرر کولې شی په کار کښې د مداخلې کولو په صورت کښې به بیا دمنافعو په اندازه کښې هیڅ قسم تبدیلی نه راولی، اودبانك د نمایندګی په خاطر به دکمپنۍ له طرف نه هیڅ قسم تنخواه یا امتیازات نه ورکول کیږی.

۲ - څلوارلسمه (۱۴) نکته، دهمدې نکتې لاندې په حاشیه کښې لیکل شوې دې.

۳ - اتلسمه (۱۸) نکته، دا هم دهمدې نکتې په حاشیه کښې لیکل شوې دې.

# ضمیمه

## دسودی پروژو متبادله طریقې

### —— پیش کونکې ——

## کمیشن فور اسلامائزیشن آف اکنامی

**سوال**: په اوسنی دور کښې ټول پیشرفته ملکونه اوخصوصًا په غریبو ملکونو کښې دا مسئله مخې ته راغلې ده چه حکومتونه د خپلې بودجې دخسارې د پوره کولو لپاره دخپل ملك په داخل کښې له عوامو څخه اوهمدارنګه له خارجی ملګرو ملکونو څخه قرض اخلی، دغه قرضونه د سود په اساس اخستل کیږی.

پدې کښې شك نشته چه دکار ښه طریقه داده چه مصارف دخپلو وسائلو مطابق اودهغې په داخل کښې وکړې شی اوقرض اخستلو ته هیڅ ضرورت پیدا نشی، چه دهغې لپاره ساده ژوند خپلول اودبې ځایه عیش اومعاش نه پرهیز کول لازم دی، خو پدې خبره باندې تقریبًا دمعاشیاتو ټول ماهرین متفق دی چه که چیرته مسرفانه غیرپیداواری مصارف کم هم کړې شی خوبیا هم یوترقی غوښتونکی ملك ته دقرضونو ضرورت پیښیږی، اوبالخصوص د خپلو عوامو بچت شوې زیرمې به دحکومت د بودیجې دخسارې د پوره کولو لپاره په کار راوستلې شی.

په موجوده نظام کښې حکومت دهمدې غرض لپاره مختلفې دبچت اوزیرمو پروژې شروع کړې دی، دمثال په توګه «نیشنل ډیفنس سرټیفکیټ»، «خاص ډپازټ سرټیفکیټ»، «انعامی بانډ» وغیره، په همدې خاطر حکومت دعوامو بچت شوې سرمایه په خپلو مصارفو کښې استعمالوی، اوپدې باندې عوامو ته سود ورکوی، دغه قسم پروژې په هر مسلمان کښې موجودې دی.

اوس پوښتنه داده چه دسود له ختمیدلو څخه وروسته دغه پروژې په خپل موجوده شکل باندې پاتې کیدلې نشی، لهذا دحکومت لپاره به دخپلې بودجې دخسارې د پوره کولو لپاره له عوامو څخه د قرض اخستلو څه صورت وی، څکه هرکله چه خلقو ته پدې پروژو باندې څه اضافی پیسې ورنکړې شی نوهغې خوبیا پدې پروژو کښې برخه نه اخلی اوبالخصوص چه د پیسو قیمت ورځ تر ورځه لاندې را غورزیږی.

پدې حالاتو کښې د دې سودی پروژو دمبتادلو لارو چارو لټولو په طور مختلف تجویزونه او پیشنهادات وړاندې کړې شوی دی . له هغې څخه بعضې خو دشریعت په اعتبار سره بالکل صاف اوشفاف دی. دمثال په توګه چه حکومت په خپل کاروبار کښې له عوامو څخه پیسې واخلی اوهغوئ حصه دار جوړ کړی اوهغه د دې کار په نفع اونقصان دواړو کښې شریك کړی

لیکن دحکومت دفائدې کارونه ډیر کم وی ، پدې طریقه کښې د حکومت هغه مصارف نشی پوره کیدې چه کوم د موجود سودی پروژو له لارې پوره کیږی. نو لهذا یوڅو تجویزونه نور هم وړاندې کړې شوی دی چه په هغې باندې دفقه له نقطهٔ نظر نه فکر کول ضروری دی. اوهغه پیشنهادات او تجویزونه په لاندې توګه دی:

۱ - حکومت د بجت او زیرمو پروژې داسې جوړې کړی دی چه پدې کښې خو نه له برخه اخستونکی سره دڅه اضافی پیسو ورکولو ضمانت وی اونه له وړاندې نه کومه وعده وی لیکن په مختلفو وقتونو کښې کیف ما اتفق یوڅه پیسې په دې پروژو کښې پیسه لګونکو ته ورکول شوې وی په دغه قسم طریقه باندې دملیشیا حکومت عمل کوی

اوس دا خبره دغور قابله ده چه بغیر له څه سابقه معاهدې نه اوهمدارنګه قرض ورکونکو عوامو ته د زیاتی پیسو دقانونی مطالبی دحق ورکولو نه بغیر وقتًا فوقتًا هغوئ ته مختلفه اندازه انعامات ورکول کیږی اودغه انعامات ورکول یو عادت جوړ شوې دې شی . نو آیا دا د «المعروف کالمشروط» قاعدې په اساس سود ګڼلې شی اوکه نه ؟ اوکه یی دې بل طرفته نظر وکړې شی چه قرض ورکونکو لره دمطالبې هیڅ قانونی حق نشته. فقط دا یوه حسن قضاء ګڼلې شی؟

فقهاء کرامو چه د معروف بحسن القضاء ته دقرض ورکولو په سلسله کښې چه څه لیکلی دی هغه هم پدې سلسله کښې په نظر کښې نیول ضروری دی .

۲ - حکومت محض د خپله خانه کیف ما اتفق د انعامونو د ورکولو په ځائ دا انعامونه د ملی مجموعې چې کوم آمدن دې اوپیا د هغې د زیاتوالی چې کومه اندازه ده په هغې کښې یی شامل کړی. یعنی نه خوقرض ورکوونکو سره څه وعده یا معاهده وی او نهٔ خو دې هغوی ته د مطالبې کولوڅه حق وی. بلکه حکومت په خپله خوښه دا مقرر کړی چې د دې قرض په موده کښې که په مجموعی ملی آمدن کښې څه زیاتوالې وشو نو د دغې زیاتوالی د تناسب نه به قرض ورکوونکو ته هم یوڅه انعام ورکولې شی،او که چیرې څه زیاتوالې په کښې ونهٔ شو . یا په مجموعی ملی آمدن کښې کمې شوې وی نو په دې صورت کښې به قرض ورکوونکو ته څه انعام نهٔ شی ورکولې.

د دې پیشنهاد په مرسته کښې دا خبره کولې شی چې عوام چې حکومت ته کوم قرض ورکوی اګرکه هغه مستقیمً په څه نفع ورکوونکی کاروبار کښې نهٔ وی لګولې شوې. لیکن بیا هم هغه بالواسطه په مجموعی ملی آمدن کښې د زیاتوالی باعث جوړیږی.لهذا که چرې حکومت دې

عوامو ته کومو چې قرض ورکړې دې او د حکومت په آمدن کښې د زیاتوالی باعث جوړ شوی دی دڅه سابقه شرط او یا د څه وجوبی قانون نه بغیر څه انعام ورکړی نو په دې کښې بیا څه باک نشته

۳ - حکومت د روپو د مالیت یو داسې سرټیفیکیټ (سند) جاری کړی چې د هغې قیمت د عام استعمال د څیزونو سره دا تړلې وی چې د هغې قیمت د عام استعمال د څیزونو د قیمتونو د پورته کیدلو سره سره په خپله په هغه تناسب سره زیاتیږی په کوم تناسب سره چې په قیمتونو کښې زیاتوالې شوې دې. دمثال په توګه دارنګه چې دا سرټیفیکیټ که ښن په سل روپئ جارې کړې شوې دې او شپږ میاشتې پس د خوراک څښاک په څیزونو کښې لس فیصده اضافه وشوه نو د دې سرټیفیکیټ قیمت دې بیا یو سل او لس روپئ شی.او چې کوم سړې هم حکومت ته قرض ورکوی هغۀ دې ورته هم ددې سرټیفیکیټ په صورت کښې ورکړی او چې واپس کوی یئ نو هم دا سرټیفیکیټ دې واپس کوی.خو ولې څنګه چې معلومه شوه چې د قیمتونو د زیاتوالې په وجه به د دې سرټیفیکیټ قیمت زیات شوې وی د دې وجې نه به هغۀ دا سرټیفیکیټ په بازار کښې په زیات قیمت سره خرڅولې شی.

۴ - حکومت دې د عوامو نه د قرض اخستلو په ځائې دوی سره د بیع سلم معاهده وکړی.او په راروان وخت کښې دې په یو ټاکلی شوی تاریخ هغوی ته د څه مخصوص څیزونو د سپارلو ذمه داری واخلی.او د دې غرض د پاره دې یو د سلم سرټیفیکیټ (سند) جاری کړی.د ټاکلی شوی تاریخ په راتلو به د دې سرټیفیکیټ خاوند د حکومت د ټاکلی شوی یو دکان نه هغه مخصوص څیزونه ترلاسه کولې شی.

د بیع سلم د معاهدې کولو په وخت کښې به د دې مخصوص څیزونو نرخ د بازار د قیمت نه کم لګولې شی.د دې وجې نه هغه د سرټیفیکیټ خاوند به په ټاکلی شوی وخت باندې دغه څیزونه د ترلاسه کولو نه پس په زیات قیمت خرڅولې شی.

که چرې د سرټیفیکټ دا خاوند دا څیزونه واقعةً په خپله قبضه کښې واخلی او بیا ئې خرڅوی نو بیا خو شرعی لحاظ سره په دې کښې څه اشکال نشته خو په دې شرط چې د بیع سلم نور شرطونه موجود وی لیکن د دې رائې د وړاندې کوونکو په دماغو کښې دا خبره شته چې که د سرټیفیکټ دغه خاوند غواړی نو هغه د مخصوص دکان د څیزونو د اخستلو په ځائې د یو بانک نه یا هم د دغه سټور نه د دغه څیزونو د دغې ورځې د بازار قیمت واخلی.

په ظاهره خو د قبضې نه وړاندې د مسلم فیه بیع شرعا روا نۀ ده. لیکن آیا په دې کښې داسې څه صورت راوتلې شی چې په هغې کښې د څه شرعی قاعدې خلاف کول نه راځی؟

۵ - حکومت دې د سرکاری تمسکاتو په ذریعه د عوامو نه غیر سودی قرضونه واخلی او د دې تمسکاتو حاملینو ته دې په ټیکس کښې رعایت ورکړی.

۲ - حکومت دې د پرائیویټ ((شخصی)) ادارو د پراویډنټ فنډ یا د پنشن فنډ په حقله دا قانون جوړ کړی چې د دې فنډ ټولې روپۍ به حکومت سره جمع کولې شی. بیا چې کله یو مامور ته د هغهٔ فنډ ورکولې شی نو هم دومره روپۍ به حکومت هم د هغهٔ په فنډ کښې د ورکړې په توګه جمع کوی او هغهٔ ته به ئې ورکوی.

په دې خبرو باندې د (کمیشن فور اسلامائزیشن آف اکنامی) غور او فکر شروع دې. زمونږ دا خواهش دې چې په دې معامله کښې د ملک د ښه ښه اهل فتوی حضراتو نه راهنمائی حاصله کړې شی. دې د پاره چې په دې باندې خالص په علمی انداز کښې غور او فکر وکړې شی او حضرات علماء کرام په دې معامله کښې د یوې واضحې لارې ښودنه مونږ ته وکړی.

تاسو ته دا درخواست دې چې په دې پورته ذکر شوو خبرو باندې غور وکړئ او د خپلې رائې نه مو خبر کړئ.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : (۱)- **بینهما خمسة فروق:**

۱ - مقیس علیه کښې په حسنِ معامله کښې د تجربې نه پس د اقراض رغبت وی او په مقیس کښې به د وړاندې نه اعلان وی.

۲ - په مقیس علیه کښې د زیاتې څه وعده یا ترغیب نهٔ وی صرف حسنِ معامله وی او په مقیس کښې به د زیاتې او د لیک اعلانونه وی.

۳ - په مقیس علیه کښې په قرض باندې نفع ټاکلې شوې نهٔ وی بلکه اصلِ قرض په ویره کښې دې او بل خوا ته په مقیس کښې نفع ټاکلې شوې ده.

۴ - په مقیس کښې به د ټولو قرض ورکوونکو د پاره د نفعې تناسب برابر وی او په نفعه کښې به د کمی زیاتی معیار هم د ټولو د پاره یو شان وی.

۵ - مقیس علیه یو شخصی معامله ده او مقیس به په عالمی سطح یوه معامله وی.

(۲) **هذا والاول سواء**

(۳) **لا وجه لتجویزه**

(۴) **صحیح بالشرائط المعتبرة للسلم ولکن.** لیکن د تجویز وړاندې کوونکو ــ الخ

(۵) سرکاری ټیکسونه روا او ناروا په دوه قسمه دی. د مقرض نه د ناروا ټیکس ساقطول بې د شک شبې نه روا دی او د روا ټیکس ساقطول هم روا معلومیږی.

۶- **کیف جوزوه وهو عین الربا. والله سبحانه وتعالی اعلم.**

**رشید احمد**

**۲۶ جمادی الثانیه ۱۴۱۵ هجری**

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَذَرُواْ مَا بَقِيَ مِنَ ٱلرِّبَوٰٓاْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٧٨﴾ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ فَأْذَنُواْ بِحَرْبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ﴾ ــ (القرآن)

# بشارة اللظى لآكل الربوا

## افاضات

فقیه العصر حضرت اقدس مفتی رشید احمد صاحب لدهیانوی دامت برکاتهم

## ليكونكي:

حضرت مفتی محمد ابراهیم صاحب

# بشارة اللظی لآکل الربوا

**د بحث خلاصه:**

* د اسلام دمعیشت نظام
* د سود لغوی معنی
* د سود شرعی معنی
* د سود حرمت
* آیات بینات
* احادیث د رسول الله ﷺ
* په سود اخستلو اوورکولو باندې سخت وعیدونه
* د الله او د هغهٔ د رسول ﷺ له اړخه د جنګ اعلان
* سود اخستونکی ،ورکوونکی،لیکونکی،او په ګواهانو د سود باندې د الله تعالی لعنت
* د سود یو درهم د شپږ دریش زناګانو نه بدتر دې
* د سود ګناه د خپلې مور سره د بدکارئ نه هم اویا چنده نه زیاته ګناه ده
* سود خور جنت ته نهٔ شی تلې
* د سود تباهی
* د سود خورو ملحدینو تلبیسات او وسوسې
* حرام خورئ باندې نور وعیدونه

# د اسلام د معیشت (ژوندانه) نظام

الله تعالی مسلمانانو ته د(امتِ وسط) امتیازی انعام ورکړې دې او دوی ته ئې په ایمان،عقیدو، عباداتو او اعمالو،تهذیب،معاشرت،اقتصاد او ژوند، مطلب دا چه د ژوند په هره شعبه کښې یی یو خاص معتدل او د توازن شان ورکړلو،کوم چې دوی د نورو ټولو امتونو نه بیلوی،د دې امت د دژوندانه نظام په دې وخت کښې د پښوا خلقو د دژوندانه د نظامونو نه بالکل بدل،او په فطری اصولو باندې مبنی یو پاک نظام دې.

په سرمایه دارانه نظام کښې یو څو د شمیر کسان په ټولو وسائلو د مال او د مالدارئ باندې بې د غیرو د شرکت نه قابض شی او ټول مال ځان ته راغونډ کړی،د مال د حاصلولو په غرض دا خلق هره روا او ناروا طریقه اختیاروی،د دوی بانکونه،د بیمې ادارې،او یو بل سره د امداد په نوم باندې کارکونکی مختلفې پروژې او تنظیمونه چې په ظاهره د عوامو د امداد او د کومک ادارې دی، لیکن دا هم په حقیقت کښې د مال د حاصلولو چلونه دی،په دوی کښې او په پښوا ظالمانه طریقه کښې که څه فرق دې خو بس دومره دې چې: «**زاړهٔ ښکاریان او نوی جال**».

ددې طبقی خلقو غرض صرف مال او زر دی د دې وجې نه همدردی،دردمندی،د غریبانو امداد او خدا ترسی د دوی په نیز بې معنی او مهمل الفاظ دی، د دې په مقابل کښې غریبه او مفلسه طبقه که هر څومره معاشی لحاظ سره لاندې لاړه شی،هغوی کاروباری لحاظ سره رنګ شی،دې سره د دوی څه غرض نشته، د هوس او د خواهش بندګان، د مکر اوفریب ماهران که چا له څه ورکوی نو د اخستلو په غرض ئې ورکوی، د دې وجې نه دا طبقه شخصی ملکیت له سره نه منی ،دا خلق د دولت او د مالدارئ ټول وسائل د حکومت ملک ګنی، په دې کښې دو رائې ممکنه نهٔ دی چې ګنی د اقتصادی نظام د ترقئ مدار دې د فرد په محنت اومشقت باندې وی چې دهٔ ته دې د خپلو جائزو مفاداتو د پاره د کار کولو موقع ورکړې شی بلکه هغه دې په دې باندې راوچت کړې شی چې دې محنت او مشقت اوکړی، ځکه چې اشتراکی نظام د هر سړی او فرد نه د هغهٔ جائز او فطری حق په زوره اخلی او هغه مجبوره وی چې د یو بې سا ماشین د ټولو پرزو په شان دې په کار کښې ورننوتې وی، د کومې لازمې نتیجه چې په عوامو کښې د اضطراب، بې قرارئ، فتنې او بغاوت،او د عام فساد په صورت کښې ظاهریږی.

اشتراکی نظام په ظاهره د سرمایه دارانه نظام دماتیدلو په نتیجه کښې مینځ ته راغلې دې لیکن بنیادی لحاظ سره په دواړو کښې هیڅ فرق نشته،په سرمایه دارانه نظام کښې واړهٔ واړهٔ سرمایه دار د ټول ملک په معیشت باندې خوارهٔ شی او د عامو خلقو معاشی بیخ کندی کوی،بل

خوا ته اشتراکی نظام دا وارۀ وارۀ سرمایه دار خلق ختم کړی او د دوی په ځائې یو لوئې سرمایه دار په وجود کښې راولی، کوم چې د دغه وړو وړو سرمایه دارانو په نسبت څو چنده زیات د بې رحمئ او د ځناورئ عمل کوی.

د دې دواړو نظامونو بنیاد له ابتداء څخه د فطرت نه خلاف اصولو باندې اینښودل شوې دې.

د دې په مقابله کښې د اسلام معاشی اودڅوند نظام د کمی زیاتی نه پاک یو متوسط او عادلانه یعنی د انصاف نظام دې، په کوم کښې چې د فرد ملکیت او د دۀ اختیار او تصرف بالکل منلې شوې دې، خو ورسره ورسره ئې په دۀ باندې مناسب بندیزونه هم لګولی دی، دې دپاره چې د دولت د ټولو وسائلو یو ځائې ته راجمع کیدل په کښې نۀ وی، د کومې نه چې د معیشت اجتماعی وجود ته نقصان رسیږی.

دویم اړخ ته په دې کښې د حکومت د اختیاراتو د پاره هم حدونه ټاکلې شوې دی، دې د پاره چې حکومت د فرد په ملکیت کښې تصرف او کار ونه لری.

په دې پاک نظام کښې دفرد او د جماعت د جنګولو په ځائ د دې دواړو مفادات او فائدې یو بل سره پیوسته کړې شوې دی، د یو خوشحالی د بل په مالداره کیدلو باندې موقوفه ده، چې لازمی نتیجه ئې دا راوځی چې په دواړو کښې د دښمنئ او د رقابت په ځائ یو بل سره د مدد، تعاون او د توافق جذبه ورځ په ورځ مخ په وړاندې ځی.

بیا د معیشت د دې نظام د عمارت د همیشه قائم ساتلو د پاره اسلام سخت قوانین وضع کړې دی او د دې نه په خلاف کولو باندې ئې سختی سزاګانې بیان کړی دی

د دولت د ارتکاز د مخ نیوی د پاره اسلام هر صاحب د مال ته وخت په وخت د مال خرچ کولو ترغیب ورکړې دې. لهذا د قرآن او د حدیث پاڼې د انفاق فی سبیل الله د فضائلو او د صفتونو او د بخل د بدګڼلو نه ډکې پرتې دی، اسلام هر صاحب د نصاب د زکوة او د واجبې صدقو د ایستلو پابند کړې دې، که چرې یو مالداره سړې خپل مال له د حرکت ورکولو په ځائ راجمع کوی او یو ځائې کښې ږدی نو د زکوة او د نورو واجبو حقونو په ادا کولو سره په کمیدو کمیدو دا مال آخر ختمیږی.

بل اړخ ته د مال په ګټلو کښې هم اسلام څوک داسې بې پیزوانه یعنی آزاد نۀ دې پریښې، چې د کومو ذریعو سره دې د دۀ خوښه وی مال دې راغونډوی او ځان سره دې جمع کوی، بلکه د دې د پاره ئې سختې ضابطې مقرر کړې دی، او د مال د ګټلو داسې یوه طریقه ئې هم روا کړې نۀ ده چې د هغې نه بل یو فرد یا جماعت ته نقصان ورسیږی. سود، قمار، رشوت، غصب او خیانت، غلا، په ناپ تول کښې کمې، ناجائزه نفع اخستل وغیره داسې ټولو ناجائزو ذریعو د آمدن باندې ئې سختې پابندی او سزا ګانې ذکرکړی دی، او د باطلو او د فاسدو عقدونو اوږد فهرست خو لا د دې

د پاسه دي.

د مال د ګټلو چې کومې ناجائزه ذريعې دی نو څنګه چې معلومه ده چې سود په هغې کښې د ټولو نه بدتره ذريعه ده او د انسانی معيشت بلکه د انسانی اخلاق او کردار د پاره يوه ډيره تباه کوونکې ذريعه ده نو د دې وجې نه اسلام په دې باندې د ټولو نه زياته پابندی لګولې ده.د دې ټول صورتونه ئې له سره حرام او پليت ګرځولې دی او سود خور ته ئې دومره زيات د ويرې وعيدونه اورولې دی چې که په چا کښې يوه ذره هم د آخرت احساس وی نو هغهٔ به د لوړې نه مړ شی ليکن د دې ګناه خيال قدر له به هم زړه ته نهٔ راولی.

## د ربا تفسير

لغوی معنی : د يو څيز زياتيدلو ،لويدل او ترقی کول.

د شريعت په اصطلاح کښې د دې نه مراد هغه خاص زيادت دې چې بې د څه مالی عوض نه ترلاسه شی، په دې کښې هغه زيادت هم داخل شوه کوم چې چا ته د قرض ورکولو نه وروستو د اصل مال نه علاوه ورکړې شی،کومې ته چې **ربا النسيئة** وئيلې شی، برابره خبره ده چې که دا قرض چرته د يو فائده مند کاروبار د پاره ورکړې شی او که د څه وختی حاجت د پاره ورکړې شی.

د دې کار د نن په شان په زمانې د جاهليت کښې هم عام رواج وو.

او د بيعې او د شراء هغه ټول صورتونه په کښې هم داخل دی چې په کښې بې د څه عوض نه زيادت موندلې شی، چې ورته **ربا الفضل** وئيلې شی.

دا قسم سود په زمانې د جاهليت کښې نهٔ وو، ليکن رسول الله ﷺ په اشارې سره د دې تصريح فرمائيلې ده چې دا قسم په کښې هم داخل دې:

**عن عبادة بن الصامت ﷺ قال قال رسول الله ﷺ:الذهب بالذهب والفضة بالفضة والبر بالبر والشعير بالشعير والتمر بالتمر والملح بالملح مثلا بمثل سواء بسواء يدا بيد فاذا اختلف هذه الاصناف فبيعوا كيف شئتم اذا كان يدا بيد** **(صحيح مسلم ج۲،ص۲۵،وعامة الكتب)**

((سرهٔ زر د سرو زرو په بدله کښې،سپين د سپينو په بدله کښې،غنم د غنمو په بدله کښې،اوربشې د اوربشو په بدله کښې،کهجورې د کهجورو په بدله کښې،مالګه د مالګې په بدله کښې، برابر په برابر يو شان او لاس په لاس کيدل لازم دی، ليکن که دا قسمونه يو له بل سره مختلف وی نو په برابرئ يا د کمی زياتی سره څنګه چې مو خوښه وی اخستل خرڅول کوئ،په دې شرط چې معامله لاس په لاس وی)).

**عن ابی سعيد الخدری ﷺ قال قال رسول الله ﷺ الذهب بالذهب والفضة بالفضة والبر بالبر والشعير بالشعير**

**والتمر بالتمر والملح بالملح مثلا بمثل يدا بيد فمن زاد واستزاد فقد اربی الاخذ والمعطی فيه سواء.** (پوره تنځ حواله)

سرهٔ زر د سروزرو په بدل کښې،سپين زر د سپينو زررو په بدل کښې،غنم د غنمو په بدل کښې،اوربشې د اوربشو په بدل کښې،کهجورې د کهجورو په بدل کښې،مالګه د مالګې په بدل کښې،برابر په برابر لاس په لاس دې وی، پس که چا زيات ورکړو يا ئې زيات واخستلو نو هغه د سود ګناه وکړه،په دې ګناه کښې اخستونکې او ورکوونکې دواړه برابر شريک دی.

دې ارشادات نبويه دا خبره ښکاره کړه چې ربا صرف پدې صورت پورې محدوده نهٔ ده چې چا له قرض ورکړې او د مودې او وقت په عوض ترې نه زياتې پيسې واخلې. بلکه د زياتئ نور هم ګڼ صورتونه په ربا کښې داخل دی،ددې مرتکب هم مرتکب د ربا دې او د ټولو قرآنی وعيداتو مصداق ګرځی،که د چا منکرِ حديث د دې نه انکار وی نو وی به خو ولې د مسلمان د پاره دا بالکل محل د تردد او د شک نهٔ دې،د دې دويم قسم د ربا په تفصيل کښې اختلاف دې. چې دا حکم يواځې په همدې شپږو څيزونو کښې منحصر دې او که نه نورو څيزونو ته هم شامل دې،او که چيرې نورو څيزونو ته هم شامل وی نو د کومې ضابطې او د قانون د لاندې داخل دې؟

د څلورو واړو امامانو رحمهم الله په نيز د دې شپږو څيزونو تخصيص نشته دې بلکه د حديث مراد يوه ضابطه ده د کومې د وضاحت د پاره چې دا شپږ څيزونه د مثال په توګه ذکر کړې شو.د حرمت د دې ضابطې په حقله د مجتهدينو امامانو رحمهم الله رائې مختلفې دی د کومې د تفصيل چې دا موقع نهٔ ده

خلاصه دا چې د احنافو رحمهم الله په نيز د ربا د متحقق کيدلو شرط اتحاد د قدر او د جنس دې. يعنی که د مکيلی يا موزونی څيزونو په خپلو کښې مبادله کولې کيږی نو دا ضروری ده چې د دواړو اړخونو څيزونه دې برابر برابر او معامله دې لاس په لاس وی.او که داسې ونهٔ شی نو د سود ګناه به کيږی،او که يواځې اتحاد د قدر وی يا اتحاد د جنس وی نو بيا په کښې برابرې کول شرط نهٔ دې. ليکن معامله په کښې لاس په لاس کيدل بيا هم ضروری دی.

د مالکيانو په نيزد په سرو او سپينو زرو کښې د حرمت علت د دوی ثمن کيدل دی او په باقی څيزونو کښې د د حرمت نسيئه يعنی د قرض د حرمت علت طعم دې يعنی د خوراک د ټولو څيزونو په مبادله کښې قرض کول حرام دی او موجب د ربا دی،او د فضل يعنی د کمی زياتی د حرمت علت اقتيات يعنی د غذائيت کيدل او ذخيره کيدل دی يعنی چې کوم څيزونه د انسان لپاره غذا جوړيږی او په ذخيره کولو سره نهٔ خرابيږی د دوی يو بل سره په مبادله کښې برابر برابر کيدل شرط دی

د شوافعو په نيزد په سرو اوسپينو زرو کښې علت د حرمت نقديت يا ثمنيت دې يعنی چې دا د ټولو څيزونو د پاره ثمن دې، او په باقی پاتې څلورو واړو څيزونو کښې علت د حرمت هغه طعم دې يعنی د خوراک په څيزونو کښې د مبادلې په وخت د دواړو اړخونو د څيزونو برابريدل او دغه

رنګې دا معامله لاس په لاس کیدل ضروری دی او که نه نو د ربا ګناه به پرې لازمیږی.

د حنابلو په مذهب کښې مشهور روایت خو د احنافو د مذهب په شان دې یعنی اتحاد د جنس مع الوزن یا اتحاد د جنس مع الکیل دې،دویم روایت په کښې د شوافعو د مذهب مطابق دې،او دریم روایت په کښې دا دې چې د سرو او سپینو زرو نه علاوه په باقی څیزونو کښې علت د حرمت طعم او کیل او وزن دې یعنی چې کوم د خوراک څیزونه په تول یا په ناپ سره خرڅولې کیږی صرف په هغې کښې به د ربا احکام جاری کیږی.

څنګه چې معلومه ده چې ظواهر له قیاس نه منکر دی ددې وجې نه د هغوی په نیز دا حکم یواځې په دې شپږو څیزونو کښې منحصر دې،د تفصیل د پاره وګورئ الفقه الاسلام و ادلته ص ۶۷٤، ج: ۴.

اوس د ربا د حرمت په حقله آیتونه او احادیث وړاندې کولې شی:

**آیتونه:**

﴿الَّذِينَ يَأْكُلُونَ الرِّبَوٰا۟ لَا يَقُومُونَ إِلَّا كَمَا يَقُومُ الَّذِى يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطَٰنُ مِنَ الْمَسِّ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوٓا۟ إِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبَوٰا۟ وَأَحَلَّ اللَّهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبَوٰا۟ فَمَن جَآءَهُۥ مَوْعِظَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ فَانتَهَىٰ فَلَهُۥ مَا سَلَفَ وَأَمْرُهُۥٓ إِلَى اللَّهِ وَمَنْ عَادَ فَأُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٧٥﴾﴾ (۲ : ۲۷۵)

**ترجمه:** کوم خلق چې سود خوری نۀ بهاودریږی مګر په شان د هغه سړی چې لیونې کړې وی هغهٔ له شیطان په لاس وروړلو سره،دا ځکه چې دوی وائی چې سوداګری هم د سود په شان ده حال دا چې الله سوداګری حلاله کړې ده او سود ئې حرام کړې دې نو چا ته چې د خپل رب د اړخه نصیحت راغلو او هغه منع شونو څه چه وړاندې شوې دی هغه هم د دهٔ شول او د هغهٔ معامله الله تعالی ته وسپارلې شوه،او څوک چې سودی کار ته بیا واپس راغلو نو دا خلق به دوزخ ته ځی،دوی به په دې کښې همیشه پراتهٔ وی.

په دې آیت کښې د سود خور عبرتناك انجام بیان کړې شوې دې چې هغوی به په میدان د حشر کښې په شان د هغه سړی ودریږی لکه چې پیریانې انسان ودریږی،دا خلق په دنیا کښې د مال په محبت کښې د لیونتوب د حده پورې بندیوان وو،داسې لیونتوب چې د بیعې او د ربا فرق ئې هم په دوی باندې پټ وساتلو،د دې وجې نه به ئې الله تعالی هم د قیامت په ورځ هم په دې حالت کښې راپورته کوی،دې د پاره چې خبط او جنون ئې **علی رؤس الاشهاد** ښکاره شی. لکه څنګه به چې پرهیزګاران مؤمنان د حشر په میدان کښې داسې راښکاره کیږی چې روښانه تندی او روښانه اندامونه به ئې وی،همدغه شان به دا سود خوارهٔ دخپل لیونتوب او د غیر انسانی حرکاتو سره د

ټول انسانیت په وړاندې خوار او ذلیل کیږي۔

**فقد اخرج الطبرانی عن عوف بن مالك رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: ایاك الذنوب التی لا تغفر الغلول فمن غل شیئاً اتی به یوم القیامة واكل الربا فمن اكل الربا بعث یوم القیامة مجنوناً یتخبط ثم قرء الآیة (روح المعانی ص ۴۲ ج ۳، مجمع الزوائد ص ۱۱۹، ج ۴)**

**قال الهیثمی رحمه الله: وفیه الحسین بن عبد الاول وهو ضعیف.**

رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: هغه ګناه چه د معافئ قابله نۀ وی د هغې نه ځان وساتئ، څینې د هغې نه د غنیمت دمال غلا ده، کوم سړې چې د غنیمت څه څیز پټ کړی د قیامت په ورځ به د هغې سره حاضریږی، او بل سود خوراک دې چا چې سود اوخوړلو د قیامت په ورځ به مجنون خبطی راپاسولې شی، بیا دوئ ﷺ په استشهاد کښې دا آیت تلاوت اوفرمائیلو۔

د سود خور د دې سزا سبب د هغوی دا قول دې **انما البیع مثل الربوا**، یو خو دې خلقو یو قطعې حرام کار وکړو او دالله تعالی د قانون واضحه خلاف ورزی ئې اوکړه، دا جرم څه لږ سخت نه وو چې دوی د دې نه هم یو قدم وړاندې لاړل او قانون د الله تعالی ته ئې اختار ورکړو چې (بیعه خو هم د سود په شان ده) د دې سرکشئ په جرم کښې دوئ د همیش د پاره د جهنم خشاک اوګرځیدل۔

د هغوی دا بې اساسه دلیل د دوی د جهالت او د نالائق والی ښکاره دلیل دې نو ددې وجې نه هم قرآن کریم د دوی د دې جهالت جواب د عالمانه طرز په ځائې په حاکمانه انداز کښې ورکړو چې **واحل الله البیع وحرم الربوا**.

اوکه نه نو د بیع او د ربا فرق د لوئې نه لوئې احمق نه هم پټ نۀ دې، د تجارت بنیاد یو بل ته په نفع رسولو او په تعاون او مدد کولو باندې دې، بائع او مشتری خپل جسمانی طاقت، ذهنی صلاحیت او قیمتی وخت خرچ کوی او چې کوم مال حاصلوی نو دهغې یو بل سره بدلون اوکړی او یو بل ته او بالواسطه ټول قوم ته فائده رسوی۔

ددې په عکس د سود بنیاد په خود غرضئ، مفاد پرستئ او د مال په ګټلو باندې دې، سود خور مال قرض ورکړی او ټاکلې شوې سود کور کښې په ناسته اخلی، دې خبرې سره ئې هیڅ غرض نشته چې قرض داری ته د دې مال له کبله څه ګټه هم وشوه او که نه په تاوان کښې دې؟ د سود پیسې هغه دنفعې نه ما له راکوی اوکه نه د خپلې سرمایی نه اویا بلکه په خیر راټولولو سره ئې ماته رارسوی؟

ددې نه علاوه له بل طرفه هم دا فرق واضحه دې چې د بائع او د مشتری په خپل مینځ کښې د معاملې د کیدلو نه پس بیا دغه معامله ختمه شی، بائع چې د مشتری نه کومه لږ یا ډیره نفع اخستل غوښتل هغه ئې یو ځل واخستله. لیکن سود خور خو د نیتې نفع اخلی او مسلسل ئې

اخلی، برابره خبره ده که قرض داريږ د دهٔ د مال نه فائده اخلی او که نه اخلی؟
مثلا يو سړی سودی قرض واخستلو او په خپل وختی ضرورت کښې ئې ولګولو او يا د هغه نه دا د سود قرض پټ کړې شو يعنی غلا ترې نه وشوه،اوس د دې سود دقرض چې کوم پیسې دی د دې په واپس کولو باندې قدرت نه لری، نو اوس دې د دغه سود خور دائن له اړخه د هيڅ قسمه رعايت او دتخفيف مستحق نهٔ دې، بلکه دا پيرې به اوس دهٔ پورې ورځ ته ورځه نور هم ننبلی، تردې چې دې خپله ټوله دارايی،کور او سامان او د تن جامې ټول راوباسی او خرڅ ئې کړی او قرض ورته سره د سوده ورکړی، په تجارت او کاروبار کښې د لرې لرې پورې د داسې بې رحمئ څه امکان نشته.

۲- ﴿ يَمْحَقُ ٱللَّهُ ٱلرِّبَوٰا۟ وَيُرْبِى ٱلصَّدَقَـٰتِ ۗ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ أَثِيمٍ ﴿٢٧٦﴾ ﴾ (۲ : ۲۷۶)

**ترجمه**: الله تعالی سود لره ختموی او صدقو لره زياتوی،او الله تعالی نه خوښوی څوک کفر کوونکې، څوک ګناه کوونکې.

د سود مال چې هر څومره زيات شی آخری انجام ئې دا وی چې الله تعالی يې نيست او نابود کړی داسې مال نهٔ په دنيا کښې خوريږی او نه په آخرت کښې څه فائده لری.

**عن ابن مسعود ﷺ ان النبی ﷺ قال: الربا وان کثر فان عاقبته تصير الی قل (مسند احمد ص ۳۹۵ ج ۱،ابن ماجه ص ۱۶۵،حاکم ص ۳۷ ج ۲)**

**قال الحاکم رحمه الله: هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه واقره الذهبی رحمه الله.**

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو:د سود مال اګرچه زيات شی ليکن دهغې انجام(هميشه بې برکتی او)کمئ اړخ ته روان وی.

د دې خبيث مال د کثرت نه قلت اړخ ته راتلل څه نظرياتی مسئله نهٔ ده بلکه د غړيدلو سترګو مشاهده ده چې د سود خور مال زيات شی او ډير زيات شی تر دې چې د ډيرو کتونکو ورته د خولې نه لاړې بهيږی . **يَـٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ أُوتِىَ**.

ليکن چې څنګه پرې څه مصيبت راشی نو سمدستی د کروړونو نه راوخويږی او لکونو ته راشی او بيا د لکونو نه زرګونو او سوونو ته راشی،آخر دا چې د ټکې ټکې حاجت مند شی او دا چغه وهی چه:

دیکھو مجھے جو دیدۂ عبرت ھو !

(يعنی څوک چې عبرت اخستل غواړئ نو ما ته اوګورئ)

دا هم يو داسې حقيقت دې چې انکار ترې نه نشی کيدلې چې د داسې مال لګول څه په جائز او

معقولی مصرف کښې نه وی، په عامه توګه دا د غلو اوډاکوانو خیټو ته لاړ شی، یا د پولیس د پاره غوره نوړئ جوړه شی، او یا پرې ناګهانی آفتونه او حادثې او مصیبتونه راشی، ورسره دا چې د الیکشن (چې څلور پینځه ملیونه روپئ خرچ کیدل خو په هغې کښې معمولی خبره ده) پیرې هم د داسې خلقو په سر سپور وی، او چا ته پته نه لګی چې چکلو (زناخانو) د قمار مرکزونه، شراب خانې د همداسې خلقو د دم قدم له برکته آبادې دی، غرض دا چې حرام مال د دې خبر مصداق شی

چې (مال حرام بود بجائے حرام رفت) او د خپل ځان د خرچ کیدلو د پاره لارې په خپله ولټوی.

که چیرې شاذ او نادر د سود مال چا سره محفوظ پاتې هم شی نو د سود خور په طبیعت کښې سنګ دلی، د زړه تنګ والې، بزدلی، او د لیونتوب د حده پورې حرص او هوس او د ذلیل توب او رذیل توب ډیر زیات وی او د دهٔ نه د دې اظهار هم وخت په وخت کیږی.

دا د دهٔ د دنیا انجام وو، په آخرت کښې د سود د مال بې فائدې کیدل بالکل ښکاره خبره ده، داسې مال د ګټونکی د پاره د غاړې کړئ او د سر د پاره مصیبت دې، د دې مال نه کړې شوې صدقه او خیرات، حج او جهاد، او صله رحمی ټول تباه او برباد دی.

**عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: ایها الناس ان الله طیب لا یقبل الا طیبا ـ الحدیث (صحیح مسلم ص۳۲۶ ج۱)**

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: اې خلقو! واورئ چې د الله تعالی ذات پاک ذات دې او د هغه په دربار کښې صرف پاک مال قبلیږی.

د سود په عکس د صدقې مال الله تعالی په دنیا او آخرت کښې زیاتوی.

**عن ابی هریرة رضی الله عنه ان النبی ﷺ قال: ما من یوم یصبح العباد فیه الا ملکان ینزلان فیقول احدهما اللهم اعط منفقا خلفا ویقول الاخر اللهم اعط ممسکا تلفا (صحیح بخاری ص۱۹۴ ج۱، صحیح مسلم ص۳۲۵ ج۱)**

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: هرصبا دوه فرښتې له آسمان نه راکوزیږی یوه وائی چې: یا الله خرچ کوونکی ته بدله ورکړې.

او دویمه وائی: یا الله مال له ځان سره ایساروونکې ته بربادی ورکړې.

**عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: من تصدق بعدل تمرة من کسب طیب ولا یقبل الله الا الطیب فان الله یتقبلها بیمینه ثم یربیها لصاحبه کما یربی احدکم فلوه حتی تکون مثل الجبل (صحیح بخاری ص۱۸۹ ج۱، صحیح مسلم ص۳۲۶ ج۱)**

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: چا چې د پاکې ګټې نه د کهجورې د دانې په مقدار صدقه وکړه، او الله تعالی هم پاکیزه مال قبلوی، نو الله تعالی هغه په ښی لاس کښې اخلی او قبلوی

نې، بیا د صدقې ورکوونکی د پاره دا زیاتوی لکه څنګه چې په تاسو کښې یو سړې خپل بچیان پالی او غټوی ئې تر دې چې هغه صدقه زیاته شی او د غر په اندازه شی.
څنګه چې د حرام مال د تباه کیدلو یوڅه اندازه تفصیل بیان کړې شو، دغه شان په پاک مال کښې د الله تعالی له اړخه برکت او زیاتوالې کول هم یوه مشاهده او حقیقت دې، یو خو داسې مال په څه غلط ځائ کښې نه ضائع کیږی، بل دا چې عام خلقه د څه مقصد دپاره ډیر مال او دولت او محنت خرچ کوی، د صالح او د دین داره سړی هغه مقصد د لګو روپو په خرچ کولو په کور کښې په ناسته الله پاك پوره کړی.

## د عبرت سبق

د زکوة او صدقاتو د ورکولو په برکت سره د مال زیاتیدل او د زکوة او صدقاتو د حصارولو د سپیره والی نه د مال کمیدل یو داسې واضحه او روښانه حقیقت دې، چې د یو منصف طبیعت لرونکی کافر هم دومره وس نشته چې د دې نه انکار وکړی، خو افسوس دې چې د رنګ او روغن د تیارې د نن مسلمان د نظر نه دا روښانه او واضحه حقیت پټ ساتلې دې، په دې مسلمانه معاشره کښې څومره مسلمانان دی چې فرض زکوة نه ورکوی، هغوی ته دخپل مال څلویښتمه حصه په زکوة کښې ورکول ګران دی، لیکن بل اړخ ته ئې دا خوښه ده چې په مرضونو، آفتونو، حادثو او په ناجائزه مصرفونو کښې دې د دې نه په لس چنده زیات مال مصرف شی.
د مصرع ترجمه: ستا د عاشقانو خوئ مې په پوهه کښې نهٔ راځی.
لاندې د اسلام د یو دښمن «انګریز» واقعه بیانولې شی کیدې شی چې د چا غافله مسلمان د پاره د عبرت ذریعه وګرځی:
حضرت اقدس مولانا محمد زکریا صاحب کاندهلوی قدس سره فرمائی:
ما په ماشومتوب کښې د خپل پلار محترم نه او د نورو ډیرو کسانو نه دا واقعه اوریدلې ده چې په سهارنپور ضلع کښې د بهټ کلی نه وړاندې د انګریزانو څه بنګلې وې، د هغه ځائ په خوا کښې چې په کوم ځائې کښې د اعلی حضرت رائې پوری نور الله مرقده انتقال شوې وو، او دې سره خواو شا ډیر بنګلې وې چې کاروباری وې چې د دغه انګریزانو کاروبارونه به په کښې کیدل او د دوی مسلمانانو نوکرانو به په کښې کار کولو، او دغه انګریزان به په دهلی، کلکته وغیره غوندې غټو غټو ښارونو کښې پاتې کیدل، کله کله به په خپل کاروبار باندې د نظر اچولو په ارادې سره دې خوا ته راغلل، یو ځل په دغه ځنګل کښې اور ولګیدلو، کوم چې به په مختلفو وجوهاتو سره کله کله دغلته لګیدلو، او د دغه ځائ باغونه او ځنګلونه به ئې سوزول، یو ځل په دغه ځنګل کښې اور ولګیدلو او نزدې نزدې ټولې بنګلې ئې وسوزولې، یو نوکر خپل مالک ته د خبر ورکولو د پاره دهلې ته منډه کړه، او ورته ئې اووئیل چې حضرت ټولې بنګلې وسوزیدلې، او ستاسو بنګله

هم وسوزیدله.هغه انګریز د څه په لیکلو کښې مصروف وو. ډیر په آرام سره ئې لیکل کول،او د دهٔ اړخ ته ئې څه توجه ونه کړه،نوکر دوباره په تیز آواز سره اووئیل،چې حضرت هر څه وسوزیدل.هغه په دویم ځل هم څه جواب ورنهٔ کړو،او په بې پروائې سره ئې ورته اووئیل چې زما بنګله نهٔ ده سوزیدلې،او په بې فکرئ سره ئې لیکل کول،نوکر چې ورته په دریم ځل اووئیل،نو انګریز ورته په جواب کښې اووئیل،چې زهٔ د مسلمانانو په طریقه زکوة ادا کوم،د دې وجې نه زما مال ته څه نقصان نهٔ شی رسیدلې،دغه نوکر خو د دې وجې نه په منډه منډه راغلې وو چې بیا زما نه څه تپوس اوپوښتنه ونهٔ شی،چې بیا به دوی وائی چې مونږ ته دې څه خبر رانهٔ کړو،هغهٔ چې د انګریز دا د لاپروایئ جواب واوریدلو نو واپس راغئ نو ګوری چې په رښتیا ټولې بنګلې سوزیدلې وې لیکن د انګریز بنګله باقی پاتې وه.

**فائده**: د الله تعالی شان ته وګورئ چې د اسلام په یو حکم باندې یو غیرمسلم عمل کوی او فائده ترې اوچتوی،او مونږ خلق دې د زکوة په نهٔ ادا کولو باندې خپلو مالونو ته نقصان رسوو، هغهٔ نقصان داسې چې کله ډاکه پرې وشی، چرته غلا شی،او کله کله څه بل څه آفت پرې راشی.
(آپ بیتی ص ۸۸،ج ۲)

۴۰۳ - ﴿ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا۟ فَأْذَنُوا۟ بِحَرْبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ۖ وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَٰلِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ ﴿٢٧٩﴾ ﴾ (۲ : ۲۷۹)

**ترجمه**:- اې مؤمنانو: د الله تعالی نه اوویرېږئ،او کوم څه چې د سود نه باقی پاتې دی هغه پرېږدئ، که چیرې تاسو مومنان یئ، بیا که چیرې تاسو داسې ونه کړل نو اعلان واورئ د جنګ د الله له اړخه او د هغهٔ د رسول له اړخه،او که چیرې تاسو توبه اوویستله،نو تاسو ته به ستاسو اصل مال درکړې شی، نه به تاسو په چا باندې ظلم کوئ او نهٔ به په تاسو باندې څوک ظلم کوی.

حضراتو مفسرینو ﷺ ددې دواړو آیتونو شان نزول دارنګه لیکلې دې:

د ثقیف د خاندان د عمرو بن عمیر دمخزومی خاندان بنو مغیره په ذمه باندې سودی قرض راروان وو هغوی چې د ربا د حرمت نه پس کله له قرض سره د سود مطالبه وکړله نو بنو مغیره ورله جواب ورکړوچې اوس دمسلمانیدلو نه وروستو به مونږ د خپل اسلام د زمانې په ګټه کښې سود نه ورکوو، د دواړو خاندانونو معامله د مکې مکرمې د والی حضرت عتاب بن اسید ﷺ محکمې ته راغله، نو هغوی دا معامله ولیکله او د رسول الله ﷺ دربار ته یې ولیږله. په دې باندې دا آیتونه نازل شول، رسول الله ﷺ دا ولیکل او حضرت عتاب بن اسید ﷺ ته ئې ولیږل.د قرآن مجید سخت خبردارې چې بنو ثقیف واوریدلو نو هغوی اووئیل، مونږ دالله تعالی په دربار کښې توبه اوباسو،اوباقی سود پرېږدو،لهذا د هغې نه ئې څه سود وانخستلو (ابن کثیر ص ۳۳۰،ج ۱وغیره)

یو خو د سود په نهٔ پرېښودلو باندې دمسلمانانو د ولې نه د وتلو وعید

وذروا مابقي من الربوا ان كنتم مؤمنين

دا هم داسې ده لکه په یو بل ځای کښې چې فرمائیلې شوې دی:

واطيعوا الله ورسوله ان كنتم مؤمنين (۸: ۱)

فالله احق ان تخشوه ان كنتم مؤمنين (۹: ۱۳)

ددې وعید خلاصه داده چې که تاسو مؤمنان یئ نو د ایمان داری تقاضه پوره کړئ. او د دې جرم نه منع شئ، او که نه نو ستاسو د ایمان دعوې ته بیا هیڅ اعتبار نشته.

او دویم وعید هغه د سود نه پرېښودلو په صورت کښې د الله او د الله رسول ﷺ سره د جنګ اعلان دې، دا د سود خورو د پاره د ټولو نه لوئ او آخری خبرداری دې، چې د دې جرم نه منع شئ او که نه نو د الله او د الله د رسول ﷺ له اړخه د جنګ اعلان واورئ.

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه:

د قیامت په ورځ به سود خور ته اووئیلې شی، وسله اوچته کړه او جنګ د پاره تیار شه. بیا ئې دا آیت تلاوت اوفرمائیلو: فان لم تفعلوا. (ابن کثیر ص ۳۳۰، ج ۱ وغیره)

او له همدوی نه منقول دی: کوم سړې چې د سود خورئ نه لاس نه اخلی نو په مسلمان حاکم باندې لازم دی چې اول خو دې ورته د توبې تلقین وکړی، که منع شو نو ښه خبره ده او که منع نه شو نو سر دې ورله د تنه جدا کړی. (پورتنئ حواله)

په سود خورئ باندې د الله تعالی غضب او عذاب دومره سخت دې چې په قرآن شریف کښې د شرک نه پس د سود نه علاوه د لوئې نه لوئې ګناه باندې د جنګ اعلان نهٔ دې کړې شوې.

که د چا سود خور په زړه کښې د زرې برابر هم د آخرت فکر وی نو د هغه د راویښولو دپاره دا وعید کافی دې، په احادیثو مبارکو کښې د کبائرو ډیر اوږد فهرست موندلې شی، لیکن په هیڅ یوې کبیره ګناه باندې هم ددې نه سخت وعید نه دې اورولې شوې، سود یواځې شرعی لحاظ سره نه بلکه معاشی، تهذیبی، اخلاقی او انسانی لحاظ سره هم یو بدترین، سنګینه او هلاکوونکې جرم دې، سود خور په حقیقت کښې یو آدم خور شرمخ (لیوه) دې، بلکه د شرمخ نه هم وراخوا خطرناک دې ځکه چې شرمخ په بل شرمخ باندې ډیره کمه حمله کوی، لیکن د انسان په جامه کښې دا شرمخ هم د خپل نسل د خلقو وینې سکی او هغه ځان ته راکاږی او پرې غټیږی، امام ابو عبدالله قرطبی رحمه الله د (فان لم تفعلوا فاذنوا بحرب من الله ورسوله) لاندې نقل کړی دی چې یو سړې د امام مالک بن انس رحمه الله خدمت کښې حاضر شو. او عرض ئې اوکړو چه: (ما د شرابو عادتی په نشه کښې مست یو داسې سړې ولیدلو چې د سپوږمئ د نیولو کوشش ئې کولو، په دې باندې ما اووئیل (که د

انسان په خيټه کښې د شرابو نه هم بد يو څيز داخليدونکې وى نو په ما دې ښځه طلاقه وى)
انس بن مالک ﷺ ورته اوفرمائيل : ته اوس واپس لاړ شه چې زه ستا په مسئله کښې غور او فکر اوکړم.
هغه په دويمه ورځ راغې نو دوئ ورته اوفرمائيل : ته اوس واپس لاړ شه چې زهٔ ستا په مسئله کښې غور او فکر اوکړم:
هغه په دريمه ورځ بيا راغئ نو دوئ ﷺ ورته اوفرمائيل: ستا ښځه په تا طلاقه شوه، ځکه چې ما په کتاب الله او په سنت رسول الله ﷺ کښې ډير زيات غور او فکر وکړو ليکن د سود نه زيات خراب او بد څيز مې په نظر رانغلو، ځکه چې په دې باندې د الله تعالى له اړخه د جنګ اعلان دې.
(الجامع الاحكام القرآن ص۳۶۳ ج۲)

**٥، ٦:-** ﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَأْكُلُوا۟ ٱلرِّبَوٰٓا۟ أَضْعَـٰفًا مُّضَـٰعَفَةً ۖ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٣٠﴾ وَٱتَّقُوا۟ ٱلنَّارَ ٱلَّتِىٓ أُعِدَّتْ لِلْكَـٰفِرِينَ ﴿١٣١﴾ ﴾ (۳ : ۱۳۱)

**ترجمه** : اې مؤمنانو! سود مهٔ خورئ څو چنده زيات، او د الله تعالى نه اوويريږئ، کيدې شى چې تاسو کامياب شئ. او د هغه اور نه ځان وساتئ کوم چې د کافرانو د پاره تيار کړې شوې دې.

په ړومبى آيت کښې د تقوى تلقين وکړې شو، چې د الله تعالى نه وه ويريږئ او د سود خورئ نه منع شئ. په زمانې د جاهليت کښې عام رواج وو چې مهاجنو به يوه خاص نيټه مقرر کوله او په سود باندې به ئې قرض ورکولو، د نيټې د تيريدو نه پس به چې کله د قرض دارى د قرض د ورکولو طاقت نهٔ وو، نودوى به ورته د سود مقدار زيات کړو او د آينده د پاره به ئې ورله نوره نيټهٔ ورکړله چې د دويمې نيټې په راتلو باندې به ئې هم قرض ادا نه کړې شو، نو سود به ئې ورته نور هم زيات کړو، دغه شان د وخت په تيريدلو سره به دا سود په دوچند کيدلو دوچنده کيدلو سره زياتيدلو. په پورتنى آيت کښې مسلمانان ويرولې شوې دى چې د دې انسان دښمن کار نه لرې اوسيږئ.

د (اضعافا مضاعفا) مطلب دا نهٔ دې چې سود صرف په دې صورت کښې حرام دې چې هغه دوچند په دوچنده وى، دا قيد په حقيقت کښې قيدِ احترازى نهٔ دې بلکه قيدِ واقعى دې، يعنى په زمانې د جاهليت کښې چې د سود کومه غيرانسانى طريقه راروانه وه، د هغې بد والې بيان کړې شوې دې، او که نه نو د سود د ټولو صورتونو حرام کيدل خو د پورته آيت نه واضحه شوى دى.

ورسره دا چې کوم سړې د سود خورئ په لعنتى عادت باندې اخته شى نو آخرى انجام به ئې دا وى چې د جاهليت د زمانې په دې مرض کښې به مبتلا کيږى. يعنى د سودلړ شان مال به دوباره په سود باندې ورکوى، بيا دغه سود په سود باندې ورکوى، نو چې زياتيږى زياتيږى آخر به اضعافا

مضعافا ته ورسیږی.
بلکه د سود خور اصل سرمایه چې کله محفوظه پرته ده، او هغه نیته په نیته سود اخلی، نو د څه وخت په تیریدلو باندې به دا سود د اصل سرمایې او مال نه زیات شی، او نور به هم زیاتیږی، دغه شان هر سودی مال نه اضعافا مضاعفا جوړیږی، مطلب دا چې د سود یوه روپئ هم د زړه مرض دې.
په دې مقام باندې هم د ړومبی آیت په شان د جهنم وعید واورولې شو اوبله دا چې دا اور په حقیقت کښې د کافرانو د پاره تیار کړې شوې دې، ګویا د سود خور ځائ د کافرانو سره ښودلې شوې دې.
امام قرطبی رحمه الله په دې مقام باندې یوه ډیره په زړه پورې خبره فرمائیلې ده، فرمائی چې:
د دې وعید اصل مصداق هغه کافران دی چې ربا حلاله ګڼی او اخلی یئ، لیکن ځینی مفسرینو دا تفسیر فرمائیلې دې چې د دې بدترینې ګناه نه ځان وساتئ د کوم انجام او انتهاء دا ده چې ایمان به درنه سلب شی، او تاسو نه به د همیشه همیشه د پاره د جهنم خاشاک جوړ کړې شی، ډیر کبائر داسې دی چې د هغې د سپیرهٔ والی د لاسه انسان نه د مرګ په وخت کښې ایمان سلب شی، چې په کښې د والدینو نافرمانی، رشته دارانو سره تعلق پرېښودل، سود خوری، په امانت کښې خیانت کول، او د الله تعالی په بندګانو باندې ظلم کول د ذکر کولو قابلې دی.

(الجامع الاحکام القرآن ص ۲۰۲ ج ٤)

دا شپږ آیتونه د ربا په حرمت باندې نصوص قطعیه دی، د دې نه علاوه نور هم ډیر آیتونه د ربا په حرمت باندې صراحتاً او اشارةً دلالت کوی لکه:

﴿ وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ ﴾ (۲:۱۸۸)

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ ﴾ (٤:۲۹)

﴿ وَأَخْذِهِمُ ٱلرِّبَوٰا۟ وَقَدْ نُهُوا۟ عَنْهُ ﴾ (٤:۱٦۱)

﴿ سَمَّٰعُونَ لِلْكَذِبِ أَكَّٰلُونَ لِلسُّحْتِ ﴾ (٥:٤۲)

﴿ وَمَآ ءَاتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَا۟ فِىٓ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ فَلَا يَرْبُوا۟ عِندَ ٱللَّهِ ﴾ (۳۰:۳۹)

مونږ د اختصار د خیال ساتلو له کبله د دې په تشریح کښې د راندې تللو په ځائ اوس یوڅو احادیث تاسو ته پیش کوو:

## احادیث:

عن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال: اجتنبوا السبع الموبقات قالوا یارسول الله وما هن؟

قال الشرك بالله والسحر وقتل النفس التي حرم الله الا بالحق واكل الربوا واكل مال اليتيم والتولي يوم الزحف و قذف المحصنات المؤمنات الغافلات (صحيح بخاري ص ۳۸۸ ج ۱، صحيح مسلم ص ۶۴ ج ۱) واللفظ للبخاري

رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: د اووه هلاکوونکو ګناهونو نه ځان وساتئ.

صحابهٔ کرامو ﷺ عرض وکړو ! یارسول الله ﷺ هغه کوم دی؟

رسول الله ﷺ ورته ارشاد اوفرمائیلو: د الله تعالی په ذات یا په صفاتو کښې د هغهٔ سره څوک شریک ګرځول، جادو کول، او د هغه نفس ناحقه قتلول چې الله تعالی د هغه قتلول حرام ګرځولې دی، او که چرې په روا طریقه (په حکم د شریعت) سره وی نو خیر دې، سود خوړل، د یتیم مال خوړل، د الله تعالی دښمنانو سره په سخت جنګ کښې په شا تیښته کول، او په پاک دامنه بې خبره مومنو ښځو باندې تور اوبهتان تړل.

۲- عن سمرة بن جندب ﷺ قال قال النبي ﷺ رايت الليلة رجلين اتياني فاخرجاني الى ارض المقدسة فانطلقنا حتى اتينا على نهر من دم فيه رجل قائم وعلى وسط النهر وفي رواية على شط النهر رجل بين يديه حجارة فاقبل الرجل الذي في النهر فاذا اراد الرجل ان يخرج رمى الرجل بحجر في فيه فرده حيث كان فجعل كلما جاء ليخرج رمى في فيه بحجر فيرجع كما كان فقلت من هذا فقال الذي رايته في النهر اكل الربوا (صحيح بخاري ص ۱۸۵، ص ۲۸۰، او ص ۱۰۴۳، ج ۲، وغيرها من مواضع عديدة)

**ترجمه**:- رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: د شپې ما په خوب کښې ولیدل چې دوه سړی ما ته راغلل، او زهٔ ئې دیوې پاکې زمکې اړخ ته بوتلم، مونږ روان وو تر دې چې د وینو یو نهر ته ورسیدلو چې یو سړې په کښې ولاړ وو او د نهر په غاړه یو بل سړې ولاړ وو چې مخې ته ئې کانی پراتهٔ وو، کوم سړې چې په نهر کښې وو هغه تلل شروع کړل هر کله چې هغه غوښتل چې د نهر نه بهر شی، نو په غاړه چې کوم سړې ولاړ وو هغهٔ هغه په کانی وه ویشتلو، او واپس یې خپل ځائې ته وه غورزولو. همدغه شان چې هغه به کله هم د راوتلو کوشش کولو دهٔ به هغه په مخ باندې اوویشتلو او خپل وړومبی ځائې ته به ئې واپس کړو، ما تپوس وکړو چې دا څوک دې؟ نو هغهٔ اوونیل چې په نهر کښې دننه سړې (چې سنګ باری پرې کیږی) هغه سود خور دې.

۳ - عن جابر ﷺ قال لعن رسول الله ﷺ اكل الربا وموكله وكاتبه وشاهديه وقال هم سواء (صحيح مسلم ص ۲۷ ج ۲)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ سود په خپله خوړونکی، سود په بل باندې خوړونکی، د سود د لیک په

لیکونکی، او په سود باندې ګواه جوړېدونکو باندې لعنت وئیلې دې او فرمائیلې ئې دی چې دا ټول په ګناه کښې برابر شریک دی۔

۴۔ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: اربعة حق علی الله ان لا یدخلهم ولا یذیقهم نعیمها مدمن الخمر واکل الربا واکل مال الیتیم بغیر حق والعاق لوالدیه (المستدرک ص ج ۲)

قال الحاکم رحمه الله: هذا حدیث صحیح الاسناد ولم یخرجاه وقد اتفقا علی خثیم وقال الذهبی رحمه الله: قلت ابراهیم قال النسائی متروک.

**ترجمه**۔ رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: د څلورو سړو په حقله الله تعالی دا په خپله ذمه اخستې ده چې هغوی به جنت ته داخل نهٔ کړي، او نه به ورته د جنت نعمتونه وروڅکي۔ د شراب عادتی سړی، سود خور، د یتیم دمال په ناحقه خوړونکې، د مور پلار نافرمانه۔

۵ – عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال: الربا ثلاثة وسبعون بابا ایسرها مثل ان ینکح الرجل امه وان اربی الربا عرض الرجل السلم (المستدرک ص ج ۲) قال الحاکم رحمه الله هذا حدیث صحیح علی شرط الشیخین ولم یخرجاه واقره الذهبی رحمه الله.

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائیلو: په سود کښې درې اویا ګناهونه دی چې د ټولو نه سپکه ګناه په کښې داسې ده لکه چې یو سړې خپلې مور سره بدکاری وکړی، او بد ترین سود د یو مسلمان بې عزته کول دی

۶۔ عن عطاء الخراسانی ان عبدالله بن سلام رضی الله عنه قال: الربا اثنان وسبعون حوبا اصغرها حوبا کمن اتی امه فی الاسلام ودرهم من الربا اشد من بضع وثلاثین زنیة قال: ویاذن الله بالقیام للبر والفاجر یوم القیامة الا لاکل الربا فانه لا یقوم الا کما یقوم الذی یتخبطه الشیطان من المس (مصنف عبدالرزاق ص ج ،شعب الایمان للبیهقی ص ج ،الدر المنثور ص ج ) قال الهیثمی رحمه الله: وعطاء الخراسانی لم یسمع من ابن سلام (مجمع الزوائد ص ج )

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه اوفرمائیل په سود کښې دوه اویا ګناهونه دی چې په کښې ادنی ګناه دا ده چې یو سړې په حالت د اسلام کښې خپلې مور سره بدکاری وکړی، او د سود یو درهم د درې دیرشو خلو زنا کولو نه زیات بد دې، ورسره ورسره رسول الله ﷺ دا هم اوفرمائیل الله تعالی به د قیامت په ورځ هر نیک او بد ته د نیغ اودرېدلو حکم اوفرمائی، بغیر د سود خور نه، چې هغه به نه شی ودرېدلې، مګر د هغه سړی په شان به ودرېږی چې شیطان ترې نه لیونی (خبطی) جوړ کړې وی۔

۷ - عن ابن عباس رضی الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ من اعان ظالما بباطل ليدحض بباطله حقا فقد برء من ذمة الله عزوجل وذمة رسوله ﷺ ومن اكل درهما من ربا فهو مثل ثلاث وثلاثين زنية ومن نبت لحمه من سحت فالنار اولى به (المعجم الصغير للطبرانی ص ۱۳۰ ج ۱ والاوسط، شعب الايمان للبيهقی ص ۲۹۳ ج ۴، مجمع الزوائد ص ۱۱۷ ج ۴) . قال الهيثمی رحمة الله عليه: فيه (ای فی اسناد الطبرانی) سعيد بن رحمة وهو ضعيف.

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو: چا چې په ناجائزه د يو ظالم مدد وکړو دې د پاره چې د چا حق وخوری، نو هغه د الله تعالی او د هغه د رسول ﷺ د ذمه وارئ نه اووتلو ،يعنی دواړه د هغهٔ نه بری او ويزاره دی.او چا چې د سود يو درهم وه خوړلو ، نو دا کار دری ديرش ځله د زنا کولو برابره دې،او د چا غوښه چې دحرام مال له کبله را وټوکيدله نو هغهٔ جهنم ته د تلو زيات حقداره دې

۸ - عن عبدالله بن حنظلة غسيل الملائكة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ: درهم ربا ياكل الرجل وهو يعلم اشد من ستة و ثلاثين زنية (مسند احمد ص ۲۲۵ ج ۵، مجمع الزوائد ص ۱۱۷ ج ۴) . قال الهيثمی رحمة الله عليه: رواه احمد والطبرانی فی الكبير والاوسط ورجال احمد رجال الصحيح.

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو: څوک چې سره د پوهې د سود يو درهم استعمال کړی نو دا د شپږ ديرش ځله زنا کولو نه بدتره دې.

۹ - عن عبدالله بن مسعود ﷺ عن النبی ﷺ قال: ما ظهر فی قوم الزنا والربا الا احلوا بانفسهم عقاب الله (مسند ابی يعلی ص ۱۲ ج ۹ مجمع الزوائد ص ۱۱۸ ج ۴) قال الهيثمی رحمة الله عليه: رواه ابو يعلی واسناده جيد.

وقال المنذری رحمة الله عليه: رواه الطبرانی فی الكبير باسناد جيد (الترغيب والترهيب ص ۴۰ ج ۳)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو: په کوم قوم کښې چې د زنا او د سود ظهور وشو نو هغه قوم يقينا د الله تعالی عذاب په خپلو ځانونو راکوز او را نازل کړو.

۱۰ - عن ابی هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ: ليلة اسری بی لما انتهينا الی السماء السابعة فنظرت فوق قال عفان فوقی فاذا انا برعد وبرق وصواعق قال فاتيت علی قوم بطونهم كالبيوت فيها الحيات تری من خارج بطونهم قلت من هؤلاء يا جبريل؟ قال هؤلاء اكلة الربا الحديث (مسند احمد ص ۳۵۳ ج ۲، سنن ابن ماجه ص ۱۶۳، مجمع الزوائد ص ۱۱۷ ج ۴، تفسير ابن كثير ص ۳۲۶ ج ۱) قال الهيثمی رحمة الله عليه: وفيه علی بن زيد وفيه كلام والغالب عليه الضعف.

**ترجمه**: رسول الله ﷺ ارشاد اوفرمائيلو: د معراج په شپه چې کله مونږ اووم آسمان ته ورسيدلو، نو ما پورته طرفته نظر اوچت کړو او ومې کتل نو ناګهانه بريښنا ،او او د تندر آواز مې محسوس

کړل، دوئ ﷺ اوفرمائیل په یو داسې قوم باندې زما تیریدل وشول چې د هغوی خیټې داسې وې لکه چې (غټې غټې) کورونه وی، چې ماران کښې وؤ (یعنی له مارانو ډکې وې)، چې د خیټو نه بهر (ښۀ صفا) په نظر راتلل،ما پوښتنه وکړه چه اې جبرئیله ! دا کوم خلق دی؟ هغوئ جواب راکړو: چې دا سود خوارۀ دی.

۱۱- قال ﷺ فی خطبة حجة الوداع: الا کل شیٔ من امر الجاهلیة تحت قدمی موضوع ودماء الجاهلیة موضوعة وان اول دم اضع من دمائنا دم ابن ربیعة بن الحارث کان مسترضعا فی بنی سعد فقتلته هذیل وربا الجاهلیة موضوعة و اقل ربا اضع ربانا ربا عباس بن عبدالمطلب فانه موضوع کله الحدیث (صحیح مسلم ص ۳۹۰ ج ۱، مسند احمد ص ۲۸۰ ج ۲ وغیرهما)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ د حجة الوداع په اوږده خطبه کښې ارشاد اوفرمائیلو: واورئ ! د جاهلیت د زمانې ټول رسمونه زما د خپو لاندې چیت کړې شو،او د زمانې د جاهلیت وینی (یعنی قصاص او دیت) ختمې کړې شوې،د ټولو نه ړومبې قتل کوم چې زۀ کوم،هغه د خپل خاندان نه د ربیعه بن حارث قتل دې چې د بنی سعد په قبیله کښې پئ ښنونکی (رضیع) وو،او هغه هذیل قبیلې قتل کړې وو،او د جاهلیت د زمانې ټول سودونه هم (زما د خپو لاندې) چیت کړې شو،او د ټولو نه ړومبې سود کوم چې زۀ پریږدم هغه (زما د ترۀ) د عباس بن عبدالمطلب سود دې چه هغه په مکمل طور پریښودې شو.

۱۲- و کتب رسول الله ﷺ لاهل نجران: بسم الله الرحمن الرحیم هذا ما کتب محمد النبی رسول الله لنجران (الی قوله) ولنجران وحاشیتها جوار الله وذمة محمد النبی علی انفسهم وملتهم وارضیهم واموالهم و غائبهم وشاهدهم وعشیرتهم وبیعهم وان لا یغیروا مما کانوا علیه ولا یغیر حق من حقوقهم ولا ملتهم (الی) ومن اکل ربا من ذی قبل فذمتی منه بریئة.

(دلائل النبوة للبیهقی ص ۳۸۹ ج ۵، زاد المعاد ص ۴۷ ج ۳)

**ترجمه**: رسول الله ﷺ د نجران خلقو د پاره دا خط ولیکلو: بسم الله الرحمن الرحیم ، دا هغه عهد نامه ده کومه چې محمد رسول الله د نجران د خلقو دپاره (په بل باندې) ولیکله، (الی قوله) د نجران او د هغې د خواو شا علاقې د پاره د الله تعالی پناه او د محمد رسول الله له اړخه د حفاظت ذمه واری ده،د دوی د ځانونو د پاره،د دوی د مذهب د پاره،د دوی د زمکو او د مالونو او د دوی د غائب او د حاضر د پاره او د دوی د قوم قبیلې د پاره او د دوی د عبادت خانو د پاره، او ددې خبر ذمه واری ده چې د دوی د دین او د مذهب او په حقوقو کښې به په یو څیز کښې هم بدلون نه شی راوستلې. او د چا ذمه چې واخستې شوه په دوی کښې چې کوم سړې سود خوری نو زۀ (په

پورتنیو ټولو خبرو کښې) د هغهٔ د ذمې نه بری او بیزاره یم.

د اختصار د خیال ساتلو له کبله په همدې روایتونو باندې بس والې کولې شی، اوکه نه نو د احادیثو او د تفاسیرو په کتابونو کښې همدومره روایتونه د سود دمذمت او بدوالی نور هم موندلې شی.

## معاشی (دژوند) نقصانونه

دا مناسبه ګڼو چې د وعیدونو نه پس د سود خورو روحانی، اخلاقی او معاشی تباهیانو باندې یو مختصر غوندې نظر واچولې شی، د سود ظاهری زیب او زینت چې کوم د کومو ړندو سترګې ړندې کړې دی، کیدې شی چې د دې سطرونو په کتلو سره د چا د بصیرت سترګې پرانستې شی، او هغهٔ ته دا په نظر راشی چې دا د ظاهری نقش او نګار مار دننه نه څومره خطرناک او زهریله دې.

۱- دا حقیقت په هر چا باندې واضحه دې چې د سود بنیاد په خود غرضئ، مفادپرستئ، او د زر په طلب باندې دې، په دې کښې دشمار یو څو سود خوارهٔ او د بانک خاوندان د ټولو انسانانو وینی سکی اوپرې غټیږی، دا دې مونږ ته څوک اووائی چې د یو نظام د مقصد انتها چه د ګوتو شمار د یو څو کسانو مفاد وی، او مفاد هم داسې چې د ټول ملت معاشی مرګ سره دغه مفاد تړلی وی، نو په داسې نظام کښې به د انسانیت فلاح او فائده له کومه ځایه راشی.

که چیرې د دې نظام سره د پیوسته خلقو په زړونو کښې د قربانئ او سخاوت، د شرافت او دانسانیت ماده ختمه شی او بالکل نابوده شی بلکه د دې نظام د لاندې چې کومه معاشره را پورته کیږی هغه ټوله معاشره د خودغرضئ، د دنیا طلبئ، او دآخرت نه د ویزارئ یو مثالی معاشره وی نو دا څه محل د تعجب نه دې او دا دتعجب خبره نهٔ ده:

نمی روید از تخم بد بار نیک

۲- د انسان د فطرت او دمعاش د اصولو تقاضا داده چې په کاروبار او په معاش کښې چې د هغه سره څومره کسان شریک دی هغوی دې د دهٔ سره په نفع او نقصان کښې هم برابر شریک وی، چې ګټه کیږی نو د ټولو به وی او چې نقصان کیږی نو هغه به هم د ټولو په مینځ کښې شریک وی.

لیکن د سودخورو قانون ددې فطری اصولو نه بالکل جدا او یو ځانګړې قانون دې، هغه دا چې دوی دا قرض ورکړی او بیا د ګټې اوتاوان د سوچ او فکر نه بې پروا په خپل کور پروت وی، اوس که په کاروبار کښې تاوان کیږی نو د دې ټول بوج د هغه عاملینو په سر راځی کوم چې په دې کاروبار کښې شپه او ورځ خپل جسم او ځان سترې کوی، او که چیرې ګټه کیږی نو په هغې کښې به اوله حصه ددغې سود خورو وی.

غرض دا چې که په کاروبار کښې گټه وی او که تاوان بلکه که اصل سرمایه په کښې هم غرقه شی او د قرض دارو غریبانانو ټول محنت او مشقت د خاورو سره خاورې شی خو دغه په سود باندې قرض ورکوونکوته د دې خبرې هیڅ فکر نشته ،هغوی ته خو په هر صورت کښې د سود معینې او ټاکلې شوې پیسې په خپل کورکښې په ناسته تر لاسه کیږی،د دې نه به نور زیات څه شقاوت او قساوت وی.

۳ - طمع او لالچ،او خود غرضی د سود خور په هر هر رگ کښې ننوتې وی ددې وجې نه هغوی سرمایه یواځې هغه خلقو ته ورکول خوښوی دچا نه چې د زیات نه زیات سود د ترلاسه کیدلو امید وی، یو مسکین یو داسې سړی ته چې حالات ئې ډیر خراب وی هغۀ ته قرض حسنه خو لرې خبره ده په کم سود باندې قرض ورکول هم د دوی زړه نۀ غواړی،خدائ دې وکړی چې هغه د غریبئ د وجې نه په چوکه چوکه مړ شی لیکن دوی به ورله قرض ورنۀ کړی.

دغه شان د عامو خلقو د مصلحتو په کارونو کښې هم امداد یا قرض (اگر که په کم سود باندې هم وی) ورکولو د دوی د زرپرستئ د اصولو خلاف دی،د سخت ذهن په نتیجه کښې د سرمایې یوه لویه حصه په صحیح مصرفونو کښې د لگیدلو په ځائ په غیر اهم او غیر ضروری کارونو کښې ولگی،د کومې نه چې یو خوا ته دا نقصان کیږی چې معاشی توازن خراب شی او بل خوا ته دا چې د زیات نه زیات سود باندې د قرض اخستونکی حضرات دا لعنت په دې خبره مجبور کړی چې د روا او د ناروا د تمیز ساتلو نه بغیر په هره طریقې سره دا سرمایه استعمال کړی او د سود پیسې هم بچ کړی او ورسره نوره نفع هم حاصله کړی،که چیرې دا معامله په ملکی سطح باندې وی نو د سود خباثت،او شر ښۀ په پوره توگه ښکاره شی او مخې ته راشی، یو مسکین او غریب ملک د سخت مالی مشکلاتو له کبله مجبوره شی او د بل ملک نه قرض واخلی،د دغه ملک مالی حالات د دې خبرې هم قابل نه وی چې هغه د اصل قرض قسط ادا کړې شی. لیکن د دې سره سره هغه لره هر کال درانۀ درانۀ سودونه هم ادا کول پکار وی.

مرے کو مارے شاہ مدار

(شاه مدار راپاځیږی او مړ سړې مړ کوی)

دغه ملک ته د دې لوئې مصیبت نه د وتلو څه لار نۀ ښکاری بې د دې نه چې دغه ملک په خپلو عوامو باندې رنگ په رنگ ټیکسونه ولگوی،په گرانئ کښې دحد نه زیاته اضافه وشی،کرایه گانې زیاتې کړی،او هر یو چل په کار راولی او د خپلو عوامو دجیبونو نه دا کروړونو او اوملیاردونو پیسې وباسی.

غرض دا چې سود یو داسې لعنت دې،چې د افرادو او د قومونو د معیشت غرقونکې دې او د

انساني قدرونو د پاره د قاتل حيثيت لري.

۴ - بنکونو او مالي ادارو ته د مسکينې او غريبې بلکه د متوسط طبقې د سړي رسيدل ممکن نۀ دي، سرمايه دار مالداره او تاجران ترې نه قرض واخلي او کاروبارونه پرې چلوي. هغوی د خپل حيثيت نه لس چنده زيات قرض هم د دې پيسو په ذريعه په آسانه وګټلې شي ليکن د چا مسکين او د کمې سرمايې خاوند د پاره د قرض تړولې لارې بندې کړې شوې دي، دې يو څو غټو مهيانو د ټول قوم په معيشت باندې خېټه اچولې وي.

د عام استعمال د څيزونو نرخ هم د دې خلقو په رحم او کرم باندې وي، کله چې د دوی زړه وغواړي نو د يو څيز نرخ پورته کړي آسمان ته ئې ورسوي او کله ئې چې خوښه شي نو راښکته ئې کړي او تحت الثراء ته ئې ورسوي، او عوام غريبانان دې په کښې خوارېږي او کړېږي. روزانه په مارکيټونو کښې د دې خبرې مشاهده کيدې شي، او په ملکي معيشت باندې چې د دې کوم اثر پريوځي د هغې بيان ته څه حاجت نشته دې.

**۵** -هر کله چې مال دولت د هر اړخ نه راټول شي او يو څو لاسونو ته راشي نو دا مغروره خلق د خپل مال دولت په زور د غريبې طبقې په جسم او جان، عزت او ناموس، او په مال او سامان باندې قبضه وکړي، هغوئ خپل غلامان جوړ کړي او د دوی عزتونو سره لوبې کوي، د هغوئ چې کوم جمع کړې شوې مال وی هغه ټول ترې واخلي او بې عزت او بربنډ ئې کړي او پرې ئې ږدي او په دې کار کولو کښې هغوی هيڅ قسمه سستي نۀ کوي، چې يو زميندار، مزدور او يو سوداګر ته دا يقين وي چې زما د ټولې ورځې د محنت او دمشتقت ميوه دا سود خور وکړي، او ما سره به سوا د افسوس او مايوسئ نه نور څه پاتې نۀ شي، نو آيا په دې سوچ کولو کښې هغه په حقه نۀ دې چې بيا د ځان سترې کولو نه ما ته څه فائده شوه؟ که چيرې دا د نصيب سوې همت بائلي او کښيني، يا د ژوند نه تنګ راشي او خودکشي وکړي، يا د دې جملې (تنګ آمد بجنګ آمد) په مصداق سره ترې نه غل، ډاکې مار، اغواکار، جوړ شي نو دا څه نوې خبره نۀ ده بلکه عين د قياس مطابق ده.

اوس دې دا سوچ وکړې شي چې مسکينه او متوسطه طبقه کومه چې د معاشي نظام اصل بنياد او قوام دې او دمعاشرې اکثري حصه ده، د دې طبقې چې کومه د عمل جذبه ده چې هغه ختمه شي يا کمه شي نو په هغې باندې به د قوم معيشت څومره متاثره کيږي؟ د لکونو خلقو غريبي، او بې روزګاري به ملکي صنعت، تجارت، کرکرونده او نور کاروبارونه به کوم حده پورې کمزورې کړي؟ دا حقيقت د بيانولو حاجت مند نۀ دې.

غرض د خبرې دا چې که په دې غير فطري نظام کښې څه فائده وی نو بس د يو څو سود خورو فائده ده، دا نظام هم دغه کسان پالي او وړاندې کوي يئ. او باقي پاتې چې څومره عاملين د معاش

دی د هغوی د پاره دا نظام د مرګ پیغام دې،د هغوی معیشت او اقتصاد،عزت او ناموس، د هغوی د اخلاقو او د روحانیت غرض دا چې دا نظام د هغوی د هر څیز د پاره مرګ دې.

۲ - په سودی کاروبار کښې د خلقو خپله سرمایه نه وی او که وی هم نو هغه هم د نشت برابر وی، هر کله چې په دې مال باندې څه آفت راشی او د سود خور ټوله سرمایه ډوبه شی، نو دهغهٔ حالات بیا هیچیرې هم نه سمیږی، چې یو ځل وغورزیږی بس بیا په غورزیدو وی،نیتجه دا چې که د هغهٔ اصل سرمایه چه هرڅه وه نو د دهٔ خو یواځې هغه لاړه خو د بانک ورکړې شوې اصل قرضه ټوله ډوبه شوه،ګویا چې سود خور ته څو پورې نفع ترلاسه کیدله نو هغه خپل جیب ډکولو او چې کله ورته نقصان وشو نو د هغې ټول په ټوله یا اکثره حصه د قوم په سر راپریوته.

(تلك اذا قسمة ضيزى)

دا د سود د نقصانونو او د تباهیانو یوه سرسری جائزه وه،د تفصیل دا موقع نهٔ ده،دا معاشی او اخلاقی نقصانات که په فکر کښې وساتلې شی او دقرآن او د حدیث د وعیدونو مطالعه وکړې شی نو دا خبره بیا څه د تعجب خبره نهٔ ده چې د ټولو ګناهونو په نسبت په دې یو ګناه باندې دومره سخت وعیدونه ولې واورولې شول؟

## چې څوک عبرت اخستل غواړی نو ما ته دې وګوری

دا مضمون به هغې پورې نا مکمل وی څو پورې چې د سود خورو د هغې واقعاتو نه یوڅو واقعې دلته نقل نه کړې شی کومې چې د عبرت د اخِستلو دپاره کافی دی او دا واقعې د الله تعالی د دې ارشاد : ((يمحق الله الربوا...............)) ښه ښکاره او واضحه دلیل او ثبوت دې.

لاندینۍ دواړه واقعې یو ښهٔ مضبوط راوی ما ته بیان کړې دی او دا دواړه واقعې د هغهٔ په وړاندې تیرې شوې دی.

۱ - د ....... ښار مشهور ترین زرګر د چا د ډیر دولت، مال او د وسیع شهرت له کبله چه په ټول ښار باندې دهغهٔ رعب وو،د هر ماشوم په ژبه باندې د هغه نوم وو،هغه د ښار هندوانو زرګرانو سره سودی کاروبار شروع کړو، نو ناګهانه د هغه مال او دولت او شهرت ته هم زنګ لګیدل شروع شو، د هغهٔ نارینه اولاد نهٔ وو صرف دوه لونه ئې وې، د دواړو ودونه ئې وکړل،مشر زوم ئې یو بې دینه، جوارګر او عیاش قسمه هلک وختلو، په جوارئ،تاش،شرابونو او په ښځو باندې ئې د هغهٔ دولت الوځولو.آخر دا چې یوه ورځ د شرابو په نشه کښې مست د ریل د لاندې راغلو او ټکړې ټکړې شو، څه لږ ډیر مال ئې د بل زوم لاس ته ورغې، نواب صاحب چې کله بې لاسه اوبې خپو پاتې شو نو دواړه کورونه ئې خرڅ کړل او د ښار نه په سوونو میله لرې یو ځائ کښې ئې خپله ډیره جوړه کړه او په هماغه ځائ کښې ورته د افسوس او د ارمان په حالت کښې مرګ راغئ، یو وخت

وو چې په ټول ښار کښې به د هغهٔ د نوم خبرې کېدلې او بیا داسې وخت راغئ چې د هغه ځائ نه د هغه نوم او نښانې هم ختمې شوې.

۲- د همدې پیشې او کاروبار سره پیوسته یو بل مالداره سړې چې د کروړونو مالک وو، د کار به پرې دومره رش وو چې یو ځل زهٔ د څه کار په غرض سره د هغه دکان ته لاړم نو د خپې اېښودلو ځائ په کښې نه وو، کم نه کم دوه ویشت درې ویشت کاریګران ورسره ناست وو او په خپل کار کښې مصروف وو، او د اوږدې شپې د روڼولو نه پس د ټولو سترګې د خوب دلاسه سرې وې، هغه هم په سودی کاروبار باندې راواوړیدلو نو د دې کاروبار د سپیره والې د لاسه بیا د یوې یوې روپئ محتاجه شو، ټول جائداد ئې د دې لعنت نه زار شو، د قرض دارو پرې دومره زور وو چې د هغوی د زور د لاسه ئې د شپیته، پنځه شپیتهٔ لاکو روپو بنګله په ډېر کم قیمت خرڅه کړه، دغه شان د لاکونو روپو زمکه او دکانونه ئې هم نیلام شول، هر کله چې په ټول جائدادا هم د قرض نه خلاص نهٔ شو نو آخر دا چې تنګ شو او د ځان مرګئ اراده ئې وکړه، هر کله چې د څو څو ځله کوشش باوجود د ځان مرګئ په دې مقصد کښې هم ناکامه شو نو آخر دا چې د قرض دارو د ویرې نه پټ شو، او هم د دې ویرې له کبله ئې د خپلو لوڼو په ودونو کښې هم شریک نه شو، اوس یې د بهر ملکونو څخه په یو ملک کښې سیاسی پناه اخستې ده او د خپل ژوند باقی پاتې ورځې هلته پوره کوی، د دهٔ څه وخت په ښار کښې یو نوم وو او اوس.

*بھرتے ھے میر خوار کوئی پوچھتا نھي*

میر خوار ګرځي څوک ئې تپوس هم نهٔ کوی

۳ - زما یو دوست ما ته خپله د درد نه ډکه قصه واوروله:

فلانې سوداګر زمونږ علاقې ته راغئ او مال ئې واخستو، ما د خپل زور تعلق او د هغه د دیانت دارئ د شهرت له کبله د هغهٔ ضمانت وکړو، د قرض موده تیره شوه لیکن هغه رانغې، د لوئې انتظار نه پس چې کله زهٔ د هغهٔ کور ته چې په لاهور کښې وو لاړم نو راته معلومه شوه چې هغه دیوالیه شوې دې، د دې وجې نه د قرض دارو نه پټ شوې دې او کراچئ ته تلې دې، او چرته محنت مزدوری کوی، زهٔ چې کله ورپسې کراچئ ته لاړم نو ما نه ئې نور موده وغوښتلو، او ماله ئې لکه د ماشومانو دلاسې راکړې او را رخصت ئې کړم، آخر ما څه وخت انتظار وکړو او واپس کراچئ ته لاړم نو دا راته معلومه شوه چې لاهور ته تلې دې، زهٔ چې کله لاهور ته لاړم نو د هغه ځائ نه هم غائب شوې وو.

لنډه دا چې د قرض دارو څه یو لاک روپئ زما په غاړه راپرېوتې، هغهٔ ما که خوښه مې وه او که نه وه د خپل طرف نه مې ادا کړې

دې وخت کښې هم چې دا خبره زۀ ليکم زما هغه ملګرې هغۀ پسې کراچئ ته تلې دې.

دا قصه چې ما واوريدله نو زما زړه راډک شو او پوهه مې کړو: د الله بنده په مالی معاملو کښې ډير د سوچ نه کار اخستل پکار وی،تا ته دومره هم معلومه نده چې په دې زما نه کښې د چا ذمه واری او ضمانت اخستل داسې دی لکه چې په خپله خپلې خپې په تبر باندې ځوك وهی ، دا خو يو کم عقل توب غوندې کار دې.

هغه اووئيل: هغه سره زما د شلو کالو پيژندګلوی وه ، وړاندې به هم ما د هغۀ ذمه واری اخستله، ليکن تر ننه پورې هغۀ وعده خلافی نه وه کړې.

ما (يعنی کاتب) هم ددې کاروباری سړی شهرت اوريدلې وو.

دا خبرې چې ما واوريدلې نو زۀ ډير حيران شوم چې دومره موده پس ناګهانه په دۀ باندې څه داسې آفت راپريوتلو ،آخر دا چې په يو دويم ملاقات کښې زما هغه ملګری ما ته اووئيل: د هغه کور ته لاړم نو چې د حالاتو لټون مې وکړو نو راته معلومه شوه چې دغه ظالم دې ځل په سود باندې پيسې راخستې وې او کاروبار ئې شروع کړې وو.

۴ - د تاج کمپنۍ انجام خو ټولو ته معلوم دې.

## د ځناورتوب انتهاء

سود خور د مال او زر په مينه کښې دومره ليونې او کم عقل شی،چې هغه د چا انسان د عزت د ځان او د مال څه خيال نۀ ساتی، که هغۀ ته څه ځيز عزيز او محبوب دې نو بس هغه د دۀ خپل غرض او مفاد دې خدائې دې کړی چې هغۀ دې په هر قيمت وی حاصلوی يئ، د سود خور د ځناورئ اندازه ددې لاندې واقعاتو نه لګولې شی:-

۱ - يو مسکين سړی د يو سودخور نه پنځه زره روپۍ قرض واخستې، ليکن د غريبئ د وجې نه ئې هغه ادا نۀ کړې شوې، سود خور يو خو دا کار وکړو چې په سود ئې سود خيژولو ،او بل دا چې هغۀ ئې د ښځې او د بچو سره خپل غلام جوړ کړو او بيګار به ئې ترې نه اخستلو، **بيک کرشمه دو کار**.

۲ - يو مسکين سړی د يو وختی ضرورت د پاره د يو سودخور نه څو روپۍ قرض واخستې هغه په زياتيدلو زياتيدلو څو زرو ته ورسيدلې، هغه هم داسې کار وکړو چې دغه مسکين ئې د بال بچ سره ګير کړو او بيګار به ئې ترې نه اخستلو، ټوله ورځ به ئې چې ترې نه بيګار واخستلو نو چې شپه به شوه نو سړيو ته به ئې ورله بيړئ ((زولنې)) واچولې،آخر دا چې د آزادئ صورت ئې دا راووتلو چې هغه سود خور دا سړې خپل يو قرض غوښتونکی باندې په پنځه زره روپۍ خرڅ کړو ،هغه دې د قرض په عوض کښې د هغه نه واخستلو او آزاد ئې کړو.

۳ - یوسړی پنځه زره روپۍ قرض واخستې او بیا ئې څوارلس زره روپۍ ورکړې او خان ئې خلاص کړو.

دا دړې واړه واقعات یو بزرګ عالم د دین ما ته بیان کړل او بیا ئې اوفرمائیل: د سود په لعنت تباه کیدونکی دا کسان تر اوسه پورې ژوندی دی. ما له ئې د هغوی نومونه او آدروسنه هم راکړی دی.

۴ - امام العصر حضرت مولانا محمد انور شاه صاحب کشمیری رحمه الله په ۱۹۳۷ ء کښې د جمعیت علماء هند د سالانه اجلاس چې په پیښور کښې منعقد شوې وو صدارت وکړو، او د هغې د پاره ئې یو زبردسته تاریخی خطبه ولیکله، د صدارت په دې خطبه کښې د اته ویشت عنواناتو د لاندې مسلمانانو ته د راپیښو مسئلو تذکره او د هرې مسئلې د شریعت مطابق یو بهترین حل وړاندې کړې شوې وو، د دې خطبې اهم اقتباسات د حضرت د عمر د حالاتو لیکونکی او دهغوی خوئ حضرت مولانا انظر شاه صاحب کشمیری د حضرت په سوانح حیات (نقش دوام) کښې وړاندې کړې دی، مولانا صاحب یو ځائ کښې لیکی :

صاحب د خطبې د دې مهلکو رسمونو د مخ نیوی نه پس دې سودی کاروبار ته خاصه توجه وکړه د کومې نه چې د مسلمانانو اقتصادی حالات تباه اوبرباد شول، لکه چې په پورتنیو کرښو کښې تیرشو، دا سودی قرضونه په عامه توګه د غم ښادئ، د پیدایش او د مړی د رسمونو د ادا کولو د پاره اخستې شی، او دغه شان د ټول عمر د پاره یو داسې مصیبت په سر واخستې شی چې د هغې د لرې کولو د پاره څوک هم نه وی، په اسلام کښې چې کوم یو څو ګناهونه د کبائرو نه شمار کړې شوې دی، او چې سزا ئې جهنم ته د داخلیدلو نه علاوه بله هیڅ نه ده، په دې کښې یوه ګناه سودی کاروبار هم دې.

بهر حال حضرت شاه صاحب د دې صورت حال د تباهئ اړخ ته د خلقو توجه راوګرځوله او ارشاد ئې اوفرمائیلو: د سود مثال د جزام د مرض په شان دې، چې مخ په پورته روان وی او کمیږی نه، د د محمد ﷺ د شریعت د قواعدو مطابق سود یو لعنت دې، کوم چې د سود اخستونکی، ورکوونکی، په خپله خوړونکی، په بل باندې خوړونکی، په سود باندې د ګواه جوړیدونکی، او د سود په لیکونکی په ټولو باندې برابر تقسیمیږی، دا په دنیا کښې روحانی او اخلاقی جذام دې، او په آخرت کښې د جهنم موجب دې.

بلکه صاحب د خطبې رحمه الله د ځینی اسلامی ملکونو د تباهئ سبب دا ښودلې دې چې دغه اسلامی ملکونو به د عیسائی ملکونو نه ډیرې زیاتې پیسې په سود اخستلې، او بیا دا سودی قرض د دې سبب هم وګرځی چې دغه ریاستونه بیا د دوی د لاسونو نه اوځی. (ص ۲۳۷)

مولانا صاحب بیا لیکی : لیکن افسوس چې د امت محمدی معاندې طبقې د خپل لوئ

پیغمبر د حکم خلاف کول په دې شعبه کښې هم پرې نښودل ،د یو ملک نه (د مجاهدینو) طبقه را اوچته شوه چې په سرونو باندې ئې خاص قسمه پګړئ تړلې وې،او په جسمونو باندې ئې د نقش او دنګار نه ښائسته کړې شوې واسکټونه اچولې وو،او د څو ګزو پرتوګونه ئې اچولې وو او په لاسونو کښې ئې خاص قسمه لښتې نیولې وې او هندوستان ته داخل شول،او ذلته د سودی قرضونو په ورکولو کښې،او بیا په زور زیاتئ سره ددې قرضونو د اخستلو په جهاد کښې مصروفه شو.(ص ۲۳۷)

په حاشیه کښې لیکی: د مجاهدینو دا ډله د خپلو سودی قرضونو په اخستلو کښې څومره سخته وه؟ نو یو ښهٔ ثقه راوی ما عاجز ته دا قصه واوروله چې: په سنبهل کښې چې په مراد آباد ضلع کښې واقع دې په دې کښې یو مقروض وفات شو،هر کله چې خلکو د مقروض مړې د جنازې د پاره واخستلو او قبرته یې وړلو نو مجاهد سره د خپلې کوړې راښکاره شو او وې وئیل بلکه اوغړمبیدلو: خلقو دا زمونږ مقروض دې مونږ به د دهٔ نه خپل قرض اخلو.

په جنازه کښې شریکو خلقو ورته زاری منتاوکړل چې دا غریب خو مړ شوې دې،دې معاف کړئ، لیکن سود خوړلو سره چې په زړهٔ کښې کوم سختوالې راپیدا شوې وو ، هغې چرته دخلقو خبرې آوریدلې ، دغه د مضبوطې حوصلې والا مجاهد د خلقو د اوړو نه دغه جنازه راکوزه کړه،او ډنډه ئې په دواړو لاسونو کښې مضبوطه ونیوله او تر هغه وخته پورې ئې جنازه اوچتولو ته پرې نښودله تر څو چې ورله دغه مسلمانانو چنده و نه کړه او د دهٔ مطالبه ئې ونهٔ منله.**اللهم احفظنا من هذه القساوة ونعوذ بالله من الشقاوة ومن التجاوز على الله ورسوله**

په کومه زمانه کښې چې د سود د جواز او د عدم جواز بحث په زور او شور سره جاری وو ،نو په دغه زمانه کښې حضرت شاه صاحب پنجاب ته په سفر تلې وو او په لاهور کښې ئې قیام وکړو ،د لاهور لوئ لوئ علماء او عقیدت مند او عزت مند خلق د دوی قیام ګاه ته راجمع شول،چې په کښې مولانا ظفر علی خان صاحب د (زمیندار) د ورځ پاڼې مالک هم وو، مولانا ظفر علی خان هم د هغه ډلې سره تعلق لرلو چې کومې ډلې سود خوړل د مسلمانانو د پاره فائده منده ګڼل، چې د شاه صاحب نه د سود جواز ترلاسه کړی، د شاه صاحب نه ئې تپوس وکړو ،نو حضرت شاه صاحب یو نیم یا دوه ساعته د سود په حرمت،هلاکت،او د دې په تباهیانو باندې ښهٔ ښائسته بحث وکړو.کوم چې د ظفر علی خان د مقصد بالکل خلاف یو بحث ثابت شو. ظفر علی خان هم ډیره دنیا کتلې وه او ډیر هوښیار وو. اسلوب ئې بدل کړل او بیا ئې سوال وکړو نو شاه صاحب ورته په خپل مخصوص انداز کښې اوفرمائیل : وروره ! مونږ مسئله ښهٔ ښکاره کړه،اوس چې د چا خوښه وی جهنم ته دې لاړ شی لیکن زمونږ د څتونو نه دې د پل کار نه اخلی.

دا مختصره جمله د سود په مفاسدو باندې ښهٔ مشتمله ده، چې سلسله ئې د دنیا نه روانه شوې ده او جهنم ته رسیدلې ده.

علامه رشید رضا په (المنار) کښې د خپل وطن د مصر یو عبرت ناکه واقعه لیکلې ده کومه چې دوی په خپله لیدلې ده او دوی ئې چشم دید ګواه دی:

یو زاهد انسان وو او مالداره وو په خپل مال سره به ئې د غریبانانو ښهٔ امداد کولو، که چا به ترې قرض واخستلو نو ښه په آسانه به ئې قرض ورکولو، چې هیڅ قسمه لیکل به ئې نه وو، مقروض به ورته په خپله اووئیل چې د اطمینان د پاره څه ولیکئ، په دې باندې به د هغوی جواب دا وو چې: وروره! که واپس دې راوړلې نو دا به ستا احسان وی او که واپس دې را نه وړې نو الله تعالی ښه بدله ورکوونکې دې، زهٔ په هر حال کښې په نفع کښې یم، بیا څه دپاره خط ولیکم او خپل اجر او ثواب پرې کم کړم؟

د دې سړی حالت او مزاج بدل شو او بیا همدا صاحب وو چې د بدقسمتئ نه به ئې سود اخستلو، او بیا هغه وخت هم راغئ چې خپل ځوئ له ئې قرض ورکړو نو هغه له ئې هم په سود ورکړو.

زمونږ په دې هندوستان کښې چې سودی کاروبار په لکونو خلق څنګه تباه کړل دهغې یو مختصر غوندې تفصیل دا دې چې د یوپی مشهور ښار (ګور کهپور) کښې یو صاحب د یو سود خور نه په سود باندې لس زره روپئ واخستې، په څلور کالو کښې ئې د سود په شکل کښې پنځوس زره روپئ ورکړې او اصلی قرض هغه لس زره لا پاتې دی.

په (ګیا) نومې ښار کښې یو د سکول استاذ پنځلس کاله وړاندې پنځه سوه روپئ په سود واخستې، د مسلسل سود ورکولو نه پس بیا هم هغه اصل پیسې په ځائې پاتې دې حالانکه دې استاذ دوه اویا چنده یعنی شپږ دیرش زره روپئ هغهٔ سوه خور ته رسولې دی، لیکن اصل رقم لا په ځائې اوس هم پاتې دې.

په کان پور او دغه رنګې په نورو صنعتی ښارونو کښې چې کوم مزدوران په دې کارخانو کښې کارونه کوی، او دا مزدوران په اصل کښې د سود خورو په پنجه کښې راغلې دی، څومره مزدوران چې د دې سود خورو په لاس کښې دی د هغوی تناسب تقریبا اویا فیصده دې، د هغوی تنخوا ګانې دغه سود خوارهٔ اخلی او دغه غریبانانو مزدورانو ته د خپلې تنخوا نه یو روپئ هم نه تر لاسه کیږی

کوم ظلم، څناورتوب، او سنګدلی چې په سود خور کښې پیدا کیږی، دهغې یوه تازه قصه په (جاسناله) نومې مقام کښې داسې مخې ته راغلې ده چې اوس اوس په دغه ښار کښې د کویلې ((سنګ زغالو)) په په غر کښې مزدورانو کار کولو او د اوبو د ډکیدلو د وجې نه په کښې په سوونو مزدوران مړه شول، حکومت د دغې مړو شوو کسانو خاندانونو ته امدادی پیسې ورکړې، لیکن

دغه امدادی پیسې ترې نه لاس په لاس دې سود خورو واخستې او دغه بدنصیبه خلقو یو خوا ته جانې نقصان بیاموندو او بل خوا ته ورته مالی نقصان هم د دوی د لاسه ورسیدلو.

ددې یو څو واقعاتو نه به معلومه شی چې د دې سودی نظام په هلاکتونو او نقصانونو باندې د اسلام نظر له څومره لرې نه لګیدلو،او د سودی نظام د دې هلاکتونو او نقصانونو د وجې نه اسلام د سود د پاره وړوکې ځائ هم پرې نښودلو.

کله هم چې د مظلومې طبقې فریاد او زاړئ اړخ ته حکومت توجه کړې ده نو زیات نه زیات دا چې هغوی ته ئې د سود په اندازه کښې کمې کړې دې، لیکن د اول نه ئې د دې سود څه ممانعت نه دې کړې او نه ئې په دې سودی نظام باندې څه پابندی لګولې ده،دا یواځې اسلام دې چې په دې ملعونه پیشه باندې ئې مکمله پابندې لګولې ده او ښه په وخت ئې د دې بندیز کړې دې، لیکن مونږ به څه اوواېو چې دا متعصبه دنیا د اسلامی قوانینو د فائدو او د فلاحی پروژو نه فائدې اوچتولو ته تیار نهٔ دی۔ (ص ۲۳۷ تا ۲۳۹)

اوس مونږ د هغه وسوسو ذکر کوو دکومو له کبله چې سود خور دغه لعنت روا ثابتول غواړی، الله تعالی دې دوی ته هدایت نصیب کړی او د د نیا او د آخرت د عذاب او د شرمیدلو نه دې ورته د ځان ساتلو توفیق ورکړی۔

## د سود خورو ملحدینو تلبیسات

۱ - د حضرت عمر ﷛ ارشاد دې : **ثلاث وددت ان رسول الله ﷺ عهد الینا فیهن عهدا ننتهی الیه الجد والکلالة وابواب من ابواب الربا .** (تفسیر ابن کثیر ص۳۲۷ ج۱)

د درې څیزونو په حقله زما ارمان پاتې شو چې رسول الله ﷺ دا مونږ د پاره واضح کړی وې نو ښه به وه، دې د پاره چې مونږ مطمئن شوې وې،د نیکهٔ او د کلاله د میراث مسئله او د څه بابونه د ربا .

ددې ارشاد په ذریعه څینو ملحدینو دا خبره کول شروع کړل ، چې د ربا د یو متعین او تاکلی شوی تعریف کولو نه بغیر رسول الله ﷺ د دې دنیا نه رخصت شو د دې وجې نه د ربا مفهوم مبهم پاتې شو، لهذا د ربا د تعریف او د تعیین په حقله چې فقهاؤکوم څه لیکلې دی،دا د هغوی خپل وجدان او اجتهاد دې نه دا چه دا حکم د قرآن دې.

د ملحدینو دا منطق د ابلیس د وسوسې او د ښکاره دهوکې نه بغیر بل هیڅ نه دی،حقیقت د خبرې دا دې چې د حضرت عمر ﷛ دا ارشاد یواځې ربا د دویم قسم (ربا الفضل) د تفصیلونو د بعضو جزئیاتو په حقله دې،دا نه چې د هغوی دا قول د نفسِ ربا په حقله دې،د ربا د موجوده صورت او شکل چې د قرآن د نازلیدلو په وخت کښې هم د نن زمانې په شان مروج وو دا قسم هیڅ

کله مبهم نه دې پاتې شوې، لهذا د ربا په حقله دقرآن مجيد د آيتونو د نازليدلو سره تول مخالف او موافق خلق د دې په مقصد او په مطلب باندې پوهه شو.او د دې د حقيقت او د ماهيت د معلومولو نه بغير صحابهٔ کرامو ﷺ خو سمدستي تول سودی اخستل خرڅول او ورکړه راکړه پريښودله، ليکن د بدو عادتونو خاوندان کافران چې کوم وو هغوی په دې کښې شيطانی قياسونه شروع کړل او د دې په جائز ثابتولو پسې شول .**(قالوا انما البيع مثل الربوا)**

ملحدين دې دا سوچ وکړی چې دوی له چا سره خپله رشته قائمونکی دی ؟

د ربا د مسئلې حقيقت د اولې ورځې نه واخله تر ننه پورې بې شکه او شبې ښه واضحه او ظاهره دې.د دې وجې نه قرآن هم د دې د دوباره بيانولو ضرورت محسوس نه کړو .**عيان را چی بيان**

ليکن داخبره ده چې د دې په ځينی جزئياتو کښې د اختلاف کولو ځائ شته چې د مجتهدينو حضراتو ﷺ رائې په کښې مختلفې دی.او دا اختلاف يقينا د امت په حق کښې رحمت دې.

د حضرت عمر ﷺ اشکال هم د دې قسمه په ځنی اجتهادی صورتونو کښې وو .اوکه نو د ربا حقيقت د يو عامی د پاره هم محل د اشکال او د اجمال نه دې.لا پاتې د حضرت عمر ﷺ غوندې د لوئې علم، لوئې مرتبې.او د لوئی اجتهادی شخصيت د پاره.

د حضرت عمر ﷺ په ارشاد کښې د جد او د کلاله ذکر هم موندلې شی.حال دا چې د دوی د ميراث په مسئله کښې هم په بنيادی توګه څه ابهام نشته دې.د کلاله مسئله په قرآن مجيد کښې او د جد مسئله د ميراث په احاديثو کښې موجوده ده.د حضرت عمر ﷺ دې لره د ذکر کولو هم ځانګړې سبب دا دې چې د دې په تفصيلونو کښې په جزئی توګه ځينی اختلافات شته دی.کوم چې د حضرت عمر ﷺ د پاره بلکه د هر فقيه او مجتهد د پاره موجب د فکر دی، حضرت عمر ﷺ د همدې د لرې کولو د ارمان اظهار کړې دې .

د دې نه علاوه خاص د ربا په حقله د عمر ﷺ ښهٔ صريح روايت موجود دې:

**عن القاسم بن عبدالرحمن قال قال عمر بن الخطاب ﷺ انکم تزعمون ان لا نعلم ابواب ولان اکون اعلمها احب الی من ان يکون لی مثل مصر و کورها و من الامور لا يکن يخفين علی احد هو ان يبتاع الذهب بالورق نسيئا وان يبتاع الثمرة وهی معصفرة لم تطب وان يسلم فی سن (مصنف عبدالرزاق ص۲۶ ج۸).**

حضرت عمر بن خطاب ﷺ ارشاد فرمائيلې دې: تاسو خلق دا ګمان لرئ چې مونږ ته د سود مسئلې معلومې نهٔ دی.که چيرې ما ته دا (تولې مسئلې) معلومې شوې وې. نو دا خبره ماته به د مصر او د متعلقاتو د مصر د عظيم سلطنت او بادشاهئ د ترلاسه کيدلو نه غوره وه. (بيا هم د دې جزئی اشکال باوجود) د ربا په مسئلو کښې ډيرې مسئلې داسې دی چې دا مسئلې د چا نه هم پټې نه دی، هغه دا چې سرهٔ زر د سپينو زر په عوض کښې قرض خرڅ کړې شی.او کچه ميوه دې د پخيدلو نه وړاندې خرڅه کړې شی.او د ځناورو بيعه د سلم دې وشی

د دې ارشاد فاروقی نه پس دا مسئله بالکل واضحه شوه چې د ربا په تعریف کښې څه ابهام نشته دې، که چیرته ابهام یا اشکال وی نو هغه د دې په ځینی جزئیاتو کښې دې، د دې جزئی او ضمنی اختلاف بهانه جوړول او د دې په ذریعه د ربا د ښهٔ ښکاره او د واضحه احکامو نه انکار کول په حقیقت کښې د نصوصو نه انکار دې، او کیدې شی چې د دې منکرینو په علم کښې دا خبره نوی چې دا قسم اختلاف یواځې په مسئله د ربا کښې نهٔ دې، بلکه په مونځ، روژې، زکوٰة غرض دا چې د اسلام په ټولو اساسی احکامو کښې موجوددې او د ربا د مسئلې په نسبت په دې نورو کښې څو چنده زیات دې، حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب قدس سرهٔ لیکی:

د صحابهٔ کرامو ﷺ تر مینځه په زرګونو مسئلې داسې شته چې د هغوی په کښې یو تر بله اختلاف وو، او د ائمه اربعه رحمهم الله په نیز خو به داسې جزئیه کیدې شی چې نهٔ وی چې په هغې کښې د هغوی اختلاف نهٔ وی، په څلور رکعتیزې مونځ کښې د نیت د ټړلو نه واخله تر د سلام اړولو پورې تقریبا داسې دوه سوه مسئلې د ائمه اربعه په نیز مختلف فیه دې چې هغه زما عاجز د نظره هم تیرې شوې دی، او دې نه علاوه معلومه نده چې نورې به څومره وی. (فضائل تبلیغ ص ۳۵)

اوس که د دې خلقو خوښه شی نو د دې اختلافاتو بهانه دې جوړه کړی او مونځ بلکه د دین د ټولو احکامو نه دې ځان خلاص کړی.

۲ - د سود په جواز باندې دویم دلیل دا وړاندې کولې شی چه: قرآن مجید په باطله طریقه باندې د نورو د مال خوړلو نه منع فرمائیلې ده: ((لاتاکلوااموالکم بینکم بالباطل)) - الایة.

د دې آیت مصداق به صرف هغه ذریعې د آمدن وی په کومو کښې چه د نورو مال بې د هغوی د رضامندئ او د رغبت نه اخستلې شی، لکه سرقه، غصب، خیانت وغیره، او سودی قرض معامله د فریقینو په رضامندئ سره راځی، بلکه دا معامله عموما د قرض داری په حرکت سره راځی، لهذا د دې د عدمِ جواز څه عقلی توجیه مخې ته نهٔ راځی.

**جواب**: اول خو د (اکل بالباطل) دا تفسیر له سره باطل دې، د مفسرینو رحمهم الله په نیز د مال د حاصلولو ټولې غیر مشروع او ناروا طریقې په اکل بالباطل کښې داخلې دی. برابر خبره ده چې دا معاملې د فریقینو په رضامندئ سره راځی او که په نارضامندئ سره راځی.

قال الامام القرطبی رحمه الله: من اخذ مال غیرہ لا علی وجه اذن الشرع فقد اکله بالباطل. (الجامع الاحکام القرآن ص۳۳۸ ج۲)

و قال البغوی رحمه الله: (بالباطل) بالحرام یعنی بالربا و القمار و الغصب والسرقة والخیانة و نحوها. (معالم التنزیل ص۳۰ ج۲)

دویم دا چې په همدې آیت کښې دا هم دی چه: الاان تکون تجارة عن تراض منکم.

د یوبل مال په ناحقه مهٔ خورئ، لیکن کهٔ څه تجارت وی چې د یو بل په رضامندئ سره وی نو بیا په کښې څه خبره نشته.

چې یواځې د فریقینو رضامندی په کښې کافی وه نو بیا ئې په کښې د تجارت شرط ولې ولګولو؟ صرف **(الاعن تراض منکم)** ئې ولې ونهٔ فرمائیلو؟

دا خبره معلومه شوه چې مع بې د مالی معاوضې نه کومه زیاتی نفع حاصله شی نو هغه حرامه ده، اګر که هغه په رضامندئ او په خوشحالئ سره حاصله شوې وی.

دریم دا چې صرفی سود (هغه سود چې د یو ذاتی ضرورت د پاره قرض ورکړې شی او په هغې نفعه حاصل کړې شی) ته دا خلق په خپله هم حرام وائی، او حال دا چې دا هم د یو بل په رضامندئ سره وی، نو بیا هم دغه سود په تجارتی قرض کښې څنګه حلال شو؟ او بیا د تجارت د پاره په عامه توګه د بانکونو نه په سود باندې قرض حاصلولې شی، او د تاوان په صورت کښې د دې بوج بیا په ټول قوم باندې راپریوځی، آیا د قوم هر یو فرد په دې یو طرفیزې لوبه باندې راضی وی؟ کومه معامله چې د یو فرد د پاره د نقصان د موجب کیدو له کبله ناروا ده هماغه معامله د ټول ملت او قوم د پاره د تباهئ او د هلاکت د سبب ګرځیدلو باوجود څنګه روا شوه؟

دا جوابونه علی سبیل التنزل ورکړې شو، اوکه نه نو د دوی د دې استدلال سرسری کیدل او د دې ډډوالې دومره ښکاره دې، چې هیڅ یو عقل مند انسان په دې باندې دهوکه کیدې نه شی، که چیرې د سود خورو دا خبره د لږ وخت د پاره ه ومنلې شی نو بیا یواځې د سود ذکر ولې کوی؟ ځکه چې د جوارئ وسیع کاروبار، د زنا اډې، د رشوت دا ګرم بازار او د دې نه علاوه نور شیطانی مرکزونه ټول دیو بل په رضامندئ سره چلیږی، بیا خوښهٔ مو نهٔ ده چې هغوی له هم د جواز سند ورکړې شی؟

۳ - یو عمومی شان دلیل دوی دا هم وړاندې کوی: هر کله چې یو سړې کور، دکان، او سورلی وغیره د استعمال د پاره ورکړی او د دې جائزه کرایه اخلی، نو دویم سړې چې نقدې روپئ ورکړی هغه د دې کرایه ولې نهٔ شی اخستلې؟ او حال داچې دا د عامو ضرورت د څیزونو په مقابله کښې ډیر قیمتی او نفع ورکونکې څیز دې.

**جواب**: د دوی په دې دلیل کښې هم څه زور نشته دې، یو عام سړې ته هم د دې حقیقت معلوم دې او پوهیږی پرې، چې کرایه د داسې څیز ورکولې شی چې په مستقله توګه د کرایه دار په استعمال او تصرف کښې پاتې وی، په ډیر استعمال کښې په دې کښې کنډم والې یا زړیدل راتلې شی، او دمسلسل استعمال د وجې نه دغه څیز ورو ورو خپل قیمت کموی، لکه کور، دکان، سورلئ وغیره شول، نقدې روپئ په خپل ذات کښې د استعمال څه څیز نهٔ دې، بلکه د استعمال د څیزونو د حاصلولو یوه وسیله ده، څو پورې چې دا خرچ نه کړې شی نو د دې نه څه څیز نه شی حاصلیدلې، او چې دا باقی وه درلودلې شی نو د دې نه د هیڅ قسمه څه فائده ممکنه نهٔ ده، لهذاد

استعمال په ځیزونو باندې دا قیاس کول یو بې معنی خبره ده، سود خور چې په دې معامله کښې څه ته د کرایې نوم ورکوی نو د قرآن مجید په اصطلاح کښې هم دې ته ربا وائی.

۴ - یو دلیل دا وړاندې کولې شی چه: یو سړې خپله محفوظه سرمایه او مال بل له ورکړی او یو قسمه خطرې او هلاکیدلو ته غاړه کیږدی، د مال مالک که غوښتلې نو په خپله ئې هم د دې نه ډیره څه فائده اخستې شوه، لیکن دهٔ د ایثار نه کار واخستلو او بل له ئې په خپل ځان باندې فوقیت او ترجیح ورکړه، او دا دویم سړې د دې مال نه نفع اخلی، نو آخر د مال او د سرمایې مالک ته دا حق ولې نهٔ شی حاصلیدلې چې هغه هم د دهٔ سره په نفع کښې شریک شی؟ او یوه لږه شان حصه دې د قرض داری نه حاصله کړی؟

**جواب**: په دې کښې هیڅ شک نشته چې چا ته قرض ورکول یوه لویه نیکی او د لوئې درجې ایثار دې، لیکن بیا دا دکوم انصاف فیصله ده چې دهرې نیکئ دې نقد اجرت هم حاصل کړې شی؟

د ایثار تقاضه خو دا ده چې: «نیکی کوه او دریاب ته ئې غورځوه».

او په احسان سره خو به هغه: (نیکی برباد گناه لازم) په مصداق وگرځی.

بیا کوم قرض چې د سود د حاصلولو د پاره ورکړې شو نو هغې ته د ایثار نوم د کوم منطق له وجې ورکولې کیږی؟ ایثار خو هغه نیکئ ته وائی چې بې د زیاتې معاوضې نه بل سره وکړې شی او قرض ورکړې شی.

غرض د خبرې دا چې قرض ورکول نیکی او ایثار ضرور دې لیکن فرض یا واجب نهٔ دې. که یو زړهٔ سواندې سړې د انسانی همدردئ له کبله داسې کوی نو ضرور دې وکړی، او که داسې نه کوی نو خپل مال دې خپل ځان سره کیږدی، لیکن د دې خو هیڅ قسمه څه جواز نشته دې چې د یوې وړې نیکئ په بدله کښې دې دومره لوئې لعنت په خپل سر واخستلې شی.

په دلیل کښې د مال د هلاکیدلو دا ویره هم صحیح ده چې کیدې شی چې د څه حادثې د وجې نه یا د قرض دار د تعدی د وجې نه د قرض ورکوونکی مال او سرمایه ټوله ډوبه شی، لیکن دا خطره د هلاکیدلو خو هم څه مال او متاع نهٔ دې چې د دې معاوضه دې واخستې شی، او بیا د دې ویرې نه د بچ کیدلو طریقه هم په شریعت کښې موجوده ده، چې د قرض داری څه ځیز ضامن واخستې شی، نو ددې نه به د سرمایې د هلاکیدلو ویره ختمه شی، سود په قرض داری باندې یو تاوان دې، په دې کښې د سرمایې د تحفظ څه ضمانت نشته دې.

۵ - په پورتنی جواب باندې دا اشکال واردیږی: تاسو وایئ چې که چا له څوك دهمدردئ په توګه قرض ورکوی نو وردې کړی اوکه نه نو خپل مال دې خپل ځان سره کیږدی، داسې قسمه

همدرد به چرته په لکونو کښې یو وی اوکه نه نو سرمایه دار خو چې چا له قرض ورکوی نو د سود په لالچ باندې ئې ورکوی،که چیرې هغوی ته د سود لالچ ورنۀ کړې شی او نۀ ورته د سرمایې د واپس کولو تحفظ ورکړې شی نو د سر نه به د قرض ورکولو دروازه بنده شی،او حال دا چې قرض د نن صبا د معاشی ژوند یو داسې ضرورت دې چې خلاصې ترې نشته دې،د یو فرد د ذاتی ضرورت نه واخله د ملکونو د عسکری ضرورتونو پورې چې څومره ضرورتونه دی ټول په قرض سره پوره کیږی، د قرض د دروازې په بندولو سره خو به معاشی زندګی مفلوجه او ختمه شی.

**جواب**: په دې خبره کښې هیڅ شک نشته دې چې قرض د نن صبا د خرچ کولو په ژوند کښې یو لازمی حصه ګرځیدلې ده،او بې د سود نه د قرض ملاویدل ګران هم دی،او په خاص توګه د ډیرې مودې د پاره ډیر قرض ترلاسه کیدل خو ډیر ګران دی، لیکن ددې بنیادی وجه هم د سود دبازار ګرمیدل دی،دې لعنت ته ټولو اسلامی او غیر اسلامی ملکونو تحفظ ورکړو او یو عام رواج ئې ترې نه جوړ کړې دې،د کومې نه چې د قرضِ حسنه،صدقو او عامو مالی نیکو لاره په خپله بنده شوې ده،او که نه نو د اروپا د معاشی تعارض نه وړاندې په پیړو پیړو د افرادو ذاتی ضرورتونه،د هغوی تجارتونه او د ملکونو دفاعی خرچې،ټول په ټوله بې د سود نه هم دغسې راروان وو،د اسلامی تاریخ ابتدائې روښانه زمانه په دې باندې ګواه ده،په جهاد کښې او په نور دعامو خلقو د فائدې په کارونو کښې به مالدارانو مسلمانانو داسې صدقې او خیراتونه ورکول چې د نن صبا سود خوارۀ په ډیر اندازه د سود سره هم ګرانه ده که هغومره سرمایه ورکړې شی،کۀ د دې یو ننداره کول غواړئ نو د **حیاة الصحابه ص۱۳۳،ج۲،باب انفاق الصحابة فی سبیل الله** مطالعه دې وکړې شی،اوس په دې نن صبا زمانه کښې د سود د پنجې نه د خلاصې د پاره که دنیا ته څه لاره نۀ ښکاری نو په دې باندې به بې د دې نه سِوا څه او وئیلې شی چې: (*خود کرده را علاجے نیست*).

دا حالات همداسې دی لکه نن صبا د رشوت مرض چې څنګه عام شوې دې چې چا ته خپل جائز حق هم بې د رشوت د ورکولو نه نۀ ترلاسه کیږی،هره یوه محکمه د دې په جال کښې ده،که چیرې یو افسر درشوت د اخستلو په جرم کښې معطل هم کړې شی نو هغه ددې نه زیات رشوت ورکړی او واپس په خپله کرسئ باندې کینی نو آیا دا صورتِ حال یو عاقل او پوهه سړې دا د رشوت د جواز د پاره دلیل جوړولې شی او وړاندې کولې ئې شی؟

په اسلام کښې دسودی نظام متبادل هغه نظام د مضاربت دې،په کوم کښې چې د یو فرد سرمایه او د بل فرد محنت وی،په دې نظام کښې هرې دواړو ته خپل برابر حق وررسیږی، که چیرې نفع وشی نو د دواړو به وی،سرمایه دار ته به د خپلې سرمایې او مضارب ته به د خپل محنت میوه ترلاسه شی، او که چیرې تاوان وشی نو هم به دواړو ته رسیږی، د یو سرمایه لاړه او د بل محنت

لاړو، لیکن په سودی نظام کښې ټول په ټوله تاوان د عامل په حصه کښې واچولې شی.

د بانکارئ د نظام د فائدې او د ضرورت نه هم څوک انکار نه شی کولې، لیکن د سود پلیتی ددې هر یوه فائده په نقصان کښې بدله کړه، که چیرې په بانکونو کښې د سود په ځائ د مضاربت په پاکو اصولو باندې کار شروع کړې شی، نو دا به د ملک او دملت په حق کښې یو بهترینه اداره ثابتې شی. والحمدلله اولاً واخراً.

**محمد ابراهیم**

**۵ محرم ۱۴۱۵ هجری**

## په حرام خورئ باندې نور وعیدونه

۱- حرام خور به د جهنم خاشاک وی : **عن جابر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ: لا یدخل الجنة لحم نبت من السحت وکل لحم نبت من السحت کانت النار اولی به. (احمد، دارمی، بیهقی)**

۲- حرام خور به جنت ته نۀ داخلیږی : **عن ابی بکر ﷺ ان رسول الله ﷺ قال: لا یدخل الجنة لحم غذی بالحرام. (شعب الایمان للبیهقی)** ؛

۳- چې د لباس لسمه حصه حرامه وی نو مونځ نه قبلیږی : **عن ابن عمر ارفعه: من اشتری ثوبا بعشرة دراهم وفیها درهم حرام لم یقبل الله تعالی له صلوة ما دام علیه. (احمد)**

۴- دحرام مال نه صدقه نۀ قبلیږی، په حرام کښې برکت نۀ وی، او که حرام مال ئې پریښودلو او مړ شو نو دا ئې د جهنم سامان دې : **عن عبدالله بن مسعود ﷺ عن رسول الله ﷺ قال: لا یکسب عبد مالا من حرام فیتصدق منه فیقبل منه ولا ینفق منه فیبارك له فیه ولا یترکه خلف ظهره الا کان زاده الی النار، الحدیث. (احمد)**

۵- د حرام مال نه په صدقه کولو باندې دثواب په ځائې عذاب دې : **ابوالطفیل ﷺ رفعه: من کسب مالا من حرام فاعتق منه ووصل منه رحمه کان ذلك اصراً. للکبیر بضعف (مجمع الزوائد)**

۶- د حرام خور دعا نه قبلیږی : **عن ابی هریرة ﷺ فی حدیث: ثم ذکر الرجل یطیل السفر اشعث اغبر یمد یدیه الی السماء یارب یارب ومطعمه حرام ومشربه حرام وملبسه حرام وغذی بالحرام فانی یستجاب لذلك. (مسلم)**

لونې اوږد سفر، ګډ وډ ویخته، د دوړو کښې ککړ، او آسمان اړخ ته دواړه لاسونه خواره او یا رب یا رب ناری وهل غرض دا چې د دعا د قبلیدلو ټولې مواقعې جمع دی او د دې باوجود صرف د حرام نه د پرهیز نه کولو په وجه د دۀ دعا رد کړې شی.

# باب القرض و الدّیْنِ

## د مکیلاتو او د موزوناتو استقراض روا دې

**سوال**: د مکیلاتو او موزوناتو په قرض اخستل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: د مکیلاتو او موزوناتو او د عددی متقارب استقراض روا دې د دې نه علاوه د بل یو څیز استقراض روا نه دې.

قال فی التنویر فی فصل فی القرض: وصح فی مثلی لا فی غیره. وفی الشامیة (قوله فی مثلی) کالمکیل والموزون والمعدود المتقارب کالجوز والبیض وحاصله ان المثلی مالا تتفاوت احاده ای تفاوتاً تختلف به القیمة فان نحو الجوز تتفاوت احاده تفاوتاً یسیرا (ردالمحتار ص۱۷۱ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم

۳۰ ذی قعده ۱۳۷۲ هجری

## په تخارج کښې د صلح عن الدین د جواز حیلې

دا بحث به په مسائل شتی کښې راشی.

## تفصیل د (تملیک الدین من غیر من علیه الدین)

**سوال**: آیا تملیک د دین من غیر من علیه الدین بالتوکیل روا دې او که نه؟ په هدایه کتاب الکفالة کښې دی چه: لانه (الکفیل) ملک الدین بالاداء فنزل منزلة الطالب کما اذا ملکه بالهبة (هدایة ص۱۱۸ ج۳) د دې نه معلومیږی چې په هبه کښې خو د موهوب له توکیل ضمنی وی د دې وجې نه دا روا دی، بل دا چې په کتاب الوکالة کښې دی چه: کان هذا تملیک الدین من غیر من علیه الدین من غیر ان یوکله بقبضه وذلک لا یجوز (هدایة ص۱۸۶ ج۳)

د دې نه هم دا خبره معلومه شوه چې تملیک بالتوکیل روا دې، لیکن د دې جزئیې سره پیوسته دا هم دی چه: کما اذا اشتری بدین علی غیر المشتری.

په دې باندې دا اعتراض واردیږی چې دا صورت روا کیدل پکار دی ځکه چې په دې کښې بائع ته وکیل بالقبض ضمناً وئیلې شی، لهذا د شافی تحقیق نه مو خبر کړئ - بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: تملیک بالتوکیل الضمنی روا دې، لکه څنګه چې په کفالة کښې کیږی. قال الامام ابن الهمام رحمه الله: والوجه ان یقال بعقد الکفالة سلطه علی قبضه عند الاداء. (فتح القدیر ص۴۰۰ ج۵)

همدغه شان هبة الدين للمعين هم د دې ضمنی توکيل له کبله روا ده، لکه څنګه چې په سوال کښې د هدايې په ذکر شوې جزئيې کښې د دې تصريح موجود ده، ليکن د غير معين د پاره هبة الدين صحيح نۀ ده ځکه چې د غير معين توکيل صحيح نۀ دې.

**قال الامام المرغينانی رحمه الله: ويکون امرا بصرف مالا يملکه الا بالقبض قبله وذلك باطل کما اذا قال اعط مالی عليك من شئت (هداية ص۱۸۶ ج۳)**

البته دا خبره ده چې په غير معين فقير باندې د دين صدقه صحيح ده.

**بخلاف ما امره بالتصدق لانه جعل المال الله تعالی وهو معلوم. (هداية ص۱۸۶ ج۳)**

پاتې شو دا اشکال چې **تمليك الدين بالعوض للمعين بالتوکيل الضمنی** ولې روا نۀ دې؟ لکه څنګه چې په سوال کښې د هدايې په ذکر شوې جزئيې (کما اذا اشتری ـ الخ) کښې دی.

ددې مختلف جوابونه ورکړې شوې دی:

**قال العلامة البابرتی رحمه الله: واجيب عن الاعتراض المذکور فی بعض شروح بوجه اخر ايضا وهو ان البائع لوصار وکيلا فانما يصير وکيلا فی ضمن المبايعة ولابد من ان يثبت المتضمن ليثبت المتضمن والمبائعة لم تثبت لما فيه من تمليك الدين من غير من عليه الدين فلا يثبت المتضمن بخلاف ما نحن فيه لان التوکيل بالقبض يثبت فيه بأمر الامر وانه يسبق الشراء وبخلاف ما اذا وهب الدين من غير من عليه الدين حيث تصح الهبة ويثبت الامر من الواهب للموهوب له بالقبض فی ضمن الهبة لان الملك يتوقف الی زمان القبض فيکون التوکيل بالقبض سابقا علی التمليك معنی (تکملة فتح القدير ص۸۰ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم**

۲۰ ربيع الاول ۱۳۷٦ هجری

## د سرو زرو ګانه قرض ورکول او د هغې قيمت واپس اخستل

**سوال**: يو سړی د بل سړی نه يو څو تولې سرۀ زر د کالو (ګانې) په شکل کښې قرض واخستل، اوس مقروض خپل قرض ادا کول غواړی، قرض ورکوونکې مقروض ته وائی چې تۀ د کالو په ځائې د دې قيمت که راکړې نو دا به مناسب وی، نو آيا مقروض د دې کالو قيمت ورکولې شی؟ که ورکولې ئې شی نو د کوم وخت قيمت به معتبر وی؟ دا خبره دې واضحه وی چې ځينی علماؤ دا معامله په سود کښې داخله کړې ده او ناروا ئې ورته وئيلې ده؟ورسره دا راته هم اووايئ چې ربوا نسئية او د قرض په مينځ کښې څه فرق شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب**: چې د کالو په ځائ د دې قيمت واخستې شی نو په دې کښې د ربوا هيڅ قسمه څه شک او شبه نشته دې:

قال العلائي رحمه الله: (و) صح (بيع من عليه عشرة دراهم) دين (ممن هي له) اي من دائنه فصح بيعه منه (دينارا بها) اتفاقا وتقع المقاصة بنفس العقد اذ لا ربوا في دين سقط.

وقال ابن عابدين رحمه الله: (قوله وتقع المقاصة بنفس العقد) اي بلا توقف على ارادتهما لها بخلاف المسالة الاتية ووجه الجواز ان جعل ثمنه دراهم لا يجب قبضها ولا تعيينها بالقبض وذلك جائز اجماعا لان التعيين للاحتراز عن الربوا اي ربوا النسيئة ولا ربوا في دين سقط انما الربوا في دين يقع الخطر في عاقبته ولذا لو تصارفا دراهم دينا بدنانير دينا صح لفوات الخطر (ردالمحتار ص۲۶۶ ج۴)

البته دا خبره ده چې که د کالو په بدله کښې هم کالی واخستی شی نو د مبادلة الجنس بالجنس د کیدلو د وجې نه به د ربوا د کیدلو مغالطه کیدې شوه، لیکن په حقیقت کښې په دې صورت کښې هم ربوا نشته دې، بلکه دا قرض دې.

ربوا نسیئة هلته کیږی چې مبادلة الجنس بغیر الجنس وی یا مبادلة الجنس بالجنس وی او په دې کښې لفظ د بیعې یا د مبادلې، یا د معاوضې استعمال کړې شوې وی، او که چیرې د یو جنس د ورکولو په وخت کښې هم د دغه جنس د واپسئ معامله کړې شوې وی لیکن د بیعی یا د مبادلې، یا د معاوضې الفاظ په کښې نه وی استعمال کړې شوې نو دا قرض دې برابره خبره ده چې د قرض لفظ ئې وئیلې وی او که نه ئې وی وئیلې او دا بې له څه شک شبې نه روا دی. **والله سبحانه وتعالی اعلم** ۲۶ محرم ۱۴۲۶ هجری

## د قرض د اخستلو تدبیر

**سوال**: یو رشته داره مو په دې خبره ډیر تاکید کوی چې هغه دې د دې لاندې مسئلې د جواز په حقله مطمئنه کړې شی، د هغې نه د هغې پلار سل روپئ په توګه د قرض واخستې، لیکن اوس ډیر وخت وشو او پلار یې دغه روپئ نه ادا کوی، او حال دا چې هغه ددې پیسو د ادا کولو توان لری، او په راروان وخت کښې هم د دۀ نه د دې پیسو د ادا کولو څه امید نشته دې، د هغې پلار د غوړو کاروبار کوی، او دا غوړی هم د دې پوښتنې کوونکی په کور کښې ږدی، نو په دې صورت کښې به آیا دا روا وی چې دا لور ئې د خپل پلار د غوړو نه وخت په وخت د هغۀ د اجازت نه بغیر څه قدر غواړی ترې نه اوباسی چې هغه خرڅ کړی او خپلې پیسې ترې په دې طریقه پوره کړی، او چې هر کله دا پیسې په دې طریقه کله واخستلې شی نو خپل پلار پرې بیا خبر کړی، او اګرچې د هغۀ په خبرولو کښې د خفه کیدلو اندیښنه هم شته دې، لیکن دا لور ئې چې کونډه ده او اولاد ئې هم دې او ضرورت منده هم ده نو دا څه وکړی؟ او پلار ئې محتاج نۀ دې، آیا د پیسو اخستلو دا تدبیر شرعا روا دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق و الصواب** : دا طریقه روا ده لیکن ددې خبرې پوره پوره خیال وساتلې شی چې د خپل حق نه دې زیات نه اخلی، او دا خستلو پس پلار ته د دې خبر ورکول ضروری نه دی، خصوصا چې بیا په کښې دا خفګان اندیښنه هم وی :

قال فی العلائیة: لیس لذی الحق ان یاخذ غیر جنس حقه وجوزه الشافعی رحمه الله تعالیٰ وهو الاوسع.

وقال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (وقوله وجوزه الشافعی) قدمنا فی کتاب الحجر ان عدم الجواز فی زمانهم اما الیوم فالفتوی علی الجواز. (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ٦ شوال ١٣٨٦ هجری

## د قرض ورکولو نه پس سکه بدله شوه

**سوال** : زید د بکر سره د سلو روپو په بدله کښې خپله زمکه ګانه (ګرو) کړه ،او دا د هغه وخت خبره ده چې کله روپئ د سپینو زرو وې، اوس تقریبا ۲۰ کاله پس په پاکستان کښې د هغه سپینو زرو د سکې رواج پاتې نه دې، نوې پاکستانی روپئ چلیږی، اوس راهن او مرتهن دواړه په فک د رهن باندې راضی شوې دی، لیکن د مرتهن دا مطالبه ده چې ما ته دې هماغه د سپینو زرو روپئ راکړې شی او یا دې د هغې قیمت راکړې شی، او راهن وائی چې زهٔ به پاکستانئ روپئ درکوم، په دې کښې به شرعی فیصله څنګه وی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا معامله د قرض ده او په قرض کښې د مقروض څیز مثل ادا کول واجب وی، سپین زر په اعتبار د خلقت ثمن دې، لهذا د تعامل د ترک باوجود د دې د ثمنیت بندیز نه شی کیدلې، لهذا ددې مثل یعنی سل تولې سپین زر به ورکول وی. **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۱۰ ذی قعده ۱۳۸۹ هجری

## د یو یو څناور په حساب سره قصاب له قرض ورکول

**سوال** :- بکر قصاب دې، زید په دې شرط هغه له زر روپئ قرض ورکړې چې د یو ښاروی په سر به درنه پنځه روپئ کمیشن اخلم، یعنی که په پنځه ورځو کښې دې لس ښاروی حلال کړل او د هغې غوښه دې خرڅه کړه نو ما له به د دې په حساب سره پنځوس روپئ راکوې، آیا شرعا دا معامله روا ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا معامله حرامه ده، په هر یو ښاروی باندې ټاکلې شوې پیسې اخستل سود دې البته که په ګټه کښې ورسره په نیمه یا په دریمه شریک شی نو دا به په عقد د مضاربت کښې داخل شی او روا به شی. **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم** ۲۷ ربیع الاول ۱۳۹٦ هجری

## دَین په کم قیمت باندې د غیرِ مدیون په لاس باندې خرڅول

**سوال**: یو سړې د ټرک د ډرائیور نه یا د مالک نه کوم چې د ملک د مختلفو ځایونو نه کراچئ ته مال راوړی بلټیانې اخلی، لیکن په دې طریقه چې کوم مال مثلاً د دوو زرو روپو دې،دا سړې هغه ډرائیور یامالک له شل روپئ کمې دوه زره روپئ ورکړی،آیا دا طریقه روا ده؟ که چیرې ناروا وی نو آیا ددې د جواز هم څه صورت شته دې چې دواړه دا کاروبار کوی او د ټرک والا وخت هم نۀ ضائع کیږی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا معامله په دوو وجوهو سره ناروا او حرامه ده،یو خو دا چې دا بیع الدین من غیر من علیه الدین ده کومه چې ناروا ده،دویمه وجه دا ده چې په پیسو کښې کمې زیاتې په سود کښې راځی او سود حرام دې.

صحیح صورت ئې دا کیدې شی،چې د ټرک مالک دې د کرایې د اخستلو دپاره څوک وکیل جوړکړی،او هغه له دې د کرایې د اخستلو د اجرت په توګه شل روپئ ورکړی،بیا دې د هغۀ نه د بلټئ د پیسو په برابرئ قرض واخلی او دا دې ورته اووایی چې زما قرض چې کله واخلې کړې نو د دې قرض په بدله کښې ئې تۀ واخله کوم چې ما ستا نه واخستلو.

لیکن په دې صورت کښې که چیرې وکیل ته قرض ورنۀ کړې شو نو هغۀ د موکل نه د قرض مطالبه کولې شی.

د دې صورت د صحت د پاره دا شرط دې چې د توکیل د پاره دې اقراض شرط نه کړې شی،که د قرض د اخستلو نه بغیر د ټرک ډرائیور څوک وکیل نه جوړوی نو دا د دې وجې نه ناروا دې چې وکیل د قرض نه د استجارې نفع حاصلوی او دا سود دې.

ددې وجې نه صحیح صورت دا دې چې د ټرک مالک دې فی الحال رقم نه اخلی بلکه څوک دې د دې قرض د اخستلو د پاره په اجرت باندې وکیل جوړ کړی،او دغه وکیل دې دا قرض اخلی او مالک ته دې رسوی.**والله سبحانه وتعالیٰ اعلم**، ۲۲ ربیع الثانی ۱۴۰۰ هجری

## په قرض کښې تاجیل باطل دې

**سوال**:- په لاندې ذکر کړې شوو صورتونو کښې د شریعت څه حکم دې؟

۱- چا د یوې میاشتې په نیته باندې قرض واخستلو،نو آیا قرض ورکوونکې د دې نیتې نه وړاندې د قرض مطالبه کولې شی؟

۲-که د ټاکلی شوی مودی په تیریدلو باندې مقروض تنګدسته وی نو آیا قرض ورکوونکې د قرض داری نه په قرض اخستلو باندې جبر کولې شی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قرض ورکوونکې د تاکلی شوی مودې نه وړاندې قرض طلب کولې شی، لیکن دا خبره ده چې بې د ضرورته په طلب کولو باندې به د وعده خلافئ ګناه ئې کیږی.

قال الامام التمرتاشی رحمه الله: ولزم تاجیل کل دین الا القرض.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله فلا يلزم تاجيله) اى انه يصح تاجيله مع كونه غير لازم فللمقروض الرجوع عنه لكن قال فى الهداية فان تاجيله لا يصح لانه اعارة وصلة فى الابتداء حتى يصح بلفظة الاعارة ولا يملكه من لا يملك التبرع كالوصى والصبى ومعاوضة فى الانتهاء فعلى اعتبار الابتداء لا يلزم التاجيل فيه كما فى الاعارة اذلا جبر فى التبرع وعلى اعتبار الانتهاء لا يصح لانه يصير بيع الدراهم بالدراهم نسيئة وهو ربا اهو مقتضاه ان قوله لا يصح على حقيقته لانه اذا وجد فيه مقتضى عدم اللزوم ومقتضى عدم الصحة وكان الاول لا ينافى الثانى لان ما لا يصح لا يلزم وجب اعتبار عدم الصحة ولهذا علل فى الفتح لعدم الصحة ايضا بقوله ولانه لو لزم كان التبرع ملزما على المتبرع ثم للمثل المردود حكم العين كانه رد العين والا كان تمليك دراهم بدراهم بلا قبض فى المجلس والتاجيل فى الاعيان لا يصح اه ملخصا ويؤيده ما فى النهر عن القنية التاجيل فى القرض باطل. (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۴)

۲ - د مقروض د تنګدستئ په حالت کښې هغه د قرض په واپس کولو باندې مجبورول روا نهٔ دی.

قال سبحانه وتعالى: ﴿ وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٨٠﴾ ﴾. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۰ شعبان المعظم ۱۴۱۵ هجری

﴿مَن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً وَاللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٤٥﴾﴾ (۲_۲۴۵)



﴿مَن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ وَلَهُ أَجْرٌ كَرِيمٌ ﴿١١﴾﴾ (۵۷_۱۱)



﴿إِن تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَاللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٧﴾﴾ (۶۴_۱۷)

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾

# الحط من المؤجل بشرط ادائه المعجل

**د مؤجل قرض خه حصه په دې شرط باندې معاف کول چې باقي قرض به هم په دې وخت ادا کوې دا روا نه دی .**

د فقهې د بعضې عبارتونو نه د جواز د اشتباه ازاله یعنی ختمول

## د دین څه حصه ساقطول په شرط د تعجیل

**سوال** : د یو سړی په بل سړی باندې دین مؤجل وو ،مدیون ته دائن درخواست وکړو چې د دین څه حصه راته معاف کړه،دائن ئې درخواست په دې شرط باندې قبول کړو چې د دین باقی حصه په همدې وخت ادا کړه، لهذا مدیون ورته باقی دین هم په دغه وخت ادا کړو ،شرعا ددې څه حکم دې؟

یو مولوی صاحب د جواز د پاره د تنویر اود شامیې عبارتونه وړاندې کوی، په تنویر کښې دی چه : **قال ادالی خمسمائة غدا من الف لی علیك علی انك بریٔ من الباقی فقبل بریٔ وان لم یؤد ذلك فی الغد عاد دینه**( ردالمحتار ص۵۴۳ ج۴)

او د شامیې عبارت دې چه : **لو قال ابراتك عن الخمسة علی ان تدفع الخمسة حالة ان كانت العشرة حالة صح الابراء لان اداء الخمسة یجب علیه حالا فلا یكون هذا تعلیق الابراء بشرط تعجیل الخمسة ولو مؤجلة بطل الابراء اذا لم یعطه الخمسة.** (ردالمحتار ص۵۴۳ ج۴)

تاسو مونږ د خپل قیمتی تحقیق نه خبر کړئ-بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق و الصواب** : دا معامله روا نهٔ ده،په دې کښې اصل دا دې چې که د جانبینو نه وی نو دا احسان دې لکه چې په پوښتلی شوی صورت کښې د دائن د اړخه د دین څه حصه پرېښودل دی او د مدیون له اړخه د اجل ساقطول دی،نو دا معاوضه شوه او د ربا د موجب کیدلو له کبله ناجائزه ده،او که احسان د یو جانب نه وی نو دا ابراء شوه،معاوضه نهٔ شوه لهذا بیا روا ده۔

**قال فی التنویر ولا یصح(الصلح)عن دراهم علی دنانیر مؤجلة او عن الف مؤجل علی نصفه حالا او عن الف سود علی نصفه بیضا.**

**وفی الشرح والاصل ان الاحسان ان وجد من الدائن فاسقاط وان منهما فمعاوضة.**

**وفی الشامیة(قوله فمعاوضة)ای ویجری فیه حكمها فان تحقق الربا او شبهته فسدت والاصحت ط.قال ط ان الاحسان ان وجد من الدائن بان صالح علی شیٔ هو ادون من حقه قدرا او وصفا او وقتا.وان منهما ای من الدائن والمدیون بان دخل فی الصلح مالا یستحقه الدائن من وصف كالبیض بدل السود او ما هو فی معنی الوصف كتعجیل المؤجل او عن جنس بخلاف جنسه.** (ردالمحتار ص۵۴۳ ج۴)

قدوری رحمه الله هم دا اصل په نورو الفاظو کښې بیان کړې دې:

**قال(القدوری)و كل شیٔ وقع علیه الصلح و هو مستحق بعقد المداینة لم یحمل علی المعاوضة و انما یحمل علی انه استوفی بعض حقه و اسقط باقیه(الی قوله)و لو كانت له الف مؤجلة فصالحه علی خمسمائة حالة لم یجز.**

قال العلامة المرغيناني رحمه الله لان المعجل خير من المؤجل وهو غير مستحق بالعقد فيكون بازاء ما حطه وذلك اعتياض عن الاجل وهو حرام (هداية ص۲۸۱ ج۳)

همدې سره نژدې نژدې دشامیې عن الطحطاوی پورته ذکر کړې شوې جزئیه (بان دخل فی الصلح ما لا یستحق الدائن۔ الخ) او د تنویر جزئیه (الصلح الواقع علی بعض جنس ماله علیه اخذ ببعض حقه وحطه لباقیه) ده۔

په سوال کښې ذکر کړې شوې د تنویر جزئیه د (الف حاله) په حقله ده، په دې کښې احسان صرف د دائن له اړخه دې د مدیون له اړخه په کښې څه احسان نشته دې، یا په نورو الفاظو کښې به داسې اووایو چې دائن څه څیز چې غیر مستحق بالعقد وی لکه تعجیل وغیره په صلح کښې نۀ شرط کوی، ځکه چې تعجیل خو د وړاندې نه دې.د دې وجې نه دا صورت د ذکر شوې قاعدې مطابق روا دې، اوکه نه نو که (الف مؤجل) ترې نه مراد واخستې شی نو بیا په کښې د جواز څه صورت نشته دې، ځکه چې د عدم جواز کوم علت په ذکر شوې جزئیه کښې دې هغه علت به دلته هم موندلې شی.

ددې نه علاوه په لاندینو جزئیاتو کښې د دې الف د معجل کیدلو تصریح هم موجود ده:

قال العلامة البابرتی رحمه الله ومن له علی اخر الف درهم حالة الخ (عناية علی هامش الفتح ص۳۲ ج۷)

وقال الامام الزيلعی رحمه الله (قوله ومن له علی اخر الف الخ) ای ان لم يؤد غدا النصف وهو خمسمائة لا يبرا وهذا عند ابی حنيفة ومحمد رحمهما الله وقال ابو يوسف رحمه الله يبرا وان لم يؤد ولا تعود اليه المائة الساقطة ابدا لان اشتراط الاداء ضائع لان النقد واجب عليه فی كل زمان يطالبه هو فيه اذا المال عليه حال الخ (التبيين الحقائق ص۳۳ ج۵)

وقال العلامة الشلبی رحمه الله فی حاشيته علی التبيين (قوله فی المتن ومن له علی اخر الف الخ) قال الاتقانی وصورتها فی الجامع الصغير محمد عن يعقوب عن ابی حنيفة رحمه الله فی رجل يكون له علی رجل الف درهم حالة الخ (التبيين الحقائق ص۳۳ ج۵)

کذا مطبع صفدری بمبیٔ ص۲۹۲ باندې د ومن له علی اخر الف لاندې بین السطور دا حاشیة ده:

ای الف درهم حالة. كذا فی شرح الجامع للبزدوی وقاضيخان والمحبوبی.

ددې نصوصو نه علاوه ښکاره خبره هم دا ده، چې الف حاله ترې نه مراد دې، ځکه چې په معاملاتو کښې اصل هم دا دې، تاجیل یو امرِ عارض دې، کوم چې په صورت د شرط کښې ثابتیږی، او په قرض کښې خو د شرط لګولو سره هم تاجیل نه ثابتیږی.

د شامیې نه چې کومه جزئیه وړاندې کړې شوې ده، هغه علامه شامی رحمه الله د جامع الفصولین نه نقل کړې ده،د دې نه هم استدلال صحیح نهٔ دې،ځکه چې په دې کښې مقصود بالذات د تقیید د صحت تحقیق دې،د عشره حاله په صورت کښې تقیید د غیر مفید کیدلو د وجې نه صحیح نهٔ دې،او د عشره مؤجله په صورت کښې د تقیید د مفید کیدلو د وجې نه صحیح دې، نو د تقیید د صحت تقاضه ده چې د پنځو د نهٔ ورکولو په وخت کښې دې ابراء باطله وی،دا یو بیله خبره ده چې د اعطاء خمسه په حالت کښې دې هم د یو بل مانع له کبلې ابراء صحیح نه وی،**وهو الاحسان من الجانبين الموجب للربا.**

که چیرې د دې جزئیې دا محمل حسن ونهٔ ګرځولې شی، نو د ټولو کتابونو او په خپله د شامیې دتصریحاتو او د اصولو د خلاف کیدلو د وجې نه به قابل د قبول نه وی.

**فائده**: ابراء متعلق کول د شرطه پورې دا مبطل د ابراء دی او تقیید کول ئې په څه شرطه پورې صحیح دی،شامیه کښې ئې تعلیق بالشرط المتاخر ته روا لیکلې دی:

**قال فی التنویر ولو علق بصریح الشرط کان ادیت الی او اذا او متی لا یصح،وفی الشامیة(قوله بصریح الشرط) قال القهستانی وفیه اشعار بانه لو قدم الجزاء صح،وفی الظهیریة لو قال حططت عنك النصف ان نقدت الی نصفها فانه حط عندهم وان لم ینقده سائحانی.(ردالمحتار ص۵۰۳ ج۴)**

لیکن دا صحیح نه دی، تعلیق د ابراء په شرط سره په هر حالت مبطل دې،برابره خبره ده که جزاء ئې مقدمه وی او که مؤخره وی خو ابراء به نه صحیح کیږی.

**قال العلامة الرافعی رحمه الله ولا یظهر وجه لصحة الحط نقدا ولا والصواب ما نقله السندی عن الظهیریة ان لا یصح الحط نقدا ولم ینقد فی هذا المسئلة(التحریر المختار ص۳۳۹ ج۲)**

همدغه شان تقیید بالشرط سره متعلق په تنویر او علائیه کښې دی چې تقیید اګرچې مبطل د ابراء خو نهٔ دې. لیکن تقیید به هلته صحیح کیږی چې شرط مقدم وی،که چیرې شرط مؤخر ذکر کړې شو نو دا تقیید صحیح نهٔ دې،لهذا په هر حال کښې به بری شی،برابره خبره ده که ادا ئې کړی او که ادا ئې نه کړی.البته که په تفصیل او تشریح سره ئې ښهٔ پوره صراحت وکړو چې (پنځه سوه ورکړی نو باقی به ورته پاتې وی خو په دې شرط چې صباله به ئې ورکوی او که صباله ئې ورنهٔ کړې نو نهٔ به بری کیږی) نو دا تقیید صحیح دې،که شرط اوموندلې شو نو بری به شی او که ونهٔ موندلې شو نو نهٔ به وی بری.

**قال فی التنویر ادا الی خمسمائة غدا من الف لی علیك علی انك بریء من الباقی فقبل بریء وان لم یؤد ذلك فی الغد عاد دینه وان لم یوقت لم یعد و کذا لو صالحه من دینه علی نصفه یدفعه الیه غدا وهو بریء مما فضل علی انه**

ان لم يدفعه غدا فالكل عليه كان الامر كما قال وان ابراه عن نصفه على ان يعطيه ما بقى غدا فهو برىء ادى الباقى الغد اولا (ردالمحتار ص۵۳۳ ج۴)

ليکن صحيح دا معلوميږي چې مطلقاً ابراء به مقيدوی، برابره خبره ده که ادا ئې مقدم ذکر کړې وی او که ابراء ئې مقدم ذکر کړې وی، ځکه چې علامه مرغينانی رحمه الله کوم دليل په وخت د ابراء د تقديم د دې د په عدمِ تقييد باندې ذکر کړې دې دهغې خلاصه داده چې لفظِ ابراء اولا مطلق دې، او لفظ (على) د معاوضې او دشرط دواړو د پاره مستعمل دې، لهذا د معاوضې په صورت کښې ابراء مقيده نۀ شوه او په تقدير د شرط سره به ابراء مقيده وی، لهذا په شک سره به تقييد نه ثابتيږی.

دا دليل باطل دې ځکه چې دلته على د معاوضې د پاره اخستل صحيح نه دی، ځکه چې ادا لره عوض ګرځول صحيح نه دی، ځکه چې ادا خو هسې هم واجب ده، لهذا د على د شرط د پاره متعين کيدل متعين شو.

بله دا چې په تکمله د فتح القدير کښې په ص ۴۵ ج ۷ کښې هم په دواړو صورتونو کښې په فرق باندې بحث ذکر کړې شوې دې.

د دې نه علاوه د تنوير په دې جزئيه باندې علامه شامی رحمه الله فرمائيلې دی:

(قوله ما بقى غدا) لو قال ابراتك عن الخمسة على ان تدفع الخمسة حالة ان كانت العشرة حالة صح الابراء لان اداء الخمسة يجب عليه حالا فلا يكون هذا تعليق[1] الابراء بشرط تعجيل الخمسة ولو معجلة بطل الابراء اذا لم يعطه الخمسة جامع الفصولين كذا فى الهامش (ردالمحتار ص۵۳۳ ج۴)

لان اداء الخمسة الخ نه تعليل دال دې چې د ابراء د تقديم په حالت کښې هم تقييد په مفيد قيد سره صحيح دې، او (ولو مؤجله ـ الخ) کښې خو د دې بالکل تصريح ده.

حاصل د خبرې دا چې تعليق بالشرط په هر صورت کښې مبطل د ابراء دې او تقييد بالشرط په هر صورت کښې صحيح دې، او په هر حال کښې به ابراء د شرط په وجود سره مقيده وی.

دا اختلاف د رواياتو صرف په لفظ د على باندې مبنى دی، ځکه چې په دې کښې د معاوضې او د شرط د دواړو احتمال موجود دې، لهذا که چيرې لفظ د شرط ئې صراحتاً استعمال کړو نو په اتفاق سره به په هر حالت کښې ابراء مقيده وی، برابره خبره ده که شرط مقدم وی او که مؤخر وی.

فقط والله سبحانه وتعالى اعلم ۵ صفر ۱۳۷۱ هجری.

---

۱ - استعمل ههنا لفظ التعليق موضع التقييد كما قال فى موضع اخر من الشامية و المراد من التعليق المذكور التقييد بالشرط بقرينة الامثلة المذكورة (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۴ كتاب البيوع) و ايضا فيها لعله اراد بالتعليق التقييد بالشرط فانهم يطلقون عليه لفظ التعليق (ردالمحتار ص۲۳۰ ج۴ قبيل باب الصرف) ۱۲ منه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿وَمَا تَوۡفِيۡقِيۡٓ اِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَاِلَيۡهِ اُنِيۡبُ﴾

# اداء القرض من الحرام

## د حرام مال نه قرض ادا کول صحیح نه دی

**افاضه**

**حضرت فقیه العصر دامت برکاتهم**

**لیکوال**

**حضرت مفتی عبدالرحیم صاحب مدظله**

❀❀❀❀❀❀❀

## اداء القرض من الحرا م

دا یوه عامه اومشهوره خبره ده چې چا سره حرام مال وی نو د یو غیرمسلم نه دې قرض واخلی او د حرام مال نه دې قرض ادا کړی.

**په دې رساله کښې**

په دې باندې خبرداری کړې شوې دې چې د قرض په ادا کولو کښې حرام مال ورکول روا نهٔ دی،او نهٔ په دې سره د مقروض غاړه خلاصیږی.

- په خینی فتاوی کښې واقع شوې تسامح په نښه کول ،
- د فقهاء کرامو ﷺ د عبارتونو تنقیح او ترجیح، توجیه او تطبیق .

## اداء القرض من الحرام

(۱) **سوال**:- فتاوی عزیزی (طبع مجیدی کانپور ص ۲۸ )کښې لیکلې شوې دی:

(سوال) که یو سړې په شرعی طریقه باندې قرض واخلی او په هغې باندې جمات جوړ کړی بیا درشوت وغیره په ناجائزه طریقې سره مال حاصل کړی او ددې مال نه قرض ادا کړی نو داسې جمات جوړول شرعا صحیح دی او که نه؟

(جواب) داسې جمات جوړول روا دی شرعا به په دې باندې د جمات حکم لګولې شی،په داسې جمات کښې د ثواب طمع شته،ځکه چې د قرض د مال نه به دغه سړی دا جمات جوړوی،اګرکه دا قرض هغه د خبیث مال نه ادا کړی، لیکن کله چې دغه سړې قرض ادا کوی نو دغه وخت به د دې مال د خبث اثر په دې رومبی مال کښې نۀ وی کوم چې قرض اخستې شوې وو، والله اعلم. اهـ

او په (مجموعه فتاوی مولانا عبدالحی صاحب لکهنوی رحمه الله ص۱۸۷ ج ۱ کښې داسې قسمه فتوی لیکلې شوې ده:

(سوال) که ډمې یا زنا کارې قرض پیسې واخستې او په هغې باندې ئې جمات جوړ کړو،بیا ئې د خپل حرام مال نه دغه قرض ادا کړو نو د دې به څه حکم وی ؟

(جواب) هغه جمات به په حکم د جمات کښې وی او قرض به هم ادا شی،په (سراجیه)کښې دی:

**المغنیة اذا قضی دینها من کسبها اجبر الطالب علی الاخذ**

اوس دا پوښتنه کول دی چې آیا د شاه عبدالعزیز صاحب دهلوی رحمه الله او د مولانا عبدالحی صاحب لکهنوی رحمه الله دا فتوی صحیح ده او که نه؟ او که چرې صحیح نۀ ده نو ولې ؟

۲ - دویمه خبره دا ده چې د وقف یوه لویه اندازه پیسې په بانک کښې داخې کړې شوې،د داخلونکی واقف نیت بالکل د سود د اخستلو نۀ وو، لیکن د کوم سړی سره ئې چې ایښودې وې هغه دا پیسې په بانک داخلې کړې او په دې باندې ئې د سود هم ډیرې روپئ لاست راوړې ،اوس آیا داسې څه صورت کیدې شی چې د چا کافر نه دې قرض واخستې شی او هغه پیسې دې په جمات یا په مدرسه کښې ولګولې شی او بیا د دغه کافر دا قرض دې د سود د پیسو نه ادا کړې شی، یا دا دارالحرب لکه د روس وغیره نه دې په دې سودی پیسو باندې څه سامان وغیره راوغوښتې شی،او دغه سامان دې خرڅ کړې شی او د هغې نه حاصلې شوې پیسې دې د وقف په مصرف کښې واخستلې شی،یا د حکومت د اړخه د ټاکلې شوی ټیکس په بدله کښې دې دغه پیسې د حکومت په خزانه کښې داخلې کړې شی.

د حضرت شاه عبدالعزیز صاحب دهلوی رحمه الله او د حضرت عبدالحی لکهنوی رحمه الله ذکر کړې شوو دواړو فتاوو په رڼا کښې به ددې مسئلې څه جواب وی؟د مولانا عبدالحی صاحب رحمه الله په فتاوی ص ۱۹۵ ج ۲ کښې دا هم موجود دی چه:

فی ملتقط الناصری اکل الربوا او کاسب حرام اهدی الیہ واضافه وغالب ماله حرام لا یقبل ولا یاکل مالم یمیز ان ذلك المال حلال ورثه او استقرضه وان كان غالب ماله حلالا لا بأس بقبول هديته والاكل منه.

د دې نه دا هم معلومه شوه چې هغه سړې د چا چې ټول مال حرام دې خیرات کول وغواړی نو قرض دې واخلی او د خپل خبیث مال نه دې دغه قرض ادا کړی او چې قرض واخلی او هغه ورکړی نو د دې به دهٔ ته ثواب ورکول کیږی، او نذر او ډالئ وغیره اخستل هم ددې نه صحیح دی۔

په حفظ الاصغرین کښې دی چه:

فی الخلاصة قال فی شرح حیل الخصاف شمس الائمة ان الشیخ اباالقاسم کان ممن یاخذ جائزة السلطان وکان یستقرض جمیع حوائجه ویقضی دینه بما یاخذه من الجائزة.

طمع لرو چې تاسو حضرات به دا فتاوې مخې ته وساتئ او اصل مسئله به مونږ ته واضحه کړئ .بینوا توجروا۔

عبدالرشید نعمانی

جامعة العلوم الاسلامیه بنوری ټاون کراچئ

**الجواب باسم ملهم الصواب**: الربوا والرشوة واجرة الزنا واجرة الغناء کل ذلك حرام سحت لم یخرج عن ملك صاحبه فلا یجوز تادیة القرض به ولو اعطاه لم یتادلانه مال الغیر فلا یملکه المقرض لان الحرام لا یحل بتبدل الید کما سیتضح من التفصیل الاتی،،

**الکلام علي ما في الفتاوي العزيزية**:- نذکر اولا انواع المال الخبیث واحکامها ثم نتکلم علی جواب الفتاوی العزیزیة فنقول وبالله التوفیق وبیده ازمة التحقیق:

اعلم ان الخبث فی المال خبثان: الاول :خبث عدم الملك کالغصب(رد المحتار ص ۱۰ ج ۵)وکالرشوة (شامیة ص ۳۶۲ ج ۵)، وحکم هذا النوع ان هذا المال حرام سحت ینتقل حرمته من ذمة الی ذمة ولو تبدلت الایدی وبیعه لا یفید ملکا للمشتری وکذا الاقراض(ردالمحتار ص ۲۹۲ ج ۵)

الثانی: خبث فساد الملك،ثم هو قسمان: الاول: ما ثبت فیه الملك بعقد من العقود کالبیع الفاسد.

وحکمه انه لا يطيب للعاقد ويجب رده بفسخ العقد ويكره شراؤه للمسلمين واستقراضه ايضا لكونه مانعا للرد لكنه يطيب للمشتري والمستقرض لزوال المانع (ردالمحتار ص۹۰ ج۴)

والى هذا النوع يتجه ما تكرر ذكره في كلام الفقهاء رحمهم الله من ان تبدل الملك يوجب تبدل العين.

الثاني: ما ثبت من دون عقد ما كخلط مال الغير بمال الغير او بمال نفسه بحيث لا يتميز فان مثل هذا الخلط استهلاك موجب للملك للخالط في اصل الامام رحمه الله عليه.

وفي حكم هذا المخلوط ثلاث روايات:

الرواية الاولى: يجوز الانتفاع للخالط بنفس الخلط.

ولا يخفى ان هذه الرواية يردها القران والسنة والاجماع والقياس فلا عبرة بها.

الرواية الثانية: لا يحل باداء الضمان ايضا بل يجب تصدقه بكل حال.

وهذه مرجوحة ايضا اذ لا وجه لقول الحرمة بعد اداء الضمان او ارضاء المالك باختياره.

الرواية الثالثة: يحل باداء الضمان او اختياره فبدونه لا يحل له الانتفاع ولا يجوز شراؤه ولا استقراضه ولا استهداؤه لكن يملكه الاخذ ملكا خبيثا كما كان للماخوذ منه فلا يطيب له ما لم يؤد بدله او يختر الضمان في الصحيح من المذهب (ردالمحتار ص۲۹۲ ج۲)

اذا تحقق هذا فليتحقق لك بالضرورة ان ما في الفتاوى العزيزية من ان الدين يتادى بمال خبيث لا يصح على الاطلاق كما قد عرفت في احكام انواع الخبيث ولا يمكن حمله على الاول من نوعي فساد الملك لان السؤال عن اداء الدين بمال الرشوة ولا على المال المخلوط حتى يحمل على رواية ضعيفة.

فالاقرب انه مبني على ما نقل عن بعض الحنفية ان الحرام لا يتعدى الى ذمتين.

قال في العلائية: الحرام ينتقل (الى) وفي حظر الاشباه: الحرمة تتعدد مع العلم بها الخ

وفي الشامية: (قوله الحرمة الخ) نقل الحموي (الى) وما نقل عن بعض الحنفية من ان الحرام لا يتعدى ذمتين سالت عنه الشهاب بن الشلبي فقال: هو محمول على ما اذا لم يعلم بذلك اما لو راى المكاس مثلا ياخذ من احد شيئا من المكس ثم يعطيه اخر ثم ياخذ من ذلك الاخر اخر فهو حرام اه (شامية ص۹۸ ج۵)

## الكلام علي مجموعة الفتاوي:

احتج العلامة رحمه الله عليه بما في السراجية حيث اباح اجرة المغنية ثم قاس عليها اجرة الزانية.

لکن الحق ان اجرة المغنية حرام ولا عبرة بقول الحل قال العلاء رحمه الله تعالیٰ:

ولا تصح الاجارة لعسب التيس وهو نزوه على الاناث ولا لاجل المعاصی مثل الغناء والنوح والملاهی ولو اخذ بلا شرط يباح

(قوله يباح) كذا فی المحيط وفی المنتقى: امرأة نائحة او صاحبة طبل او زمر اكتسبت مالا ردته على اربابه ان علموا والا تتصدق به وان من غير شرط فهو لها.

قال الامام الاستاذ: لا يطيب والمعروف كالمشروط اه

قلت وهذا مما يتعين الاخذ به فی زماننا لعلمهم انهم لا يذهبون الا باجر البتة ط (ردالمحتار ص۵۵ ج۵)

قلت فقياس اجرة الزانية على اجرة المغنية بناء الفاسد على الفاسد

وما نسب الى الامام رحمه الله تعالیٰ من ان الاجارة على الزنا فاسدة والاجرة فی الفاسد منها يحل اخذها و يملكها الاخذ فهو باطل للوجوه الاتية:

١ - مخالف للقرآن كما هو ظاهر لمن اعطاه الله مسكة من فهم.

٢ - قال رسول الله ﷺ مهر البغی خبيث.

٣ - عقد الاجارة على العمل الحرام باطل بنص الفقهاء قاطبة رحمهم الله تعالیٰ

٤ - يرده العقل ردا شديدا.

٥ - فتح لابواب الفواحش.

فلذا حمله بعضهم على ما اذا استاجر لعمل مشروع كالطبخ مثلا مع شرط الزنا والحق ان هذه الرواية غير ثابتة عن الامام رحمه الله تعالیٰ كما نقل العلامة الرافعی رحمه الله تعالیٰ عن الحموی رحمه الله تعالیٰ ونصه:

ثم رايت السندی قال نقلا عن الحموی ما ذكره شرح المجمع عن المحيط ان ما تاخذه الزانية بعقد الاجارة حلال عنده لم ار فيه وبعيد عن الامام المعروف بالورع فتح هذا الباب. (التحرير المختار ص۲۶۳ ج۲)

وعلى هذا فلا يجوز اداء القرض من الربوا لانه مال الغير فيكون معطيا مال الغير.

وما فی المجموعة عن الملتقط فليس فيه الاستقراض اكل الربوا و كاسب الحرام وهو خارج عما نحن فيه لان الكلام فی اداء القرض من الحرام والاستقراض لا يلزمه نفس الاداء فضلا عن اللزوم بمال معين.

وما فی شرح الحیل فمحمول علی ما اذا لم یعلم ان غالب مال السلطان حلال او حرام او علی ما اذا یعلم ان غالب ماله حلال،

وفی هاتین الصورتین یجوز الاخذ وکان الشیخ المذکور یعمل ما یعمل لامکان ان یکون الماخوذ من الحرام الغیر المعلوم او من الحرام القلیل ولما لم یعتبر الشرع هذا الامکان فی الجواز حمل عمله علی الورع لا علی اللزوم لامحالة والا فالجائزة لا تخلو اما حلال واما حرام ان حلالا فلا یصح الاستدلال اذا الکلام فی الحرام و ایضا فای فائدة ج فی حیلة الاستقراض، وان کانت حراما فلا یحل الاخذ ویعارض ایضا ما فی الملتقط، علا ان کتاب شرح الحیل لیس مما یحتج به عند الفقهاء رحمهم الله.

والحاصل ان القرض لایتادی بکسب الزانیة والمغنیة والربوا لان الاجارة علیهما باطلة فلم تملک الزانیة والمغنیة ما اعطیتا من الاجرة فهو مال الغیر ومال الغیر لا یتادی به القرض والحرام لا یحل بتبدل الید وکذا الربا هذا ما عندی، والله تعالیٰ اعلم.

عبدالرحیم

نائب مفتی دارالافتاء والارشاد

۱۹ رجب لیلة الجمعة ۱۴۱۰ هجری

# باب الكفالة والحوالة والوكالة

## کفیل بالامر به مکفول عنه ته رجوع کوی او د حوالې د صحت د پاره د محتال علیه رضا شرط ده

**سوال**:- زید که عم فاطمه است از زوج فاطمه مسمی بخالد مهر فاطمه گرفت،بعده خالد فاطمه را گفت که مهر من واپس بده تاکه من ترا طلاق دهم، پس فاطمه کسی راگفت که از شخصی رقم گرفته بکفالت خود مرا بده تا از خالد خلاصی حاصل کنم، رقمیکه از کسی بکفالت خود خواهی گرفت از پسران زید وصول خواهی کرد، چراکه بذمهء زید مهر من ست که از خالد وصول کرده فوت شد، پس کفیل از عمرو رقم گرفته فاطمه راداد، بعده عمرو از کفیل مطالبه کرد و کفیل از پسران زید مطالبه کرد، مگر پسران میگویند که ما را متعلق این حواله هیچ علم نیست، اکنون درین باب فیصلهٔ شریعت مطهره چیست ؟ بینوا توجروا ـ

**الجواب و منه الصدق والصواب** : کسیکه کفالت قبول کرده است برای عمرو، آن کفیل از جانب فاطمه است و برائ فاطمه به امرش قرض گرفته است از عمرو، پس این کفیل راحق رجوع خواهد رسید بر مکفول عنها یعنی فاطمه .اما که فاطمه حواله کرده است دین خود را به پسران زید، پس این حواله باطل است، چراکه محتال علیهم یعنی پسران زید برین حواله راضی نه شده اند و رضای محتال علیه برای صحت حواله شرط است پس کفیل را بر پسران زید حق رجوع نیست، بلکه بر فاطمه رجوع کند و فاطمه بر پسران زید رجوع کند در ترکه زید، بشرطیکه زید برمهر فاطمه بطور قرض قبض نموده باشد اما درصورت ثبوت هبه مهر از جانب فاطمه مر زید را بر پسران زید، فاطمه راحق رجوع نیست .

قال فی شرح التنویر: فان لوزم الکفیل لازمه ای لازم هو الاصیل ایضا حتی یخلصه واذا حبسه له حبسه هذا اذا کفل بامره ولم یکن علی الکفیل للمطلوب دین مثله والا فلا ملازمة ولا حبس سراج (ردالمحتار ص ۳۰۰ ج ۴)

وایضا فی کتاب الحوالة من التنویر شرط لصحتها رضا الکل بلا خلاف الا فی الاول،

وفي الشامية تحت(قوله رضا الكل)و اما رضا الثالث و هو المحتال عليه فلانها الزام الدين ولا لزوم بلا التزام درر (ردالمحتار ص۳۳۲ ج۴)والله سبحانه وتعالى اعلم. ذی قعده۱۳۸۲هجری

## د حوالې حکم

**سوال**:- دعبدالله لخوا د عبدالرحمن په ذمه باندې څه قرض وو چې هغه د عبدالرحمن نه مطالبه وکړه نو عبدالرحمن ورته اووئیل چې زما په عبدالرحیم باندې قرض دې هغه پیسې تۀ د هغۀ نه واخله، او بیا یې د عبدالله په وړاندې عبدالرحیم ته هم اوئیل چې ستا په ذمه کوم قرض دې هغه عبدالله ته ورکړه اوس عبدالرحیم عبدالله له هغه قرض نه ورکوی.

اوس پوښتنه دا کول دی چې آیا عبدالله د عبدالرحمن نه په شرعی توګه د د خپل قرض مطالبه کولې شی اوکه نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا حواله ده،هر کله چې د محتال علیه نه قرض وانه خستل شو نو په اصل مقروض باندې به قرض راواپس شی،لهذا عبدالله د عبدالرحمن نه د قرض مطالبه کولې شی ، **والله سبحانه وتعالی اعلم** ۲۱ ذی قعده ۱۳۹۹ هجری

## په عربو ملکونو کښې د کفیل رواج شوې د اجر حکم

**سوال**:- زۀ د عمان اوسیدونکې یم، ما د یو هوټل اجازت نامه اخستې ده،ما سره یو پاکستانې ورور شریکیدل غواړی،دکان به زما په نوم وی ځکه چې زۀ د عمان اوسیدونکې یم، او چې د څومره کسانو ضرورت وی نو هغوی ته به زۀ په خپله ذمه ویزه ورکوم، د دکان او د سړیو ذمه واری به په ما باندې وی، زما شریک به د دې ذمه وار نه وی، چې څه هم وشی حکومت به ما نیسی، زماشریک به نۀ نیسی،اوس لکه څنګه کار چې دلته دعمان خلق کوی د هغې په مطابق ما هغه ته اووئیل چې د هوټل کرایه او ټول خرچ ورسره د سړیو تنخوا ګانې ټول هر څه به زما د شریک په ذمه وی، او ما ته په هره میاشت دوه سوه یا درې سوه عمانی ریاله راکوی شرعاً د دې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا صورت روا نۀ دې، روا طریقه دا ده چې تۀ هوټل په کرایه باندې واخله، او د دې په تعمیر یا په فرنیچر کښې څه اضافه وکړه،او د دې چې څومره د میاشتې کرایه ده نو په هغې باندې دوه درې سوه درهمه زیات او خپل پاکستانی ورور له ئې په کرایه باندې ورکړه۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم.** ٤ رجب ۱٤۰۱ هجری

## وکیل د نابالغه هلک زمکه نهٔ شی خرڅولې

**سوال**:- زید نابالغه وو دهغه وکیل له عمرو سره د زید زمکه بدله کړه او په کاغذونو باندې ئې د زید دستخطونه هم واخستل، اوس زید بالغ شو، نو آیا تیره شوې رضا به کافی ګڼلې شی او که نه دوباره به رضا حاصلول ضروری وی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې د زید وکیل د زید د پلار یا د نیکهٔ وصی وو نو دا بدلون په کښې بیا صحیح دې، خو په دې شرط چې زید ته په بدلون کښې ورکړې شوې زمکه د زید د خپلې زمکې د قیمت نه دوچنده وی، که د دې نه د کم قیمت وی نو بیا صحیح نه ده۔

او که چیرې دا وکیل د زید پلار یا نیکهٔ نهٔ وی متعیق کړې نو بیا دې په هیڅ صورت کښې هم د زید زمکه نهٔ شی خرڅولې، دا مبادله به کالعدم ګڼلې.

فی شرح التنویر: و جاز بیعه(الوصی)عقار صغیر من اجنبی لا من نفسه بضعف قیمته (الی قوله)و هذا لو البائع وصیا لا من قبل ام او اخ فانها لا یملکان بیع العقار مطلقا ولا شراء (رد المحتار ص۲۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۸ رمضان ۱۳۹٤ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي الْبِلَادِ ﴿١٩٦﴾ مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿١٩٧﴾ لَكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلًا مِّنْ عِندِ اللَّهِ وَمَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ لِّلْأَبْرَارِ ﴿١٩٨﴾﴾ (۳_ ۱۹۶ نه ۱۹۸)

# کتاب القضاء والدعوی والشهادات

## قضاء په غائب باندې د ضرورت په توګه روا ده

دا بحث په کتاب النکاح کښې د (حکم غائب غير مفقود) تر عنوان لاندې تير شوې دی.

## د دروغو په شهادت سره د قضاء حکم

دا بحث په کتاب التفسير والحديث کښې تير شوې دی.

## شاهد ته قسم ورکول

**سوال**: د زيد يو سړی سره جګړه ده، په خپل حق کښې د فيصلې کولو دپاره هغه يو نقلی او جعلی خط وليکلو او څه خلق ئې په خپلو خبرو کښې راوستل او په هغه خط باندې يې ترې نه دستختونه واخستل، دا انديښنه شته چې هر کله دې جعلی ګواهانو ته د معاملې د حقيقت علم وشی نو بيا به هم د زيد په مرستې کولو باندې مجبوره شی،او د حاکم په وړاندې به بنهٔ صفا دروغ اووائی چې مونږ ددې معاملې د کيدلو عينی ګواه يو، اوس سوال دا دې چې آيا په دې صورت کښې به حاکم د پاره دا روا وی چې هغه دې ګواهانو له قسم ورکړی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چې حاکم مناسب وګڼی نو شاهد له قسم ورکولې شی:

قال فی شرح التنوير: فلو امر قضاته بتحليف الشهر ووجب علی العلماء ان ينصحوه ويقولوا له لا تکلف قضاتك الی امر يلزم منه سخطك او سخط الخالق تعالی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی: تحت قوله (سخطك) ونقل عن الصيرفية جواز التحليف وهو مفيد بما اذا راٰه القاضی جائزا ای بأن کان ذارای اما اذا لم يکن له رای فلا ط عن ابی السعود والمراد بالرای الاجتهاد (ردالمحتار ص۴۸۳ ج۴)

وایضا فی شرح التنویر: وفی البحر عن التهذیب یحلف الشهود فی زماننا لتعذر التزکیة اذ المجهول لا یعرف المجهول واقره المصنف ثم نقل عنه عن الصیرفیة تفویضه للقاضی قلت ولا تنس ما مر عن الاشباه

وفی الحاشیة: ای قبیل التحکیم من ان الامام لو امر قضاته بتحلیف الشهود وجب علی العلماء ان ینصحوه ویقولوا له الخ (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۴) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ۲۹ شوال ۱۳۸۸ هجری

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**:- نن صبا په عدالتونو کښې د گواهئ د پاره قسم ورکولې کیږی، ددې نه بغیر د رښتونې گواهی طمع نه شی کولې، آیا د ضرورت په توگه داسې کول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو ! روا دی۔ والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ۷ جمادی الاولی ۱۳۸۹ هجری

## د مدعی د گواهانو باوجود د مدعلی علیه په قسم باندې فیصله کول

**سوال**: زید مکې مکرمې ته د تلو د پاره عمرو له دیارلس سوه روپئ ورکړې وې، ورسره دا چې د عمرو یو شریک هم وو چې نوم یې «کالامیا مستری» وو، هر کله چې عمرو سعودی ته د تلو د پاره روانیدلو نو هغه وخت د زید چې کومې پیسې وې په عمرو باندې نو د هغې ذمه واری کالامیا واخسته، او ښه په رضا او رغبت سره کالامیا مستری د یو څو معتبرو کسانو په وړاندې د دې اقرار او عهد هم وکړو چې هر څه وی ستا پیسې به زه ادا کومه، اوس هر کله چې زید د کالامیا مستری نه د پیسو مطالبه وکړه نو کالامیا بالکل انکار وکړو، بیا زید په محله کښې د کالامیا په حقله جرگه راوسته، لیکن د کلی او د محلې جرگې والو د زید گواهان مسترد کړل او فیصله ئې د کالامیا په حق کښې وکړه او ورته ئې اووئیل چې تهٔ قسم وخوره چې د زید پیسې ما نهٔ دی اخستې او نهٔ ما د دې پیسو د ورکولو ذمه واری اخستې ده، اوس دا تپوس کول دی چې آیا د مدعی د گواهانو په موجودگئ کښې په منکر باندې قسم راتلی شی او که نه؟ او د محلې د خلقو فیصله شرعا صحیح ده او که نه؟ او زید د خپلو روپو د طلب کولو حق لری او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هر کله چې مدعی سره گواهان موجود وی نو د مدعی علیه په قسم باندې فیصله کول غلط دی او د شریعت خلاف دی، د محلې د خلقو د د گواهانو گواهی نه قبلول او په قسم باندې فیصله کول سخته گناه ده۔ قال رسول الله ﷺ البینة علی المدعی والیمین علی من انکر۔

والله سبحانه وتعالیٰ اعلم۔ ۲۶ ذی الحجه ۱۳۹۸ هجری

## قضاء په علم د قاضی سره معتبره نه ده

**سوال**:- که چرې قاضی ته د مدعی د رېښتونی کېدلو علم په ذاتی توګه باندې وی نو آیا بې د ګواهانو نه قاضی صرف د خپل علم د وجې نه د مدعی په حق کښې فیصله کولې شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه ! دا روا نه دی.

قال العلائی رحمه الله: (والکتابة بعلمه کالقضاء بعلمه) فی الاصح بحر فمن جوزه جوزها ومن لا فلا الا ان المعتمد عدم حکمه بعلمه فی زماننا اشباه

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: تحت قوله (فمن جوزه جوزها) وشرط جوازه عند الامام ان یعلم فی حال قضائه فی المصر الذی هو قاضیه بحق غیر حد خالص لله تعالی من قرض او بیع او غصب او تطلیق او قتل عمد او حد قذف فلو علم قبل القضاء فی حقوق العباد (الی قوله) فرفعت لا یقضی عنده وقالا یقضی الخ (قوله الا ان المعتمد) ای عند المتاخرین لفساد قضاة الزمان وعبارة الاشباه الفتوی الیوم علی عدم العمل بعلم القاضی فی زماننا کما فی جامع الفصولین (وبعد سطرین) هذا موافق لما مر عن الفتح من الفرق بین الحد الخالص لله تعالی وبین غیره ففی الاول لا یقضی اتفاقا بخلاف غیره فیجوز القضاء فیه بعلمه وهذا علی قول المتقدمین وهو خلاف المفتی به کما علمت. (رد المحتار ص۳۶۳ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۷ ذی الحجه ۱۴۰۳ هجری

## د مدعی په قسم باندې فیصله کول غلط دی

**سوال**:- د یو مولوی صاحب له کورنه غلا وشوه، په یو سړی باندې دغه مولوی صاحب د غلا دعوی وکړه، لیکن هغه سړی اووئیل چې قسم کولو ته تیار یم، مولوی صاحب اووئیل چې زهٔ هم قسم کولو ته تیار یم، لهذا مولوی صاحب قسم وخوړلو او د هغه سړی نه ئې د غلا پیسې واخستې، حال دا چې مدعی علیه په خپله قسم کولو ته تیار وو، د مولوی صاحب په قسم باندې راضی نه وو، لیکن د خلقو په مجبوره کولو باندې ئې مولوی صاحب هغه پیسې ورکړې.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا پیسې د مولوی صاحب د پاره حلالې نه دې. البینة علی المدعی والیمین علی من انکر والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۷ شوال ۱۳۷۱ هجری

## وړه بکرئ په شهادت سره غته ثابتول او بیا د هغې عقیقه کول روا نهٔ دی

دا مسئله په کتاب الاضحیه والعقیقه کښې شته، هلته دې وکتلې شي.

## د مورث نه په بیعه باندې د اخستلو دعوی کول

**سوال**:- مسمی زید دو قطعه زمین که باهم متصل بودند یک بند خشکا به بطور حد فاصل درمیان اینها بود همین خشکابه که این وقت آباد، و آن دیگر بکاریز آباد شده بود آن وقت غیر آباد بود مسمی زید که این وقت زمین بند خشکابه آباد بود بامسمی عمرو فروخت نمود، بعد از وفات شدن زید مسمی عمرو بند زمین کاریزی مذکورات بالا درتصرف خود کرد که کلهم زمین یک ست و بمن فروخت شده اند بیک عقد، پسر بائع درین مزاحمت کرد، پس درین دعوائ عمرو شرعاً بیک عقد قرار و ثابت نه گردید،آیا اصل این بیع درست ست یا نه؟ بینوا بالحق والصواب ـ

**الجواب و منه الصدق والصواب** : بیع این قطعه زمین که پسر بائع اقرار بیع اومی کند صحیح و درست ست، اما قطعه متنازعه فیها پس تاو قتیکه عمرو مشتری باشهادت شرعیه خریدنش ثابت نه کند دعوای او مسموع نیست، اگرمشتری از پیش کردن شهادت عاجز گردد بر پسر بائع که مدعی علیه ست بشرط طلب مشتری حلف لازم خواهد شد که او رامتعلق بیع اراضی معهوده هیچ علم نیست، اگر مدعی علیه از حلف انکار کند دعوای مشتری ثابت خواهدشد .

قال فی شرح التنویر :و اذا ادعی بکر سبق الشراء له علی شراء زید ولا بینة یحلفه خصمه وهو بکر علی العلم ای انه لا یعلم انه اشتراه قبله لما مر کما اذا ادعی دینا او عینا علی وارث اذا علم القاضی کونه میراثا او اقر به المدعی اوبرهن الخصم علیه فیحلف علی العلم.(ردالمحتار کتاب الدعوی ج۴)والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۷ صفر ۱۳۷۲ هجری

## دنابالغه هلک په شهادت سره بالغ ثابتول صحیح نهٔ دی

دا مسئله په مسائل شتی کښې شته ، هلته دې وکتلې شی .

## د شهادت د تحمل په وخت کښې بلوغ شرط نهٔ دې

**سوال** : که یو سړې د لس یادولس کالو په عمر کښې یوه واقعه اووینی او پس د بلوغ نه په هغې باندې گواهی ورکړی نو آیا دا گواهی به قابل د قبول وی او که نه؟ بینوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د شهادت د تحمل په وخت کښې بلوغ شرط نه دې، تمیز راوستونکې عقل کافی دې.لهذا په ذکر شوې صورت کښې به د دهٔ شهادت د قبلولو قابل وی .

قال فی العلائیة: وشرائط التحمل ثلاثة العقل الکامل ووقت التحمل

وفی الشامیة: المراد ما یشمل التمییز بدلیل ما سیاتی فی الباب الاٰتی (ردالمحتار ج۴)

وایضا فی العلائیة لا تقبل (الی قوله) وصبی ومغفل ومجنون الا فی حال صحته الا ان یتحملا فی الرق والتمییز وادیا بعد الحریة ولو لمعتقه کما مر وبعد البلوغ (ردالمحتار ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۲ ذی قعده ۱۳۷۲ هجری

## د بائع د مرګ نه پس مشتری د بائع په وارثانو باندې د مبیعې د استحقاق د وجې نه د ثمن د رجوع دعوی وکړه

**سوال:** د بائع د وفات نه پس په وارثانو د بائع باندې مشتری ددې خبرې دعوی کوی چې د دوی دمورث نه چې ما کومه مبیعه اخستې وه د هغې مالک او مستحق یو بل سړې دې، د دې وجې نه مشتری د بائع په وارثانو باندې رجوع بالثمن کول غواړی، وارثان د بائع د مبیعې د استحقاق منکر دی، آیا په دې صورت کښې په هغوی باندې ثمن لازم دې او که نه؟

**الجواب و منه الصدق والصواب:** مشتری چې مدعی دې په استحقاق باندې په دهٔ باندې بینه لازمه ده، که چیرې مدعی بینه نه شی پیش کولې او د بائع د وارثانو نه د قسم مطالبه کوی نو وارثان دې په عدم د استحقاق باندې قسم وخوری، غرض دا چې تر څو پورې مدعی په دلیل سره دا ثابت نه کړی چې هغه مبیع کوم چې ئې د مورث نه اخستې وه د هماغې مستحق راظاهر شوې دې، نو تر هغه وخته پورې د وارثانو د بائع نه د دې مبیع ثمن نه شی اخستې.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: والتحلیف علی فعل غیره یکون علی العلم ای انه لا یعلم انه کذلك لعدم علمه بما فعل غیره ظاهرا (الی قوله) کذا اذا ادعی دینا او عینا علی وارث (الی قوله) فیحلف علی العلم. (شرح التنویر کتاب الدعوی) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۴ جمادی الاولی ۱۳۷۳ هجری

## د قرض په ادا کولو کښې د دائن او د مدیون اختلاف

**سوال:** چې د قرض په ادا کولو کښې د دائن او د مدیون اختلاف راشی نو په دوی کښې به مدعی څوک وی او مدعی علیه به په کښې څوک وی؟

**الجواب و منه الصدق والصواب:** په دوی کښې به مدیون مدعی اودائن به په کښې مدعی علیه وی.

قال فی شرح التنویر: ادعی المدیون الایصال فانکر المدعی ذلك ولا بینة له علی مدعاه فطلب یمینه فقال

المدعی اجعل حقی فی الخصم ثم استحلفنی له ذلك.(ردالمحتار ج۴)والله سبحانه وتعالی اعلم.

۴ جمادی الاولی ۱۳۷۳ هجری

## د مورث په مال کښې د هبې دعوی کول

**سوال:**- یو سړې دعوی کوی چې مورث ما ته فلانې څیز راکړې وو او ما له ئې پرې قبضه هم راکړې وه، او وارثان وائی چې دا څیز په وراثت کښې مونږ ته ملاو شوې دې، په دې صورت کښې به مدعی څوک وی ؟

**الجواب و منه الصدق والصواب** : د هبې دعوی کوونکې مدعی دې او وارثان مدعی علیه دی، خو په دې شرط چې دا څیز د وارثانو په قبضه کښې وی.

قال فی التنویر: کذا اذا ادعی دینا او عینا علی وارث اذا علم القاضی کونه میراثا او اقر به المدعی اوبرهن الخصم علیه فیحلف علی العلم. وفی الشامیة:(قوله فیحلف) ای الوارث(ردالمحتار ج۴)

وایضا فی شتی شرح التنویر: وهبت مهرها لزوجها فماتت وطالبت ورثتها بمهرها وقالوا کان الهبة فی مرض موتها وقال بل فی الصحة فالقول للورثة.هذا ما اعتمده فی الخانیة بتعا لروایة الجامع الصغیر بعد نقله لما فی فتاوی النسفی ان القول للزوج فقال والاعتماد علی تلك الروایة لانهم تصادقوا علی وجوب المهر واختلفوا فی السقوط فالقول لمنکره الی اخره قلت و اقره فی تنویر البصائر واعتمده شیخنا الخ(قوله فالقول للورثة)هذا عند عدم البرهان فان اقاموا البرهان فالبینة بینة من یدعی الهبة فی الصحة الخ(قوله هذا ما اعتمده فی الخانیة)و تصحیح قاضیخان من اجل التصاحیح وهذا من المسائل التی رجحوا القیاس فیها علی الاستحسان سائحانی(قوله الی اخره)هو قوله ولان الهبة حادثة والاصل فی الحوادث ان تضاف الی اقرب الاوقات اه (ردالمحتار ج۵)والله سبحانه وتعالی اعلم. ۴ جمادی الاولی ۱۳۷۳ هجری

## په طلاق کښې یو شهادت کافی نهٔ دې

**سوال:**- د یو سړی په شهادت سره به طلاق ثابت شی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب** : د طلاق د ثابتولو د پاره حجتِ تامه ضروری دې، د یو سړې شهادت کافی نه دې.

قال فی التنویر:ولغیرها من الحقوق سواء کان مالا او غیره کنکاح و طلاق وو کالة و وصیة و استهلال صبی للارث رجلان اورجل وامراتان(ردالمحتار ص۲۱۳ ج۴)والله سبحانه وتعالی اعلم. غره ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## د طمعې لرونکی شهادت قبول نهٔ دې

**سوال:**- د کوم سړې چې په شهادت کښې څه فائده وی، نو د هغه شهادت معتبر دې او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب**: د داسې سړې شهادت معتبر نهٔ دې۔

قال فی شرح التنویر: ومن الشرائط عدم قرابة ولاد اوزوجية او عداوة دنيوية او دفع مغرم او جرمغنم كما سيجئ. (ردالمحتار ص۳۱۰ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم غره ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## د دښمن شهادت به قبول نهٔ وی

**سوال:**- آیا په دنیاوی معاملاتو کښې د دښمنئ ساتونکی سړی شهادت روا دې؟ بینوا بالدلیل.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په دینی معاملاتو کښې د دښمنی ساتونکی سړی گواهی معتبره ده، په دنیوی معاملاتو کښې د دښمنی کوونکی سړی گواهی معتبره نهٔ ده۔

فی شرائط الشهادة من شرح التنویر: عدم قرابة ولاد اوزوجية اوعداوة دنيوية.

وفی الشامية ان شهادة العدو على عدوه لا تقبل وان كان عدلا وصرح يعقوب باشا فی حاشيته بعدم نفاذ قضاء القاضی بشهادة العدو على عدوه (ردالمحتار ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم. غره ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## د ګیرې پرې کوونکی سړی شهادت قابل د قبلولو نهٔ دې

**سوال:**- د گیرې پرې کوونکی شهادت به شرعا قابل د قبلولو وی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: ګیره پرې کول فسق دې، بلکه د نورو کبیره ګناهونو نه هم لویه ګناه ده، ځکه چې په دې کښې په علانیه او په ښکاره د شریعت خلاف کول دی، او شریعت سپک ګڼل دی، او د فاسق ګواهی قبوله نهٔ ده۔

قال فی شرح التنویر: ويحرم على الرجل قطع لحيته (ردالمحتار كتاب الحظر والاباحة ج۵)

وزيادة التفصيل فی كتاب الصوم من شرح التنوير وردالمحتار.

البته که چیرې د عادل ګواه د نشت والی د وجې نه د چا د حق تلفئ اندیښنه وی او فاسق سړې د دنیاوی عزت خاوند وی، چې د صدق ئې غالب ګمان وی، نو بیا د هغه د شهادت قبلول روا دی.

والتفصيل فی الشامية والله سبحانه وتعالى اعلم. غره ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## د فاسق شهادت

**سوال:**- د فاسق شهادت به قبولې شی او که نه؟ ځکه چې نن صبا د عادل شاهد موندل ډیره

گرانه خبره ده. بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: د شهادت د پاره د دین داره گواهانو د نهٔ ترلاسه کیدلو له کبله د متاخرینو فقهاء کرامو رحمهم الله فتوی ده چې د فاسق شهادت هم د قبلولو قابل دې، بلکه په بعضې وختونو کښې د فاسق په شهادت باندې فیصله کول ضروری شی، لکه چې د چا د حق د ضائع کیدلو ویره وی.

قال الامام علاء الدین ابو الحسن الترابلسی رحمه الله علیه: (مسالة) قال القرافی فی باب السیاسة نص بعض العلماء علی انا اذا لم نجد فی جهة الا غیر عدول اقمنا اصلحهم و اقلهم فجورا للشهادة علیهم ویلزم ذلك فی القضاة وغیرهم لئلا تضیع المصالح قال وما اظن احدا یخالف فی هذا فان التکلیف شرط فی الامکان وهذا کله للضرورة لئلا تهدر الاموال تضیع الحقوق قال بعض واذا کان الناس فساقا الا القلیل النادر قبلت شهادة بعضهم علی بعض و یحکم بشهادة الامثل فالامثل من الفساق هذا هو الصواب الذی علیه العمل وان انکره کثیر من الفقهاء بألسنتهم و کذلك العمل علی صحته کون الفاسق ولیا فی النکاح و وصیا فی المال وهذا یؤید ما نقله القرافی واذا غلب علی الظن صدق الفاسق قبلت شهادة وحکم بها والله تعالی لم یامر برد خبر الفاسق فلا یجوز رده مطلقا بل یثبت فیه حتی یتبین صدقه من کذبه فیعمل علی ما تبین و فسقه علیه (معین الحکام ص ۱۳۰)

والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## د طلاق نه پس ښځې په خاوند باندې د سامان دعوی وکړه

**سوال**: یوې ښځې د طلاق نه پس په خاوند باندې د خپل سامان دعوی وکړه، د خاوند پلار ئې وائی چې د ښځې ټول سامان د پنجاب د تقسیم په فساداتو کښې زمونږ ټول سامان سره لوټ شوې دې، لهذا مونږ سره اوس د ښځې د سامان نه هیڅ څیز هم پاتې نهٔ دې، په دې صورت کښې ښځه په شرعی توگه د خپل سامان د قیمت د اخستلو حق داره ده که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: د ښځې په ذمه لازم دی چې په شرعی شهادت سره دا ثابت کړی چې د دې مال تر اوسه پورې د سړی په کور کښې پروت دې، یا د پاکستان جوړیدلو نه پس موجود وو، که چیرې ښځه دا خبره په شرعی شهادت سره ثابته کړی نو هغې له به دخاوند نه د هغې د مال قیمت اخستلې شی، او که ښځه شهادت پیش نه کړې شی نو چې د چا په قبضه کښې سامان وو هلک یا د هلک پلار نو هغهٔ دې بیا د مال په هلاکیدلو باندې قسم وخوری، د مدعی علیه د قسم نه پس به بیا د هغوی نه د ښځې د پاره هیڅ نه شی اخستلې. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۶ ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## په شهادت کښې قاضی ته مخامخ کیدل، د مدعی او د مدعی علیه اړخ ته اشاره کول ضروری دی

**سوال** : د دینِ متین مفتیان حضرات ددې مسئلې په حقله څه فرمائی چې د مدعی علیه د ظلم د ویرې له وجې نه شاهد د قاضی او د مدعی علیه په وړاندې د شهادت د ورکولو نه انکار کوی.او وائی چې زهٔ به بل یو ځائ کښې شهادت ورکړم، زمونږ نومونه دې د قاضی او د مدعی علیه په وړاندې ظاهر نهٔ کړې شی،په دې صورت کښې به د دوی شهادت قبلولې شی او که نه؟بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : په شهادت کښې قاضی ته مخامخ کیدل او مدعی او مدعی علیه (که چیرې مدعی علیه حاضر وی) اړخ ته اشاره کول شرط دی.لهذا په پوښتلې شوې مسئله کښې به شهادت معتبر نه وی۔

قال فی شرح التنویر: وهی ان علی حاضر یحتاج الشاهد الی الاشارة الی ثلاثة مواضع اعنی الخصمین والمشهود به لو عینا لادینا وان علی غائب کما فی نقل الشهادة او میت فلا بد لقبولها من نسبته الی جده الخ (ردالمحتار ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ ذی قعده ۱۳۷۳ هجری

## دوو اوښو پسې یو بچې دې د هرې یوې اوښې مالک دا دعوی کوی چې دا بچې زما د اوښې دې

**سوال** : د دوو سړې دوه اوښې په ځنګل کښې څریدلې،د دواړو اوښو په یو وخت کښې بچی پیدا شول، یو بچې په کښې شرمخ وخوړلو،او دویم بچې له دواړه اوښې پئ ورکوی اوس د هرې یوې اوښې مالک ددې بچی مدعی دې، یو سره په کښې هم ګواه نشته دې،په دې حالت کښې به بچې کوم یو ته ورکړې کیږی ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : هرکله چې یو سره هم بینه نشته دې نو دا دواړه اوښې دغه بچی له پئ ورکوی نو دا بچې د دواړو مالکانو په قبضه کښې شو،لهذا په دواړو کښې مشترک شو.

قال فی التنویر: ولو برهنا علی نتاج دابة وارخا قضی لمن وافق منها تاریخه فلو لم یؤرخا قضی بها للذی الید ولهما ان فی ایدیهما او فی ید ثالث وان لم یوافقهما فلهما ان کانت فی ایدیهما او کانا خارجین فان فی ید احدهما قضی بها له. وقال فی الشرح: هو الاصح.

وفی الشامیة: (قوله ولو برهنا) یتصور هذا بان رای الشاهدان انه ارتضع من لبن انثی کانت فی ملکه واخران رایا ارتضع من انثی فی ملک اخر فتحل الشهادة للفریقین الخ (قوله للذی الید) هذا قید لما اذا ادعی کل منهما

النتاج فقط اذلو ادعی الخارج الفعل ذی الید کالغصب والاجارة العاریة فبینة الخارج اولی لانها اکثر اثباتالا ثباتها الفعل علی ذی الید الخ (رد المحتار ج ۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ ذی الحجه ۱۳۷۳ هجری

## په سامان کښې د زوجینو اختلاف

**سوال**:- که چیرې د زوجینو تر مینځه په داسې سامان کښې اختلاف راشي چې په هغې کښې د یو د پاره هم څه خصوصیت نه وی نو په داسې صورت کښې به دا سامان د چا وی؟ او د چا قول له به ترجیح ورکولې کیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې به زوج معتبر وی لهذا مال به د هغهٔ وی.

قال الامام العلائی رحمه الله: وان اختلف الزوجان فی متاع البیت فالقول لکل واحد منهما فیما صلح له مع یمینه الا اذا کان کل منهما یفعل اویبیع ما یصلح للاخر فالقول له لتعارض الظاهرین درر وغیرها والقول له فی الصالح لهما و ما فی یدها فی یده والقول لذی الید بخلاف ما یختص بها لان ظاهرها اظهر من ظاهره و هو ید الاستعمال

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: قال فی الشرنبلالیة قوله الا اذا کان کل منهما یفعل او یبیع ما یصلح للاخر لیس علی ظاهره فی عمومه ففی قول احدهما یفعل او یبیع الاخر ما یصلح له لان المراة اذا کانت تبیع ثیاب الرجال او ما یصلح لهما کالانیة والذهب و الفضة والامتعة والعقار فهو للرجل لان المراة وما فی یدها للزوج والقول فی الدعاوی لصاحب الید بخلاف ما یختص بها لانه عارض ید الزوج اقوی منها و هو الاختصاص بالاستعمال کما فی العنایة (رد المحتار ص ۵۸۱ ج ۴). والله سبحانه وتعالی اعلم

۷ جمادی الاولی ۱۳۸۷ هجری

## په مړی باندې د قرض د عوی

**سوال**: زما ترهٔ وفات شو، اوس ډیر خلق په هغهٔ باندې د قرض دعویدار دی، لیکن شرعی گواه په کښې دچا سره هم نشته دې، د ترهٔ اولیاء مې هم د لاعلمئ اظهار کوی، او نهٔ مرحوم د دومره قرضونو وصیت کړې دې، او نهٔ څه خط موجود دې ، په داسې حال کښې شرعا څه حکم دې؟ زما د ترهٔ اولیاء د قرض ادا کولو په فکر کښې دی لیکن شرعی ثبوت غواړی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم خلق چې د قرض دعوی کوی که هغوی شرعی شهادت نه شی وړاندې کولې نو هغوی بیا وارثانو له په عدم د علم باندې قسم ورکولې شی.

قال فی التنویر: واذا ادعی سبق الشراء یحلف خصمه علی العلم کذا اذا ادعی دینا او عینا علی وارث اذا علم

القاضی کونه میراثاً او اقر به المدعی او برهن الخصم علیه (ردالمحتار ص ۳۶۰ ج ۲). والله سبحانه وتعالی اعلم
۲۸ صفر ۱۳۹۱ هجری

## دنکاح د عقد په وخت کښې چې کوم کالي ښځې ته ورکړې شي هغهٔ به د چا ملک وي؟

**سوال**:- زید یو سرکاری مامور دې، هغهٔ وفات شو،د مرحوم د ښځې او د یو ماشوم خوئ نه علاوه ورونه او والدین یې هم ژوندي دي، پوښتنه دا کول دي چې د مرحوم ښځې ته د نکاح د عقد په وخت کښې کوم کالې د خاوند دکورنئ لخوا یا د نورو خپلو خپلوانو له اړخه ورکړې شوې دې دا د چا ملک دې؟په دې کښې به وراثت جاری کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**:د خاوند دکورنئ لخوا په ورکړې شوې کالو کښې دا تفصیل دې چې که د ورکولو په وخت کښې ئې دخُسر کورنئ څه تفصیل کړې وی نو بیا به د هغه تفصیل مطابق عمل کولې شی،اوکه نه نو بیا به د فیصلې مدار په عرف باندې وی،یعنی که په دې خاندان یا په دې ښار کښې کالی په ملک سره د ورکولو رواج وی نو دا کُنډه ښځه به ئې مالکه وی او که دا رواج نه وی نو بیا به د دې ملک نه وی.

د نورو خپلوخپلوانو له اړخه ورکړې شوې ټول کالې د دې کُنډې ښځې ملکیت دې.

والله سبحانه وتعالی اعلم ٤ صفر ۱۳۹۵ هجری

## د نسب د دعوې او د دعوی د سماع د مودې په حقله تفصیلې بحث

**سوال**:- د یو سړی دا دعوی ده چې زما د وفات شوی پلار په ترکه کښې ما ته او زما ورونو اوخویندو ته خپله حصه نهٔ راکړې کیږی،او د مدعی علیهم دا دعوی ده چې مدعی او د دهٔ ورونه اوخویندې ثابت النسب نهٔ دی،مدعی علیهم وائی چې زمونږ پلار د دوی مور بې د نکاح نه کور کښې دیره کړې وه،دواړه فریقه ګواهان وړاندې کوی،یو فریق د نکاح د ثبوت د پاره ګواهان پیش کوی او بل فریق د نکاح په عدمِ ثبوت کښې ګواهان وړاندې کوی.

دا حقیقت دې هم ستاسو په علم کښې وی،چې د مرحوم یو خوئ د دهٔ د حقیقی ښځې نه هم وو،د پلار د وفات نه پس ئې د کلی خلقو ښهٔ په اتفاق سره د پلار ټول جائیداد د دغه خوئ په نوم کړو، هغه ټول عمر په دې جائیداد کښې متصرف وو،په دې دومره عمر کښې د دې دویمې ښځې اولاد خاموشه وو،اوس د دغه خوئ د وفات نه پس (هر کله چې په پرینبودلی شوی جائیداد باندې د دیرش کالو نه زیات وخت واوړیدلو) راپاسیدل او دا دعوی ئې وکړه چې په دې جائیداد کښې زمونږه هم حق دې،اوس پوښتنه دا ده چې دلته شرعا حقیقی وارثان څوک جوړیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د شرعی اصولو په لحاظ سره بینه (ګواهان) د دعوې د ثابتولو د

پاره وی. دا نۀ چې بینه دې د نفی د پاره وی. لهذا په دې سوال کښې په عدم د نکاح باندې ورانده کړې شوې بینه به غیرِ معتبره وی. باوجود د دې چې په نسب کښې د اثبات اړخ ته ترجیح ورکولې شی. او باوجود د دې چې د یو مسلم فعل د امکان د حده پورې په صلاح باندې حمل کولې شی

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه:

**تنبیه**: لا تسمع بینته ولا بینة ورثته علی تاریخ نکاحها بما یطابق قوله لانها شهادة علی النفی معنی فلا تقبل والنسب یحتال لاثباته مهما امکن والامکان هنا بسبق التزوج بها سرا بهر یسیر وجهرا باکثر سمعة ویقع ذلك کثیرا وهذا جوابی لحادثة فلینبه له شرنبلالی. (ردالمحتار ص ٦٨١ ج ٢)

پاتې شوه دا مسئله چې د دېرشو کالو پورې د دویمې ښځې اولاد په جائداد کښې د تصرفاتو نه د خبریدلو باوجود ولې چپ ناست وو؟ په اصولی توګه په دې خاموشئ سره د دوی حق ساقطیدل پکار دی. رومبې ددې سره متعلق د فقهاؤ رحمهم الله عبارتونه وړاندې کولې شی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه: (قوله باع عقارا) وکذا لو وهب او تصدق وسلم وقید بالبیع اذ لو اجر او رهن او اعار ثم ادعی الحاضر تسمع اذ لیس من لوازم ذلك الخروج عن الملك وقد یرضی الشخص بالانتفاع بملکه ولا یرضی بالخروج عن ملکه ولانه فی البیع نحوه علی خلاف القیاس فلا یقاس علیه غیره ولم ار من نبه علیه فلیتامل رملی اقول ومثل البیع الوقف کما افتی به الشهاب الشلبی ووافقه علی ذلك ثلاثة عشر عالما من اعیان الحنفیة فی عصره کتب اسماءهم وخطوطهم بموافقته فی اخر کتاب الدعوی من فتاواه المشهورة فراجعها. ثم اعلم ان التقیید بالبیع انما یظهر بالنسبة الی القریب اما بالنسبة الی الاجنبی فلا لما فی جامع الفتاوی اول کتاب الدعوی عن الخلاصة رجل تصرف فی ارض زمانا ورجل اخر یری تصرفه فیها ثم مات المتصرف ولم یدع الرجل حال حیوته لا تسمع دعواه بعد وفاته اه وفی الحامدیة عن الولوالجیة رجل تصرف زمانا فی ارض ورجل اخر یری الارض والتصرف ولم یدع ومات علی ذلك لم تسمع بعد ذلك دعوی ولده فتترك علی ید المتصرف اه والظاهر ان الموت غیر قید بدلیل انهم لم یقیدوا به هنا وبه علم ان مجرد السکوت عند الاطلاع علی التصرف مانع وان لم یسبقه بیع واما السکوت عند البیع فلا یمنع الا دعوی القریب ثم اعلم انه نقل العلامة ابن الغرس فی الفواکه البدریة عن المبسوط اذا ترك الدعوی ثلاثا وثلاثین سنة ولم یکن مانع من الدعوی ثم ادعی لا تسمع دعواه لان ترك الدعوی مع التمکن یدل علی عدم الحق ظاهرا اه ومثله فی البحر وفی جامع الفتاوی وقال المتاخرون من اهل الفتوی لا تسمع الدعوی بعد ست وثلاثین سنة الا ان یکون

المدعى غائبا او صبيا او مجنونا ليس لهما ولى او المدعى عليه اميرا جائرا يخاف منه كذا فى الفتاوى العتابية اه والظاهر ان عدم سماعها بعد هذا المدة اعم من كونه مع الاطلاع على التصرف او بدونه لان عدم سماعها مع الاطلاع على التصرف لم يقيدوه هنا بمدة فلا منافاة بين كلامهم تأمل. ثم اعلم ان عدم سماعها ليس مبنيا على بطلان الحق حتى يرد ان هذا قول مهجور لانه ليس ذلك حكم ببطلان الحق وانما هو امتناع من القضاة عن سماعها خوفا من التزوير ولدلالة الحال كما دل عليه التعليل والا فقد قالوا ان الحق لا يسقط بالتقادم كما فى قضاء الاشباه فلا تسمع الدعوى فى هذه المسائل مع بقاء الحق للاخرة ولذا لو اقر به الخصم يلزمه كما فى مسالة عدم سماع الدعوى بعد مضى خمس عشرة سنة اذا نهى السلطان عن سماعها كما تقدم قبيل باب التحكيم فاغتنم هذا التحرير المفرد. (ردالمحتار ص٥٢٣ ج٥)

ونقل ط عن الخلاصة لا تسمع بعد ثلاثين سنة اه (ردالمحتار ص٢٨٢ ج٢)

(**تنبيهات**): الاول قد استفيد من كلام الشارح ان عدم سماع الدعوى بعد هذه المدة انما هو للنهى عنه من السلطان فيكون القاضى معزولا عن سماعها لما علمت من ان القضاء يتخصص فلذا قال الا بامر اى فاذا امر بسماعها بعد هذه المدة تسمع وسبب النهى قطع الحيل والتزوير فلا ينافى ما فى الاشباه وغيرها من ان الحق لا يسقط بتقادم الزمان اه ولذا قال فى الاشباه ايضا ويجب عليه سماعها اه اى يجب على السلطان الذى نهى قضاته عن سماع الدعوى بعد هذه المدة ان يسمعها بنفسه او يامر بسماعها كى لا يضيع حق المدعى والظاهر ان هذا حيث لم يظهر من المدعى امارة التزوير (وبعد صفحة) السادس استثناء مال اليتيم مقيد بما اذا لم يتركها بعد بلوغه هذا المدة وبما اذا لم يكن له ولى كما ياتى (ردالمحتار ص٢٨١ ج٢)

د دې عبارتونو نه دا خبرې ثابتې شوې

۱ - په تصرف باندې د خبر کېدو نه پس بې د قيد دمودې نه دعوى ساقطه شى

۲ - د بيعې په علم سره يواځې د نژدې سړى حق ساقطيږى د اجنبى حق ترې نه نهٔ ساقطيږى.

۳ - پنځلس کاله پس د عوې عدم سماع صرف په دې صورت کښې ده چې حاکم قاضى نه د پنځلس کالو نه پس د سماعى اجازت نه وى ورکړې. په داسې صورت کښې په حاکم باندې لازم دى چې په خپله دعوى واورى يا بل چا ته د دعوې د اورېدلو حکم ورکړى.

۴ - ديرش يا درې ديرش يا شپږ ديرش کالو نه پس د دعوې حق باقى پاتې نهٔ وى. برابره خبره ده که مدعى په تصرف باندې خبر وى او که نه وى خبر. مفتى به قول د شپږ ديرشو کالو دې

۵ - که چيرې مدعى نابالغه وو يا د څه عذر په وجه باندې هغه دعوى نه وه کړې نو دا شپږ ديرش کاله به د بلوغ او د عذر د زائله کېدلو نه پس شمارلې کيږى

۲ - د دې مودې نه پس هم د دعوې عدم سماع په حقیقت کښې په ویرې د تزویر باندې مبني ده. لهذا چې په کوم ځائې کښې د تزویر ویره نۀ وی په دې توګه چې قاضی ته د مدعی د صدق ظن د قرائنو له کبله غالب وی یا مدعی علیه په خپله د دې مقر وی نو د دې مودې نه پس به هم دعوی اوریدلې شی.

۷ - د دې ټاکلې شوې مودې نه پس به هم د دعوې عدم سماع صرف قضاءً وی اوکه نه نو د الله تعالی په حضور کښې د صاحبِ حق. حق په هیڅ حالت کښې هم نه ساقطیږی

په دې ټولو صورتونو کښې د دعوی سقوط یواځې د تزویر د ویرې له کبله دې.لکه چې د علامه ابن عابدین رحمه الله د عبارت (**خوفاً من التزویر**) او د علامه حصکفی رحمه الله د عبارت (**وجعل سکوته کالافصاح قطعا للتزویر والحیل**) (ردالمحتار ص۴۰۰ ج۴)نه ښۀ ښکاره ظاهر دی او په ذکر شوې مسئله کښې د تزویر ویره نشته . ځکه چې د ړومبئ ښځې اولاد په خپله دا اقرار او اعتراف کوی چې مونږ د دوی د وراثت حق نه دې ورکړې. لیکن دا ده چې د دویمې ښځې اولاد د خپل پلار نه ثابت النسب نۀ منی. پورته دا خبره واضحه کړې شوې ده چې د دوی نسب د خپل پلار نه ثابت دې. لهذا دوی ته د وراثت حق هم حاصل دې.**والله سبحانه وتعالی اعلم**. ۲۳ ربیع الآخر ۱۳۹۶ هجری

## دا قانون چې د درې کالو نه پس به دعوی نۀ شی اوریدلې د شریعت خلاف دې

**سوال** - یو سړی په عدالت کښې خپل نوم او نور کاغذونه وغیر بدل کړل او دا ئې اووئیل چې زما له فلانی مړ شوی سړی سره دا رشته ده او د هغۀ د جائیداد زۀ حق دار یم.حال دا چې په حقیقت کښې د دۀ د هغه مړ شوی سړی سره هیڅ تعلق نشته دې. عدالت ددۀ په حق کښې فیصله وکړه، اوس د مرحوم حقیقی وارثان د دې سړی خلاف قانونی حرکت کول غواړی. لیکن د عدالت یو قانون د دوی د لارې خنډ دې هغه دا چې د دې قسمه دعوی دې په درې کالو کښې دننه وکړې شی نو هله به دا د اوریدلو قابله وی اوکه نه نو نۀ به وی. حال دا چې دغه ذکر کړې شوی سړی چې کوم جعلی کاغذونه تیار کړې وو او جائیداد ئې اخستې دې د هغې د درې کالو نه زیات وخت وشو. آیا دا عدالتی قانون د شریعت مطابق دې اوکه نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** درې کالو نه پس د دعوی نۀ اوریدل په شریعت کښې ددې څه وجه نشته . د درې کالو د تیریدلو نه پس به هم دعوی اوریدلې شی.البته دحضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله فیصله دا ده چې څوک بې د څه عذر نه د شپږ دیرش کالو پورې دعوی ونۀ کړی نو ددۀ دا دعوی به د شپږ دیرش کالو نه پس بیا نۀ شی اوریدلې.هغۀ هم ددې وجې نه به نۀ شی اوریدلې چې دومره ډیر وخت پورې د مدعی خاموشه پاتې کیدل د مدعی د کاذب کیدلو دلیل دې.لهذا که ددې خبرې

یقین وشی چې واقعةً د مدعی حق شته دې.نو د شپږدیرش کالو د تیریدلو نه پس به هم د هغهٔ دعوی اوریدلې شی.

قال فی الاشباه: ان الحق لایسقط بتقادم الزمان والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱ صفر ۱۳۹۸ هجری

## د وعده معاف گواه شهادت مردود دې

**سوال** : عمرو د زید خلاف دا دعوی کوی چې دهٔ زما د قتلولو سازش کړې دې.په دې توګه چې څلور سړی ئې زما په قتلولو باندې مقرر کړې وو. لیکن هغوی زما د قتلولو په ځای زما پلار باندې گذار وکړو. په هغه څلورو کښې یو سړې وعده معاف گواه جوړ شو.او د هغه په شهادت باندې باقی درې قاتلان ونیولې شو۔

اوس سوال دا دې چې د وعده معاف گواه د گواهئ څه حیثیت دې؟ بله دا چې د دې قتل گناه به په زید چې آمر دې په ده باندې وی او که نه په قاتلینو باندې چې مامورین دی ؟ او مقتول (چې په غلطئ سره قتل کړې شو)د هغه به دیت واجب وی او که قصاص؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قتل امر کول ځان له گناه کبیره ده. برابره خبره ده که په دغه امر باندې د قتل حکم مرتب شی اوکه نه، مامورین کوم چې د قتل مرتکب شول سخت مجرمان دی او مرتکب د گناه کبیره دی.

دا قتل خطا دې لهذا په دې کښې به قصاص نه وی بلکه دیت به په کښې واجب وی

قال فی التنویر وشرحه: والثالث خطا وهو نوعان لانه اما خطا فی ظن الفاعل کان یرمی شخصا ظنه صیدا او حربیا او مرتدا فاذا هو مسلم او خطا فی نفس الفعل کان یرمی غرضا او صیدا فاصاب ادمیا او رمی غرضا فاصابه ثم رجع عنه او تجاوز عنه الی ماوراءه فاصاب رجلا او قصد رجلا فاصاب غیره الخ (ردالمختار ص۳۰۰ ج۵)

د وعده معاف گواه شهادت مردود دې،یو خو ددې وجې نه چې د جرم په اقرار کولو سره د دهٔ فسق ثابت شو او د فاسق شهادت مردود دې.البته متاخرینو فقهاء کرامو د فاسق شهادت قابل د قبلیدلو منلې دې.خو په دې شرط چې قاضی ددهٔ په صدق باندې مطمئن وی،ظاهره خبره ده چې د داسې قسمه سړې په حقله د اطمینان حصول ډیر گران دی۔

دویمه وجه دا ده چې په داسې شهادت کښې د شاهد ذاتی نفع او فائده ده.فترد شهادته کاشهادة لقرابة الولاد والله سبحانه وتعالی اعلم. ۵ محرم ۱۳۹۹ هجری

## په شهادت علی القول کښې اختلاف د زمان او د مکان ضررناک نه دې

**سوال**- زید د طلاق اقرار وکړو او په دې اقرار د زید باندې دوه گواهان هم موجود دی. لیکن د

دوی په شهادت کښې اختلاف دې. یو وائی چې زید پرون زمونږ په وړاندې اقرار کړې وو او بل وائی چې زید نن زمونږ په وړاندې اقرار کړې دې. د داسې متضاد شهادتونو نه به نصاب د شهادت معتبر وی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اختلاف د زمان او دمکان باوجود به دا نصاب د شهادت معتبر وی. ځکه چې د زمان اود مکان په اختلاف سره کلام نه مختلف کیږی۔

قال العلامة ابن نجیم رحمه الله: قال لامراته ان کلمت فلانة فانت طالق فشهد احدهما انها کلمته غدوة والاخر عشیة طلقت(وبعد صفحة)ولو شهد شاهد انه اوصی الیه یوم الخمیس واخر انه اوصی الیه یوم الجمعة جازت لانها کلام لا یختلف بزمان ومکان کذا فی وصایا الولوالجیة.(البحر الرائق ص۱۱۰ ج۷)والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵ صفر ۱۳۹۹ هجری

## د غیر په فعل باندې قسم کول روا نه دی

**سوال**:- که چیرې په څه معامله کښې په زید باندې قسم راشی. لیکن په فیصله کښې دا خبره مقرره کړې شی چې په زید باندې څو اطمینان نشته دې. لهذا د زید له اړخه دې د دهٔ پلار یا ورور قسم وخوری. نو اوس سوال دا دې چې آیا داسې د بل په فعل باندې قسم خوړل کیدې شی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د غیر په فعل باندې قسم خوړل روا نه دی البته په خپل عدم علم باندې قسم روا دې. داسې قسم خوړل روا نهٔ دی چې فلانی دا کار نهٔ دې کړې.او داسې وئیل روا دی چې ماته په دې حقله څه علم نشته دې

قال فی التنویر وشرحه: والتحلیف علی فعل غیره یکون علی العلم ای انه لا یعلم انه کذلك لعدم علمه بما فعل غیره ظاهرا (ردالمحتار ص۴۶۴ ج۴)والله سبحانه وتعالی اعلم. ۷ رمضان ۱۴۰۰ هجری

## د حکومتی دیوان په مقابله کښې ذاتی قبضه څه دلیل او حجت نهٔ دې

**سوال**:- د دوو فریقو د ډیرې مودې راهیسې په یوه زمکه باندې جګړه ده. د سوال په تفصیل باندې غور وکړې او جواب راله راکړئ:

مدعی عبدالوحید او د هغهٔ ورونه دی. مدعی علیه ودهایو او نور خلق دی.د مدعی وینا ده چې دا زمکه په اصل کښې حکومتی وه.لکه ځنګه چې د کال ۱۹۰۲ او ۱۹۰۳ په ریکارډ کښې دا خبره شته . زما غور نیکهٔ محمد خان ولد نور محمد او یو هندو چهتومل ولد پارومل دا زمکه د سرکار د نوم نه خپل نوم ته راړولې وه.بیا محمد خان د دې ټولې زمکې کهاتې دار او قابض

شو (ریکارډ ستاسو په خدمت کښې وړاندې کړې شوې دې)، د محمد خان نه پس د هغهٔ درې ځامن نور محمد ثانی، رسول بخش.او محمد اسحاق ددې زمکې وارثان شول.په دوی کښې خو رسول بخش بې د وادهٔ نه مړ شو.د هغهٔ وارثان هم دا نور دوه وروڼه شو. پس د دې نه د عبدالوحید نیکهٔ نور محمد ثانی هم وفات شو. د دهٔ وارثان ددهٔ درې ځامن محمد خان ثانی. نواب او غلام نبی شول (سرکاری ریکارډ ستاسو په خدمت کښې دې وې ګورئ) محمد خان او نواب بې د وادهٔ نه وفات شول.د دوی وارثان غلام نبی او د دوی خور شول.د غلام نبی په وفات باندې د دهٔ وارثان د دې ښځه عبدالوحید، رسول بخش، نور محمدوړوکې، پاتې شول (د دې مطابق سرکاری ریکارډ هم ستاسو په خدمت کښې پیش کړې شوې دې وې ګورئ) .

مدعی عبدالوحید د خپل پلار د وفات په وخت کښې صغیر وو.دغه شان د دهٔ د نیکه د وفات په وخت کښې د دهٔ پلار او ترهٔ هم واړهٔ وو.او بل اړخ ته مدعی علیه قوی او د اثر او رسوخ خاوندان وو. مدعی د اول نه دا مطالبه کوله راروان وو. لیکن د دوی چا نه منله.د دریم ګړې کمیټئ په سرکاری ریکارډ باندې تصدیق شته دې (هغه ریکارډ مو تاسو ته وړاندې کړو)

مدعی علیه حاجی الله ودهایو ولد حاجی جعفر والی چې د زمکې اصل مالک نور محمد ولد پیر محمد دې.دچا چې شپږ ځامن دی.محمد خان.شاه محمد .احمد خان.بهادر.پنجل.بهاءالدین. زمکه به په دې شپږو کسانو باندې تقسیمیږی.او قبضه هم تر ننه پورې د هغوې په نسل کښې راروانه ده.د نور محمد د ملکیت ثبوت یواځې همدا دې چې دا زمکه د هغهٔ په قبضه کښې ده

خلاصه د خبرې دا ده چې په زمکه قبضه د یو سړی ده او سرکاری ریکارډ د بل په حق کښې ګواهی ورکوی. د شریعت مطابق دا زمکه د چا ملکیت کښې راځی ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مدعی او د مدعی علیه د بیان او د سرکاری ریکارډ د کتلو نه پس دا خبره ثابتیږی چې دا زمکه د مدعی عبدالوحید ده.

امام سرخسی.امام قاضیخان.او علامه بزازی غوندې لویو لویو فقهاء کرامو رحمهم الله سرکاری ریکارډ ته بې د شهود نه هم معتبر دلیل او حجت وئیلې دې. کما صرح به العلامة ابن عابدين في رسالته نشر العرف في بناء بعض الاحكام على العرف ونصه:

وحاصله ان ما مر من قولهم لا يعتمد على الخط ولا يعمل به مبنى على اصل المنقول فى المذهب قبل حدوث العرف ولما حدث العرف فى الاعتماد على الخط والعمل به فى مثل هذه المواضع افتوا به.

و ذكر العلامة المحقق الشيخ هبة الله البعلى رحمة الله عليه فى شرحه على الاشباه ما نصه (تنبيه) مثل البراءات السلطانية الدفتر الخاقانى المعنون بالطرة السلطانية فانه يعمل به وللعلامة الشيخ علاء الدين الحصكفى رحمة الله عليه

شارح التنویر والملتقی رسالة فی ذلك حاصلها بعد ان نقل ما هنا من انه یعمل بکتابه الامان ونقل جزم ابن الشحنة و ابن وهبان بالعمل بدفتر الصراف والبیاع والسمسار لعلة امن التزویر کما جزم به البزازی والسرخسی وقاضی خان وان هذه العلة فی الدفاتر السلطانیة اولی کما یعرفه من شاهد احوال اهالیها حین نقلها اذلا تحرر ولا الا باذن السلطان ثم بعد اتفاق الجم الغفیر علی نقل ما فیها من غر تساهل بزیادة او نقصان تعرض علی المعین لذلك فیضع خطه علیها ثم تعرض علی المتولی لحفظها المسمی بدفتر امینی فیکتب علیها ثم تعاد اصولها الی امکنتها المحفوظة بالختم والامن من التزویر مقطوع به وبذلك کله یعلم جمیع اهل الدولة والکتبة فلو وجد فی الدفاتر ان المکان الفلانی وقف علی المدرسة الفلانیة مثلا یعمل به من غیر بینة وبذلك یفتی مشایخ الاسلام کما هو مصرح فی بهجة عبدالله آفندی وغیرها فلیحفظ انتهی ما نقلته من شرح الشیخ هبة الله البعلی. (رسائل ابن عابدین ص ۱٤٤ ج ۲)

دمدعی علیه د ناروا قبضې یو دلیل دا هم دې.چې د دې زمکې سرکاری مطالبات د اوبو وغیره د مدعی په نوم راځی.که چیرې مدعی علیه مالک دې نو دهٔ د کاغذونو د سمولو او صحیح کولو کوشش ولې ونهٔ کړو؟ذاتی قبضه د سرکاری ریکارډ په مقابله کښې هیڅ حیثیت نه لری۔

والله سبحانه وتعالی اعلم ۲٦ صفر ۱٤۰۷ هجری

## په ښځه باندې د شرعی پردې د نهٔ کوونکی گواهی مردوده ده

**سوال** : کوم سړې چې خپله ښځه او د کور نورې زنانه د غیرمحارمو ځخه نهٔ پټوی یعنی د پردې پابندی پرې نهٔ کوی.او نه ددې د پاره کوشش کوی.لیور.ساندو (باجه).د تره ځوئې د ترور ځوئې.د ماما ځوئې.او د خور خاوند وغیره وغیره نور غیر محارم رشته دار ښهٔ په آزادئ سره کور ته ځی راځی.او دا سړې دوی لره په منع کولو باندې هم قدرت لری.او بیا ئې هم نه منع کوی.کله کله دې خپلو خپلوانو سره د دې ښځو خلوت هم وشی. نو د داسې سړی شهادت شرعا قبول دې او که نه؟ بل دا چې هغه کوم نزدې خپل خپلوان دی چې د هغوی نه پرده فرض ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داسې سړې په اصطلاح د شرح کښې دیوث (دووث)دې.او دیوث دومره لوئې فاسق دې.د چا په حقله چې په حدیث کښې دومره سخت وعید راغلې دې چې دې به کله هم جنت ته نهٔ داخلیږی.او د فاسق شهادت مردود دې۔

د دې نه علاوه په داسې سړی کښې له سره حیا نشته چې د دهٔ دومره پروا نشته دې چې د دهٔ ښځې له او نورې هغه ښځې چې د دهٔ په کفالت کښې دی هغوئ له څوک ځی راځی.او په حدیث شریف کښې حیا او ایمان ته لازم او ملزوم وئیلې شوې دی.د یو په رخصتیدلو سره د بل :

رخصتيدلو سخت وعيد اوروليې شوې دې.

د بې پردګئ فسق په څو وجوهو سره د نورو ګناهونو نه لويه ګناه ده،مثلاً:

٧ - دا فسق متعدی دې.يعنی د بې پردګئ په وجه په عامو سړو او ښځو کښې د بدنظرئ. جنسی خواهش.او بدکارئ پيدا کيږی.څومره خلق چې هم په دې ګناهونو کښې مبتلا کيږی.د ټولو عذاب به په هغه چا باندې هم وی څوک چې د شريعت مطابق نه پخپله پرده کوی او نه په خپلو ښځو باندې کوی. (وليحملن اثقالهم واثقالا مع اثقالهم).

٨- دا فسق په ښکاره سره د الله تعالی بغاوت دې او د الله تعالی اعلان دې چه:

د ټول امت ټول ګناهونه معاف کيدې شی ليکن په ښکاره بغاوت کوونکې به هيڅ کله هم ونۀ بخښلې شی-

قال رسول الله ﷺ: کل امتی معافی الا المجاهرين.رواه البخاری رحمة الله عليه.

٩-کوم خلق چې نۀ په خپله پرده کوی او نۀ په خپلو ښځو باندې پرده کوی هغوی د الله تعالی دا حکم بد ګڼی او دا کفر دې.

: داسې فاسق دووث.او د الله ﷻ او د الله د رسول ﷺ د ښکاره باغی شهادت مردود دې.قطعا قابل د قبول نۀ دې.

ليکن دا خبره ده چې په وخت د ضرورت کښې پس د درې شرطونو نه د فاسق ګواهی قابل د قبليدلو ده:

١- چرته چې څوک عادل شاهد په لاس نه راځی.

٢ - د مدعی د حق تلف کولو انديښنه وی.

٣ - فاسق داسې يو حيثيت لری چې د هغۀ د صدق ګمان غالب وی.

عن عمار بن ياسر رضی الله عنه رفعه ثلاثا لا يدخلون الجنة ابدا الديوث والرجلة من النساء ومدمن الخمر قالوا فما الديوث قال الذی لا يبالی من دخل علی اهله.رواه الطبرانی فی الکبير.

عن ابن عمر رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال ثلاثة قد حرم الله عليهم الجنة مدمن الخمر والعاق والديوث الذی يقر فی اهله الخبث.رواه احمد والنسائی.(مشکوة ص٣١٨ ج٢)

عن ابن عمر رضی الله عنه ان النبی ﷺ قال ان الحياء والايمان قرناء جميعا فاذا رفع احدهما رفع الاخر وفی رواية ابن عباس رضی الله عنه فاذا سلب احدهما تبعه الاخر.رواه البيهقی فی شعب الايمان (مشکوة ص٤٣٢ ج٢).

قال العلامة الحصکفی رحمه الله فی باب قبول الشهادة و عدمه: تقبل من اهل الاهواء ای اصحاب بدع (الی ان قال) ومن مرتکب صغيرة بلا اصرار ان اجتنب الکبائر کلها وغلب صوابه علی صغائره درر وغيرها قال: وهو

معنی العدالة وفی الخلاصة: کل فعل یرفض المروءة والکرم کبیرة واقره ابن کمال، قال ومتی ارتکب کبیرة سقطت عدالته.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: معزیا الی الفتاوی الصغری: العدل من یجتنب الکبائر کلها حتی لو ارتکب کبیرة تسقط عدالته وفی الصغائر العبرة للغلبة او الاصرار علی الصغیرة فتصیر کبیرة ولذا قال وغلب صوابه اه قال فی الهامش: لا تقبل شهادة من یجلس مجلس الفجور والمجانة والشرب وان لم یشرب، هکذا فی المحیط فتاوی هندیة، وفیها والفاسق اذا تاب لا تقبل شهادته ما لم یمض علیه زمان یظهر علیه اثر التوبة، والصحیح ان ذلک مفوض الی راء القاضی اه

(قوله کبیرة) الاصح انها کل ما کان شنیعا بین المسلمین وفیه هتک حرمة الدین کما بسطه القهستانی وغیره کذا فی شرح شرح الملتقی.

وقال فی الفتح: و ما فی الفتاوی الصغری العدل من یجتنب الکبائر کلها، حتی لو ارتکب کبیرة تسقط عدالته وفی الصغائر الغبرة للغلبة لتصیر کبیرة حسن (ردالمحتار ص۴۷۳ ج۵).

قال العلامة علاء الدین ابو الحسن رحمه الله تعالی: (مسالة)، قال القرافی فی باب السیاسة نص بعض العلماء علی انا اذا لم نجد فی جهة الا غیر العدول اقمنا اصلحهم و اقلهم فجورا للشهادة علیهم ویلزم ذلک فی القضاة وغیرهم لئلا تضیع المصالح قال و ما اظن احدا یخالف فی هذا فان التکلیف شرط فی الامکان وذها کله للضرورة لئلا تهدر الاموال وتضیع الحقوق قال بعضهم و اذا کان الناس فساقا الا القلیل النادر قبلت شهادة بعضهم علی بعض ویحکم بشهادة الامثل من الفساق هذا هو الصواب الذی علیه العمل وان انکر کثیر من الفقهاء بالسنتهم و کذلک العمل علی صحة کون الفاسق ولیا فی النکاح ووصیا فی المال هذا یؤید ما نقله القرافی واذا غلب علی الظن صدق الفاسق قبلت شهادته و حکم بها والله تعالی لم یامر برد خبر الفاسق فلا یجوز رده مطلقا بل یثبت فیه حتی یتبین صدقه من کذبه فیعمل علی ما تبینو فسقه علیه (معین الحکام الباب الثانی والعشرون ص۱۳۵)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی (والفاسق اهلها فیکون اهله لکنه لا یقلد) وجوبا ویاثم مقلده کقابل شهادته به یفتی وقیده فی القاعدیة بما اذا غلب علی ظنه صدقه فلیحفظ درر واستثنی الثانی الفاسق ذا الجاه والمروءة فانه یجب قبول شهادته بزازیة قال فی النهر وعلیه فلا یاثم ایضا بتولیة القضاء حیث کان کذلک الا

ان يفرق بينهما انتهى.

قلت: سيجيء تضعيفه فراجعه.

وقال العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه: (قوله لكنه لايقلد وجوبا الخ) قال في البحر وفي غير موضع ذكر الاولوية يعني الاولى ان لاتقبل شهادته وان قبل جاز وفي الفتح ومقتضى الدليل ان لا يحل ان يقضى بها فان قضى جاز و نفذ اه. ومقتضاه الاثم وظاهر قوله تعالى. ان جاء كم فاسق بنبإ فتبينوا. ان لا يحل قبولها قبل تعرف حاله وقولهم بوجوب السؤال عن الشاهد سرا وعلانية طعن الخصم اولا في سائر الحقوق على قولهما المفتى به يقتضي الاثم بتركه لانه للتعرف عن حاله حتى لا يقبل الفاسق وصرح ابن الكمال بأن من قلد فاسقا يأثم واذا قبل القاضي القاضي شهادة يأثم اه (قوله به يفتى) راجع لما في المتن فقد علمت التصريح بتصحيحه و بانه ظاهر المذهب واما كون عدم تقليده واجبا ففيه كلام كما علمت فافهم (قوله وقيده) اى قيد قبول شهادة الفاسق المفهوم من قابل اه ح وعبارة الدرر حتى لو قبلها القاضي وحكم بها كان اثما لكنه ينفذ وفي الفتاوى القاعدية هذا اذا غلب على ظنه صدقه وهو مما يحفظ اه

قلت: والظاهر انه لا يأثم ايضا لحصول التبين المامور به في النص تامل. قال ط فان لم يغلب على ظن القاضي صدقه بأن غلب كذبه عنده او تساويا فلا يقبلها اى لا يصح قبولها اصلا هذا مايعطيه المقام اه (ردالمحتار ص٣٩٩ ج٣)

قال الامام الحصكفي رحمة الله عليه: والعدالة لوجوبه لا لصحته خلافا للشافعي رحمة الله عليه: فلو قضى بشهادة فاسق نفذ و اثم فتح الا ان يمنع منه اى من القضاء بشهادة الفاسق الامام فلا ينفذ (الى قوله) وما في القنية والمجتبى من قبول ذي المروة الصادق فقول الثاني بحر وضعفه الكمال بأنه تعليل في مقابلة النص فلا يقبل اقره المصنف.

قال العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه: (قوله بشهادة فاسق نفذ) قال في جامع الفتاوى واما شهادة الفاسق فان تحرى القاضي الصدق في شهادة تقبل و الا فلا اه فقال وفي الفتاوى القاعدية هذا اذا غلب على ظنه صدقه وهو مما يحفظ درر اول كتاب القضاء وظاهر قوله وهو مما يحفظ اعتماده اه (قوله النص) وهو قوله تعالى واشهدوا ذوى عدل منكم واجبنا عنه اول القضاء (ردالمحتار ص٤٠٣ ج٣).

هغه نزدې خپلوان د چا نه چې پرده فرض ده.

| د ترۀ خوئ | د ترور خوئ | د ماما خوئ | د خاله خوئ |
|---|---|---|---|
| ليور | مشر ليور | د اندرور خاوند | د خور خاوند |

| د ترور خاوند | د خاله خاوند | د خاوند ورارهٔ | د خاوند خوړنې |
| --- | --- | --- | --- |
| د خاوند ترهٔ | د خاوند ماما | د خاوند د ترور خاوند | د خاوند د خاله خاوند |

په نسبت د اغیارو د غیرمحرم رشته دارانو نه ډیره سخته پرده پکار ده، ځکه چې د ډیر زیات تګ راتګ او د بې حجابه ملاویدلو د وجې نه د دوی نه ډیر ویره او خطره وی.

د دې وجې نه رسول الله ﷺ فرمائیلې دی: **الحمو موت**.

د پردې د فرضیت او د اهمیت په حقله مکمل تفصیل په رساله (**هدایة المرتاب في فرضیة الحجاب**) کښې او په وعظ (شرعی پرده) کښې موجود دې هلته دې وکتلې شی. **والله سبحانه وتعالی اعلم**.

۱۵ شعبان ۱۴۱۵ هجری

## ځان سره د تصویر ساتونکی سړی شهادت مردود دې

**سوال**:- کوم سړې چې بې د ضرورته تصویر (یعنی عکس) وباسی په خپله هم او نورو له هم. یا په خپل کور یا دکان وغیره کښې عکس ساتی نود دهٔ شهادت شرعا معتبردې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بې د ضرورته خپله تصویر ایستل یا بل له تصویر ایستل. او ځان سره تصویر ساتل حرام دی او ګناه کبیره ده، په دې باندې سخت وعیدونه راغلې دی.

کوم سړې چې د پاسپورټ یا د شناختی کارډ وغیره د ضرورت نه بغیر تصویران اوباسی یا بل له یې اوباسی او یا ئې ځان سره ساتی هغه فاسق دې او د فاسق شهادت مردود دې. تفصیل ئې د وړومبې سوال په جواب کښې تیر شو.

## په تصویر باندې وعیدونه

عن ابی طلحة رضي الله عنه قال قال النبی ﷺ: لا تدخل الملائکة بیتا فیه کلب ولا تصاویر. متفق علیه.

عن ابن عباس رضي الله عنه عن میمونة رضی الله عنها ان رسول الله ﷺ اصبح یوما واجما وقال ان جبرئیل کان وعدنی ان یلقانی اللیلة فلم یلقنی ام والله ما اخلفنی ثم وقع فی نفسه جرو کلب تحت فسطاط له فامر به فاخرج ثم اخذ بیده ماء فنضح مکانه فلما امسی لقیه جبرئیل فقال لقد کنت وعدتنی ان تلقانی البارحة قال اجل ولکنا لا ندخل بیتا فیه کلب ولا صورة فاصبح رسول الله یومئذ فامر بقتل الکلاب حتی انه یامر بقتل کلب الحائط الصغیر ویترک کلب الحائط الکبیر. رواه مسلم.

عن عائشة رضی الله عنها ان النبی ﷺ لم یکن یترک فی بیته شیئا فیه تصالیب الا نقضه. رواه البخاری

وعنها رضی الله عنها عن النبی ﷺ قال: اشد الناس عذابا یوم القیمة الذین یضاهون بخلق الله. متفق علیه.

عن ابی هریرة رضي الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ یقول: قال الله تعالی ومن اظلم ممن ذهب یخلق کخلقی فلیخلقوا

خبة او شعيرة متفق عليه.

عن عبدالله بن مسعود ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: اشد الناس عذابا عندالله المصورون متفق عليه.

عن ابن عباس ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: كل مصور فى النار يجعل له بكل صورة صورها نفسا فيعذبه فى جهنم قال ابن عباس ﷺ فان كنت لابد فاعلا فاصنع الشجر ومالا روح فيه. متفق عليه.

وعنه ﷺ عن النبى ﷺ: فى حديث طويل فى اخره و من صور صورة عذب و كلف ان ينفخ فيها وليس بنافخ رواه البخارى.

وعن ابى هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ: يخرج عنق من النار يوم القيمة لها عينان تبصران و اذنان تسمعان ولسان ينطق يقول انى وكلت بثلاثة بكل جبار عنيد و كل من دعا مع الله الها اخر و بالمصورين رواه الترمذى (مشكوة ص۳۸۵ او ۵۸۶) والله سبحانه وتعالى اعلم

د تصویر د حرمت او په هغې باندې د ډېر سخت عذاب تفصیل په رساله (النذیر العریان عن عذاب صورة الحیوان) کښې شته دې. ۱۵ شعبان ۱٤۱۵ هجری

## د ټی وی ((تلویزیون)) کتونکی شهادت مردود دې

**سوال:**- د کوم سړی په کور کښې چې ټی وی (تلویزیون) موجود وی او هغه د خپل بال بچ سره ټی وی ګوری نو د هغهٔ شهادت مقبول دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ټی وی ام الخبائث دې، په معاشره کښې بربنډتوب. فحاشی، زناکاری، بدکاری. غلا، ډاکې، د اولاد بې پیزوانه کیدل، او د خپل مور پلار د پاره عذاب جوړیدل. د ځوانانو د پاره د دین نه د اوړیدلو او ځوانان د ټولې معاشرې د پاره ناسور جوړیدل د دې ټولو سبب او ذریعه ټی وی دې.

کوم وعیدونه چې د تصویر په مسئله کښې لیکلې شوې دی هغه ټول وعیدونه دلته بطریق اولی پوره ثابتیږی

کوم سړې چې د دې بې حیایئ او د داسې کبیره ګناه کوونکې وی، هغه ډیر لوئې فاسق دې، لهذا د هغه شهادت مردود دې، د فاسق د شهادت تفصیل په وړومبی سوال (د شرعی پرده نه کوونکی شهادت) جواب کښې تیر شوې دې.

د ټی وی دنیاوی او د اخروی او د جسمانی تباهئ او په دې باندې د دنیا او د آخرت او په قبر کښې د سختو سختو عذابونو تفصیل په رساله (د ټی وی زهر د ټی بی نه زیات هلاکوونکی دی) کښې دې. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۵ شعبان ۱٤۱۵ هجری

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ قُلْ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ وَإِخْوَٰنُكُمْ وَأَزْوَٰجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَٰلٌ ٱقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرْضَوْنَهَآ أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَجِهَادٍ فِى سَبِيلِهِۦ فَتَرَبَّصُوا۟ حَتَّىٰ يَأْتِىَ ٱللَّهُ بِأَمْرِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٢٤﴾ ﴾ (۱۰ - ۲۴)

# كتاب الصلح

## په تخارج کښې د صلح عن الدين د جواز حيلې (چلونه)

**سوال:**- په درمختار کښې د صلح عن الدين د جواز څلور حيلې ذکر کړې شوې دی:

ونصه: وصح لو شرطوا ابراء الغرماء منه اى من حصته لانه تمليك الدين ممن عليه فيسقط قدر نصيبه عن الغرماء او قضوا نصيب المصالح منه اى الدين تبرعا منهم احالهم بحصته او اقرضوه قدر حصته منه وصالحوه عن غيره بما يصلح بدلا واحالهم بالقرض على الغرماء وقبلوا الحوالة وهذه احسن الحيل ابن كمال والاوجه ان يبيعوه كفا من تمر او نحوه بقدر الدين ثم يحيلهم على الغرماء ابن ملك (در مختار، كتاب الصلح)

وفى الشامية: (قوله احسن الحيل) لان فى الاولى ضررا للورثة حيث لا يمكنهم الرجوع على الغرماء بقدر نصيب المصالح و كذا فى الثانية لان النقد خير من النسيئة اتقانى (قوله والاوجه) لان فى الاخيرة لا يخلو عن ضرر التقديم فى وصول مال ابن مالك. (ردالمحتار ص۵۳۶ ج۴)

په دې کښې اشکال دا دې چې (النقد خير من النسيئة) ضرر په دويمه او دريمه دواړو حيلو کښې موجود دې.د شامي په پورتنی عبارت کښې هم د دې تصريح شته دې،نو بيا دريمه حيله احسن الحيل څنګه شوه؟ **بينوا بيانا شافيا توجروا اجرا وافيا.**

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په دويمه حيله کښې (النقد خير من النسيئة) ضرر په دې باندې مبنی دې چې په دې حيله کښې حواله تسليم کړې شی.حال دا دې چې په کښې د حوالې قول د تحقيق نه خلاف دې.په شاميه کښې دی:

(قوله واحالهم) لا محل لهذه الجملة هنا وهى موجودة فى شرح الوقاية لابن ملك وفى بعض النسخ او احالهم.
(ردالمحتار ص ۵۳۶ ج ۴)

هر کله چې د دې ضرر بنا د تحقیق نه خلاف ده. نو په دویمه حیله کښې د دې ضرر قول کول صحیح نۀ شو. ابن ملک په صاحب د درر باندې د رد په غرض سره دا جمله زیاته کړې ده لیکن دا زیاتې ئې صحیح نۀ دې.

**قال الطحطاوی رحمه الله: ذکره ردا علی صاحب الدرر و تبعه المصنف حیث قال ولا یخفی ما فیه ای هذا الوجه من الضرر ببقیة الورثة ولکنه لا یدفع لانه یرجع علیهم بما احالهم به فیکون الضرر علیهم مرتین اه (طحطاوی ص ۳۶۰ ج ۴)**

د دې نه دا خبره معلومه شوه چې که په دویمه حیله کښې حواله تسلیم هم کړې شی نو بیا هم په دې حیله کښې د (**النقد خیر من النسیئة**) ضرر نشته دې. لهذا په دویمه حیله کښې د ضرر په حقله د زیلعی قول حق دې

**ونصه: وان شرطوا ان یبرا الغرماء منه ای من الدین صح لانه اسقاط او تملیک الدین ممن علیه الدین و کل ذلک جائز وقال صاحب الهدایة وهذا حیلة الجواز واخری ای حیلة اخری ان یعجلوا قضاء نصیبه متبرعین ثم قال فی الوجهین ضرر ببقیة الورثة والاوجه ان یقرضوا المصالح مقدار نصیبه وصالحوا عما ورا الدین ویحیلهم علی استفاء نصیبه من الغرماء وهذا فی الوجهین ظاهر لانهم اذا اعطوا المصالح شیئا بمقدار الدین او قدر الدین ولم یحصل لهم الدین فقد حصل لهم ضرر دنیوی ولیس فی الصورة الثالثة مثل ذلک من الضرر لانهم و ان خرج منهم قدر الدین لکن حصل لهم الدین بمقابلته فانتفی عنهم الضرر الا ضرر النقد فان العین خیر من الدین اه** (زیلعی ص ۵۱ ج ۵)

د دې نه پس ئې څلورمې حیلې ته اَوجه وئیلې دی. غرض دا چې په اوله حیله کښې مصالح حصه د دَین او د عین د دواړو عوض او بدل اخلی. باقی وارثان د دَین د حصې عوض ورکوی. لیکن د دین حصه هغوی ته نه ترلاسه کیږی ددې وجې نه په دې کښې د هغوی ضرر دې. او په دویمه حصه کښې مصالح په صلح کښې یواځې د عین د حصې عوض اخلی. او د دین د حصې مقدار باقی وارثان هغۀ له تبرعاً ورکړی. او مقروض ته د دې مصالح په حصه کښې رجوع نه کوی. په دې کښې د باقی وراثانو دا ضرر وشو چې ددین حصه هغوی مصالح له ورکړه خو ولې په خپله ئې د مقروض نه وانخستې شوه. په دریمه حیله کښې مصالح یواځې د عین په حصه باندې صلح وکړه. او حصه د دین هغۀ له باقی وراثانو ورکړه. او چې کوم څه ئې دۀ له ورکړه هغۀ ئې هم د مقروض نه واخستل. نو په دې کښې په فریقینو کښې د چا ضرر هم ونۀ شو. د دې وجې نه دا احسن الحیل ده. البته دا خبره ده چې په دې کښې د (**النقد خیر من النسیئة**) ضرر د وارثانو د پاره دې.

لیکن دا ضرر د رومبنو دواړو ضررونو نه سپک دې.او په څلورمه حیله کښې دا ضرر هم نشته دې. مصالح په حصې د عین او د دین په دواړو سره صلح وکړی او د دواړو عوض یې واخستلو ، لکه چې څنګه په اولنۍ حیله کښې وو.او باقی وارثان د دین د حصې عوض ورکړی او د دې په مقابله کښې د دین حصه واخلی. په څلورمه حیله کښې د وارثانو هغه ضرر خو نشته دې کوم چې د دوی په اولې حیله کښې وو. لیکن دا ضرر ئې په کښې دې چې د حصې د دین عوض ئې اول ورکړو او د دین حصه ئې وروستو واخستله. لیکن دا ضرر د دریمه حیلې د ضرر نه کم دې.ځکه چې په دریمه حصه کښې وارثان د دین حصه د خپل مال نه ورکوی. او په څلورمه کښې یې په خپله د ترکې نه ورکوی.او دا نسبةً اهون دې. ددې نه علاوه ددې ضرر دفع کول داسې ممکن دی چې د ترکې نه دې د دین د حصې عوض د دین د حصې د مقدار نه کم ورکړې شی. په خاصه توګه هغه وخت چې د صلح مدار په تسامح او په حط باندې وی.ددې وجې نه څلورمه حیله اوجه شوه.حاصل د خبرې دا چې په دویمه حیله کښې د **(النقد خیر من النسیئة)** ضرر نشته دې کوم چې په دریمه حیله کښې موجود دې. بلکه په دویمه حصه کښې دا ضرر دې چې باقی وارثان د دین حصه ادا کوی لیکن د مقروض نه ئې نهٔ اخلی. لهذا کومو مصنفینو چې په دویمه حیله کښې د **(النقد خیر من النسیئة)** ضرر لیکلې دې. نو د هغوی قول د تحقیق نه خلاف دې. صحیح او حق هغه دې کوم چې زیلعی بیان کړې دې. په تکملة د فتح القدیر کښې ئې هم دا لیکلې دی.او په حاشیة د عنایه ص ۵۴ ج ۷ کښې ئې هم دې ته حق وئیلې دی.په کفایه کښې ئې هم دا اختیار کړې دی،او د دې وجه ئې داسې بیان کړې ده **(اذلا نسیئة عند التبرع)** او د **(النقد خیر من النسیئة)** په حقله په حاشیة د عنایه کښې دی **(اقول فیه بحث)**. **والله سبحانه وتعالی اعلم.** ۱۵ رجب ۱۳۷۵ هجری

## د تخارج څلور اهمې مسئلې

**سوال** : د یو سړی د وفات پنځه کاله تیر شوې دی.د هغه په وارثانو کښې یوه ښځه، پنځه هلکان او شپږ جینکۍ پاتې شوې دی د هغه د وفات نه پس ئې سمدستی د جائیداد تقسیم وکړې شو. په غیرمنقوله جائیداد کښې ۷۱ جریبه زمکه یو کور او یو پلاټ وو.او په منقوله جائیداد کښې څاروی.کالی.او د کور سامان وو.د کور د سامان.څاروو او د کالو قیمت ولګولې شو.او ورسره په مشر هلک باندی چې کوم دیارلس سوه روپۍ قرض وو هغه هم جمع کړې شو.ټولې پیسې ترې نه څوارلس زره روپۍ جوړې شوې.کومې چې د وارثانو د حصې مطابق تقیسم کړې شوې . او د هر یو وارث حصه وټاکلې شوه.بیا د درې مشرانو جینکو نه کومې چې عاقلې بالغې او وادهٔ شوی وې تپوس وکړې شو چې تاسو په جائیداد کښې خپله حصه اخستل غواړئ او که نه د

نورو وارثانو په حق کښې د خپلې حصې نه لاس وینځئ؟ درې وارو جینکو د منقوله جائیداد نه یو څو ټاکلی شوی څیزونه واخستل، او باقی ئې خپلو پنځو ورونو ته اوبښل، یوې جنیئ د زرو روپو د قیمت میښه واخسته او باقی جائیداد ئې خپلو ورونو ته اوبښلو، دویمې جینئ یو د ګنډلو ماشین د څلورو سوو روپو او یوه غوا د پنځو سوو روپو واخسته او باقی حصه د جائیداد ئې خپلو ورونو ته اوبښله، دریمې خور څلورمه حصه زمکه واخسته او باقی حصه د جائیداد ئې خپلو ورونو ته اوبښله.

او د پنځو کالو دتیریدلو نه پس ځینی علماء وائی چې دا تخارج باطل دې، جائیداد به د سر نه بیا تقسیمولې شی، ځکه چې دتخارج د صحت دپاره یو شرط دا دې چې ټول وارثان به عاقل بالغ وی، حال دا چې په دغه وخت کښې په دوی کښې یو هلک د دوه نیمو کالو وو.

دویمه وجه دا چې په یو وارث باندې دین وو، او په ترکه کښې چې دین وی نو بیا په دې صورت کښې تخارج باطل وی، حال دا چې دا دین په وارث باندې وو او دا د منقوله جائداد سره یو ځائې کړې شوې وو او په وراثانو باندې تقسیم کړې شوې وو په دې صورت کښې چې د کوم وارث په ذمه دا قرض وو د هغه په حصه کښې دا شمارلې شوې وو. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دلته څلور خبرې د تحقیق قابلې دې:

۱- چې د مړی په یو وارث باندې قرض وی نو آیا هغه د تخارج نه مانع دې او که نه؟

۲- چې مصالح خپله حصه یو اځې بعضې وارثانو ته ورکړی نورو ته ئې ورنهٔ کړی نو آیا تخارج به صحیح کیږی او که نه؟

۳- تخارج په غبن الفاحش سره صحیح دې او نه که نه؟

۴- چې په وارثانو کښې څوک صغیر وی نو آیا تخارج صحیح دې او که نه؟

د دې څلور خبرو تحقیق په ترتیب سره وړاندې کولې شی:

۷- که په منقوله ترکه کښې د مدیون د میراث د حصې نه دین زیات وی نو دا به د تخارج نه مانع وی او که داسې نه وی نو مانع به نهٔ وی، ځکه چې د دین د منع کیدلو علت (**تملیك الدین من غیر من علیه الدین**) دې کوم چې په منقوله ترکه کښې د میراث د حصې نه په تجاوز کوونکی دین کښې موجوده ده، چې مصالح د مدیون نه علاوه نور وارثان هم د دین مالکان جوړوی، لیکن د غیر منقوله ترکې نه په غیر متجاوز دین کښې دا علت مفقود دې، ځکه چې د نقل کیدونکې ترکې په تقسیم کښې ددې د قیمت لګولو او بیا د تقسیمولو عام رواج دې. او ظاهره خبره ده چې د ټولو وارثانو په رضامندئ سره به دا دین د مدیون په حصه کښې حسابولې شی، **فهو تملیك الدین ممن علیه الدین وهو جائز.**

په دې مسئله کښې هم دا صورت دې ددې وجې نه دا دين د صحت د تخارج نه مانع نهٔ دې.

۸ - که بدلِ صلح د ترکې نه ورکول نهٔ وی تاکلې شوې بلکه مصالح ئې د خپل اړخه ادا کوی نو دا تخارج مطلقاً صحيح دې، او که د ترکې نه د صلحې بدل ورکول وتاکلې شو نو څنګه چې معلومه ده چې په دې کښې د ټولو وارثانو حق دې نو ددې وجې نه ددې د صحت د پاره د ټولو رضا شرط ده.

قال العلائی رحمه الله: ولو اخرجوا واحدا من الورثة فحصته تقسم بين الباقی علی السواء ان کان ما اعطوه من مالهم غير الميراث وان کان المعطی مما ورثوه فعلی قدر ميراثهم يقسم بينهم.

وقال ابن عابدين رحمه الله: افاد ان احد الورثة اذا صالح البعض دون الباقی يصح وتکون حصته له فقط کذا لو صالح الموصی له کما فی الانقروی سائحانی (ردالمحتار ص۵۴۰ ج۵)

قلت: فی مسالتنا وقع التخارج بتراضی الورثة فاندفع هذا الاشکال ايضا لکن بقی رضا الصغير وسياتی حکمه.

۹ - بدل صلح که هر څومره لږ وی تخارج په کښې روا دې، البته دا خبره ده که چا سره دا دهوکه وشوه چې په وخت د صلح کښې هغهٔ يو څيز د صحيح قيمت نه خبر نهٔ وو وروستو په کښې غبنِ فاحش ښکاره شو، نو هغهٔ ته دا اختيار شته چې په قاضی باندې صلح فسخ کړی.

فی شرح التنوير: ولو ظهر غبن فاحش لا يدخل تحت التقويم فی القسمة فان کانت بقضاء بطلت اتفاقا لان تصرف القاضی مقيد بالعدل ولم يوجد ولو وقعت بالتراضی تبطل ايضا فی الاصح لان شرط جوازها المعادلة ولم توجد فوجب نقضها خلافا لتصحيح الخلاصة قلت فلو قال کالکنز تفسخ لکان اولی وتسمع دعواه ذلک ای ما ذکر من الغبن الفاحش ان لم يقر بالاستيفاء وان اقر به لا.

وفی الحاشية: (ولو ظهر غبن فاحش فی القسمة) ای فی التقويم للقسمة بان قوم بالف فظهر انه يساوی خمسمائة. وفيها تحت (قوله قلت الخ) فمقتضاه انها تحتاج الی الفسخ وان معنی تبطل وبطلت له ابطالها وبه يشعر قول الکنز تفسخ حيث لم يقل تنفسخ. (ردالمحتار ص۱۸۷ ج۵)

د علائيې د ذکر کړې شوی عبارت نه ځينی خلقو ته دا مغالطه شوې ده چې دا په کومه مسئله کښې ذکر شروع دې په دې کښې د غبن فاحش د وجې نه تخارج باطل دې، حال دا چې د علائيې او د شاميې د عبارت مطلب بالکل واضح دې چې د تخارج نه پس د غبن فاحش د ظاهريدلو نه پس خيار فسخ دې، او د دهٔ دعوی به اوريدلې شی، غبن هم هغه نقصان ته وائی کوم چې د عقد نه پس ظاهر شی، د عقد په وخت کښې چې کوم نقصان ظاهر او معلوم شی هغهٔ که هر څومره زيات وی ليکن هغې ته غبن نهٔ وائی، دا امر د بيان محتاج نه دې چې په تخارج کښې د بدلِ صلحه څه کميت مشروط نهٔ دې، سره د دې نه هم د ځينې خلقو د پاره څه امور وړاندې کولې شی:

۱- د مذهب په کتابونو کښې دا تصریح ده چې هر کله بدلِ صلحه مکیل یا موزون وی یا سره یا سپین زر وی نو د تخارج د صحت د پاره دا شرط دې چې بدل صلحه دې په څیز کښې د مصالح د حصې نه زیات وی، وړاندې په کښې داسې څه شرط نشته دې چې د پوره ترکې سره به ددې حصې څه نسبت وی، او که چیرې بدل د صلح د ذکر کړې شوو څیزونو نه نهٔ وی نو په دې کښې بیا څه کمیت هم شرط نهٔ دې.

۲ - تخارج په حکم د بیعه کښې دې، او بیعه کښې د عاقدینو په تراضی سره په بدلینو کښې تفاوتِ کثیر روا دې.

۳ - **قال ابن عابدین رحمه الله: اوصی رجل بثلث ماله و مات الموصی فصالح الوارث الموصی له من الثلث بالسدس جاز الصلح و ذکر الامام المعروف بخواهر زاده ان حق الموصی له و حق الوارث قبل القسمة غیر متاکد یحتمل السقوط بالاسقاط.** (ردالمحتار ص۶۳۱ ج۴)

په دې کښې اسقاط بالصلح مراد دې، مطلق اسقاط په کښې صحیح نهٔ دې **کما حررت فی کتاب الوصیة والفرائض تحت عنوان،** (د وارث حق د هغهٔ په اسقاط سره نهٔ ساقطیږی) -

د اسقاط بالصلح مثال په ذکر شوی عبارت کښې **)صلح من الثلث بالسدس)** ذکر کړې شوې دې، چې په کښې د تضعیف او تنصیف نسبت دې، او په خپله علامه ابن عابدین رحمه الله د غبن فاحش په مثال کښې همدا نسبت بیان کړې دې. **کما مر من نصه: بان قوم بالف فظهر انه یساوی خمسمائة.**

د دې نه دا خبره دا ثابته شوه چې د فحش تفاوت باوجود تخارج روا دې.

۴ - که چیرې صغیر په خپله عاقد وی نو د بیع او د شراء وغیره عقود دائره بین النفع والضرر په شان په عقد صلح کښې هم د صغیر عاقل کیدل شرط دی نه دا چې بلوغ ورله شرط دې.

د صغیرِ غیرِ عاقل عقد له سره منعقد نه کیږی، او د عاقل غیرِ ماذون عقد منعقد کیږی، لیکن په هغه اذن باندې چې پس د بلوغ نه وی یا د ولی په اذن باندې بهٔ موقوف وی.

**ولی فی المال** په ترتیب سره داسې دې:

پلار، د هغهٔ وصی، نیکهٔ، د نیکهٔ وصی، قاضی.

**فی صلح شرح التنویر: وشرطه العقل لا البلوغ والحریة فصح من صبی ماذون ان عری صلحه عن ضرر بین.**

(ردالمحتار ص ۵۲۶ ج ٤)

**وفی الهندیة: و اما شرائط فانواع منها ان یکون المصالح عاقلا فلا یصح صلح المجنون و الصبی الذی لا یعقل هکذا فی البدائع.** (عالمگیریة ص۲۲۹ ج۴)

و فی کتاب الماذون من شرح التنویر: و تصرف الصبی و المعتوه الذی یعقل البیع و الشراء ان کان نافعا محضا کالاسلام و الاتهاب صح بلا اذن و ان کان ضارا کالطلاق والعتاق و الصدقة و القرض لا و ان اذن به ولیهما و ما تردد من العقود بین نفع و ضرر کالبیع و الشراء توقف علی الاذن حتی لو بلغ فاجازه نفذ فان اذن لهما الولی فهما فی شراء و بیع کعبد ماذون فی کل احکامه. (ردالمحتار ص۱۳۱ ج۵)

او که چیرې صبی په خپله عقد کوونکې نهٔ وی بلکه د هغهٔ له اړخه څوک بل څوک عقد وکړی نو بیا په کښې د صبی عاقل کیدل شرط نهٔ دی، په هر صورت کښې به صلحه منعقده شی. البته د دې عقد د نفاذ د پاره دا شرط دې چې د صبی له اړخه دې د هغهٔ ولی فی المال عقد وکړی. که چیرې غیر ولی عقد وکړو نو هغهٔ به منعقد خو شی لیکن د صبی په اذن بعد البلوغ، یا په اذن د ولی یا په اذن د قاضی پورې به دغه عقد موقوف وی.

البته په تقسم د غیر د ترکې کښې دوه قوله دی، یو دا چې دا هم د عامو فضولی عقودو په شان موقوف دې. دویم قول دا دې چې دا تقسیم باطل دې له سره نه منعقد کیږی ، رحمتی رحمه الله وجه د فرق دا بیان فرمائیلې ده، چې د عقدِ فضولی په منعقد کیدو کښې د متعاقدینو وجود شرط دې او هغه وجود دلته مفقود دې. وسنذکر نصه عن الرافعی رحمه الله.

قال ابن عابدین رحمه الله: قال فی المحیط فلو قسم بغیر قضاء لم تجز الا ان یحضر (الغائب) او یبلغ (الصغیر) فیجیز طوری وهذا ما قدمه الشارح (ردالمحتار ص۱۸۲ ج۵)

ونص الشارح المتقدم: وصحت برضاء الشرکاء الا اذا کان فیهم صغیر او مجنون لا نائب عنه او غائب لا وکیل عنه لعدم لزومها حینئذ الا باجازة القاضی او الغائب او الصبی اذا بلغ او ولیه ولو شرکاء بطلت منیة المفتی وغیرها.

وقال ابن عابدین رحمه الله: (قوله اذا کان) استثناء منقطع کما یفیده قوله بعد لعدم لزومها او استثناء من محذوف ای ولزمت اهـ ط او اراد بالصحة اللزوم (قوله الا باجازة القاضی) الظاهر رجوعه للمستثنیات الثلاث (قوله او الغائب او الصبی اذا بلغ) ولو مات الغائب او الصبی فاجازت ورثته نفذت عندهما خلافا لمحمد منیة المفتی والاول استحسان والثانی قیاس و کما تثبت الاجازة صریحا بالقول تثبت دلالة بالفعل کالبیع کما فی التاترخانیة. وفی المنح عن الجواهر: طفل و بالغ اقتسما شیئا ثم بلغ الطفل و تصرف فی نصیبه و باع البعض یکون اجازة (قوله هذا) ای لزومها باجازة القاضی و نحوه لو کانوا شرکاء فی المیراث فلو شرکاء فی غیره تبطل و مقتضاه انها لا تنفذ بالاجازة فلیتامل

وعبارة المنية هكذا: اقتسم الورثة لا بأمر القاضي وفيهم صغير او غائب لا تنفذ الا باجازة الغائب او ولى الصغير او يجيز اذا بلغ اقتسم الشركاء فيما بينهم وفيهم صغير او غائب لا تصح القسمة فان امرهم القاضي بذلك صح

اقول: سيذكر المصنف تبعا لسائر المتون ان القاضي لا يقسم لو كانوا مشترين وغاب احدهم فكيف تصح قسمة الشركاء بأمر القاضي. اللهم الا ان يراد به الشركاء في الميراث لكن يبقى قول الشارح ولو شركاء بطلت محتاجا الى نقل ونقل الزاهدي في قنيته: قسمت بين الشركاء وفيهم شريك غائب فلما وقف عليها قال لا ارضى لغبن فيها ثم اذن لحراثه في زراعة نصيبه لا يكون رضا بعد ما رد فليحرر ولا تنس ما قدمه من ان للشريك اخذ حصته من المثلى بغيبة صاحبه وما نقله عن الخانية فانه مخصص لما هنا. (ردالمحتار ص٣٠ ج٥)

وقال الرافعي رحمه الله: (قوله الظاهر الرجوعه المستثنيات الثلاث) يدل له ما نقله في المنح عن السراج بقوله ولهم ان يقسموا الا نفسهم اذا تراضوا الا ان يكون فيهم صغير لا ولى له او غائب لا وكيل عنه فحينئذ لا تجوز بالاصطلاح بل لا بد من القاضي لانه لا ولاية لهم على الصغير ولا على الغائب فان امر القاضي بها جاز على الصغير والغائب لان له ولاية على الصغير ونظرا على الغائب وتصرفه يصح على الميت (قوله لكن يبقى قول الشارح ولو شركاء بطلت محتاجا الى نقل) علل البطلان الرحمتي في هذه المسألة بأن كل واحد اجنبي في حق صاحبه فلم يوجد قابل عن الصغير ونحوه وشرط عقد الفضولي وجود القابل عن المالك ولا يتوقف شطر العقد على غائب بخلاف مسألة الورثة لان بعضهم يصلح خصما عن الباقين فيصح ان يكون بعضهم مقاسما وبعضهم مقاسما اهو معلوم ان الشارح ثقة في النقل يعتمد عليه فيه حتى يوجد ما يخالفه (التحرير المختار ص٢٢٦ ج٢)

د ذکر کړې شوی تحقیق نه دا خبره ثابته شوه چې د فقهاء کرامو ﷺ په عبارتونو کښې کوم ځائ هم د صغیر وجود د ترکې د تقسیم د صحت نه مانع ښودلې شوې دې نو د هغې مطلب دا دې چې تقسیم لازم او نافذ نهٔ دې بلکه په اذن د ولی یا په اذن د والی او یا په اذن بعد البلوغ باندې موقوف دې، د دې وجې نه د دې عبارتونو نه د بعضې اصاغرو په عدم انعقاد باندې استدلال په غلطې پوهې باندې مبنی دې۔

## په کومه مسئله کښې چې بحث شروع دې:

د پورتنیو خبرو د تحقیق نه په کومه مسئله کښې چې بحث شروع دې ښه واضحه شوه، په دې کښې د صغیر له اړخه غیرولی عقد د تخارج کړې دې د دې وجې نه د (تخارج على الارض) عقد موقوف دې، که یو وارث د قاضی نه اذن حاصل کړی نو دا عقد به نافذ شی، او که نه نو د صغیر د

اذن بعد البلوغ پورې به موقوف وی، که چیرې صغیر قبل از بلوغ وفات شو نو د دهٔ د وارثانو په اذن سره به نافذ شی۔

د تخارج علی العروض عقد خو د ابتداء نه نافذ او لازم دې، لان للام والاخ بیع المنقول من مال الصغیر لغیر تجارة. وما رایت حکم فسخ احد من الشرکاء تلك القسمة قبل الاذن والظاهر الجواز کما فی سائر العقود الموقوفة.

۱- د صغیر د زمکی د بیعې ولی ته اختیار نشته دې الا فی صور مخصوصة. لیکن ولی ته د عقار د تقسیم اختیارشته ځکه چې تقسیم من کل الوجوه بیعه نهٔ ده بلکه من وجه بیعه ده، او من وجه افراز دې

۲- پلار او دهغهٔ وصی، نیکهٔ او د هغهٔ وصی او قاضی نه علاوه بل چا ته چې څنګه د صغیر د پاره د تقسیم اختیار نشته دې همدغه شان دصغیر په مال کښې د تصرف اختیار ورته هم نشته ، د صغیر په مال کښې د تجارت او په زمکه کښې ئې ورته د کر کروندې اجازت نشته دې، البته د صغیر مور ته، ورور ته، او ترهٔ ته ئې د دهٔ د مال د حفاظت، بیعه د منقول په غرض د حفاظت او د صغیر د پاره د طعام او د لباس وغیره د اخستلو اجازت شته دې خو په دې شرط چې صغیر د دوی په پالنې کښې وی، البته که په خپله په ترکه کښې طعام یا لباس وی نو د دې نه د صغیر حصه په صغیر باندې په خرج کولو کښې بیا د صغیر په پالنه کښې کیدل شرط نهٔ دې.

قال فی التنویر: او اشتری الوارث الکبیر طعاما او کسوة للصغیر من مال نفسه

وفی الشرح: فانه یرجع ولا یکون متطوعا.

وفی الحاشیة: کذا فی الخانیة ونصها او اشتری الوارث الکبیر طعاما او کسوة للصغیر من مال نفسه لا یکون متطوعا وکان له الرجوع فی مال المیت والترکة اھ اقول: ولم یشترط الاشهاد مع ان فی انفاق الوصی خلافا کما مر وینبغی جریانه هنا بالاولی علی انه قد وقع الاختلاف فی انفاقه علی الصغیر نصیبه من الترکة نفقة مثله فی انه یصدق ام لا قولان حکاهما الزاهدی فی الحاوی ثم قال والمختار للفتوی ما فی وصایا المحیط بروایة ابن سماعة عن محمد رحمه الله تعالی مات عن ابنین صغیر وکبیر والف درهم فانفق علی الصغیر خمسمائة نفقة مثله فهو متطوع اذا لم یکن وصیا ولو کان المشترك طعاما او ثوبا واطعمه الکبیر الصغیر او البسه فاستحسن ان لا یکون علی الکبیر ضمان اھ

وفی جامع الفتاوی ولو انفق الاخ الکبیر علی اخیه الصغیر من نصیبه من الترکة ان کان طعاما لم یضمن وان کان دراهم فذلك ان کان فی حجره وفی غیر ذلك یضمن ان لم یکن وصیا اھ ومثله فی التاترخانیة وقدم

المصنف في فصل البيع من كتاب الكراهية والاستحسان ان يجوز شراء ما لابد للصغير منه وبيعه لاخ وعم وام وملتقط هو في حجرهم واجارته لامه فقط اهـ ومثله في الهداية وعليه فيمكن حمل ما مر عن محمد رحمه الله تعالى على ما اذا لم يكن في حجره تامل وعلى كل فما في الخانية مشكل ان لك يكن الكبير وصيا فليتامل (ردالمحتار ص،،٥ج٥)

غرض دا چې په دې تپوس كړې شوې مسئله كښې د صغير په مور او ورونو باندې لازم دى چې د دهٔ د حصې زمكه د حكومت په قبضه كښې وركړى.

۳ – پورته چې كوم تحقيق ليكلې شوې دې هغهٔ د نفسِ مسئلې سره متعلق دې، په دې تپوس كړې شوې مسئله او صورت كښې كۀ خويندو د ورونو د خفگان يا د رواج د زوره داسې قسمه ايثار او قرباني كړې ده نو د ورونو په ذمه د دې خويندو شرعي حق باقي او پاتې دې. **والله سبحانه وتعالى اعلم.** ١٥ ربيع الآخر ١٤٠٠ هجرى.

## فاسده صلحه

**سوال:-** د هندې په ملک كښې څه زمكه وه، هغې خپل خاوند ته په دې زمكه باندې د دوو كورونو جوړولو اجازت وركړو، ليكن خاوندئې دوه چته كور په زوره پرې جوړ كړو، هنده خفه وه ددې وجې نه د دې ښځې اوخاوند فيصله د هندې پلار له لاړه، هغهٔ په صورت د صلحې فيصله داسې وكړه چې زمكه سره د كوره په څلورو كښې يوه حصه د هندې او درې حصې د زمكې سره دكوره دا د هندې د خاوند شوه.

او بله دا خبره چې كه لاندې چت ئې په كرايه باندې وركړو نو د كرايې نيمه حصه به هندې ته وركړې كيږى، او په دې باندې چې كومه خرچه راځى هغهٔ به هم په دواړو باندې نيمه نيمه راځى، د ټول كال خرچې، ټيكس وغيره به د خپلو خپلو حصو په تناسب سره ادا كوى، د صلحې نه پس زيد بې د اجازته نور تعميرات او مختلف تصرفات وكړل.

اوس پوښتنه دا كول دى چې آيا هنده دا صلحه فسخه كولې شى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** صلح عن مال بمال په تصريح د فقهاء كرامو ﷺ بيعه ده، په مصالحت كښې د لاندې چت په كرايه كښې د هندې دپاره نيمه حصه مقرر كړې شوه حال دا چې د هغې حصه څلورمه وه، دا شرط د عقد د مقتضا خلاف دې، ددې وجې نه ذكر كړې شوې صلح فاسده او واجب الرد ده، د وړاندې په شان زمكه د هندې ده او كور د زيد دې، اگر چې د صحلې نه وړاندې بې د هندې د اذن نه دا كور تعمير كړې شوې دې ليكن د صلحې نه دا اذن متحقق شو، البته پس د صلحې نه تعمير او تصرف كول په هيڅ توگه ثابت نۀ دى، ددې حكم دا دې چه:

۱ - که هنده وغواړی نو زید ته دې د کور د غورځولو حکم وکړی.

۲ - که د دې کور په غورځولو سره د هندې په زمکې کښې د فاحش نقصان پیدا کیدلو اندیښنه وی نو ددې ولاړ عمارت چې غورځول ئې واجب دی قیمت چې څه جوړیږی نو هنده دې دغه قیمت ادا کړی او د کور مالکه دې شی.

۳ - که فرض که په غورځولو باندې د زمکې لګ نقصان کیږی نو ودې غورځولې شی، په زمکه کښې چې څه نقصان راشی د هغې ضمان به په زید باندې واجب وی.

قال فی التنویر: ومن بنی او غرس فی ارض غیره بغیر اذنه امر بالقلع والرد وللمالك ان یضمن له قیمة بناء او شجر امر بقلعه ان نقصت الارض.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله ان نقصت الارض) ای نقصانا فاحشا بحیث یفسدها اما لو نقصها قلیلا فیاخذ ارضه ویقلع الاشجار ویضمن النقصان سائحانی عن المقدسی (ردالمحتار ص۱۳۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

٤ محرم ١٤٠٥ هجری

## جواب له اړخه دجامعه اسلامیه بنوری ټاون

په تپوس کړې شوې صورت کښې مو د استفتاء او دمصالحتی تحریر ښۀ په غور سره مطالعه وکړه، کوم جواب چې زمونږ په پوهه کښې راغلو هغه داسې دې، چې هر کله د زید او د هندې تر مینځه په مشترکه سرمایه سره د جوړ کړې شوی کور د ملکیت په حقله تنازعه وشوه او هم د دې تنازعې د ختمولو د پاره دواړه ښه په رضا او رغبت سره د هندې والد له تلې وو، او د هندې والد د خپلو دوو عاقلانو ځامنو په وړاندې ښه په دیانتدارئ سره د دوی تر مینځه مصالحت وکړو، او په مصالحتی تحریر کښې دواړو فریقینو د هندې د والد فیصله منلې ده او د رضامندئ دستخطونه ئې هم کړی دی، او هندې په دغه مجلس کښې بلکه د فیصلې نه پس په قریبی زمانه کښې په دې فیصله باندې څه اعتراض هم نۀ دې کړې، نو د فقهاء کرامو رحمهم الله د تصریحاتو مطابق د دې فیصلې نه انکار کول صحیح نۀ دی، ځکه چې دا مصالحت د شرعی اصولو او قواعدو او ضوابطو مطابق شوې دې چې تفصیل ئې دا شان دې:

۱ - د مصالح علیه او مصالح عنه دواړو اړخو نه مال دې، که د هندې له اړخه په زمکه او مکان کښې لګیدلې پیسې دی نو بل خوا ته د زید له اړخه د کور ملکیت دې.

۲ - د مصالحت په ذریعه هندې د خپلې زمکې په څلورو کښې د درې حصو په عوض کښې د زید نه د دوه چته کور په څلورو حصو کښې یوه حصه حاصله کړه او زید د خپلو کورونو په څلورو کښې د یوې حصې په عوض د هندې نه د هغې د زمکې په څلورو کښې درې حصې واخستې.

۳ - د مصالحت نه پس زيد او هنده دواړه په دوه چته كور كښې د خپلې خپلې حصې په تناسب سره شريک شول .

۴ - دا خبره معلومه ده چې زيد او هنده د ښځې اوخاوند په حيثيت سره په دغه زمكه او كور كښې پاتې كيږي، او په دې زمكه او كور كښې هيڅ يو شريک د خپلې حصې د تقسيمولو او د دې د جدا كولو شرعي دعوى نۀ ده كړې، د دې وجې نه د عدم امتياز اعتراض كول په كښې هم صحيح نۀ دى، البته د زيد په ذمه دا خبره وه چې په دې كور كښې ئې څه ترميم او بدلون كولو نو پكار دى چې هنده ئې د مشورې په وخت كښې ځان سره شريكه كړې وې، ليكن زيد داسې ونۀ كړل اوس به د دې ترميم او بدلون اثرات داسې مرتب كيږي :

(الف) كه چيرې هندې په څه ترميم او بدلون باندې اعتراض كړې وو نو اوس چې په دې ترميم او بدلون كښې كوم مال خرج كيږي نو د دې ذمه وار به زيد وى هنده به نۀ وى، او په دې حقله به د هندې نه د څه پيسو مطالبه درسته نۀ وې.

(ب) كه چيرې د زيد د ترميم او بدلون له كبله د دې مكان ماليت ته څه نقصان رسيدلې وى نو د دې ذمه وار به هم زيد وى هنده به ئې ذمه واره نۀ وى، دا خبره دې واضحه وى كه چيرې دې وخت كښې زيد او هنده دا مشتركه زمكه او كور تقسيم كول غواړى نو ددې دوه صورتونه دى :

۱- يا خو به د زمكې يا د كور څلورمه حصه جوړه كړې شى او هندې ته به وركړې شى يا به د ټولې زمكې او كور د قيمت اندازه ولګولې شى او د هغهٔ قيمت څلورمه حصه به هندې ته وركړې شى، په مفاهمت سره چې څه هم وټاكلې شى نو دا په فريقينو باندې موقوف دى.

**نوټ** : د محترم المقام حضرت مولانا مفتى رشيد احمد صاحب مدظلهم جواب زمونږ په نيز صحيح نۀ دې، ځكه چې دوى په مصالحتى تحرير كښې لاندې چت په كرايه سره د وركولو په صورت كښې د نيمائى په تناسب سره د دې كرايې تقسيمولو ته شرطِ فاسد وئيلې دې، بيا څنګه چې په شرط فاسد سره بيعه فاسديږى نو دوى دغه شان صلح عن المال د بيعې په حكم كښې د كيدلو د وجې نه فاسده ګرځولې ده.

حال دا دې چې اول خو دا شرطِ فاسد نۀ دې، ځكه چې هر كله د مصالحت د وجې نه دوه چته كور كښې د زيد د پاره په څلورو كښې درې حصې او د هندې دپاره په څلورو كښې يوه حصه وټاكلې شوه او د كور پورتنې چت ټول په ټوله د خاوند په قبضه كښې دې حال دا چې په دې كښې د هندې څلورمه حصه رسيږى، او په لاندې چت كښې د هندې څلورمه او د زيد درې حصې دى، نو د كرايې په صورت كښې د هندې د پاره نيمه حصه ځكه مقرر كړې شوې ده چې په پورته چت كښې زيد د هندې كوم څلورمه حصه استعمالوى نو د هغې په عوض په لاندې چت كښې دې په لاندې چت كښې هندې ته څلورمه حصه نوره هم وركړې شى چې بيا ئې مجموعه د لاندې كور نيمائى

راځی،او دا شرط بالکل د شرعی ضابطی مطابق دي،لهذا دا شرطِ فاسد نهٔ دي،ددې وجې نه مصالحتی تحریر بالکل صحیح او درست دي.

دویمه دا چې صلحه د حکماً او مآلاً ابتداً د مدعی د پاره بیعه ده او د مدعی علیه دپاره دفع د خصومت وی،او صلحې معامله هسې هم په مسامحاتو باندې مبنی وی او د بیعې بنیاد په مماکست او مضایقت باندې وی،لهذا په دې فتوی باندې نظرِ ثانی ضروری دې.**والله تعالیٰ اعلم.**

**۵ محرم ۱۴۰۵ هجری**

په دې تحریر کنبې د بنده (مفتی رشید احمد صاحب) په جواب باندې درې اشکاله وړاندې کړې شوې دی:

۱- په کرایه کنبې د نیمائی شرط فاسد نهٔ دې ـ الخ .

**جواب:** مبادلة المال بالمنافع روا نهٔ دی،د دې نه علاوه د لاندې چت منافع په صورت د کرایې کنبې وړومبې خو دا چې غیر متیقنه ده،دویمه دا چې غیر مقدوره ده،دریمه دا چې غیر متعینه ده.

۲. صلحه حکما و مآلا بیعه ده (الی) مدعی د پاره دفع د خصومت ده.

**جواب:** هر کله چې د صحلې د بیعې په حکم کنبې کیدل تسلیم کړې شو، نو د دې د صحت د پاره د بیعې د شرائطو وجود لازمی دې، **کما صرحوا به.**

د صحلې د مدعی علیه د پاره دفعه د خصومت کیدل دې لره د بیعې د حد نه نهٔ خارجوی،د دې نه علاوه دفعه د خصومت هلته وی چې مدعی علیه منکر وی،که چیرې مدعی علیه د مدعی د حق اقرار کوی، نو بیا خو د هغهٔ په حق کنبې هم د ابتداء نه بیعه ده .

۳ - د صلحې معامله په مسامحاتو باندې مبنی ده ـ الخ .

**جواب:** په صلحه کنبې مسامحه په استیفاء د ملک کنبې وی او دلته کرایه د خپل ملک نه د زیاتې اخستلو شرط لګولې شوې دې،کرایه ملک نهٔ دې بلکه منفعت دې، په استیفاء د منافعو کنبې مشروط تناسب د ملک د تناسب مطابق نهٔ دې،دا شرط د مقتضاء د ملک خلاف دې.

همدغه شان دملک د تفاوت سره سره په مصارفو کنبې د مساواتو شرط هم د ملک د مقتضاء خلاف دې.**والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

**۵ ذی الحجه ۱۴۰۵ هجری**

# كتاب المضاربة

## د فاسد مضاربة حكم

**سوال**:- زيدخپل ذاتي كاروبار كوی،په كال ۱۹۵۲ عيسوی كښې د زيد مشر ځوئ د تعليم نه فارغ شو او د والد سره په كاروبار كښې شريک شو،او دپلار او ځوئ تر مينځه يوه تحريری معاهده وشوه چې موجوده سرمايه به د زيد وی،او په منافعو كښې به زيد په دريو كښې د دوو حصو او عمرو په دريو كښې د دريمې حصې حق دار وی. بيا په ۱۹۵۲ عيسوی كښې دا معاهده منسوخه شوه،او دويمه معاهده وليكلې شوه چې په منافعو كښې به زيد د لسو آنو (پولو) او عمرو د شپږو آنو (پولو) حق دار وی،اوس زيد او عمرو ځان ځان له كاروبار كول غواړی، د دې وجې نه عمرو د خپلې حصې دمنافعو مطالبه كوی، ليكن زيد دا دعوی كوی چې تيرې شوې معاهدې هسې فرضی وې كومې چې مصلحتاً ليكلې شوې وې،ټوله سرمايه په هغه وخت كښې زما وه او اوس هم زما ده، ستا د خدمت په عوض كښې ما په تا باندې تعليم وكړو ،وادۀ مې درله وكړو او تر اوسه پورې چې ستا څه ضرورتونه وو هغۀ مې درله پوره كړل،عمرو وائې چې معاهدې فرضی او وقتی نۀ وې، بلكه د مقرر شوې حصو په مطابق دا معاهدې عمل ته راغلې وې،ما هم دا معاهدې حقيقت ګڼلې او هم دومره محنت مې كولو ،ما خپل ټول كوشش او محنت د كاروبار د ترقۍ پاره لګولې دې، او هم ددې نفعې د پاره ما تر اوسه پورې ځان له بيله څه جمع نۀ ده كړې، بلكه د بيلو بيلو كارونو ګټه به مې هم په دې كاروبار كښې ګډوله، باقی د اخراجاتو مسئله دا ده چې زۀ ستاسو نه بيل اوسيږم، ستا او زما ټولې خرچې هم ددې كاروبار نه چليدلې، بله دا چې تا زما د وادۀ په وخت كښې په ۱۹۵۴ كښې ددې معاهدې توثيق هم كړې وو چې زما ځوئ د نفعې د دريمې حصې حق دار دې. اوس تاسو نه چې د كومو سوالونو حل مطلوب دې:

۱- آيا عمرو شرعا په ګټه كښې دشپږمې حصې حقدار دې او كه نه؟

۲- د زيد دا دعوی كول چې دا معاهده وقتی او فرضی وه،قابل د قبلولو ده او كه نه؟حال دا چې ۱۹۵۴ كښې د معاهدې د توثيق ګواه هم لا ژوندې دې.

۳- آيا د تحريری معاهدې په موجودګئ كښې ددې نه اوړيدل روا دی او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا عقد مضاربت دې، ليكن د مضاربت د صحت د پاره چې كوم شرائط وی په هغې كښې ځينی شرائط دلته نشته دې:

۱- د كوم مال نه چې كاروبار چلولې كيږی د هغې نقد كيدل ضروری دی،كه چيرې مال د سامان وغيره په شكل كښې وی نو دا مضاربت صحيح نۀ دې.

قال في التنوير: وشرطها كون راس المال من الاثمان (ردالمحتار ص۵۳۰ ج۴)

۲- هغه کاروبار به صرف مضارب چلوی، که چیرې رب المال دا شرط ولګولو چې هغهٔ به هم د مضارب سره په کاروبار چلولو کښې شریک وی نو دا مضاربت صحیح نهٔ دې.

قال في التنوير: و كونه مسلما الى المضارب.

وقال علامة ابن عابدين: (قوله مسلما) فلو شرط رب المال ان يعمل مع المضارب لا تجوز المضاربة (ردالمحتار ص۵۳۰ ج۴)

۳ - مضارب به صرف په نفع کښې شریک وی، د نقصان ضامن به نهٔ وی، که چیرې دا خبره وتاکلې شوه چې مضارب به د نقصان په ضمان کښې شریک وی نو مضاربت صحیح نهٔ دې.

قال في شرح التنوير: ومن شروطها كون نصيب المضارب من الربح حتى لو شرط له من راس المال او منه و من الربح فسدت. (ردالمحتار ص۵۳۰ ج۴)

ددې شرائطو د نهٔ کیدلو د وجې نه مضاربت فاسد شواو مضاربت فاسده د مآل په لحاظ سره اجارهٔ فاسده ده، ددې حکم دا دې چې مضارب ته به اجر مثل (یعنی د نوکر په صورت کښې چې دهٔ ته کومه تنخوا ورکولې شوه هغه) او په مقرر کړې شوې منافعو کښې چې کومه کمه وی هغه ورکولې شی.

قال في شرح التنوير: واجارة فاسدة ان فسدت فلا ربح للمضارب حينئذ بل له اجر مثل عمله مطلقا ربح او لا بلا زيادة على المشروط. (ردالمحتار ص۵۳۹ ج۴)

د ذکر کړې شوی تحریر مطابق د مطلوبه سوالونو جوابونه دا دی:

۱- عمرو ته په اجرمثل او مقرر کړې شوې منافع کښې چې کومه کمه وی هغه ورکولې کیږی.

۲-۳ - د زید ذکر کړې شوې قول صحیح نهٔ دې، هر کله چې تحریری معاهده شوې ده نو هغې ته بیا د فرضی وئیلو څه جواز نشته، تر دې پورې چې زید د دې معاهدې فرضی کیدل په شرعی شهادت سره ثابت نهٔ کړی، که چیرې شهادت ئې وړاندې نهٔ کړې شو، نو د عمرو نه قسم اخستې شی، د دې شهادت یا د قسم کیدل د حاکم یا د یو حکم په مجلس کښې کیدل ضروری دی. والله سبحانه وتعالى اعلم

۱۶ ربیع الآخر ۱۳۸۵ هجری

## د پورتنی په شان یوبل سوال

**سوال:**- زید سره د حج دپاره څه پیسې د څو کالونو نه موجودې دی، هغه هر کال د حج د پاره عریضه ورکوی لیکن دغه عریضه ئې نه منظوریږی، هغهٔ دا پیسې خپل یو تاجر دوست له ورکړې

او هغهٔ ته ئې دا اووئيل چې هغهٔ په دې درې صورتونو کښې کوم يو غوارې اختيار دې کړی:
۱ - د نفعې او د نقصان تقسيم به په نيمائی وی،(يعنی ۱۱۲)
۲ - د نفعې او د نقصان تقسيم به په دريو کښې د دوو حصو په تناسب سره (يعنی ۲۱۳).
۳ - د نفعې او د نقصان تقسيم به په پنځو کښې د دوو په تناسب سره وی،(يعنی ۲۱۵).
د دې نه پس هغه تاجر د نفعې په نوم سره څه پيسې زيد له ورکوی،او دغه پيسې زيد په اصل پيسو کښې جمع کړې، بيا د حج په ورځو کښې تاجر ټول پيسې سره د نفعې نه زيد له واپس ورکړې، ليکن د زيد نوم په قرعه اندازئ کښې راونهٔ وتلو،لهذا هغهٔ دغه پيسې اوس بيا دوباره تاجر له ورکړې ، اوس سوال دا کول دی چه:
۱ - د زيد او تاجر ترمينځه چې کومه معامله وشوه،دا مضاربتِ صحيحه دې او که فاسده؟ او دا منافع د زيد دپاره حلاله ده او که نه؟
۲ - که چيرې دا منافع د زيد په حق کښې حرامه وی، نو آيا ددې پيسو تاجر له واپس ورکول ضروری دی او که نه په بل څه مصرف کښې ئې هم لګولې شی ؟
۳ - که چيرې د زيد او د تاجر دا معامله شرعا ناجائزه وی نو آيا دا پيسې به تاجر سره قرض وی او که امانت؟ او په زيد باندې به زکوة راځی او که نه؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**:
۱- ۲ - په دې کښې د فريقينو ترمينځه د منافعې د تقيسمولو څه صورت نهٔ دې متعين کړې شوې د دې وجې نه دا مضاربتِ فاسده دې،دواړه فريقه دې توبه وکړی او دا معامله دې فوراً ختمه کړی، ټوله منافع به زيد ته ورکولې کيږی او تاجر ته به د هغهٔ د کار په مناسبت سره اجر(يعنی اجرِمثل) ورکولې کيږی ،کوم چې به د منافعې د تقسيم د پاره ډ متعين کړې شوو صورتونو کښې د يو صورت نه زياته نهٔ وی.

قال فی الهندية: ومنها ان يکون نصيب المضارب من الربح معلوما علی وجه لا تنقطع به الشرکة فی الربح کذا فی المحيط. (عالمگيرية ص ۲۸۷ ج ٤)

وقال شرح التنوير: واجارة فاسدة ان فسدت فلا ربح للمضارب حينئذ بل له اجر مثل عمله مطلقا ربح اولا بلا زيادة علی المشروط.(ردالمحتار ص۴۳۹ ج۴)

۳ - دا رپيسې د تاجر سره امانت دی،او د دې زکوة په هر صورت کښې د زيد په ذمه دې. والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۳ رمضان ۱٤۰۲ هجری

## په مضاربت کښې به د ثمن د اخستلو خرچ په چا باندې وی؟

**سوال:**- که چیرې مضارب د ثمن د دین د اخستلو دپاره په تلو راتلو باندې خرچ کوی نو دا خرچ به له کوم ځائ نه ادا کولې شی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دین که چیرې په دې ښار کښې وی نو ددې خرچ به په مضارب باندې وی، او که نه په بل ښار کښې وی نو د مضاربت د مال نه به ادا کولې شی، او که چیرې د دین نه خرچ زیات شو نو چې څومره ترې نه زیات شو هغهٔ به په مضارب باندې وی.

قال الامام العلائی رحمه الله: افترقا و فی المال دیون و ربح یجبر المضارب علی اقتضاء الدیون اذ حینئذ یعمل بالاجرة والا ربح لا جبر لانه حینئذ متبرع و یؤمر بأن یوکل المالک علیه لانه غیر العاقد

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله بالاجرة) ظاهره ولو کان الربح قلیلا قال فی شرح الملتقی ومفاده ان نفقة الطلب علی المضارب و هذا لو الدین فی المصر والا ففی المضاربة قال فی الهندیة و ان طال سفر المضارب و مقامه حتی اتت النفقة فی جمیع الدین فان فضل علی الدین حسب له النفقة مقدار الدین و ما زاد علی ذلک یکون علی المضارب کذا فی المحیط (رد المحتار ص ۵۰۳ ج ۴) والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۷ جمادی الاولی ۱۳۸۷ هجری

## د مضارب د نفقې حکم

**سوال:**- د مضارب خرچې به د مضاربت د مال نه وی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** مضارب که چیرې د تجارت د پاره سفر کوی نو د هغهٔ خوراک څښاک، لباس، سورلئ، او څومره خرچ چې عادةً د تاجرانو معمول وی، دا ټول به د مال د مضاربت نه ادا کولې شی، او که چیرې په خپل ښار کښې کار کوی نو نفقه به د هغهٔ د خپل مال نه وی، د علاج خرچ به په هر حال کښې مضارب په خپله کوی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: واذا سافر ولو یوما فطعامه وشرابه وکسوته ورکوبه (الی) وکل ما یحتاجه عادة ای فی عادة التجار بالمعروف فی مالها لو صحیحة لا فاسدة لانه اجیر فلا نفقة له کمستبضع و وکیل و شریک کافی وفی الاخیر خلاف وان عمل فی المصر سواء ولد فیه او اتخذه دارا فنفقته فی ماله کدوائه علی الظاهر (رد المحتار ص ۵۰۴ ج ۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲٤ ذی الحجه ۱۳۹۲ هجری

## په مضاربت کښې د نقصان تفصیل

**سوال:**- زید د کاروبار د پاره په دریمه حصه نفع باندې د بکر نه دوه زره روپئ اخستې وې، په

دې شرط باندې چې کار به زید کوی، البته په دې کښې څه روپئ د زید هم دی. اوس که چیرې په دې کاروبار کښې څه نقصان وشی نو آیا زید به هم په دې نقصان کښې شریک وی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بکر دوه زره روپئ او د زید چې کومې روپئ دی نو دا مجموعه راس المال دې یعنی اصل دې، او نقصان به ددې تجارت نه د حاصلې شوې نفعې نه ادا کولې شی. البته که دا نقصان د منافعې نه نۀ شی پوره کیدلې نو د اصل مال نه به د حصو په مقدار دا نقصان ادا کولې شی.

قال الامام الحصکفی رحمه الله: وما هلك من مال المضاربة يصرف الى الربح لانه تبع فان زاد الهالك على الربح له يضمن ولو فاسدة من عمله لانه امين. (ردالمحتار ص۵۳۶ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ رمضان ۱۳۸۷ هجری

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**:- زید بکر ته اووئیل چې د بوسو کاروبار کوو. پیسې به تۀ راکړې، او ځائ به زما وی. کوم نفع او نقصان چې کیږی نو هغه به نیم په نیمه وی، آیا دا معامله روا ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نقصان کښې د شرکت شرط باطل دې، لیکن سره د دې هم مضاربه صحیح ده، ددې شرط هیڅ اعتبار نشته دې، په مضاربه کښې ټول نقصان په رب المال باندې راځی، البته د منافعې کیدلو نه پس به نقصان د منافعې نه پوره کولې شی، که په دغې باندې پوره نۀ شی نو باقی نقصان به په رب المال باندې راځی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وفی الجلالية كل شرط يوجب جهالة فی الربح او يقطع الشركة فيه يفسدها والا بطل الشرط وصح العقد اعتبارا بالوكالة.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله بطل الشرط) كشرط الخسران على المضارب س. (ردالمحتار ص۵۳۰ ج۴)

قال فی التنوير: وما هلك من مال المضاربة يصرف الى الربح فان زاد الهالك على الربح لم يضمن وان قسم الربح وبقيت المضاربة ثم هلك و المال او بعضه ترادا الربح لياخذ المالك راس المال وما فضل بينهما وان نقص لم يضمن. (ردالمحتار ص۵۳۶ ج۴)

وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله: فكل شرط يؤدی الى جهالة الربح فهی فاسدة وما لا فلا مثل ان يشترط ان تكون الوضعية على المضارب او عليهما فهی صحيحة وهو باطل. (البحر الرائق ص۲۶۴ ج۷) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۴ ذی الحجه ۱۳۸۹ هجری

## په رب المال باندې د کار شرط لګول مفسد د عقد دی

**سوال**:- زید څلور زره روپۍ عمرو او بکر ته د کاروبار د پاره ورکړې او دا شرط ئې په کښې هم ولګولو چې د کاروبار څه کار به د عمرو په ذمه وی او څه کار به د بکر په ذمه وی،او بله دا چې زید به هم دوی سره یو ځائ کار کوی،آیا شرعاً دا معامله روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**:

په مضاربه کښې په رب المال باندې د کار کولو شرط لګول صحیح نهٔ دی،دا مضاربۀ فاسده ده:

**قال فی التنویر :و اشتراط عمل رب المال مع المضارب مفسد.(ردالمحتار ص۵۰۳ ج۴)والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۲۶ ربیع الاول ۱۳۹۱ هجری

## په مضاربه کښې د نفعې تعیین کول روا نهٔ دی

**سوال**:- زید د عمرو نه د کاروبار د پاره پیسې واخستې،او دا خبره ئې ورسره وټاکله چې هره میاشت به تا ته زهٔ دومره (مثلا څلور سوه روپۍ)د منافعې نه درکوم،آیا دا معامله صحیح ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مضاربت کښې د یو فریق د پاره هم د نفعې د تعیین شرط روا نهٔ دې، دا مضاربۀ فاسده ده،د رب المال ټاکلې شوې نفع اخستل د سود کیدلو د وجې نه حرامه ده.

**قال فی التنویر:و کون الربح بینهما شائعا(ردالمحتار ص۵۰۲ ج۴)والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۲۵ ربیع الثانی ۱۳۹۴ هجری

## په مضاربه کښې راس المال مضارب ته سپارل شرط دی

**سوال**: د مضاربت د لاندینو صورتونو څه حکم دې؟

۱- زید له بکر سره د مضاربت معامله وکړه، لیکن زید پیسې خپل ځان سره ساتل غواړی،او بله دا چې په کاروبار کښې په خپله هم شریکیدل غواړی،شرعاً دا صورت صحیح دې او که نه؟

۲ - د معاملې کولو په وخت کښې رب المال یوه مخصوصه اندازه پیسې مضارب ته د ورکولو خبره کړې وه، لیکن رب المال دا پیسې د یو ځائ ورکولو په ځائ باندې په لږه لږه ورکوی، آیا په مضاربت کښې دا صورت روا دې که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** :

۱ - دا صورت روا نهٔ دې،په مضاربه کښې دا ضروری دی چې رب المال پیسې مضارب ته وسپاری او کاروبار به هم مضارب کوی،د رب المال به په دې کښې هیڅ کار نهٔ وی

۲- څومره پیسې چې دې مضارب ته ورکوی نو په هغومره پیسو کښې به مضاربت صحیح

کیږی خو په دې شرط چې کاروبار هم د مضارب په ذمه پریږدی.

قال العلائی رحمه الله : و کونه مسلما الی المضارب لیمکنه التصرف بخلاف الشرکة لان العمل فیها من الجانبین (ردالمحتار ص۔۳ ج۔) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۴ رمضان ۱۳۹۵ هجری

## په مضاربه کښې د نفعې نه د فیصدی تعیین کول ضروری دی

**سوال:**- الف او ب په یو ځائ کاروبار کول غواړی، سرمایه او خواری د دواړو مشترکه وی، اوس ج څه پیسې دوی ته ورکوی او په نفع کښې شریکیدل غواړی، او هغهٔ به محنت نه کوی، آیا داسې کول روا دی، چې الف او ب دې هره میاشت په څه اندازې سره هغهٔ له نفع ورکوی، مثلاً کله سل کله دوه سوه کله کم او کله زیات۔ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په مضاربه کښې د نفعې نه څه فیصدی مقدار مقررول ضروری دی لهذا دا معامله ناروا ده۔ والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۰ شوال ۱۳۹۵ هجری

## د مضارب له شرط نه خلاف کول

**سوال** : الف ، با ته اووئیل چې تهٔ ماله شل زره روپئ په مضاربت باندې راکړه، زهٔ به د سروس کمپنئ نه پیزار اخلم، د دغه کمپنئ نفع څوارلس فیصده ده، د دې نه به لس فیصده زهٔ تا له درکوم او څلور فیصده به زهٔ په خپله اخلم، دا معامله دغسې وشوه با الف له پیسې ورکړې، لیکن الف وعده خلافی وکړله او مال ئې د بلې کمپنئ نه واخستلو، دا معامله د با په علم کښې هم وه، هغه په دې چپ وو څه ئې نه وئیل، بیا با ورله نورې هم پنځه زره روپئ ورکړې، د مجموعې ۲۵ زره روپو سره الف کاروبار کولو، اوس با د لس فیصده منافعې مطالبه کوی، تپوس دا کول دی چی دا مضاربت په کوم کښې چې مضارب د رب المال د حکم خلاف ورزی کړې ده، شرعا روا دی او که نه؟ په دې کښې به منافع په کوم تناسب سره تقسیمیږی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په سوال کښې د ذکر شوی تفصیل نه دا خبره ثابتیږی چې د دویمې کمپنئ نه په مال اخستلو باندې رب المال راضی وو، لهذا دا منافع به د شرط مطابق تقسیمیږی.

که چیرې مضارب د رب المال د شرط نه خلاف د هغهٔ د رضا نه بغیر څه کار وکړو نو دا شراء به د مضارب دپاره وی، او که چیرې نقصان وشو نو هغهٔ به هم په مضارب باندې وی، منافع ئې د وجې د خبث نه واجب التصدق ده، په کوم څیز کښې چې د غیر د حق د وجې نه خبث راشی نو د هغې د صدقه کولو په ځائ هغه مالک ته واپس کول واجب دی، لهذا ټوله منافع رب المال ته ملاویدل پکار دی.

قال الامام المرغینانی رحمه الله : فیکون سبیله التصدق فی روایة و یرده علیه فی روایة لان الخبث لحقه وهذا

اصم (هداية ج۳ كتاب الكفالة)

ليكن رب المال په منافع كښې د حصې د متعين كولو نه د حصې نه د زياتې منافعې په اسقاط باندې راضى شوې دې، لهذا د منافعې نه به په قدر د حصې دهٔ ته ورکول كيږى، كما قالوا فى الاجارة الفاسدة. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۵ جمادى الاولى ۱۳۹۷ هجرى

## د مضارب له خپل ځان يا اصولو او فروعو سره معامله كول

**سوال**:- زيد په عقد د مضاربت سره د خپل يو دوست نه د اعمل ما شئت په اختيار باندې څه پيسې واخستلې، نو آيا دې د خپل نفس يا د خپلو اصولو او فروعو سره معامله كولې شى او كه نه؟ كه چيرې نه شى كولې ليكن ورانډې ئې د جهالت د وجې نه په څه زمانه كښې دا كړې دى نو د دې د تلافئ به څه صورت وى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مضارب د رب المال وكيل وى، او د وكيل په حكم كښې دا تفصيل دې: ۱- وكيل خپل نفس او اوصولو او فروعو سره عقد نهٔ شى كولې.

۲ - كه چيرې مؤكل دا اووائى (چا سره چې دې خوښه وى معامله ورسره كولې شې) نو بيا اصولو او فروعو سره عقد صحيح دې، ليكن خپل نفس او وړو بچو سره ئې عقد صحيح نهٔ دې.

۳ - كه چيرې مؤكل د عقد بالنفس والولد الصغير هم صراحةً اجازت وركړى، نو په دې كښې د جواز او د عدم جواز دواړه قولونه روا دى.

قال العلامة الحصكفى رحمه الله: لا يعقد وكيل البيع والشراء والاجارة والصرف والسلم ونحوها مع من ترد الشهادة له للتهمة وجوازه بمثل القيمة الا من عبده ومكاتبه الا اذا اطلق له المؤكل كبع ممن شئت فيجوز بيعه لهم بمثل القيمة اتفاقا كما يجوز عقده معهم باكثر من القيمة اتفاقا اى بيعه لا شراؤه باكثر منها اتفاقا كما لو باع باقل منها بغبن فاحش لا يجوز اتفاقا وكذا بيسير عنده خلافا لهما ابن ملك وغيره وفى السراج لو صرح بهم جاز اجماعا الا من نفسه وطفله وعبده غير المديون.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله الا من نفسه) وفى السراج لو امره بالبيع من هؤلاء فانه يجوز اجماعا الا ان يبيعه من نفسه او ولده الصغير او عبده ولا دين عليه فلا يجوز قطعا وان صرح به المؤكل اه منح الوكيل بالبيع لا يملك شراءه لنفسه لان الواحد لا يكون مشتريا وبائعا فيبيعه من غيره ثم يشتريه منه وان امره المؤكل ان يبيعه من نفسه واولاده الصغار او ممن لا تقبل شهادته فباع منهم جاز بزازية كذا فى البحر ولا يخفى ما بينهما من المخالفة وذكر مثل ما فى السراج فى النهاية من المبسوط ومثل ما فى البزازية فى الذخيرة عن

الطحاوي وکان في المسألة قولين خلافا لمن ادعى انه لا مخالفة بينهما. (رد المحتار ص ۵۰۲ ج ۴) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۹ ذی قعده ۱۴۰۰ هجری

## د مضارب د خپل دکان کرایه اخستل

**سوال**:- زید او عمرو په خپل مملوکه دکان کښې مشترکه کاروبار شروع کړو. زید دوه زره روپۍ او عمرو څلور زره روپۍ د کاروبار د پاره راوړې. پس ددې نه بکر دوی له راغلو او ورته ئې اووئیل. زما په کښې هم دوه زره روپۍ په طریقه د مضاربت شریکې کړئ. زید او عمرو ورته اووئیل چې مونږ ستا پیسې په کاروبار کښې شریکوو لیکن دوه سوه روپۍ به ترې نه د کال د دکان کرایه اخلو. نوره چې کومه ګټه وشی نو په هغې کښې به مونږ نیمه د خپلې خوارۍ او مزدورۍ اخلو او باقی نیمه به د سرمایې په تناسب سره تقسیموو. بکر دا خبره ومنله. کله چې پوره کال تیر شو نو زر روپۍ ګټه وشوه. زید او عمرو ترې نه دوه سوه روپۍ د کرایې واخستلې. او څلور سوه روپۍ ئې ترې نه د خپلې خوارۍ مزدورۍ واخستلې. باقی پاتې ګټه د سرمایې په تناسب سره په زرو پسې د پنځوسو روپو په حساب سره تقسیم کړې شوې. زید او عمرو ته سل سل روپۍ او بکر ته دوه سوه روپۍ ورکړې شوې. اوس دا معلومول دی چې آیا سرعًا دا کاروبار روا دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د یو قول مطابق د رب المال په اجازت سره مضارب د خپل نفس سره عقد کولې شی. لهذا د دکان کرایه اخستل روا دی. **والله سبحانه وتعالى اعلم.**

۶ ذی الحجه ۱۴۰۱ هجری

# كتابُ الوَديعة وَالعارية وَالهبة وَالصدقة

## د نابالغه سره وديعت (امانت) ايښودل صحيح دی، او د هغه د حفظ په ترک سره ضمان لازم دې

**سوال**: كه صبی مودع حفاظت ونه كړی نو په دهٔ باندې ضمان شته او كه نه؟ په درمختار كښې دی چه: كون المودع مكلفا شرط لوجوب الحفظ عليه فلو اودع صبيا فاستهلكها لم يضمن. بينوا توجروا.

**الجوا ب و منه الصدق والصواب**: د ماذون صبی سره وديعت ايښودل صحيح دی. او په ترک د حفظ سره په دهٔ باندې ضمان شته. د درمختار په ذكر كړې شوې جزئيه كښې د صبی نه مراد محجور صبی دې، ځكه چې لږ وړاندې لاړ شې نو هم په درمختار كښې په خپله دا جزئيه ده: فان كان الصبی والمعتوه ماذونا لهما ثم ماتا قبل البلوغ والافاقة ضمنا.

او د شامې جزئيه: (ويستثنى من ايداع الصبی ما اذا اودع صبی محجور مثله وهی ملك غيرهما فللمالك تضمين الدافع والاخذ الخ) . (ردالمحتار ص۵۰۰ ج۴) كښې هم په دې باندې دلالت دې.

او د رافعی تعليل هم په دې باندې مشعر دې:

حيث قال: لان الصبی من عادته تضييع الاموال فاذا سلمه اليه مع علمه بهذه العادة فكانه رضی بالاتلاف (التحرير ص۲۳۵ ج۲)

په عالمگيريه كښې خو په دې باندې بالكل تصريح ده: ومنها عقل المودع فلا يصح قبول الوديعة من المجنون و الصبی الذی لا يعقل و اما بلوغ فليس بشرط عندنا حتى يصح الايداع من الصبی المأذون (عالمگيرية ص۳۳۸ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۹ جمادی الاولی ۱۳۷۵ هجری

## د شودو د پاره څاروی په سوال (يعنی مستعار) اخستل

**سوال**: د چا نه غوا يا ميښه شودو د پاره عاريتاً راوستل روا دی او كه ناروا؟ بله دا چې دغه شان په اجارې سره راوستل روا دی او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجوا ب و منه الصدق والصواب**: ميښه د شودو د پاره په اجاره باندې اخستل ناروا دی. البته عاريتاً اخستل روا دی.

قال فی شرح التنوير: استاجر شاة لارضاع ولده او جديه لم يجز لعدم العرف.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: ولانها وقعت على اتلاف العين (ردالمحتار ص۳۲ ج۵) والله سبحانه وتعالى

اعلم.                ۱۷ ذی الحجه ۱۳۸۷ هجری

## دمستعار څیز بل ته د ورکولو حکم

**سوال**:- زید یو څیز د خپل استعمال د پاره په عاریت سره واخستلو ،هغه همدا څیز بل چا له هم په عاریت سره ورکولې شی او که نه؟ او په دې حقله د اصل مالک نه اجازت اخستل ضروری دی او که نه بې د اجازت نه ئې بل چاته ورکولې شی.-بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اعارې څلور صورتونه دی:

۱- بل ته د ورکولو نه ئې صراحتاً منع کړې وی.

۲- د مستعمِل تعیین ئې کړې وی.

۳- سکوت ئې کړې وی.

۴- د عام اجازت ئې تصریح کړې وی.

په وړومبی صورت کښې غیر له ورکول روا نهٔ دی.

په دویم صورت کښې دا تفصیل دې چې که چیرې دغه څیز د مستعمِل په اختلاف سره متاثره کیږی، نو بل له ورکول ئې روا نهٔ دی او که داسې نهٔ وی نو روا دی.

په دریم صورت کښې غیرله وروکول روا دی، لیکن چې کوم یو څیز د مستعمِل په اختلاف سره متاثره کیږی نو هغهٔ بیا په خپل استعمال کښې د راوستلو نه پس بل له نهٔ شی ورکولې،او که بل له ئې ورکړی نو په خپله ئې بیا نهٔ شی استعمالولې.

په څلورم صورت کښې عام اجازت دې (ردالمحتار ص۵۰۳ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲ ربیع الاول ۱۳۹۱ هجری

## د امانت د ضائع کیدلو حکم

**سوال**: زهٔ خپل دکان له د سودا اخستلو د پاره سکهر ته روان ووم، چې یو بل دکاندار ما له پنځه سوه روپئ راکړې چې ما له هم د ځان سره سودا راوړه، ما د هغه پنځه سوه روپئ او خپلې پنځه سوه روپئ یو ځائ په جیب کښې واچولې،او په همدغه جیب کښې زما پنځه لس روپئ نورې هم وې، او زما نورې پیسې زما په بل جیب کښې وې،هر کله چې زهٔ سکهر ته ورسیدلم نو ما په جیب کښې وکتل چې هغه پنځه لس روپئ خو شته لیکن کومې زر روپئ چې ما یو ځائې تاو کړې وې هغه په کښې نهٔ وې،معلومه نده چې هغهٔ په لاره کښې رانه چیرته پریوتلې او که نه چا رانه وښکلې ما ته ئې هیڅ پته نشته ،مهربانی وکړئ تاسو ما ته دا اووائې چې آیا هغه پنځه سوه روپئ به زهٔ د خپله جیبه ادا کوم؟ حال دا دې چې هغې سره یو ځائ زما هم پنځه سوه روپئ نقصان شوې

دي ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرې دا امانت پنځه سوه روپئ دې داسې ايښې وی چې په هغې کښې او ستا په پيسو کښې څه امتياز وو (يعنی چې پيژندلې شوې چې دا ستا دی او دا د هغهٔ دی) نو بيا خو د هغې په ورکيدلو باندې په تا څه ضمان نشته دې،او که نه چرې خپلو ذاتی پيسو سره دې داسې يو ځائ کړې وې چې په دغه پيسو کښې او ستا په ذاتی پيسو کښې څه امتياز نهٔ کيدلو نو بيا ددې پيسو مالک د دغه پيسو ستا نه مطالبه کولې شی،البته که چيرې دغه دکاندار ددې پيسو ستا د خپلو پيسو سره د يو ځائ کولو تا ته صراحتاً اجازت درکړې وی او يا د يو ځائ کولو عام رواج وی نو بيا په تا باندې څه ضمان نشته دې.والله سبحانه وتعالی اعلم

٤ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## د پورتنی سوال په شان يوبل سوال

**سوال**:- چا سره د وديعت په توګه څه څيز کيښودلې شو،هغهٔ په اذنِ عام يا په اذنِ خاص سره دا خپل مال سره يو ځائ کړو،او دا مخلوط مال ضائع شو، نو په دهٔ باندې ضمان شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که په اذنِ عام يا خاص سره ئې يو ځائ کړې وی نو ضمان نشته.

قال فی التنويرک و كذا لو خلط المودع بماله بغير اذن بحيث لا تتميز ضمنها وان باذن اشتراكا كما لو اختلطت بغير صنعه . قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله بغير صنعه) فان هلك هلك من مالهما جميعا و يقسم الباقی بينهما علی قدر ما كان لكل واحد منهما كالمال المشترك (ردالمحتار ص... ج...) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۳ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## د مستودع غفلت موجب د ضمان دې

**سوال**:- عمرو د زيد سره نهه زره شپږ سوه تومانه (ايرانی پيسه) په توګه د امانت کيښودل،او د يو څو ورځو نه پس ئې زيد ته اووئيل،چې زما ددې امانت نه فلانکی له څلور زره تومانه ورکړه،او فلانکی له زر تومانه ورکړه او فلانکی له ترې پنځه سوه تومانه ورکړه ،د دې ټولو نومونه ئې وليکل او زيد له ئې ورکړل،او ورته ئې اووئيل چې دا ذکر کړې شوې پيسې دې کسانو له زر تر زره ورکړه، امانتدار زيد سستی وکړه او دا پيسې ئې دغه خلقو ته حواله نهٔ کړې، په همدغه هفته کښې حکومت اعلان وکړو چې د پنځو سوو تومانو لوټ چې ايرانئ پيسه ده بنده به شی، چا سره چې دا لوټ وی هغه دې په دولسو ورځو کښې دننه دننه په بانک کښې داخلې کړی،ددې نه پس به بيا دا لوټ نهٔ شی قبلولې،دا پيسې کومې چې د زيد سره امانت وې په دې کښې پنځه زره تومانه د

پنځه پنځه سوو تومانو د لوټونو وو .امانت دار د دې خبرې خيال ونهٔ کړو چې په دې کنبې د پنځه پنځه سوو لوټونه هم شته.او چې دا په بانک کنبې داخلې کړم او ددې په ځائ نورې پيسې راواخلم. تر دې چې د حکومت له اړخه د اخستلو تاريخ ختم شو، لهذا په دې طريقه دا پنځه زره تومانه ضائع شو .آيا د امانت دار په ذمه ددې ادا کول ضروری دی او که نه؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**:

**سوال**: په دې کنبې د مستودع غفلت ښهٔ ښکاره دې،د دې وجې نه په دهٔ باندې ضمان واجب دې:

قال فی الهندية: و اما حکمها فوجوب الحفظ علی المودع و صيرورة المال امانة فی يده و وجوب ادائه عند طلب مالکه کذا فی الشمنی (عالمگيرية ص۳۳۸ ج۴)

وقال فی شرح التنوير: ولو منعه الوديعة ظلما بعد طلبه لرد وديعة فلو لحملها اليه لم يضمن ابن ملك بنفسه ولو حکما کوکيله بخلاف رسوله ولو بعلامة منه علی الظاهر قادرا علی تسليمها ضمن و الا بأن كان عاجزا او خاف علی نفسه او ماله بأن كان مدفونا معها ابن ملك لا يضمن كطلب الظالم (ردالمحتار ص۵۰۰ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۳ شوال ۱۴۰۰ هجری

## د ماشوم هبه کول روا نهٔ دی

**سوال**:- چې نابالغه هلک چا له څه څيز ورکړی نو اخستل ئې روا دی او که نه؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه ! روا نهٔ دی .

قال فی شرح التنوير: وشرائط صحتها فی الواهب العقل والبلوغ والملك فلا تصح هبة صغير و رقيق ولو مكاتبا.(ردالمحتار ص۵۱۰ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۵ رجب ۱۳۷۴ هجری

## هبه کول بې د قبض نه معتبره نهٔ دی

**سوال**:- د محمد هاشم يو ځوئ وو او يوه ئې لور وه.هغهٔ خپل دواړه کورونه د گواهانو په وړاندې خپل ځوئ ته هبه کړل او په استامپ پيپر ((عرفی قواله)) باندې ئې د هغه نوم وليکلو . د محمد هاشم دا گمان وو چې ورور به خپلې خور سره حسنِ سلوک کوی. ليکن د څه مودې په تيريدلو باندې پلار د خپل ځوئ د ناستې پاستې نه غير مطمئن شو او هغهٔ د گواهانو په وړاندې د دې هبې نه رجوع وکړه.او دواړه کورونه ئې له سره تقسيم کړل او يو ئې د ځوئ په نوم کړو او بل ئې د لور په نوم کړو. ځوئ له ئې هغه کور ورکړو کوم باندې چې د هغهٔ قبضه وه.او لور له ئې هم هغه کور ورکړو په کوم باندې ئې چې د لور قبضه وه.او کاغذ هم وليکلې شو.آيا د پلار دا رجوع کول

او بیا د سره ددې هبه کول روا دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هبه بې د قبضې نه نۀ تامیږی.د خوئ قبضه په یو کور باندې وه.د دې وجې نه دویم کور په کوم چې د دۀ د خور قبضه وه په هغې کښې هبه صحیح نۀ شوه.لهذا د لور په حق کښې د پلار دغه هبه کول صحیح دی او نافذه ده.البته که چیرې په دواړو کورونو باندې د خوئ قبضه تامه شوې وای نو بیا د لور په حق کښې د دویم کور هبه صحیح نۀ وه.

**قال فی شرح التنویر: و تتم الهبة بالقبض الکامل و لو الموهوب شاغلا لملك الواهب لا مشغولا به.**

**(ردالمحتار ص۵۱۰ ج۴)** ۲ رجب ۱۳۸۶ هجری

## له هبې نه رجوع کول

**سوال**:- پلار خوئ له د وادۀ کولو نه پس د خپلې زمکې څه حصه هغۀ ته هبه کړه او هغۀ ئې د کور نه بیل کړو، باوجود د هبې کولو نه دغه زمکه د پلار په نوم وه. اوس د واده د اتۀ کالو تیریدلو نه پس پلار وائی، چې زۀ خپله زمکه واپس اخلم.ځکه چې نوسی به زما په وراثت کښې حصه دار نۀ جوړیږی، لهذا زۀ په خپل ژوند کښې هغوی له څه ورکول غواړم.آیا د پلار ددې هبې نه رجوع کول روا دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې پلار خوئ ته دهبې کولو نه پس هغۀ له قبضه هم ورکړې وی نو بیا د هغه رجوع روا نۀ ده.اګرچې په کاغذونو کښې زمکه هم د هغه په نوم وی،البته دا خبره ده که چیرې خوئ ئې مالک کړې نۀ وی،صرف د وخت تیرولو دپاره ئې زمکه هغۀ ته حواله کړې وه. نو دا زمکه بیا هم د وړاندې په شان د پلار ملک دې.لهذا د خوئ نه ئې واپس اخستې شی. ښۀ خبره ده چې په خپل ژوند کښې نوسو ته څه هبه کړی.**واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم.**

۲۹ ربیع الثانی ۱۴۰۰ هجری

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**:- چا ته د څه ځیز د هبه کولو نه پس د هغۀ نه د دغې هبې د واپس اخستلو په جواز کښې څه تفصیل دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې مختلف صورتونه دی د کومو احکام چې مختلف دی:

۱ - د موهوب له په رضا په هر حال کښې رجوع روا ده.

۲ - د قاضی د قضاء نه رجوع صحیح ده.

۳ - د هبې د قبلولو نه پس ئې ددې څه عوض ورکړې وی.نو بیا هم په ذریعه د قضاء رجوع کولې شی

۴- موهوب له ذی رحم محرم وی،نو بیا په قضاء د قاضی سره هم رجوع صحیح نهٔ ده.که چیرې هغهٔ ئې په خپلې رضا سره واپس کړی نو اخستل ئې روا دی.**والله سبحانه وتعالی اعلم.**

**۲۳ ذی قعده ۱۴۰۰ هجری**

## د معتوه هبه

**سوال**: چې معتوه خپل څه څیز چا ته هبه کړی نو آیا شرعا دا هبه معتبره ده اوکه نه؟ او دې په خپل مال کښې څه څه تصرف کولې شی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د معتوه هبه صحیح نهٔ ده،د دهٔ په تصرفاتو کښې دا تفصیل دې:

په کومو تصرفاتو کښې چې د ده نفع وی نو دغه تصرفات بې د اذن د ولی نه هم معتبر دی، لکه هبه قبلول.

په کومو تصرفاتو کښې چې د ده نقصان وی،هغه په اذن د ولی سره هم معتبر نهٔ دی.لکه هبه ورکول.

په کومو تصرفاتو کښې چې د نفعې او د نقصان دواړو احتمال وی،په هغې کښې د ولی اذن ضروری دې،لکه بیعه او شراء.

د ولی نه مراد پلار یا د هغهٔ وصی او یا نیکهٔ دې،د ترهٔ اذن کافی نهٔ دې،چې پلار یا نیکهٔ ئې نهٔ وی نو مسلمان حاکم یا د هغهٔ نائب به ئې ولی وی،که چیرې مسلمان حاکم نهٔ وی او یا دې اړخ ته توجو نه کړی نو چې په مقامی خلقو کښې دیندراه او با اثره خلق څوک متعین کړی نو د هغهٔ اذن ضروری دې.

قال الامام الحصکفی رحمه الله: و تصرف الصبی و المعتوه الذی یعقل البیع والشراء ان کان نافعا محضا کالاسلام والاتهاب صح بلا اذن وان ضارا کالطلاق والعتاق والصدقة والقرض لا وان اذن به ولیهما وما تردد من العقود بین نفع وضرر کالبیع والشراء توقف علی الاذن حتی لو بلغ فاجازه نفذ فان اذن لهما الولی فهما فی شراء وبیع کعبد ماذون فی کل احکامه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله وولیه ابوه) ای الصبی وفی الهندیة والمعتوه الذی یعقل البیع یأذن له الاب والوصی والجد دون الاخ والعم وحکمه حکم الصبی.(ردالمحتار ص ۱۲۱،۱۲۲ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

**۲۶ محرم ۱۳۸۷ هجری**

## د مشترک څیز هبه

**سوال**:- یو څو شریکاوالو خپل یو مشترک څیز چا یو سړی ته هبه کړو، یو عالم فرمائی چې دا

هبه صحیح نهٔ ده، په دې کښې زمونږ رهنمائی اوفرمایئ، بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د هبة المشاع دا صورت روا دې، د هبې د صحت نه مانع هغه شیوع دې کوم چې موهوب له سره وی.

**ولا تصح الهبة للشريك لانه لم يوجد الافراز المشروط لتمام القبض والله سبحانه وتعالى اعلم.**

۲۵ شوال ۱۳۸۷ هجری

## د اولاد په هبه کښې تفاضل

**سوال**:- اولاد ته په هبه ورکولو کښې په تفاضل کښې څه حکم دې؟په تفصیل سره ئې راته ولیکئ. والاجر علی الله الکریم۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱- که د نورو اضرار مقصود وی نو بیا مکروهِ تحریمی دی. قضاءً نافذ دی او دیانتهً واجب الرد دی.

۲- چې اضرار مقصود نهٔ وی او څه وجه د ترجیح هم نهٔ وی نو بیا مکروهِ تنزیهی دی، په ذکورو او اناثو کښې تسویه مستحبه ده.

۳ - د دینداری، د خدمت کولو، یا د دینی خدمت مشغولا لرلو یا د احتیاج وغیره د وجوهو په بناء باندې تفاضل مستحب دې.

۴ - بې دینه اولاد له د قُوت د مقدار نه زیات نهٔ دی ورکول پکار، د هغوی محرومول او زیاتی مال په دینی کارونو کښې خرچ کول مستحب دی.

قال الامام الحصكفي رحمه الله: وفي الخانية لا باس بتفضيل بعض الاولاد في المحبة لانها عمل القلب وكذا في العطايا ان لم يقصد به الاضرار وان قصده يسوى بينهم يعطى البنت كالابن عند الثاني وعليه الفتوى ولو وهب في صحته كل المال للولد جاز واثم.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله وعليه الفتوى) اى على قول ابى يوسف رحمه الله من ان التنصيف بين الذكور والانثى افضل من التثليث الذى هو قول محمد رحمه الله رملى (ردالمحتار ص۵۰۲ ج۴)

وقال الامام طاهر بن عبد الرشيد رحمه الله: وفي الفتاوى رجل له ابن وبنت اراد ان يهب لهما شيئا فالافضل ان يجعل للذكر مثل حظ الانثيين عند محمد رحمه الله وعند ابى يوسف رحمه الله بينهما سواء هو المختار لورود الآثار.

ولو وهب جميع ماله لابنه جاز فى القضاء وهو اثم نص عن محمد رحمه الله هكذا فى العيون

ولو اعطى بعض ولده شيئا دون البعض لزيادة رشده لا باس به وان كانا سواء لا ينبغى ان يفضل

ولو كان ولده فاسقا فاراد ان يصرف ماله الى وجوه الخير ويحرمه عن الميراث هذا خير من تركه لان فيه

اعانة على المعصية.

ولو كان ولده فاسقا لا يعطى له اكثر من قوته (خلاصة الفتاوى ص۴۰۰ ج۴)

و كذا نقله عنه العلامة ابن نجيم رحمه الله عليه وقرره.

ونقل ايضا عن المحيط: يكره تفضيل بعض الاولاد على البعض في الهبة حالة الصحة الا لزيادة فضل له في الدين وان وهب ماله كله لواحد جاز قضاءً وهو اثم (البحر الرائق ص۲۸۸ ج۷)

وقال العلامة الطحطاوى رحمه الله عليه: (قوله و كذا في العطايا) ويكره ذلك عند تساويهم في الدرجة كما في المنح و الهندية اما عند عدم التساوى كما اذا كان احدهم مشتغلا بالعلم لا بالكسب لا بأس ان يفضله على غيره كما في الملتقط اى ولا يكره وفي المنح روى عن الامام ان لا بأس به اذا كان التفضيل لزيادة فضل له في الدين وفي خزانة المفتين ان كان في ولده فاسق لا ينبغى ان يعطيه اكثر من قوته كيلا يصير معينا له في المعصية انتهى وفي الخلاصة ولو كان ولده فاسقا فاراد ان يصرف ماله الى وجوه الخير ويحرمه عن الميراث هذا خير من تركه انتهى اى للولد و علله في البزازية بالعلة السابقة (قوله يسوى بينهم) قال في البزازية الافضل في هبة البنت والابن التثليث كالميراث وعند الثانى رحمه الله عليه التنصيف وهو المختار ولو وهب جميع ماله من ابنه جاز قضاء وهو اثم نص عليه محمد رحمه الله عليه اه فانت ترى نص البزازية خاليا عن قصد الاضرار وقال في الخانية ولو وهب رجل شيئا لاولاده في الصحة و اراد تفضيل البعض على البعض في ذلك لا رواية لهذا في الاصل عن اصحابنا و روى عن الامام رحمه الله عليه ان لا بأس به اذا كان التفضيل لزيادة فضله في الدين و ان كانا سواء يكره و روى المعلى عن ابى يوسف رحمه الله عليه انه لا بأس به اذا لم يقصد به الاضرار وان قصد به الاضرار سوى بينهم يعطى الابنة ما يعطى الابن وقال محمد رحمه الله عليه يعطى للذكر ضعف ما يعطى للانثى والفتوى على قول ابى يوسف رحمه الله عليه (طحطاوى على الدر ص۴۰۰ ج۳) والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۲ شوال ۱۳۸۸ هجرى

## د هاشمي د پاره نفلي صدقه روا ده

**سوال**:- آیا هاشمي نفلي صدقه اخستې شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**:

هاشمي د پاره د صدقهٔ واجبه اخستل روا نهٔ دي، البته نفلي صدقې اخستلې شي.

قال الامام المرغينانى رحمه الله عليه: ولا تدفع الى بنى هاشم لقوله عليه السلام يا بنى هاشم ان الله تعالى حرم عليكم غسالة الناس واوساخهم و عوضكم منها بخمس الخمس بخلاف التطوع لان المال ههنا كالماء يتدنس باسقاط

الفرض اما التطوع بمنزلة التبرد بالماء (هداية ص۲۰۰ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۷ محرم ۱۳۹۳ هجری

## که نابالغ ته هبه وشوه نو د پلار قبضه ئې کافی ده

**سوال**: یو سړی خپلو نابالغو بچو ته څه سرۀ زر یا سپین زر ورکړل. نو آیا د پلار په نیت کولو سره به دا ماشومان د دې سرو او سپینو مالکان شی او که نه د دوی قبضه ضروری ده، که د دوی قبضه ضروری وی نو ددی به څه صورت وی؟ آیا د پلار قبضه په حیثیت د ولی کافی ده؟ او په دې باندې زکوة، صدقه، او صدقة الفطر واجب ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که نابالغه اولاد ته ئې هدیه ورکړه نو د اولاد د ملک د پاره د پلار قبضه هم کافی ده.

قال الامام الحصكفي رحمه الله: وهبة من له ولاية على الطفل في الجملة وهو كل من يعوله فدخل الاخ والعم عند عدم الاب لو في عيالهم تتم بالعقد.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله بالعقد) اى الايجاب فقط كما يشير اليه الشارح كذا في الهامش وهذا اذا اعلمه او اشهد عليه والاشهاد للتحرز عن الجحود بعد موته والاعلام لازم (ردالمحتار ص۱۰۰ ج۴)

په نابالغه باندې زکوة او قربانی واجبه نۀ ده.

قال في التنوير: وشرط افتراضها عقل وبلوغ واسلام وحرية (ردالمحتار ص۲ ج۲)

وفي اضحية التنوير: قيل لا.

وفي الشرح: صححه في الكافي (الى قوله) وهو المعتمد (ردالمحتار ص۲۲۲ ج۵)

البته که چیرې نابالغه صاحب د نصاب وی نو په هغۀ باندې صدقة الفطر واجبه ده. لهذا د دۀ ولی به ئې د دۀ د مال نه ادا کوی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: حتى تجب على الصبي والمجنون اذا كان لهما مال ويخرجها الولي من مالهما. (ردالمحتار ص۸۰ ج۲) والله سبحانه وتعالى اعلم ۲٤ محرم ۱۳۹۵ هجری

## هبه بالشرط

**سوال** - ما قولكم رحمكم الله في الهبة بالشرط هل هو جائز ام يصح ويبطل الشرط؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ان كان الشرط ملائما فيصح الشرط والعقد كلاهما والا فيصح العقد ويبطل الشرط.

قال فی التنویر: ومالا یبطل بالشرط الفاسد القرض والهبة والصدقة الخ

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: کوهبتك هذه المائة او تصدقت علیك بها علی ان تخدمنی سنة نهر فتصح و یبطل الشرط لانه فاسد وفی جامع الفصولین ویصح تعلیق الهبة بشرط ملائم کوهبتك علی ان تعوضنی کذا ولو مخالفا تصح الهبة لا الشرط. (ردالمحتار ص۲۵۲ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳ ذی الحجه ۱۳۹۵ هجری

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال:**- د یو پوهنتون د مامورینو د پاره دا رعایت ورکړې شوې دې چې که د دې پوهنتون مامور د ترقئ د پاره تعلیم حاصلوی نو هغهٔ ته به هره میاشت درې سوه روپئ وظیفه ورکولې شی، خو په دې شرط چې دوه کاله په پوهنتون کښې ماموریت وکړی، که چیرې ددې مودې د پوره کولو نه وړاندې په مینځ کښې ئې د پوهنتون ماموریت پرېښودلو او لاړو نو ده چې څومره وظیفه اخستې ده هغه ټوله به واپس کوی، آیا دا شرط شرعاً صحیح دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا وظیفه هبه ده، او هبه په فاسدو شرطونو سره نهٔ باطلیږی هغه شرط په خپله باطل شی، لهذا د شرط نه خلاف کولو باندې هم د نوکرانو نه د وظیفې پیسې واپس اخستل روا نهٔ دی.

قال فی شرح التنویر: وحکمها انها لا تبطل بالشروط الفاسدة فهبة عبد علی ان یعتقه تصح ویبطل الشرط. (ردالمحتار ص۵۰۶ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۲ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## په هبه بالعوض کښې هم شیوع مانع د صحت دې

**سوال:**- هر کله چې هبه بالعوض په حکم د بیعې کښې ده نو آیا په دې کښې به شیوع د هبې د صحت نه مانع وی او که نه د بیع المشاع په شان به هبه هم صحیح شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا معامله اګرچه انتهاءً بیعه ده، لیکن ابتداءً هبه ده، د دې وجې نه په صورت د شیوع کښې به صحیح نهٔ وی.

قال فی الهندیة: فان کانت الهبة بشرط العوض شرط لها شرائط الهبة فی الابتداء حتی لا یصح فی المشاع یحتمل القسمة ولا یسقط بها الملك قبل القبض الخ. (عالمگیریة ص۳۹۳ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۳ ذی الحجه ۱۴۰۰ هجری

## ((پرې مې ښودلو درته)) په دې سره هبه نهٔ کیږی

**سوال:**- زید د وفات په وخت کښې په وارثانو کښې یوه ښځه یو لور او پنځه خامن پرېښودل، د

مرحوم تۀ له ترکه يو کور دې، اولاد د تقسيم د جګړو نه د بچ کيدلو د پاره خپله خپله حصه مور ته پريښودله، لږ وخت پس مور دا جائداد د جمات په نوم باندې وقف کړو.آيا د مور دا کار کول درست دی او که نه؟ حال دا چې په اولاد کښې ئې څينی بچی غريبانان او تنګدسته هم دی. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په لفظ (پرې مې ښودلو درته) سره د مور ملکيت نۀ ثابتيږی،البته دا خبره ده که اولاد ورته هبه مې کړو، يا در مې کړو ،غوندې الفاظ استعمال کړل،نو دا هبه ده او حکم ئې دا دې، چې که چيرې دا کور وارثانو ته د تقسيمولو په صورت کښې هر حصه دار ته دومره حصه ملاويدله چې دغه حصه د دې حصه دار د پاره قابل د انتفاع وه،نو هبه ئې صحيح نه ده،او که چيرې د هر سړی څان له حصه قابله د انتفاع نۀ وه نو بيا دا مشترکه هبه صحيح ده،د هبې کيدلو په صورت کښې به بيا د مور وقف صحيح وی او که نه نو صحيح به نۀ وی. **والله سبحانه وتعالی اعلم.**

**۸ محرم ۱۴۰۱ هجری**

## په هبة المشاع کښې قبضه او تصرف کول مُثبِت د ملک دی او که نه؟

**سوال** : يو سړی خپل څه څيز په مشترکه توګه ډيرو کسانو ته هبه کړو، موهوب لهم قبضه کړو، او تصرف ئې هم پکښې وکړو.اوس دغه سړې چا چې دا هبه کړې وه هغه وفات شو، نو اوس پوښتنه دا کول دی چه :

۱- دا هبه صحيح شوه که نه؟

۲- په صورت د عدمِ صحت کښې به دا څيز وارثانو ته رد کول واجب وی او که نه؟

۳- په صورت د هلاک کښې به په موهوب لهم باندې ضمان وی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هبة المشاع صحيح نۀ ده،د ملک د ثبوت د پاره په کښې دوه قوله دی: ۱- راجح او مفتی به قوله دا دې چې ملک په کښې نۀ ثابتيږی،ددې وجې نه رد علی الورثة واجب دې، په صورت د هلاک کښې به پرې ضمان راځی،د رد کولو نه وړاندې هم په دې کښې د واهب او د هغه د وفات نه پس په کښې د هغۀ د وارثانو تصرفات نافذ دی،د موهوب له هيڅ تصرف به په کښې نافذ نۀ وی.

د دې قول تصريح د حضرت امام محمد رحمه الله نه د منقول کيدلو نه علاوه همدا روايت د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله نه هم موجود دې.

۲ –دويم قول په کښې د ملک د ثبوت هم دې، ليکن د فقهاء کرامو رحمهم الله د تصريحاتو مطابق دا ملک خبيث او فاسد دې،ددې وجې نه د دې قول په بناء باندې هم رد واجب دې، او په صورت د

هلاک په کښې ضمان واجب دې. والتفصیل فی الشامیة، والله سبحانه وتعالی اعلم.

٦ رمضان ١٤٠٤ هجری

## د هبة المشاع حکم پس د تقسیم نه

**سوال:**- د هبة المشاع په صورت کښې موهوب لهم دغه موهوب څیز تقسیم کړو، نو آیا هبه به صحیح شی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې د واهب په صریح اذن سره ئې تقسیم کړې وی خو هبه به صحیح شی او که نه نو نۀ صحیح کیږی.

قال فی التنویر: فان قسمه وسلمه صح.

وقال العلامة ابن عابدین رحمة الله علیه: (قوله فان قسمه) ای الواهب بنفسه او نائبه او امر الموهوب له بان یقسم مع شریکه کل ذلک تتم به الهبة کما هو ظاهر لمن عنده ادنی فقه تأمل رملی، والتخلیة فی الهبة الصحیحة قبض لا فی الفاسدة جامع الفصولین. (ردالمحتار ص ٥٠٠ ج ٤) والله سبحانه وتعالی اعلم

٤ شوال ١٤١٤ هجری

## تفصیل د هبې د قبض کولو

**سوال:**- د هبې د صحت د پاره د موهوب له قبض کول هم په دغه مجلس کښې شرط دی او که نه د مجلس نه پس هم کافی کیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصوا ب**: د مجلس نه پس قبض په دې شرط سره صحیح دې چې د واهب په صریح اذن سره وی. برابره خبره ده که اذن په وخت دهبې ومونډلې شی او که نه وروستو ومونډلې شی. په مجلس کښې د قبض دپاره صریح اذن شرط نۀ دې، بلکه تخلیه وتمکن من القبض هم کافی دې

قال الامام الحصکفی رحمة الله علیه: (و) تصح (بقبض بلا اذن فی المجلس) فانه هنا کالقبول فاختص بالمجلس (و بعده به) ای بعد المجلس بالاذن، و فی المحیط لو کان امره بالقبض حین وهبه لا یتقید بالمجلس و یجوز القبض بعده (والتمکن من القبض کالقبض فلو وهب لرجل ثیابا فی صندوق مقفل و دفع الیه الصندوق لم یکن قبضا) لعدم تمکنه من القبض (و ان مفتوحا کان قبضا لتمکنه منه) فانه کالتخلیة فی البیع) اختیار و فی الدرر والمختار صحته بالتخلیة فی صحیح الهبة لا فاسدها (ردالمحتار ص ٦٨٨ ج ٤)

وقال العلامة الطحطاوی رحمة الله علیه: (قوله و بعده به) لان الاذن ثبت نصا و الثابت نصا ثابت من کل وجه

فيثبت فی المجلس و بعد المجلس شلبی (قوله لا يتقيد بالمجلس) لما ذكر ان الاذن ثبت نصا الخ (حاشية الطحطاوی ص ۳۹۳ ج ۳). وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: تحت (قوله فان قسمه) والتخلية فی الهبة الصحيحة قبض لا فی الفاسدة جامع الفصولين. (ردالمحتار ص ۵۰۰ ج ۴) والله سبحانه وتعالى اعلم ٤ شوال ١٤١٤ هجری

## د نابالغه څيز عاريةً اخستل روا نۀ دی

**سوال**: د ناپوهه ماشوم مملوکه څيز د والدينو د پاره عاريةً استعمالول روا دی او که ناروا؟ همدغه شان د پوهه نابالغه ماشوم څيز لکه، قلم، کتاب، توليه وغيره عاريةً استعمال د استاذ وغيره د پاره روا دې که ناروا؟ حال دا چې په خوشحالئ سره ئې ورکړی. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نابالغه ماشوم مملوکه څيز استعمالول د والدينو، استاذ، مرشد وغيره ټولو دپاره ناروادی او گناه کبيره ده.

والدينو له پکار دی چې خپل اولاد د عامو د استعمال د څيزونو مالکان نۀ جوړوی بلکه په غرض د استعمال دې د هغوی په قبضه کښې ورکوی.

په دې صورت کښې به والدين په وخت د ضرورت دا څيزونه استعمالولې شی. او د والدينو په اجازت سره به استاذ وغيره له هم ددې استعمال روا وی.

قال الامام التمرتاشی رحمه الله: هی تمليك المنافع مجانا (ردالمحتار ص ۵۰۲ ج ۴)

وفی قرض الشامية: قال فی الهداية فان تاجيله لا يصح لانه اعارة وصلة فی الابتداء حتی يصح بلفظة الاعارة ولا يملكه التبرع كالوصی والصبی. (ردالمحتار ص ۱۱ ج ۴) والله سبحانه وتعالى اعلم.

١٩ شعبان ١٤١٥ هجری

**تمت بالخير**

**داحسن الفتاوی پنځم جلد ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً وظاهراً وباطناً**

**وصلی الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى اله وصحبه وسلم اجمعين برحمتک يا ارحم الراحمين**

# د موضوعاتو فهرست

عنوان صفحه

تمت بالخیر

تم فهرس الکتاب بعون الملک الوهاب

د احسن الفتاوی د پنځم جلد فهرست ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین